يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ

په پښتو ژبه کښې آسان، عام فهم او تحقيقی انداز کښې
علمي او الهامي نکاتو باندې مشتمل، لاجوابه علمي تحفه

# رُشدُ القرآن

## فی تفسیر آیات القرآن

دوم جلد

له ابتداء د سورة نساء نه تر آخر د سورة اعراف پورې

تالیف

شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا اسید اللہ صاحب حفظه الله

جدید مکتبه رشیدیه
محله جنگی قصه خوانی پشاور
091-2580074

حنفی شافعی

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب وغیرہ۔



مالکی حنبلی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

يَهۡدِيۡ اِلَى الرُّشۡدِ فَاٰمَنَّا بِهٖ وَلَنۡ نُّشۡرِكَ بِرَبِّنَاۤ اَحَدًا

په پښتو ژبه کښې آسان، عام فهم او تحقيقي
انداز کښې، علمي او الهامي نکاتو باندې مشتمل ، لاجوابه علمي تحفه

# رشد القران




## فی تفسیر آیات القرآن

دويم جلد

له ابتداء د سورة نساء نه تر آخر د سورة اعراف پورې

تاليف
شيخ القرآن والحديث
حضرت مولانا أسيد الله صاحب رحمه الله

جديد مكتبه رشيديه
محله جنگي قصه خواني پشاور 091-2580074

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ



د کتاب نوم : **رشد القران فی تفسیر آیات القرآن**

تالیف : شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا **أسید الله** صاحب رحمه الله

تصحیح ونظر ثانی : مولانا تقی الله صاحب

جلد : دویم

صفحات : ٦٧٦

تاریخ : ٢٠١٦ء

جدید مکتبہ رشیدیہ
محلہ جنگی قصہ خوانی پشاور 091-2580074

د کتاب تر لاسه کولو ځایونه

| | | |
|---|---|---|
| پشاور | کندوز | بغلان |
| اکوړه خټک | غزني | لوګر |
| کوټه | جلال آباد | خوست |
| پروان | قندهار | |

| رکوع | سورة النساء مدنية | آيتونه |
|---|---|---|
| ۲۴ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | ۱۷۶ |
| | خاص په نوم د الله سره چه بیحده مهربان او ډیر رحم کوونکي دې شروع کوم | |

**رقم تلاوتها (۴)، تسلسلها حسب النزول (۹۲) ، نزلت بعد الممتحنة**

**ربط:** ددې سورة دماقبل سره ربط په دوه قسمه دې - (۱) اسمی (۲) معنوی یعنی مضمونی ربط

**ربط اسمی** د سورة فاتحه نه شروع دې (۱) ((اياك نعبد واياك نستعين)) . (فاتحه) . (۲) ((لانعبد كما عبدت اليهود)) . (البقره) . (۳) ((لانعبد ولانستعين كاالنصرى)). (آل عمران) . (۴) ((ونؤدی حقوق النساء)) . (۵) ((فانزل علينا مائدة رحمتك)) . (مائده)

**ربط مضمونی** - دادې چه سورة بقرة د مضامینو په اعتبار سره ام او اصل دې په هغې کښې مضمون توحید .نفی دشرک اعتقادی.نفی شرک فعلی. نفی شرک فی الشفاعة او رسالت . جهاد . انفاق.امور انتظامیه .امور مصلحه دا ټول مذکور وو نو په سورة آل عمران کښې ترینه مضمون توحید. نفی شرک اعتقادی. او رسالت او ددې دواړو متعلق د شبهاتو جوابونه ذکر شوی وو او دا رنګې مسئله د جهاد او انفاق ذکرشوې وه او دلنه دهغه مضامینونه د امور انتظامیؤو تفصیل ذکرکیږی

## خلاصه

په دې سورة کښې امور انتظامیه ذکرکیږی او دا په دوه قسمه دی (۱) یو قسم هغه دی چې د هغې تعلق د رعیت سره دې (۲) دویم قسم هغه دی چه دهغې تعلق حکامو او سلاطینوسره دې نو په دې اعتبارسره دا سورة دوؤحصوته منقسم دې اوله حصه د ابتداء نه تر آیت (۵۷) پورې ده . په دې کښې(۱۴) احکام د رعیت اومسئله د توحید بالاختصاربیانیږی او دویمه حصه ترآیت (۱۲۶) پورې ده په دې کښې نهه احکام سلطانيه او مسئله د توحید په تفصیل سره بیانیږی

د (۱۴) احکامو د رعیت خلاصه داده چه د یو بل حق تلفی مه کوئ. او په یو بل ظلم مه کوئ. او د نهه (۹) احکامو سلطانيو خلاصه داده چه بل څوک هم ظلم کولو ته مه پریږدئ

د سورة په ابتداء کښې تخويف اخروی دې يعنی کوم احکام چې دلته ذکرکيږی نه دی ماندی عمل اوکړئ ورنه تاسو ته به عذاب درکړې شی . او د عذاب نه دبچ کېدو د دره درئ اموردی دوه سلبی يو ايجابی دې (۱) ظلم مه کوئ دا خلاصه د احکامو درعيت ده (۲) شرک مه کوئ (۳) احسان کوئ او د دواړو حصونه روستو تر آخر پورې تنوير دې يعنی حصه اولی د دوو احکامو توضيح او تفصيل دې يعنی د دويم حکم او د څوارلسم حکم تفصيل دی او د حصه ثانی د نهم حکم تنوير او توضيح ده

## مختصره خلاصه

دا سورة دوه حصې دې په اوله حصه کښې څوارلس احکام د رعيت او مسئله د توحيد بالاختصار ده او په حصه ثانی کښې نهه احکام سلطانيه او مسئله د توحيد تفصيلا ده او په خاتمه کښې تنوير دې په دې دواړو حصوباندې

**تنبيه** په سورة آل عمران کښې د شرک اعتقادی يوقسم نفی اوکړ ې شوه يعنی دا چې د الله تعالی نه ماسوی هيڅ څوک د بلنې او دعبادت حقدار مه گنړئ او په سورة نساء کښې د بل قسم شرک اعتقادی نفی کيږی چې **هغه** شرک فی التشريع دې يعنی دا چې د الله تعا لی د حکم په مقابله کښې د بل چا حکم واجب الاتباع منل . حضرت شيخ دخپل شيخ رحمه الله عبارة دا سې نقل کوی ,,ان الله بيّن فی سورة النسآء احکامًا ثم قال اعبدوا الله ولاتشرکوا به شيئًا فعلم ان کون العبد بحيث يعتقدون انّ علىّ اتباع امور غير ما امر به الشارع شرک ،،

**فائده** بعضې خلق تقليد ته شرک فی التشريع وائی ځکه چې مقلد د خپل اما م قول د شارع ((رسول) دقول په مقابله کښې منی

ددې **جواب** دادې چه دا جهل يا تجاهل دې او مبنی دې په عدم فرق په ما بين د تشريع او تشريح کښې او دشارع او د شارح کښې او که د مجتهد قول په ظاهر کښې د يو حديث نه مخالف وی نو په حقيقت کښې د بل حديث قوی سره موافق وی او د ترجيح دپاره د هر مجتهد خپل خپل اصول دی هر کس او نا کس دا صلا حيت نه لری (والله الموفق)

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُوا۟ رَبَّكُمُ ٱلَّذِى خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَٰحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا

اې خلقو[۱] ويريږئ دخپل هغه رب نه چې پيدا کړي يئ تاسو ديونفس نه اوپيدا کړې ئې ده هغه نه بي بي دهغه

۱ تخويف اوتمهيد داحکامو د سورة

وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ

اوخواره کړي ئې دي دغه دواړو نه سړي ډېر او ښځې ډېرې، اوويرېږئ دغه الله نه چې تاسو ديوبل نه سوال کوئ

بِهِ وَالْأَرْحَامَ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا ﴿١﴾ وَآتُوا الْيَتَامَىٰ

دهغه په نامه اوويرېږئ دصله رحمئ قطع کولونه . بېشکه الله په تاسونګهبان دي اوورکوئ (١) يتيمانونه

أَمْوَالَهُمْ ۖ وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيثَ بِالطَّيِّبِ ۖ وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَهُمْ

مالونه دهغوئ اومه اخلئ دهغوئ عمده مال په بدله دخپل ردي مال کښې. اومه خورئ دهغوئ مالونه

إِلَىٰ أَمْوَالِكُمْ ۚ إِنَّهُ كَانَ حُوبًا كَبِيرًا ﴿٢﴾

د خپلو مالونو سره . بېشکه دا ګناه دي لويې

﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ﴾ دا تخويف دي او تمهيد دي ټولواحکامو د سورة ته ځکه چې د سورة خلاصه داده چې ظلم مه کوئ. شرک مه کوئ د يو بل سره احسان او ښا ښته سلوک کوئ . نو دا آيت ورله تمهيد دي چې ستاسو خالق او ستا سو رب يو ذات دي هغه تاسو د يونفس نه پيدا کړي يئ. حاصل دا چې ستاسو خالق يو ذات دي او ستاسو ((مخلوق منه)) هم يو دي. ستاسو رب او ستاسو اب يو دي نو تاسو په منزله د اعضاؤ د جسدواحد يئ او د يو جسد اعضاء په يو بل باندې ظلم نه کوی بلکه د يو بل تعاون او خدمت کوی بغير د څه معاوضه نه نو تاسو هم دغه شان شئ ، وفي الحديث عن النعمان بن بشير رضي الله عنه قال، قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : ((ترى المؤمنين في تراحمهم وتوادّهم وتعاطفهم كمثل الجسد الواحد اذا اشتكى عضو تداعى له سائر الجسد بالسهر والحمى)) . (متفق عليه) . ((وعن رضى الله تعالى عنه : المؤمنون كرجل واحد ان اشتكى عينه اشتكى كله، وان اشتكى رأسهُ اشتكى كله)) . (مسلم)

شيخ سعدي وائی

| | |
|---|---|
| بنی آدم اعضای یک دیگراند | که در آفرینش زیک جوهر اند |
| چو عضو بدرد آورد روزگار | دیگر عضوها را نماند قرار |

١ اول حکم داحکامو درعيت نه يعني ديتمانو مالو مه خورئ داستاسو دپاره حرام دي

﴿نَّفۡسٖ وَٰحِدَةٖ﴾ آدم علیه‌السلام مراد دي ﴿وَخَلَقَ مِنۡهَا زَوۡجَهَا﴾ حضرت حواء په جنت کښی د آدم علیه‌السلام د چپي پښتئ نه پیدا شویده (کما ورد فی الحدیث)، ﴿وَبَثَّ مِنۡهُمَا﴾ یعني ددنیا په اطرافو او اکنافو کښې چې څومره سړي او ښځې دي دا ټول الله تعالی دآدم علیه‌السلام او د حواء نه پیدا کړي دي اوخوار ه کړي دي په اطرافو د عالم کښې ﴿تَسَآءَلُونَ﴾ دا په اصل کښی ((تتساءلون)) وو یوه تا د تخفیف دپاره حذف شویده باب تفاعل د اشتراک دپاره دي یعنی تاسو د یو بل نه د الله تعالی په نا مه سره سوال کوئ نو د هغه د حکم نه هم خلاف مه کوئ یا ﴿تَسَآءَلُونَ﴾ په معنی د ((تسئلون)) سره دي او ((به)) کښی (با) زائد ده یعنی تاسو سوال کوئی د هغه نه ﴿وَٱلۡأَرۡحَامَۚ﴾ دا عطف دي په لفظ د الله باندي ای ((واتقوا الارحـــام ان تقطعوهـــا)) یعنی ځان بچ کړئ د صله رحمی (خپل ولی) قطعه کولونه ﴿رَقِيبٗا﴾ نګاهبان او نګرانی کونکي. ابن کثیر رح وائ چې په دي کښی اشاره ده مضمون د حدیث ته : ((اعبدوالله کأنک تراهُ فإن لَمْ تکنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ یَرَاکَ)) .

﴿وَءَاتُواْ ٱلۡيَتَٰمَىٰٓ أَمۡوَٰلَهُمۡۖ﴾ دا اول حکم دي په احکامو د رعیت کښي او دا خطاب دي اولیاؤ د یتیم ته او د ورکولو نه مراد حواله کول نه دي ځکه دا روستو ذکر کیږی بلکه مراد ترینه ترک سالمةً دي (روح) یعنی تاسو مه خورئ مالونه د یتیمانانو

د هغوئی مال به په جاهلیت کښي به په دریوطریقو سره خوړي کیده .

١- یو دا چې دیتیم ما ل نه به ئی عمده څیز ځان لره واخستو او ردی څیز به ورله په بدله کښی ورکړو ٢- دا چې خپل مال او ضرورت څه شي به ورسره نه وو نو د یتیم مال به ئې اخستلو ٣ - دا چې دیتیم سره به ئی شرکت اوګډون اوکړو نوبدې طریقه به ئې د یتیم مال خوړلو د لته د د ري وارو طریقونه منع شویده د اولې طریقې نه منع دا ده

﴿وَلَا تَتَبَدَّلُواْ ٱلۡخَبِيثَ بِٱلطَّيِّبِۖ﴾ یعني مه اخلئ عمده مال د یتیم په بدل د ردی مال ستا سوکښی علامه قرطبی وائی ((ای لاتتبدلوا الشاة السمینة من مال الیتیم بالهزیلة ولا الدراهم الطیب بالزیف وکانو فی الجاهلیة لعدم الدین لایتحرجون عن اموال الیتامٰی فکانو یأخذون الطیب والجید من اموال الیتامی ویبدلونه بالردی من اموالهم ویقولون اسمٌ باسمٍ ورأسٌ برأس فنهاهم الله عن ذلك، هذا قول سعید بن مسیب والزهری والسدی والضحاك وهو ظاهر الایة ))

یعنی د آیت دا معنی کول ظاهر دی چې مه اخلئ عمده مال د یتیم په بدله دَ ردی مال

ستاسو كښي لكه چه دا قول د سعيد .زهري. او سدی دي خوښدي تقديريه تبدل باب تفعل په معنی د تبديل باب تفعيل سره شی خكه چي صاحب د روح المعاني وغيره دا تفصيل ذكر كړي دي چي د دي مادي نه چي كله باب استفعال را شی لكه استبدال .يا تفعل را شی لكه تبدل. نو د فعل نه روستو دوه امره ذكركيږي يو مدخول الباء وی او بل مدخول الباء نه وی نو مدخول الباء به متروك وی اوكوم چي مدخول الباء نه وی نوهغه به ماخوذ او موجود وی لكه ﴿أَتَسْتَبْدِلُونَ الَّذِي هُوَ أَدْنَىٰ بِالَّذِي هُوَ خَيْرٌ﴾ د لته ((ادنی)) چه غير مدخول الباء دي ماخوذ او «خير» چه مدخول الباء دي متروك دي او بـ لكه ﴿وَمَن يَتَبَدَّلِ الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ﴾ دلته كفر ماخوذ او باقی دي او ايمان متروک دي نو بناء په دي قانون دلته كښي يكار ده چي ((طيب)) چي مدخول الباء دي متروك شی او ((خبيث)) ماخوذ شی او معنی ني دا شی چي مه اخلئ ردی مال د يتيم په بدله دعمده مال خپل كښي حالانكه دلته امر بالعكس دي خكه چي دوئی به عمده شي اخستلو ديتيم نه او ردی به ني ورله په بدل كښي وركولو

**يوجواب** داسي دي چي ولی د يتيم چونكه د هغه د طرف نه وكيل دي نو د ده استبدال اخذ د ردی شو د يتيم پاره په بدله دعمده كښي

**اوبل جواب**: دادي چي دلته باب استفعال په معنی د تفعيل سره دي يعنی استبدال په معنی دتبديل سره دي او په تفعيل كښي كله مدخول د با متروك وی لكه ﴿وَبَدَّلْنَاهُم بِجَنَّتَيْهِمْ جَنَّتَيْنِ﴾ اوكله بالعكس وی يعنی مدخول دَ باء موجود اوحاصل وی اوكوم چي مدخول الباء نه وی نوهغه به حاصل اوموجود نه وی لكه ((بَدَّلْتُ الْحَلْقَةَ بِالْخَاتِمِ)) چي دحلقه نه خاتم جوړ كړی نو په دي آيت كښي به باب «تفعل» په معنی د «تفعيل» سره شی او باب تفعيل په دي دويمي محاوري سره مستعمل دي

**دريم جواب** اوبعض مفسرين وائی چي ((خبيث)) په معنی د حرام سره دي او ((طيب)) په معنی د حلال سره دي او معنیٰ داده چي مه اخلي حرام يعنی عمده مال د يتيم چي ستاسو دپاره حرام دي په بدله د حلال كښي چي ستاسو مال دي

﴿وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَهُمْ إِلَىٰ أَمْوَالِكُمْ﴾ په دي كښي دويمي اودريمي طريقي منع ده ((الی)) په خپل معنی سره دي او مضاف مقدر دي ((ای الی وقت حصول اموالكم)) نو دا ددو يمي طريقي د منع

د دې الى په معنى د مع سره دي نودا د دريمې طريقې منع ده

﴿إِنَّهُ كَانَ حُوبًا﴾ ضمير راجع دي ماقبل ته چې تبدل او اكل دي د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چې حوب اثم يعنى گناه او ظلم ته وائى په لغت حبشى كښې

وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ فَانْكِحُوا

او كه چيرې تاسو يعني كه پوهيږئ چې انصاف نشئ كولې په باره ديتيمانو جينكو كښې نو نكاح كوئ

مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَاءِ مَثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ ۖ فَإِنْ خِفْتُمْ

د هغې سره چې حلالې وي تاسولره د نورو ښځونه. دوه دوه او درې درې او څلور څلور. پس كه چرې تاسو ويريږئ يعني پوهه شئ

أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ۚ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ

چې عدل نشئ كولې نو نكاح كوئ د يوې سره يا گزاره كوئ په هغه وينځې چې مالک دي ښى لاسونه ستاسو. دا ډيره نزدې ده

أَلَّا تَعُولُوا ﴿٣﴾

دې خبرې ته چې تاسو به ظلم اونكړئ

﴿وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ﴾ **دا دويم حكم دې** د احكام د رعيت نه او د دې حاصل دا دې كه تاسو د يتيمانانو جينكو سره نكاح كول غواړئ نو مهر او نور حقوق ورلره پوره پوره وركوئ او كه مهر او نور حقوق نه ادا كوئى نوبيا د يتيمانانو جينكو سره نكاح مه كوئ د نورو ښځوسره نكاح اوكړئ د حسن رحمه الله نه روايت دې چې په جاهليت كښې به دا رواج وو چې د چا په توليت او قبضه كښې به جينئ وه او مالداره به وه او د غې ولى به ورته رغبت د نكاح او مينه نه وه خو د هغې د مال قبضه كولو دپاره بې ورسره نكاح اوكړه او بيابې ورسره حسن سلوك نه كوو او حقوق د زوجيت به نې نه ادا كول نو الله تعالى دوئى منع كړل ددينه، او د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چې يتيمه جينئ چې دولى په ولايت او تصرف كښې به وه او د ده رغبت او مينه به ورته هم وه د مال او د جمال په وجه نو اراده به ئ وه چې نكاح ورسره اوكړى ليكن په مهر كښې به ئ ورسره انصاف نه كولو چې ديته هغه مقدارمهر وركړى چې څومره بل څوک ورته

---

۱ دويم حكم يعني كه د يتيمانو جينكو سره نكاح كوئ نومهر اونور حقوق ادا كوئ

ورکوی نو دونی منع کړې شو د دینه چې نکاح وکړی د یتیمانو جینکو سره مګر دا چې دوی سره انصاف کوی او پوره پوره مهر ورکوی او امر ورته او شو چې دنورو ښځو سره نکاح کوی یعنی مسوی د یتیمانو جینکو نه ((او پدې حکم باندې تنویر په آخر د سورة کښې راخی))

﴿ وَإِنْ خِفْتُمْ ﴾ په ایت کښې د خو ف نه مراد علم دې او لفظ د خوف هغه معلوم دپاره مستعملیګې چې خوف ترینه کیدېشی او استقبالی وی ((الاتقسطوا)) دا په تاویل د مفرد سره مفعول د ((خفتم)) دې (( ای ان خفتم عدم الاقساط)) ((قسط)) ظلم ته وائی او قاسط ظالم ته وائی. او اقساط عدل او انصاف ته وائی او مقسط منصف ته وائی ((یتامی)) دا جمع د یتیمهٔ ده

﴿ فَانكِحُوا ﴾ هغه چې حلا ل وی یاهغه چې ستاسو خو خې وی او (ما) په معنی د (من) سره دې او تعبیر په (ما) سره شویدې نو د یکښې اشاره ده نقصان دعقل د دوی ته خکه چې ما دْ غیر ذوی العقل دپاره راخی او ((من النساء)) بیان د ما دې ((ای غیرالیتامی)) ﴿ مَثْنَىٰ وَثُلَٰثَ وَرُبَٰعَ ﴾ دا درې واړه منصوب دی بنابر بدلیت د ((ماطاب)) نه یا بنابر حالیت د ضمیر مستتر د ((طاب)) نه او حال چونکه بیان وی د کیفت د فعل دپاره او قیدوی د عامل دپاره او قید په حقیقت کښې نفی د مقابل وی نومعلومه شوه چې نکاح په دې کیفیت سره جائز دې چې مَثْنٰی او ثُلٰثَ او رُبٰاعَ وی اوکه د دینه متجاوز شو نو بیا جائز نه دې، د ترکیب نحوی په اعتبار سره هم دا اسماء غیر منصرف دی د عدل اووصفیت د وجه نه خکه چې (مثنی) معدول دې د اثنین اثنین نه او (ثلث) معدول دې د ثلا ثهٔ ثلا ثهٔ نه او (رباع) معدول دې د اربعهٔ اربعهٔ نه په نزد د بصریونو باندې ددې دریونه علاوه په نورو اسماء عددو کښې عدل نشته او په نزد د کوفیینو باندې راتلې شی ((خماس مخمس)) نه تر ((عُشار معشر)) پورې اګر چې مسموع نه دې اووصفیت په اسماؤ عددوکښې اګر که عارضی وی نو دا معتبر نه وی په منع صرف کښې لیکن دلته د نقل په وجه سره دا وصفیت اصلی ګر خیدلې دې نو معتبر دې او دلته اسماء معدوله ذکر شو یعنی مثنی . ثلث .رباع او اسماء عدد غیر معدوله ذکر نه شو یعنی ((اثنین ،ثلا ثة ، اربعة)) خکه چې په د غه صورت کښ به فهمیږی اشتراک د ټولو په ((اثنین)) یا ((ثلا ثة)) یا ((اربعة)) کښې خکه چې ((فانکحوا اثنین)) معنی داده چې تاسو ټول د اثنین سره نکاح کوئ یا تاسو ټول د ثلا ثة سره نکاح اوکړئ یا د اربعوسره نکاح اوکړئ حالانکه د ا معنی فاسدده او د معدول په معنی کښې تکرار دې نو د ((مثنی)) معنی دا شوه ((اثنین، اثنین)) نو په دیکښې توزیع او تقسیم دې یعنی یوسړې د

دوه ښځو سره نکاح وکړئ او بل سړي هم او بل سړي هم او په دغه شان ثلاث . او رباع دي او بله وجه داده چي په اسماؤ عدد کښي صرف عدد مقصود وي او په اسماؤ معدولو کښي د عدد نه علاوه بل مراد هم وي نو چي دا سې ويلې شي ((جاء القوم اثنان)) نو معنی داده چي دوه راغلل برابره خبره ده که مع وي او که جدا جدا وي او که دا سې اويلې شي چي ((جاء القوم مثنی))
نو معنی ئی داده چي دوه معاً راغلي دی او بيا دوه جمعاً راغلل او دغه رنګي دري او څلور او دلته دوه ښيښنې اودرې يا څلور جمع کول مقصود وو د يوسړي دپاره نوځکه اسم معدول ذکرشو . او عطف په ((او)) سره اُونه شوځکه چي مقصود دلته کښې دادې چي هرڅوک چي هر يو عدد ددې اعدادو نه چې اختياره وي نو جائز ده نو که ((او)) ذکر شوې وی نو هغه دلالت کوی په تقسيم باندې نو مطلب به دا وو چي د يو قسم سړو دپاره اثنين دی او بل قسم دپاره ثلث دی او د بل قسم دپاره به رباع وی او د هرچا دپاره هر يو عدد جائز نه دي حالانکه دا خلاف المقصود دې او د عطف بالواو نه مقصود جمع د داعداد مذکوره نه ده لپاره د شخص واحد حتی چي د شخص واحد دپاره نکاح د تسعو(۹) سره جائز شی ((کماهو رایٔ بعض الروافض وبعض الظاهرية)) (قرطبی) بلکه مقصود بيان د هغه مراتبو د عدد دې، چي په هغې باندې ختميږی جواز د نکاح يعنی جواز د نکاح د عدد مثنی نه شروع دي او په رباع باندې ختم دي

﴿ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا ﴾ يعنې تاسو ته علم يا ګمان وی چي دوؤ يادريو ښځو په منځ کښې انصاف نشې کولې ﴿ فَوَاحِدَةً ﴾ أی ((فَاخْتَارُوا وَاحِدَةً)) يعنی اختيار کړئ يوه په نکاح سره او ﴿أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ﴾ دا عطف دې په ((واحدة)) باندې او د هغې مقابل دې نو دا اشاره ديته ده چي په وينځو کښې عدل او عدد شرط نه دې البته حسن سلوک او احسان ضروری دې او د ا رنګي اشاره ده چي مملوکه مقابل د منکوحې ده نو معلومه شوه چي نکاح او ملکيت دواړه په يو محل باندې نه جمع کيږی، او دلته فعل ناصب يا هغه سابق دې چي ((فاختاروا)) دې البته دلته اختيار په طريقه د تسرّی سره دې او هلته په طريقه د نکاح سره وو، يابل فعل ناصب مقدر دې ای ((فاقتصروا يا فالتفوا))

**سوال** چي دلته کښې ذکرشو ((ان خفتم ان لا تعدلوا فواحدة)) يعنی که تاسو د ډيرو ښځو په حق کښې عدل او مساوات نشې کولې نو بيا يوه ښځه کوئ او په روستو آيت ۱۲۹ کښې دی ((ولن تستطيعوا ان تعدلوا)) يعنې دا يقينی خبره د چي تاسو عدل او مساوات نشې کولې نو د

دواړو اياتونو ډ جمع نه دا معلومه شوه چي د يوې نه زياتې ښځي كول جائز نه دی

**جواب** د ((ولن تستطيعوا ان تعدلوا)) مطلب دادې چي قلبي محبت او ميلان ستاسو په اختيارکښې نه دې نو په هغې کښې د کمی او بيشی په وجه ستاسومواخذه نه کيږی نودا قسم کمې او زياتې مانع نه دې د تعددد ازواجو دپاره البته کوم امور چي ستاسو په اختيارکښي دی يعني ظاهری امورو کښي عدل او مساوات لازم دې لکه نفقه او سکنی وغيره شو او که پدې امورو کښې تاسو عدل او مساوات نه کوئ نو بيا د يوې ښځي نه زياتې ښځې مه کوئ دپاره ددې چي ظلم او نه شی او دامطلب دې ډ دې کلام الهی ﴿فَلَا تَمِيلُوا كُلَّ الْمَيْلِ﴾ اود ﴿وَلَن تَسْتَطِيعُوا أَن تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ﴾ دا مطلب نه دې چي تاسو قدرت نه لرئ د مساوات په ظاهری امورو کښې ځکه دا قدرت لرل خو مشاهد دی نونفي نه صحيح کيږی ﴿ذَٰلِكَ﴾ يعنې نکاح د يوې او يا اکتفاء په وينزه باندې ﴿أَدْنَىٰ أَلَّا تَعُولُوا﴾ ډيره قريبه ده ديته چي تاسوبه ظلم او نکړئ، علامه قرطبی رحمه الله د ابن عربی نه نقل کړې دې چي ((عال)) په او وه مشهورومعنوسره راخی (۱) ميلان ((عال أی مال)) (۲) زيادت (۳) جوراو ظلم کول (عال ای جار) ، (۴) په معنی د افتقار (ای افتقر) (۵) او په معنی د ثقل (ای ثقل) (۶) عال أی قامَ بمؤنة العيال ومنه قوله عليه السلام وابدأ بمَنْ تَعولُ په معنی د غلبې سره ((عال عليه ای غلب عليه)) او اتمه معنیٰ نی کثرت د عيال ده، دامام شافعی رحمه الله نه روايت دې چي دلته دا معنی مرادده ليکن امام ثعلبی رحمه الله او ابن عربی رحمه الله پدې اعتراض کړې دې چي په لغت کښی دعال اوۀ معانی دی او نورې معانې ورله نشته **قرطبی جواب** کړې دې چي دا قول د زيدبن اسلم او د جابر بن زيدنه هم منقول دې چي د عال معانی پدغه اوۀ کښې منحصرې نه دی ((عال الامر اشتد الامر وتفاقم)) هم ده کما قال الجوهری او (عالنی الشئ) ډ (اعجزنی)) په معنی دې

جمهورمفسرينو د ابن عباس رضی الله عنه او دنوروسلفو نه نقل کړېدی چي د ((الا تعولوا)) معنی ظلم دې، د حضرت امام شافعی رحمه الله نه چي کوم تفسير مروی دې نوددې زمانې بعضې زانغين هغه د خاندانی منصوبه بندی (ضبط توليد) د استدلال دپاره پيش کوی

**نواول جواب** ترينه دا دې چي جمهورمفسرينو او سلفو د غه تفسير ندې کړې او نه امام شافعی رحمه الله د ضبط توليد قول کړې دې

**دويم جواب** دادې چي د ضبط توليدقول ددې آيت نه خلاف دې ځکه چي په دې آيت

کښې صراحة د ځلورو ښځوسره د نکاح اجازت ورکړې شوې دې نو دا خو ظاهره خبره ده چې د ډیرو ښځونه خو اولاد هم ډیرپیدا کیږی نوبیا څنګه د اولاد د کم والی ترغیب ذکر کیږی

او د امام شافعی رحمه الله د کلام توجیه داسې ممکنه ده چه ((ذلك)) اشاره ده عدد د څلورو ته او د آیت مطلب داهٔ چه د څلورو ښځو اجازت الله تعالی ورکړې دې نه د زیاتو. نو دا قریب دې چه په تاسو بوج د عیال زیات نه شی. یعنې که د څلورو نه زیاتې جائز شی نو په تاسو به بوج زیات شی او برداشت به ئې نشی کولې او د څلورو یا د کم د څلورونه بوج برداشت کیدې شی

**وَاٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِهِنَّ نِحْلَةً ۭ فَاِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَيْءٍ**

وورکوئ[1] ښځونه مهرونه دهغوئ په خوشحالئ سره. نوکه راضي شي دابنځي تاسونه په بخښنه دځه څيز

**مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوْهُ هَنِيْۗــــًٔـا مَّرِيْۗــــــًٔا ۝**

دمهرنه په خوشحالئ دنفس خپل نوخورئ هغه په داسي حال کښي چي خوندور حلال بي ضرر

﴿ وَءَاتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِهِنَّ ﴾ **دا دریم حکم** دې چې د کوموښځوسره چې تاسونکاح اوکړئ نو مهربه ورته پوره پوره ورکوئ ((صدقات)) جمع د صدقة ده. مهرته ځکه صدقه وائی چې پدې سره معلومیږی صدق د رغبت خپلې زوجې ته ((**نحلة**)) منصوب دېبنابرحالیت او ((**نحلة**)) په معنی د فریضة سره دې ((أی حال کون المهور فریضة لهنّ من الله)) ، یامنصُوب بنابرمفعول مطلق دې ځکه چه ((نحلة)) په معنی د ((اعطاءً)) سره دې ((ای : أعطوا النساء صدقاتهن اعطاءً)) او دا مفعول مطلق بیان د نوع لپاره دې ځکه چې د ((اعطاء)) نه مراد هغه اعطاء ده چې په طیب نفس او په خوشحالئ سره وی او یا هغه اعطاء ده چې پوره پوره وی یعنی ښځوته د دوئ مهرونه پوره پوره او په خوشحالئ سره ورکړئ.

﴿ فَإِن طِبْنَ ﴾ د طِبنَ معنی ده په خپلې رضا اوخوښئ سره وربخل. یعنې کچرې ښځو تاسوته په خپله رضا اوخوښې سره بخنه وکړه د څه شی د مهر نه ﴿عَن شَيْءٍ مِّنْهُ﴾ په موضع د حال کښې دې ((أی : عافیاتٍ عن شیٍ))، د ((منه)) ضمیر راجع دې صدقات ته په تاویل د مال یاصداق سره ﴿نَفْسًا﴾ دا تمیزدې د نسبت د ((طبن)) نه خپل فاعل ته او پدېکښې تاکید د معنی

---

[1] دریم حکم یعنی دیتیمانو جینکو نه علاوه چې نوروښځو سره نکاح کوئ نومهرونه ورکوئ

د ،،طن،، دې چې دا وربخل د مهر د زړه نه وی او صرف ظاهری نه وی

**نفسا**،، مفرد مذکر ذکر شو او ،،نفوسا،، ذکر نه شو اګرکه مرادترینه ،،نفوسهن،، دې خکه دلته مقصود په تمیز ذکرکولوسره بیان د جنس دې چې طیب دې ﴿ فَكُلُوهُ ﴾ مراد اکل نه اخذ او تصرف دې ﴿ هَنِيٓـًٔا مَّرِيٓـًٔا ﴾ دا دواړه منصوب دې بنا په دې چه صفتین دی دمفعول مطلق مقدر دپاره ،،أی . أکلا هنیئا مریئا،، یا منصوب بنابر حالیت د ضمیر د ،،کلوه،، نه دې. ((هنیء، مریء)) دا دواړه په وزن د فعیل سره قریب المعنی دی فرق ئې دادې چې ،،هنیء،، هغه طعام ته وائی چې خونده ور او مزیدار وی یا هغه طعام چې بغیر د مشقت نه حاصل شوې وی او ،،مریء،، هغه طعام ته وائی چه زر هضم کیږی یا هغه طعام ته وائ چې بې ضرره وی. او دواړه ذکر شو د پاره د مبالغې په اباحت کښې. علامه قرطبی او علامه روح المعانی وغیرهما د حضرت علی رضی الله عنه نه روایت نقل کړې دې چه چاته دڅه بیماری شکایت وی اګر چې لاعلاج بیماری وی ،،کمافی بعض الروایات،، نو د خپلې بی بی نه دې دمهر دمال نه څه روپۍ او غواړی او هغه دې ورته په طیب خاطر سره ور کړی نو پدې باندې دې شهد ،،ګبین،، واخلی او د باران د ابوسره دې خلط کړی او استعمال دې کړی نوان شاءالله بیماری به ئې ختمه شی. او حضرت علی رضی الله عنه ددې دپاره درې آیاتونه اولوستل (۱) ﴿ وَنَزَّلْنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً مُّبَٰرَكًا ﴾ (۲)﴿ يَخْرُجُ مِنۢ بُطُونِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَٰنُهُۥ فِيهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ ﴾ (۳)﴿ فَكُلُوهُ هَنِيٓـًٔا مَّرِيٓـًٔا ﴾ نو چه کله (۱) برکت (۲) شفاء (۳) هنیئا .درې واړه راجمعه شی نو معجون شفاء به ترینه جوړشی

**وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ أَمْوَالَكُمُ الَّتِي جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ قِيَٰمًا**

اومه (۱) ورکوئ کم عقلوته مالونه دهغوئ چې تاسوسره دې هغه چې ګرزولی دې الله سبب دبرابرئ دمعیشت ستاسو

**وَارْزُقُوهُمْ فِيهَا وَاكْسُوهُمْ وَقُولُوا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوفًا ﴿۵﴾**

اوخوراک ورکوئ دوئ ته په هغې کښې اوجامې ورکوئ دوئ ته او وایئ دوئ ته خبره نیکه یعنې سمه

﴿ وَلَا تُؤْتُوا۟ ٱلسُّفَهَآءَ أَمْوَٰلَكُمُ ﴾ دا خلورم حکم دې چې یتیم ترڅوپورې بالغ شوې نه وی نومال

---

[۱] خلورم حکم یعنې چې یتیم بالغ شي نو دګواهانو په حضور کښې ورته مال حواله کړئ

نی وررته مه ورکوئ او خرچې ورته ورکوئ او کله چې بالغ شی نو مال ورته ورکړئ د ګواهانو په حضورکښې ((سفهاء)) د ((سفیه)) جمع ده نابالغ ،مبذر،پاګل. دې ټولو ته شامل دې او د ((اموالکم)) نه مرادهغه مالونه د یتیمانانو دی چې د ولی په قبضه کښې وی او دې نی حفاظت کوی او اضافت دوئ ته مجازاً دې

﴿الَّتِي جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ قِيَٰمًا﴾ ((قیاما)) مفعول ثانی د ((جعل)) دې او مفعول او ل نی محذوف دې ((ای جعلها الله)) قیامًا په اصل کښې ((قواما)) وو نو ((واو)) په ((یا)) سره بدل شوې دې او معنې نی ده سبب د معیشت. خکه چه مال سبب د ګذارې او د معیشت د انسان دې او ((التی جعل الله)) دا صفت د ((اموالکم)) دې او پدې صفت ذکر کولو کښې علت ته اشاره ده چې مالونه سبب دمعیشت دی نو سفهاؤ ته چه ورکړ ې شی نو د دوئې معیشت ته به نقصان ورسی او صاحب دروح المعانی وائی چې پدې کښې اشاره ده مدح دمال ته، لکه چې بعض سلفو صالحینونه نقل دی چې مال د مؤمن دپاره صلاح ده او په یو روایت کښې دی ((نعمًا بالمال الصالح للرجل الصالح)) (مشکوة) یعنې د صالح سړی دپاره پاکیزه مال ډیرښه متاع حیات دې او په بل روایت کښې دی ((لابائس بالغنی لمن اتقی الله عزوجل)) ( مشکوة ) یعنې د متقی دپاره په مال کښې څه حرج نشته دې او په کومو روایاتو کښې چې د مال مذمت ذکر دې (۱) نو د هغې نه مراد هغه مال دې چې په حرامه طریقه سره حاصل شوې وی (۲) او یا د معصیت په لاره کښې نی استعمالوی او د خپل خان دپاره نی ذریعه د عذاب جوړوی (۳) او یا دا دهغه چا د پاره دې چې دنیوی ساز اوسامان لره ډیر اهمیت ورکوی او د دین او ایمان اهمیت کم لری او د دنیا دپاره دین پریدی نو ددغه شان خلقو په باره کښې دا حدیث وارد دې ((کادالفقریکون کفرا)) خکه چې بعض وخت کښې تنګدستی مسلمان لره کافر ګرځوی کوم انسان سره چې د دین اهمیت کم وی او د دنیا اهمیت ورسره زیات وی نو چې کله تنګدسته شی (نعوذباالله ) نوبیا د مال د حصول دپاره کافر کیدوته تیاروی نو چې کله دا دواړه خبرې نه وی نوبیامال مذموم نه دې لکه

امام سفیان سوری رحمه الله فرمائلی دی ((کان المال فیما مضی یُکره فاما الیوم فهو ترس المؤمن)) یعنې مخکښې زمانه کښې به خلقوته مال بدلګیده لیکن پدې زمانه کښې مال د مؤمن دپاره ډال دې او دارنګې دوئی ویلی دی ((من کان فی یده من هذه شیئًا فلیصلحه فانه زمانٌ ان احتاج کان اول من یبذل دینه)) یعنې د چاسره چې څه مال وی نو د هغې دې حفاظت کوی خکه چې دا داسې زمانه ده چې څوک محتاج شی نو د خپل حاجت پوره کولو دپاره اول دین خرڅوی

﴿ وَّارْزُقُوْهُمْ فِيْهَا ﴾ يعنې يتيمانانولره خرچ، خوراک، لباس دواني وغيره ضروريات د هغوني د مال نه ورکوئ او په لفظ د ((فيها)) کښې اشاره ده ديته چې د دوني اموال محل د خرچ خوراک او لباس دپاره دی نو په هغې کښې انصاف پکاردې چې ختم نه شي او که ((منها)) نی ويلې وې نو بيا به دې خبرې ته اشاره نه راتله او په حديث پاک کښې راغلی دی ((الامن ولي يتيما فليتجره في ماله حتى لاتأكله الصدقة)) يعنې ولي د يتيم لره پکار ده چې د يتيم په مال کښې دې تجارت کوی چې په صدقې سره ختم نه شي او دلته د صدقه نه مرادنفقه ده لقوله عليه السلام ((نفقة الرجل على اهله صدقة))

﴿ وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ﴾ يعنې سفهاؤ او نابالغوته مال مه ورکوئ او نرمه خبره ورسره کوئ چې دا ستا مال زما سره امانت دې او د ستاسو د فائدې دپاره مې حفاظت کوم او دغه شان نورې نرمې او خوږې خبرې ورسره کوئ او د لاسه کوئ نې او علامه روح المعاني وائي چې په دې کښې تعليم د ضرورياتو د دين هم داخل دې.

وَابْتَلُوا الْيَتٰمٰى حَتّٰٓى اِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ ۚ فَاِنْ اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ

او آزميښت کوئ په يتيمانو ترهغې چې کله اورسي دوئ حد دنکاح ته (بلوغ) نو که معلومه کړه تاسو دهغوئ نه

رُشْدًا فَادْفَعُوْٓا اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ ۚ وَلَا تَاْكُلُوْهَآ اِسْرَافًا وَّبِدَارًا اَنْ

هوښيارتيانوورکړئ مالونه دهغوئ هغوته. اومه خورئ هغه په اسراف سره اوجلتئ سره دوچې د يرې ددېنه چې دوئ به

يَّكْبَرُوْا ۭ وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ۚ وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَاْكُلْ

لوئي شي. اوڅوک چې غني وي نوخان دې بچ ساتي دمال ديتيم نه. اوڅوک چې فقيروي نو خوراک دې کوي دهغې

بِالْمَعْرُوْفِ ۭ فَاِذَا دَفَعْتُمْ اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ فَاَشْهِدُوْا عَلَيْهِمْ

نه په نښه طريقه. بس کله چې تاسو حواله کوئ دوئ ته مالونه ددوئ نوګواهان اونيسئ په هغوئ باندې

وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا ۝

او پوره دې الله حساب کوؤنکې

﴿ وَابْتَلُوا الْيَتٰمٰى ﴾ دا د ماقبل سره متعلق دې يعنې سفهاؤته او نابالغوته مالونه مه ورکوئ.

البته د دوئی د صلاحیت ازمیښت کوئ او امتحان ئې اخلئ معمولی کارونه او خرید اوفروخت وغیره پرې کوئ ترڅو چې دوئ بالغ شی نو د بلوغ نه بعد ﴿فَإِنْ ءَانَسْتُم مِّنْهُمْ رُشْدًا﴾ که چرې تاسو به دوئ کښې قابلیت او صلاحیت ا ولیدو نومالونه ورته حواله کړئ د ګواهانو په حضور کښې. اوکه په دوئ کښې قابلیت او صلاحیت نه وو، نو که مجنون وؤ نوهغه ته خوبه مال نشی حواله کیدې او که مجنون نه وی هسې مبذوروی یا د ماشوم والی اثرات ترینه نه وی زائل شوی بلکه مال خرابوی نوحجربه پرې لګولې شی. نواکثرفقهاء کرام وائی چې ترڅوپورې پده کښې صلاحیت د رشد نه وی راغلې نوحجربه پرې لګولې شی اوامام اعظم امام ابوحنیفه علیه السلام وائی ترپنځویشت کالوپورې به پرې حجرکولې شی. دینه وروستوبه پرې نشی کولې ځکه پنځویشت کاله عمر د جد (نیکه) مرتبه ده یعنې په (۲۵) کالو کښې سړې جد (نیکه) جوړیدې شی نوحجر پرې ندې پکار ځکه دولس کاله ادنی مُده د بلوغ ده او شپږ میاشتې ادنی مده د حمل ده نوچې کله په دولس نیموکالوکښې ځوک اب جوړشی نو په پنځویشت کالوکښې جدجوړیدې شی ﴿إِسْرَافًا وَبِدَارًا﴾ دا دواړه حال دی د ضمیر د ((لا تأكلوا)) نه او ((اسراف)) په معنی د ((مسرفين)) سره دې او ((بدارا)) په معنی د ((بادرين)) سره دې ﴿أَن يَكْبَرُوا﴾ دا په تاویل د مفرد سره دې او مضاف مقدردې ((اي مخافة ان يكبروا)) یعنې مه خورئ مالونه دیتیمانو په داسې حال کښې چې تاسواسراف کونکی یئ او جلدی کونکی یئ د وجه د خوف د دینه چې یتیمانان به لوئ شی نو مونږنه به مالونه واخلی نوددې وجه نه تاسو د یتیم مال په جلتئ سره خورئ نوداسې مه کوئ.

﴿وَمَن كَانَ غَنِيًّا﴾ یعنی ځوک چې غنی وی نو د یتیم دمال حفاظت دې کوی او څه دې ترینه نه اخلی اوکه ځوک فقیر وی،اونفقې ته محتاج وی نوکه دخپل خان لپاره مستقل کسب کولو سره د یتیم د مال حفاظت نشی کولې نودغه شان سړې دې د یتیم د مال خدمت کوی او د عرف مطابق دې ترینه اجرت اخلی، یا دې ترینه قرض واخلی اوبروقت دې اداء کړی.

﴿فَأَشْهِدُوا عَلَيْهِمْ﴾ داحکم داشهاد استحبابًا دې

لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْأَقْرَبُونَ ۠ وَ لِلنِّسَآءِ نَصِيبٌ مِّمَّا

[illegible] حصه ده ده هغه مال نه چي پرېښودي وي مورپلار او خپلوانو. او ښځو دپاره هم حصه ده ده هغه مال نه

تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْأَقْرَبُونَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ أَوْ كَثُرَ ۭ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا ۝ وَ إِذَا حَضَرَ

چي پرېښودي وي مورپلار او خپلوانو لږوي هغه مال يا ډېروي. حصه مقرر کړی شوې اوکله[1] چي حاضر شي

الْقِسْمَةَ أُولُوا الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِينُ فَارْزُقُوهُمْ مِّنْهُ وَقُولُوا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوفًا ۝

تقسيم دميراث ته خپلوان او يتيمان او مسکينان نو خرچه ورکړئ هغوی ته دده هغه مال نه او وايئ دوی ته خبره نرمه

وَلْيَخْشَ الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعٰفًا

او وېرېږي[2] دي د الله نه په باره ديتيمانو کښي، هغه کسان چه که چرې پرېږدي دخپل نه روستو اولاد ضعيفان

خَافُوا عَلَيْهِمْ ۠ فَلْيَتَّقُوا اللّٰهَ وَلْيَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا ۝ إِنَّ الَّذِينَ

چي يره کوي د ظلمه زياتي نه په هغوی. نو او وېرېږي د الله نه او خامخا وائي دې دوی خبره سمه. بېشکه[3] هغه کسان

يَأْكُلُونَ أَمْوٰلَ الْيَتٰمٰى ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا ۭ

چي خوري مالونه ديتيمانو په ظلم سره نو دده مګر داچي دوی اچوي په خېټو خپلو کښي اور.

وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا ۝

او زر ده چي داخل به شي دوی اور ته

﴿ لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْأَقْرَبُونَ ﴾ **دا پنځم حکم دی** د احکامو د رعيت نه يعني په ترکه کښي دتمامو ورثو حصې مقررې دي نو دهيچا حصه مه کموئ. دجاهليت درسمونو نه يو

١ پنځم حکم په ميراث کښي دټولو وارثانو حصې مقررې دي دهيچا په حصه کښي کمې مه کوئ

٢ شپږم حکم يعني په وارثانو کښي چي يتيمان مساکين وي نو دتقسيم نه قبل هغوی ته دخوراک دپاره څه لږ څيز دخوراک ورکړئ او قول معروف ورته وائي يعني داچي په تقسيم کښې به تاسو ته بيا پوره حصه درکړې شي

٣ زجر اول

٤- زجر ثاني

رسم د او چي دمړی دميراث نه به زنانو، ماشومانو، اومعذورونه حصه نه ورکولی کیده او ويل به ئی چي دميراث حقدار هغه څوک کيدي شی چي جنگ کولي شی او دخپلي علاقی او قوم او د مال حفاظت کولي شی. نوپدي آيت کښي ددغه رسم رد دي او پدي آيت کښي اجمالي طورسره ددي خبري ذکردي. او نورتفصيل ئی په شپږم حکم کښي راځی (ان شاء الله تعالی)

لفظ د ((رجال)) بالغ، نابالغ، معذور، تندرست ټولو ته شامل دي او دغه شان لفظ د ((نساء)) او په ﴿تَرَكَ ٱلْوَٰلِدَانِ وَٱلْأَقْرَبُونَ﴾ کښي علت داستحقاق دميراث ته اشاره ده چي ولادت او قرابت دي. نه هغه چه اهل جاهليت وائی . او قرابت زوجيت ته هم شامل دي په خلاف دولادت نه. نو ددي وجي نه ((الوالدان والاقربون)) دواړه ذکرشو

﴿مِمَّا قَلَّ مِنْهُ أَوْ كَثُرَ﴾ دابدل دي د (ما) نه په ﴿مِمَّا تَرَكَ﴾ کښي ﴿نَصِيبًا مَّفْرُوضًا﴾ دا تاکيددي د ((نصيبٌ)) دپاره او يا حال دي ترينه. او ياحال دي دضميرد ((قلّ)) او ((کثر)) نه. او مفروض په معنی دمصلح سره دي يعني داحصه ورکول الله تعالی فرض کړی دی. او يا فرض په معنی دتقدير سره دي يعني دا الله تعالی پخپله مقررکړی دی

﴿وَإِذَا حَضَرَ ٱلْقِسْمَةَ﴾ داهم په پنځم حکم کښي داخل دي اوحاصلي ئی دادي چي کله ميراث تقسيمولوته خپلوان او يتيمانان او مساکين حاضرشی نودوئی لره ترينه ورکوئ او نرمه او پسته خبره ورته کوئ پدي کښي دمفسرينو دوه رائی دی يو دا چي داحکم منسوخ دي په آيت دميراث سره چي روسته راځی. او دويمه رايه داده چي دا حکم منسوخ نه دي او مراد ((اولوالقربی)) وغيره نه دادي چي دوئی وارثان نه وی او داحکم استحبابی دي يعني په وخت دتقسيم دميراث کښي هغه خپلوانو او مساکينوته چي وارثان نه وی څه ورکول په طور دتصدق پکار دی چي دا اخلاقی فريضه ده

**حضرت شيخ فرمائی** چي د ((او لو القربی)) نه مراد هغه خپلوان دی چي وارثان وی او ((واليتامی والمساکين)) عطف تفسير دي يعني په ورثو کښي هغه ورثه چي يتيمان او مساکين وی دهغوئ دحقوقو خاص خيال ساتل ضروری دی چي ددوئ حق ضائع نه شی. يا دا چي کله دوئ دميراث دتقسيم دعوی کوی فی الحال دوجه دحاجت ددوئ نه اوفی الحال تقسيم مشکل وی نو دوئ له دي د ضرورت مطابق څه لږه حصه ورکړي شی. چه روستو به د دوئ په حصه کښي حساب شی. نو دا حکم د دوئ د ضرورت په بناء واجب دي. او ﴿وَقُولُوا۟ لَهُمْ قَوْلًا

﴿مَّعْرُوفًا﴾ مطلب دادې چې تاسو ورته نرمه خبره کوئ اوهغه دا چې دا لږه حصه فی الحال دضرورت پوره کولو دپاره واخلئ او روستو چې کله پوره تقسیم کیږی نوتاسوته به پوره حصه درکړې شی

﴿وَلْيَخْشَ ٱلَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا۟﴾ دا زجردې هغه خلقوته چې دیتیمانانو او مسکینانو حق ملفی کوی ((الذین)) موصول سره دصله نه فاعل دې او مفعول مقدر دې ((ای ولیخش الله)) او یا ((ولیخشی الظلم)) او د ((الذین لوترکوا)) نه ولی دیتیم یاموصی مراد دې یعنې متولی دیتیم دې د یتیمانانو سره داسې سلوک کوی چې هغه سلوک او معامله دخپل اولادسره کول غواړی یعنې ولی دې دا قسم سوچ اوکړی که خه مړشم او زمایتیمانان بچی پاتې شی نو دهغوئ په حق کښې به زه څنګه قسم تمنا کوم دغه شا ن دې دنورویتیمانانو سره سلوک کوی او د ﴿قَوْلًا سَدِيدًا﴾ نه مراد نرمه خبره ده او د ښائسته ادابو تعلیم دې، یامراد د ((الذین لوترکوا)) نه مریض قریب الموت دې یعني هغه خلق دې دالله تعالی نه وه یریږی چې قریب الموت وی او اولاد ئې پاتې کیږی. نودوئ دې دالله تعالی نه ویریږی په وصیت کولو کښې

اوقول سدید دې وائی یعنی وصیت دې په جائزه طریقې سره کوی او په ناجائزه دې وصیت نه کوی چه هغه ثلث نه زیات وصیت کول دی (شاه ولی الله رحمه الله)

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَٰلَ ٱلْيَتَـٰمَىٰ﴾ دا زجر او تخویف دې هغه خلقوته چې دیتیما نانو مالونه خوری مراد د اکل نه اخذ دې. په ﴿فِى بُطُونِهِمْ﴾ په ذکر د ((فی)) کښې اشاره ده عظمت دبطونو اوکثرت دحرص ته ځکه چې اصولین وائی کله چې ظرف مجرور شی په ذکر د ((فی)) سره نوهغه بتمامه ظرف نه وی بلکه زائدوی دمظروف نه. نومطلب دا شو چې د دوئ خیټې ډیرې لوئې دی او حرص ئې ډیر زیات دې نو په دغه اموالوسره نه مړیږی ﴿نَارًا﴾ ذکر د نار په طریقه دمجازمرسل سره دې ځکه اکل دمال دیتیم سبب دې او نارمسبب دې نوذکر دمسبب شو او مراد ترینه سبب دې ((وفی الروح : اخرج ابن جریر وابن ابی حاتم عن ابی سعیدالخدری رضی الله عنه قال حدثنی النبی صلی الله علیه وسلم عن لیلة أسري به قال نظرت فاذا انابقوم لهم مشافر کمشافرالابل وقد وکّل بهم من یاخذ بمشفارهم ثم یجعل فی افوههم صخرا من نار فیقذف فی اجوافهم حتی تخرج من اسافلهم ولهم خواروصراخ ،فقلت یاجبریل من هٰؤلاء ! قال: الذین یاکلون اموال الیتامی ظلما)).

**ترجمه** نبی اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چې په شپه دمعراج کښې ما نظر
اوکړلو نوداسې قوم مې اولیدلو چې دهغوئ شونډې داسې لوئ وې لکه داوښ نو شونډې او
په دوئ باندې مقرر داسې فرښتې وې چې ددوئ شونډې به ئې اونیسلی او خولې به ئې
ورلره وازې کړې او په اورکښې ګرم کړې شوې یوغټې کاڼړې به ئې په خولو کښې ورلره
واچولو او هغه به ترینه لاندې وتلو او دوئ به چغې او فریادونه کول نو ما سپوس اوکړ و
دجبریل علیه السلام نه چې دا خلق څوک دی نوهغه او فرمائیل چې داهغه خلق دی چې دخلقو مالونه
به ئې په ظلم سره خوړل ﴿وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا﴾ دا تفسیر دماقبل دی ((صلی یصلی)) اوربه
داخیلدل او په اُورباندې سېزولواو وریتولو ته وائې او بعضې وائې چې (صلی) قرب من النار.
ته وائې او استعمال ئې په دخول فی النار کښې مجازًا کیږی

يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ

کلک حکم درکوي تاسو ته الله په باره داولاد ستاسو کښې. چې دنارینه اولاد دپاره پشان دحصې د دوؤ ښځو ده

فَإِن كُنَّ نِسَاءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ۖ وَإِن كَانَتْ وَاحِدَةً

نوکه وي زنانه زياتې دوؤ نه نو پس ددوئ دپاره دي دوه ثلثه دهغه مال نه چې پريخودلې وي ده. اوکه يوه الوړ وي

فَلَهَا النِّصْفُ ۚ وَلِأَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ

نو هغې لره نيمه حصه دمال ده. اود پاره دمو.پلار دمړي دهريوشپږمه حصه ده دهغه مال چې پريخې وي مړي

إِن كَانَ لَهُ وَلَدٌ ۚ فَإِن لَّمْ يَكُن لَّهُ وَلَدٌ وَوَرِثَهُ أَبَوَاهُ فَلِأُمِّهِ الثُّلُثُ ۚ

کچرې وي هغه لره اولاد پس که نه وي هغه لره اولاد او وارثان دده موروپلارد ده وي نودمور د ده دپاره دريمه حصه دمال ده

فَإِن كَانَ لَهُ إِخْوَةٌ فَلِأُمِّهِ السُّدُسُ ۚ مِن بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِي

پس کچرې وي دده دپاره رونړه نومورلره يې شپږمه برخه ده روستو دپوره کولو دصيت نه چې وصيت ئې کړې وي

بِهَا أَوْ دَيْنٍ ۗ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ لَا تَدْرُونَ أَيُّهُمْ

په هغې سره ياروستو د ادا کولو دقرض نه، پلاران ستاسو اوځامن ستاسو نه پوهيږئ تاسو چې کوم يو ددوئ

أَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ⑪

زيات نژدې دي تاسوته په نفع كښې حصې مقرر كړې شوې دي دطرفه دالله نه بېشكه الله دي عليم حكيم

﴿ يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ ﴾ ((اى فى ارث اولادكم)) **دا شپږم حكم دې** يعني دورثاؤ مقررې حصې هغه دي چې دلنه ذكرشويدي.نوددې مطابق تقسيم دميراث كوئ د ((يوصيكم)) معنى اين كثير كړې ده چې امر كوئ تاسونه په عدل سره. او دارنګې وصيت هغه حكم نه ويلې شي چې دهغې دباره ناسخ نه وي لكه چې څه رنګې دوصيت نافذ كول لازمي او ضروري وي نودغه شان نه د كوم حكم پوره كول چه ضروري وي نو هغې ته هم وصيت ويلې شي. نو د ((يوصيكم)) په ذكر كولوكښې اشاره او شوه دې ته چه داحكم دميراث دعدل او انصاف دې او ددې دپاره ناسخ نشته. نو ددې پوره كول لازمي او ضروري دي

**دميراث بنياد په دريو اسبابو دې** (۱) تولد (۲) زوجيت (۳) اخوت او ميراث په وجه دتولد سره مقدم شوځكه چې دانسان تعلق داولادسره دهر چا نه زيات وي. او ميراث په وجه داخوت سره مؤخرشو دهغه ميراث نه چې په وجه دزوجيت سره وي ځكه چې اخوت اخيافي حاصليږي دغه مور په وجه چه ديو زوج نه بعد بل زوج په نكاح كړې وي او اولاد ترينه پيدا شي او په دې ركوع كښې دتقسيم دميراث ټول دولس صورتونه ذكردي

**اول صورت** دادې چې څوك مړشي او اولادې پاتې شي. ځامن او لونړه نوځوئ ته دوچنده حصه دلور وركولې شي ﴿لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ﴾ . **دويم صورت** دادې چې دمړى په اولاد كښې نارينه اولاد نه وي بلكه صرف لونړه وي نوكه دوه او يازياتې ددوونه وي نو دوئ ته به ثلثين وركولې شي ﴿فَإِن كُنَّ نِسَاءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ﴾ لفظ د ((فوق)) زائد دې لكه په ((فاضربوافوق الاعناق)) كښې زائددې **دريم صورت** دادې چې صرف يوه لوربې پاتې شوې وي نودېته به نصف وركولې شي ﴿وَإِن كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ﴾ **څلورم صورت** دادې چې څوك مړشي او مورپلارئې پاتې شي او اولادېې هم وي نومور او پلار هريوته به سدس يعنې شپږمه حصه وركولې كيږي يعنې يوه شپږمه حصه مور ته او يوه شپږمه حصه پلار ته او باقى څلورحصې به اولادته ﴿وَلِأَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ﴾ په ((ولابويه)) كښې ضمير ميت ته راجع دې چې فهميږي دمقام نه **پنځم صورت** دادې چې څوك او صرف

مور او پلار يي باقي شي او اولاد او خويندي اوروڼړه ني هم نه وي نوپدې صورت كښې دمور دپاره دريمه حصه ده او باقي دوه حصې دپلار دي

﴿ وَوَرِثَهُۥٓ أَبَوَاهُ فَلِأُمِّهِ ٱلثُّلُثُ ﴾ **اوشپږم صورت** دادې چې اولاديې نه وي او خويندې روڼړه ني مخلوط او ياپوغسې وي برابره خبره ده كه دوه وي او كه زيات و ي نوپدې صورت كښې دمور دپاره شپږمه حصه ده او دپلاردپاره ماباقي پنځه حصې دي. ﴿ فَإِن كَانَ لَهُۥٓ إِخْوَةٌ فَلِأُمِّهِ ٱلسُّدُسُ ﴾ ((**اخوة**)) صيغه دجمع ده. خو په باب دميراث كښې دوه عدده هم دجمعې په حكم كښې دي هذا عند الجمهور خلافا لابن عباس رضى الله تعالى عنهما .

﴿ مِنۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِى بِهَآ أَوْ دَيْنٍ ﴾ دا متعلق دې ماقبل تمام صورتونو سره. دلته دامې دوه حقوق يعنې وصيت او دين بيان شويدي چې دهغې اداكول مقدم دي په هغه حصو وركولو چه وارثانو ته په تقسيم كښې ميلاويږي ﴿ مِنۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ ﴾ خبر دمبتدا مقدردې او په عبارة كښې حذف دمضاف دې ((اى هذه الانصباء من بعد اخراج وصية )) يا ((بعد تنفيذ وصية واداء دين))

**اول حق** وصيت پوره كول دي او مراد ددينه هغه وصيت دې چې موافق وي د حكم شرعى سره يعنې وصيت په ثلث ياكم دثلث سره وي، **دويم حق** په مړي باندې ددين دې چې هغه قرض چې په ميت باندې په حال دحياة كښې وؤ

فقهاءكرام وائي چې متعلق دي په تركې دميت پورې څلورحقوق مرتبه (**توتيب وار**) (۱) تجهيز تدفين (۲) اداء كول د دين د ميّت (۳) وصيت نافذ كول دثلث مال نه (۴) تقسيم دمابقى په مستحقينو باندې. نومعلومه داشوه چې اداكول ددين مقدم دي په وصيت باندې ليكن په آيت كښې وصيت مقدم ذكر شوېدې په دين باندې اگركه تنفيذ د وصيت روستو دې د ادا ددين نه. (۱) وجه دتقديم دذكر دوصيت په دين باندې يوه داده چې دوئ به په ادا دوصيت كښې كوتاهي كوله نوځكه مقدم ذكر شو. پدې كښې اشاره ده اهتمام دشان ته. (۲) او دويمه وجه داده چې وصيت په شان دميراث بې عوضه شې دې نو په ورثؤباندې ددې نافذ كول گران دي په خلاف ددين نه نوځكه مقدم ذكرشو نواشاره ده دې خبرې ته چه لكه څنگه دين وركول ضروري گنړئ نودغه شان وصيت نافذكول هم ضروري دي

﴿ءَابَآؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ لَا تَدْرُونَ﴾ دابیان دعلت دې دمذکورتعین حصصو دپاره. دجاهلیت دستوروو چې میراث به یې صرف خامنوته ورکولو او لونړه به نې دمیراث نه محروم کولې او په ابتداء داسلام کښې دوالدینودپاره حکم دوصیت وونو په آیت دمیراث سره دتمامووارثانوحصې مقررشوې او مخکنئ حکم منسوخ شو او وې فرمائیل چه تاسوته معلومه نده چې په والدینویا په او لادکښې څوک تاسوته زیات نفعه رسوی کله والدین ددنیوی او دینی نفع سبب شی او کله اولاد. او دارنګې کله لونړه د نفعې سبب شی او کله خوې نو ددې وجه نه مونږه په نفس میراث کښې ټول برابرکړل او حصې مو ورلره مقررې کړې

﴿فَرِيضَةً مِّنَ ٱللَّهِ﴾ دامفعول مطلق دفعل مقدر دې ((ای فرض ذلک فریضة من الله)) داهغه مفعول مطلق دې چې تاکیدوی دجملې چه ((لایحتمل لها غیره)) لکه ((هذا بنی حقا — ای احقه حقا)).

دا مخکې شپږ صورتونه چه ذکر شو نو دا د میراث نسبی لپاره وو. ددې نه بعد د میراث سببی ذکرکیږی یعنی هغه میراث چه په سبب د زوجیت سره وی. او ددې څلور صورتونه دی

| |
|---|
| وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّهُنَّ وَلَدٌ ۚ |
| اوتاسولره نیمه دهغه مال نه ده چې پریخودلې وی ښځو ستاسو. کچرې نه وي دهغوئ دپاره هیڅ اولاد |
| فَإِن كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ ٱلرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ مِنۢ بَعْدِ |
| نوکه وي هغوئ لره اولاد نوتاسولره څلورمه حصه ده دهغه مال نه چې پریخودې وي دوئ روستودپوره کولو |
| وَصِيَّةٍ يُوصِينَ بِهَآ أَوْ دَيْنٍ ۚ وَلَهُنَّ ٱلرُّبُعُ |
| د وصیت نه چې وصیت کړې دې دوئ په هغې سره او روستو داداکولو د قرض نه. او ښځو دپاره څلورمه حصه |
| مِمَّا تَرَكْتُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّكُمْ وَلَدٌ ۚ فَإِن كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ |
| ده دهغه مال نه چې پریخودې وي تاسو کچرې نه وي تاسولره څه اولاد، نوکه وي تاسولره اولاد نودښځو دپاره |
| ٱلثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُم مِّنۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ |
| اتمه حصه ده دهغه مال نه چې پریخودې وي تاسو روستو دپوره کولو دوصیت نه چې تاسو وصیت کړې وي |

بِهَآ اَوْ دَيْنٍ ۗ وَاِنْ كَانَ رَجُلٌ يُّوْرَثُ كَلٰلَةً اَوِ امْرَاَةٌ

په هغې سره اوروستو د ادا کولو دقرض نه. اوکه کېږي وی يو سړی چې ميراث ترينه اخستی شي ميراث د سخه د سي

وَّلَهٗۤ اَخٌ اَوْ اُخْتٌ فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ ۚ فَاِنْ كَانُوْۤا اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ

او وي ده لره رور یاخور اخيافي، نوهريو لره ددوئ دواړونه شپږمه حصه ده. پس که وي دوئ زيات دد نه

فَهُمْ شُرَكَآءُ فِي الثُّلُثِ مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصٰى

نودوئ برابر حصووالا دی په دريمه حصه کښې روستو دپوره کولو د وصيت نه چې وصيت کولې شي

بِهَآ اَوْ دَيْنٍ ۙ غَيْرَ مُضَآرٍّ ۚ وَصِيَّةً

په هغې سره اوروستو دادا کولو دقرض نه ، نه به وي ضرر ورکوونکي هيچاته په وصيت سره. داکلک حکم دې

مِّنَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَلِيْمٌ ⑫

دالله دطرفه اوالله پوهه دې صبرکوونکې دې

﴿وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ﴾ **اووم صورت**: چه ښځه مړه شی او اولاد ئې نه وی نو خاوند ته به د هغې د مال نه نصف ورکولې شی اومابقی به نورو وارثانو ته دهغوئ د حصو مطابق ورکولې شی **اتم صورت** دادې چې اولادېي وی نو خاوندته به ئې ربع يعنې څلورمه حصه ورکولې شی ﴿فَإِن كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ الرُّبُعُ﴾ **نهم صورت** چه خاوندې مړشی اواولاد نه وی نوښځې ته به څلورمه حصه ورکولې شی ﴿وَلَهُنَّ الرُّبُعُ﴾ **لسم صورت** چې اولادېئ وی نوښځې ته به اتمه حصه ورکولې شی ﴿فَإِن كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُم﴾ **يوولسم او دولسم صورت** ﴿وَإِن كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلَالَةً﴾ ((رجل)) اسم د ((كان)) دې او ((يورث)) ورله صفت دې او ((كلالة)) ئې خبر دې. يا ((يورث)) خبر د ((كان)) دې او ((كلاله)) ترينه حال دې. پدې صورت کښې د ((كلاله)) په ميراث کښې شپږ صورتونه بيان شويدی څلور د سورت په آخر کښې اودوه پدې رکوع کښې ( يولسم اودولسم ).

(( **كلالة** )) په لغت کښې هغه ميت سړی اويا ښځې ته ويلې شی چې په اصولواوفروعو

کښې نی مذکر نرینه نه وی پاتې شوی او په شرع کښې هغه ته ویلې شی چې په اصولو اوفروعو کښې نی هیڅ څوک نه وی پاتې شوې نه مذکر او نه مؤنث اوداقول دجمهورو اوداهل لغتو دی. اوقرطبی او ابن جریر وائی چې پدې باندې اجماع ده چې دلته هم دامعنی مراد ده او ددینه علاوه متعدد اقوال په تفسیر د «کلالة» کښې دی. چاویلې دی چې «کلالة» **هغه دې چې** والد نی نه وی اوچا ویلی دی چې «کلالة» دمیت مذکوره مال موروثه نه وائی اوچا ویلی دی چه وارثانو د میت مذکوره نه وائی. وغیر ذٰلك اولفظ د «کلالة» ماخوذ دې د «کلال» نه په معنی دضعیف کیدلو او بې قوته کیدلو په وجه دستړی والی سره او د چا چه اصول اوفروع نه وی نو ده نه نسبت دقرابت ضعیف وی څکه ورته کلاله ویلې کیږی

امام بخاری رحمه الله دابوعبیده قول نقل کړې دې چې دا ماخوذ دې د «تکلله النسب» نه ای تطرّفه ،**عینی**، اودکلاله په صورت کښې میراث هغه رشته داران اخلی چې په طرف کښې وی یعنې اصول افروع نه وی

﴿وَلَهُۥٓ أَخٌ أَوۡ أُخۡتٌ﴾ دا**یوولسم صورت** دې اومراددینه اخیافی اخ اواخت دی یعنې هغه چې په مور کښې شریک وی اوپلاران ئې جدا جداوی او پدې خبره باندې دصحابؤ اجماع ده چې په دې ځائ کښې اخ اواخت نه مراداخیافی دی. او د ډېروصحابؤ لکه حضرت ابوبکر رضي الله عنه اوسعدبن ابی وقاص رضي الله عنه په قراءت کښې د اخ اواخت نه روستو «من الأم» لفظ په تصریح سره شته دې. اوددې سورت په اخری آیت کښې چې دکلاله دمیراث په بیان کښې «اخت» دې نو هلته د «اخت» نه اودارنګې «اخ» نه اعیانی مراد دی. یعنې سکه رور اوخور چې په موراوپلار دواړو کښې شریک وی اوعلاتی چې په پلار کښې شریک وی اومیندې ئې جداجدا وی مراد دی نو لهذا ددواړو آیاتونو په منیځ کښې څه تعارض نشته دې نو د اخیافی رور او اخیافی خور یوشان حصه ده چې هغه سدس (شپږمه ) حصه ده

﴿فَإِن كَانُوٓاْ أَكۡثَرَ مِن ذَٰلِكَ﴾ **دادولسم صورت دې** یعنې چې اخیافیان دیونه زیات وی نوکه دوه رونړه یادوه خویندې وی یارور اوخور وی اویا ددینه زیات وی نودوئ ته به ثلث (دریمه ) حصه ورکولې شی اومذکر اومؤنث دواړه په حصو کښې یوشان ته دی. وجه ئې داده چې دوئ مستحق دمیراث په وجه دمور سره دی نو دمذکر فضیلت په مؤنث باندې نشته

﴿مِنۢ بَعۡدِ وَصِيَّةٍ﴾ یعنې روستنه دوصیت پوره کولونه ﴿يُوصَىٰ بِهَآ﴾ دلته دوه قراء ته

دی یو په صیغه دمعلوم سره اوبل په صیغه دمجهول سره نو بنا براول ﴿غَيْرَ مُضَآرٍّ﴾ حال دی دفاعل نه یعنې حال دکون دوصیت کونکی کښې چې نوی ضرر رسونکې هیڅا نه اوبنا په دویم قراءت سره حال دی دفاعل دَ فعل مقدر نه چې هغه فعل معلوم دی اودلالت کوی په هغه باندې دافعل مذکور ((ای یوصی غیر مضار)) اوددې مذکورفعل مجهول دفاعل محذوفه نه حال نه دی ځکه چې هغه متروک دی بالکلیة نوحال ترینه نه صحیح کیږی او ((غیر مضار)) دوصیت اودین دواړو سره متعلق دی یعنې چې نه وی ضرر رسونکې هیڅ چاته په وصیت اودین سره. ضرر په وصیت سره دادی چې وصیت زیات دثلث نه اوکړی اوضرر رسول په دین سره دادی چې په دروغه اقرار ددین اوکړی اویا د زیات اقراراوکړی ((وصية)) ((أی : یوصیکم الله وصیةً)) نودامنصوب بنا پدې چه دا مفعول مطلق دَ فعل محذوف دی دپاره دتاکید

تِلْكَ حُدُودُ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ

دا بوني د الله تعالی دی. اوچاچې تابعداري اوکړه دالله اودرسول دهغه داخل به کړي الله هغه لره جنتونوته چه بهیږي به

مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۞ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

لاندې دهغې نه ولې. همیشه به وي په هغې کښې داکامیابي لویه ده. اوچاچې نافرماني اوکړه دالله اودرسول دهغه

وَيَتَعَدَّ حُدُوْدَهٗ يُدْخِلْهُ نَارًا خَالِدًا فِيْهَا ۠ وَلَهٗ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ۞

اوتجاوز ئې اوکړو دپولو دهغه نو داخل به کړي هغه لره اور ته همیشه به وي په هغې کښې. اوده لره عذاب دی رسواکونکی

﴿تِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ﴾ په ((تلك)) سره اشاره ده تولو احکامو ته یا خصوصا حکم دمیراث ته اود حدود نه مراد احکام اوشرائع دی. دیته حد ځکه وائی چې ددې نه تجاوز اویاکمي بیشي کول جائزنه دی

﴿وَمَن يُطِعِ اللَّهَ﴾ دابشارت اخروی دی ﴿وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾ دا تخویف اخروی دی اومراد دعصیان نه درجه کامله ده یعنې څوک چې پدې احکامو باندې ایمان نه لری نو هغه کافر دی اوهمیشه به په جهنم کښې وی

وَالّٰتِيْ يَأْتِيْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِّسَآئِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَيْهِنَّ اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ

اوهغه زنانه[١] چې بدکاري اوکړي د زنانه ستاسونه نوګواهان طلب کړئ په هغوئ باندې څلور دنارينه ستاسونه

فَاِنْ شَهِدُوْا فَاَمْسِكُوْهُنَّ فِي الْبُيُوْتِ حَتّٰى يَتَوَفّٰهُنَّ الْمَوْتُ اَوْ يَجْعَلَ اللّٰهُ

سوکه ګواهي اوکړه دوئ نوبندي کړئ دوئ لره په کورونو کښې تردې چې واخلي دوئ لره مرګ يابه مقرر کړي الله

لَهُنَّ سَبِيْلًا ۝ وَالَّذٰنِ يَأْتِيٰنِهَا مِنْكُمْ فَاٰذُوْهُمَا ۚ فَاِنْ تَابَا

ددوئ لره څه لار اوهغه دوه کسان[٢] چې اوکړي بدکاري ستاسونه نوتکليف ورته رسوئ نوکه دوئ توبه اوکړه

وَ اَصْلَحَا فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمَا ۗ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا ۝

اونېک ئې کړو عمل نواعراض کوئ دهغوئ نه، بېشکه الله توبه قبلوونکې رحم کوونکې دې

﴿وَالّٰتِيْ يَأْتِيْنَ الْفٰحِشَةَ﴾ دا اووم حکم دې داحکامو درعيت نه. يعني بې شکه زنانه خو دميراث نه مه محرومه کوئ ليکن که چرته زنا ترينه صادره شوه نوحکم شرعي يعني حد به پرې نافذ کوئ. دفاحشه نه مراد زنا ده ﴿مِنْ نِّسَآئِكُمْ﴾ دينه مراد مسلمانانې ښځې دي او اضافت په اعتبار د دين سره مراد دې برابره خبره ده که منکوحه وي اوکه غير منکوحه.

﴿اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ﴾ داثبات دزناد پاره څلور ګواهان ضروري دي او په نورو معاملاتو کښې دوه ګواهان وي. وجه د فرق ئې داده چې د زنا په الزام سره د انسان عزت او آبرو مجروح کيږي اوپوره خاندان دپاره عار جوړيږي اوعزت او آبرو د انسان دپاره د هرشي نه زيات عزيز او اوچت څيز دې نو په دې کښې سختي پکار ده دپاره ددې چې څوک په دروغه سره په چا باندې د زنا الزام اونه لګوي څکه چې څلورګواهان پيش کول شاذ اونادر وي اوکه: څلورونه کم ګواهان څوک پيش کړي نودغه معتبر نه دي بلکه په مدعي به حد قذف جاري کيږي. اوبعضې علماء کرام وائي چې چونکه په زنا کښې دوه کسان يعني زاني او مزنيه ملوث وي نوځکه ګواهان څلور ضروري شول ښا په هرتقدير په شبهاتو دزنا کښې تشديد دې[١] يودا چې څلور

---

١ اووم حکم . زنانه دميراث نه مه محرومه کوئ ليکن که زنا ئې اوکړه نو حکم شرعي پرې نافذ کړئ

٢ . متعلق د اوم حکم سره

گواهان به وی (۲) اودویم دا چې څلور واړه به نارینه وی څکه دلته ((اربعة)) په (تا) سره ذکرشوې دې او په اسماء عددکښې قانون دا دې چې د واحد اواثنان نه علاوه د دمذکر دپاره په (تا) سره راځی اود مؤنث دپاره بغیر د (تا) نه راځی نو په زنا کښې شهادت دښځونه قبلیږی (۳) او په ((منکم)) سره اشاره ده دیته چه گواهان به آزاد وی. غلامان به نه وی نوشهادت دغلامانو په باب د زنا کښې نه قبلیږی (۴) اومسلمانان به وی څکه چې دکافر گواهی په مسلمان باندې نه قبلیږی (۵) اوعادلان به وی او مستورالحال یا فاسقان به نه وی نودشهادت دزنادپا ره داضروری شوه چې څلوربه وی او نارینه. احرار اومسلمانان اوعادلان به وی اوشهادت به هم په طریقې دمشاهدې سره وی چې دسړی شرمگاه (ذکر) دښځې په شرمگاه (فرج) کښې داسې داخل وو لکه سلائ د رنجو په رنجرومه کښې

﴿فَإِن شَهِدُوا فَأَمْسِكُوهُنَّ﴾ یعنې چې څلورکسان گواهی ورکړی نوبیابه دغه ښځې په کور کښې مقیدې اوساتی چې دکورنه باهر اونه وځی تردې پورې چې یامړه شی او یا الله تعالی دهغې دپاره بل حکم اوسزا مقررکړی.

د دې آیت دنزول پورې دزنا لپاره څه حد نه وومقرر. څه زمانه روستو په سورة نور آیت (۲) کښې حد نازل شو چې د باکرې دپاره سل دُرې دی اود ثیبې دپاره رجم. اوتغریب عام د امام ابوحنیفه رحمه الله به نزد ثابت دې لیکن جزء نه دې دحد نه.

**فائده** متاخرین علماء داسې قسم آیت ته منسوخ نه وائ چې پدې کښې تقید صراحة وی بلکه منسوخ هغه دې چې ظاهر دهغه اطلاق اودوام وی اوپدې آیت کښې ((حتی یتوفهن الموت اویجعل الله لهن سبیلا)) صراحة مذکوردې لهذا دامنسوخ اصطلاحًا ندې اگر چې منسوخ دې پدې معنی سره چې ددې حکم تبدیل راغلې دې

﴿وَالَّذَانِ يَأْتِيَانِهَا مِنكُمْ﴾ دا دمذکور حکم سره متعلق دې اوبعض مفسرین وائ چې ددینه مراد زانی اومزنیه دی اوتثنیة دمذکر تغلیبا ده اود ﴿فَآذُوهُمَا﴾ نه مراد حد دې چې دلته کښې اجمالا ذکر دې او په سورة نوراونورو احادیثوکښې ئې تفصیل ذکر دې. اومجاهد رحمه الله نه مروی دې چې ددې نه مراد دوه مُذکَرَیْن دی چې د خلاف فطرت عمل ((لواطت)) مرتکب شی نود دوئی سزا ئې اجمالا په ایذا ورکولو سره اوفرمائیله. هرکله چې دلواطت سزا په قرآ ن کښې تفصیلا نشته لکه چې څنگه دزنا سزا ذکرده نو ددې وجه نه دعلماء مجتهدینو

په سزا د لواطت کښې مختلف قولونه دی. بعضو حضرات ویلی دی چې په دوئ باندې
به حدزنا جاری کولې شی اوبعضې وائی چې په دوئ باندې به هدم کولې شی یعنې یومکان
دې پرې راوغورزولې شی اوبعضې وایی چه د مرتفع یعنې ډیر اوچت غر یا مکان نه دې
ښکته را وه غورزولې شی. او د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت د قتل د فاعل او مفعول دواړو دې.
او په تفسیر مظهری کښې واقعه نقل ده چې دحضرت ابوبکر رضی الله عنه په زمانه کښې
دلواطت واقعه پیش شوه نو هغوئ دصحابؤ نه پدې کښې رائ طلب کړه نو هغوئ مختلف
تجاویز پیش کړل چا هدم تجویز کړو اوچا دمکان مرتفع نه راښکته غورځول تجویزکړل
اوحضرت علی رضی الله عنه فیصله اوکړه اوفرمائیل

((من وجدتموه یعمل عمل قوم لوط فاحرقوه فی النار)) نواحناف وائي چه هرکله چه دلواطت
دسزا په قرآن اوحدیث کښې تفصیل نشته نو دا مفوض ده رائې دحاکم ته نوکه مرتکب ددې
عمل قبیح عادت نه ووجوړ شوې نودخفیفه سزادې ورکړی اوکه عادت ئې جوړشوې
وونوبیادې سخته سزا ورکړی اودغه رنګې دحضرت علی رضی الله عنه په قول کښې هم دیته اشاره ده
((یعمل عمل قوم لوط)) دا جمله مشعره ده په اعتیاد باندې.

اوپدې عمل قبیح باندې سخت سخت وعیدونه په احادیثو کښې راغلی دی

عن ابي هريرة ان رسول الله قال لعن الله سبعةً من خلقه من فوق سبع سموا ته وردداللعنة
على واحدمنهم ثلاثا ولعن كل واحدمنهم لعنة تكفيه قال ملعونٌ من عَمِلَ عَمَلَ قوم لوط، ملعون
من عَمِلَ عَمَلَ قوم لوط، ملعون من عَمِلَ عَمَلَ قوم لوط

**ترجمه** دحضرت ابو هريرة رضی الله تعالی نه روایت دې چې نبی کریم صلی الله علیه
وسلم فر مائیلی دی چې الله تعالی په خپل مخلوق کښې په اوو (۷) قسمه خلقو باندې د
اوو(۷) آسمانونه دپاسه لعنت رالیږی او په دوئ کښې په یو باندې درې واري لعنت رالیږی او
په نورو باندې یو واري چه هغه به دده دپاره کافی وی اوئې فرمائیل چې ملعون دې هغه څوک
چې عمل دقوم لوط کوی (اودائې درې ځله اوفرمائیل) اودینه علاوه په کثرت سره احادیث
پدې کښې مروی دی.

﴿ فَآذُوهُمَا ﴾ حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه ددې تفسیر په ((ضرب بالنعال))
اوپیغورسره مروې دې ﴿ فَإِن تَابَا وَأَصْلَحَا فَأَعْرِضُوا ﴾ یعنې دتوبې نه بعد بیا ورته طعن

اوبخښونکی مهربان دی او ورکوونکي خکه چي الله تعالى توبه قبلوي اورحم کوي

إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللهِ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السُّوْءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ يَتُوبُونَ

بیشکه وعده د قبول دتوبي په ذمه دالله هغه چالره ده چي عملونه کوي بد په ناپوهئ سره بیاتوبه اوباسي

مِنْ قَرِيبٍ فَأُولَٰئِكَ يَتُوبُ اللهُ عَلَيْهِمْ ۗ وَكَانَ اللهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ۝ وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ

په نږدې وخت کښي نو دغه کسان توبه قبلوي الله ددوئ. اوالله پوهه اوحکمتونو والا دی. اونشته دی وعده دقبول دتوبي

لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ ۚ حَتَّىٰ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الْآنَ

هغه خلقو دپاره چي عملونه کوي بد. ترهغې چي کله حاضر شي یوددوئ ته مرګ وائي دي چي ماتوبه اوکړه اوس

وَلَا الَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ ۚ أُولَٰئِكَ أَعْتَدْنَا لَهُمْ

اونه د هغه کسانو چي مړه شي په داسي حال کښي چي دوئ کافروي. دغه کسان تیار کړي دي مونږ دوئ لره

عَذَابًا أَلِيمًا ۝

عذاب دردناک

﴿ إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللهِ ﴾ پدې آيت کښي دتوبي بيان دي په مناسبت دماقبل سره يعني توبه خو بيشکه داسي عمل دي چي په هغې سره دزنااودلواطت پشان جرمونه معاف کېږي ليکن ددې خبري لحاظ ساتل هم ضروری دی چي توبه دې صحيح توبه وی

**فايده** دلته دقبول دتوبي دپا ره دوه خبري ذکر شوېدی (۱) ((بجهالة)) (۲) ((ثم يتوبون من قريب)) نومعتزله وائي چه که چا عمداً گناه اوکړه سره دعلم نه نود هغه توبه نه قبليږي او که چا نه توبه کښي تاخير اوکړو نوکوم گناه چه يې کړې دي نوهغه گناه به ئې زياتيږي ديته هغوئ وائي يعني ديو گناه نور زياتيدل. ليکن داهل سنت والجماعت په نزدباندې دهر گناه توبه قبليږي برابره خبره ده که سره دعلم نه ئې دغه گناه کړي وی او که په ناپوهئ سره ئې کړي وی او د تاخير سره په گناه کښي زيادت نشي راتلې. او د «**جهالة**» نه مراد دادې چي مرتکب دگناه په انجام ددغه گناه باندې سوچ اوفکر نه کوي (ناعاقبت انديش) لکه په سورة يوسف آيت ۳۳. کښي دی چه ((إِذْ أَنْتُمْ جَاهِلُونَ)) معنی ده بې خبره دانجام نه. دحضرت قتاد رضی الله عنه نه روايت دي ((اجتمع اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرأو انّ كُلّ شيئ عصى الله

تعالی به فهو جهالة عمدا كان اوغيره)) (ابن كثير ، اومراد د ((من قريب)) نه قبل الموت دي. ځکه موت د هر څه نه زیات قریب دي لکه چه شاعر وايي

**ع والموت ادنی من شراک نعله**

اوقرينه پدې باندې روستنې آيت دې ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ ٱلْمَوْتُ قَالَ إِنِّى تُبْتُ ٱلْـَٰٔنَ﴾ اوداین عباس رضی الله عنه نه روایت دې چې دقریب نه مراد دادې چې مخکښې ددېنه چې نظروکړی ملک الموت نه. او احادیث مرفوعه پدې باره کښې په کثرت سره مروی دی د ډیرو صحابونه ((ان نبی الله صلى الله عليه وسلم قال ان الله يقبل توبة العبد ما لم يغرغر)) اوبن کثیر په روایت د ابن جریر سره ذکر کړی دی چې حضرت قتادة رضی الله عنه وائي چې مونږه دحضرت انس رضی الله عنه سره ووا دغلنه ابوقلابه هم وو نو ابو قلابه حدیث بیان کړو . چې هرکله الله تعالی په ابلیس باندې لعنت اوکړلو نو ده سوال اوکړو چې مهلت راکړه نو د ده سوال قبول شو او مهلت ورکړې شو، نو چه مهلت ورکړې شو نو ده وه وئیل چه ((وعزتك وجلالك لا اخرج من قلب ابن آدم مادام فيه الروح فقال الله عز وجل وعزتی لا امنعه التوبة مادام فيه الروح)) اوحضرت مولانا شبیر احمد عثمانی رحمه الله لیکلې دی چې د ((جهالة)) او ((قریب)) د قیدنو نه معلومیږی چې څوک په ناپوهئې سره گناه اوکړی او روستو ترینه زر توبه اوباسی نو دهغه دتوبې قبولیت ضروری دې تفضلاً اوڅوک چې گناه په عمد اوقصد سره کوی اویا په توبه کښې تاخیر کوی نو دده سره وعده اوذمه داری د قبولیت نشته، دا معنی نده چې نشی قبلیدې. یعنی په اول صورت کښې دقبلیدلو وعده او ذمه داری تفضلا ده نه په دویم صورت کښې

﴿حَتَّىٰٓ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ ٱلْمَوْتُ﴾ دحضوردموت نه مراد علامات دموت دی اولیدل دملک الموت دی. نو که چرې عالم الغیب مشاهده شی نو بیا توبه نه قبلیږی.

﴿وَلَا ٱلَّذِينَ يَمُوتُونَ﴾ یعنی دموت واقع کیدلونه روستو هم توبه نه قبلیږی

**يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَرِثُوا۟ ٱلنِّسَآءَ كَرْهًا ۖ وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ**

اې [۱] مومنانو حلال ندې تاسولره چې په میراث سره واخلئ ښځې په زور سره، اومه تنګوئ مه بندوئ دوئ لره

---

۱ اتم حکم په میراث سره مال ملاویږي نه ښځې البته دهغوئ په رضا باندې ورسره نکاح کولې شي.

لِتَذْهَبُوْا بِبَعْضِ مَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيْنَ

دپاره ددې چې واخلئ بعضې هغه مال (مهر) چې ورکړې دې تاسو دوئ ته مګر په هغه وخت کښې چې راتلل اوکړې دوئ

بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ۚ وَعَاشِرُوْهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ فَاِنْ كَرِهْتُمُوْهُنَّ فَعَسٰٓى اَنْ تَكْرَهُوْا

په بدکارۍ ښکاره سره، اوژوندتيروئ دوئ سره په ښه طريقه. نوکه بدګڼړئ تاسودوئ لره نوکيدېشي چې بداوګڼړې تاسو

شَيْـًٔا وَّيَجْعَلَ اللّٰهُ فِيْهِ خَيْرًا كَثِيْرًا ⑲

يوځيزاو ګرځولې وي الله په هغې کښې خير ډير

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَرِثُوا النِّسَآءَ ﴾ **دا اتم حکم دې داحکامو درعيت نه**
خلاصه ئې داد چې په ميراث سره به مال ميلاويږى اوښځې به په ميراث سره نه ميلاويږئ
البته دهغوئ په رضا سره دهغوئ سره نکاح کولې شى. بخارى شريف وغيره دا روايت ذکر
کړيدې دابن عباس ﷺ نه چه په جاهليت کښې به دا دستور وو چې کله به يو سړې مړشو
اوښځه به ترې پاتې شو ه نو ددغه ميت وارثان به ددغه ښځې حقدار ګڼړلې کيدل که د چا به
خوښه وه نو پخپله به ئى په نکاح سره واخسته اويا به ئې بل چا لره په نکاح سره ورکړه اوکله
به ئې دنکاح نه بالکل منع کړه، او په بل روايت کښې دى چې ديو سړى دمرګ نه به روستو يو
وارث راغې اوخپله جامه (څادر وغيره) به ئې په هغه ښځې باندې واچوو اوويل به ئى لکه
چې څرنګ څه د مال وارث يم نودغه شان د ښځې هم وارث يم نودا حکم نازل شو چې ((لايحل
لکم))، او ((کرها)) حال دې په معنى د ((کارهات)) يا ((مکرهات)) سره اودا قيد احترازى ندې ځکه
په ميراث کښې راوستل دښځو مطلقا نا جائز دى بلکه دغه قيد مزيد داظهار دقباحت د دغه
رسم دپاره دې ﴿وَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ﴾ عضل بندولو تـه وائى د يوکار نه يعنې مه منع کوئ ښځه د
ميّت (کونډه)، د نکاح نه د بل چا سره ﴿لِتَذْهَبُوْا بِبَعْضِ مَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ﴾ يعنى دا منع کول
دنکاح نه د دې لپاره دى چه تاسو د دوئ نه هغه مال واخلئ چه ښځې ته ملاؤ شويدې په
ميراث کښې د ﴿اٰتَيْتُمُوْهُنَّ﴾ معنى داده چه په ميراث کښ ورته پاتې شوې دې ستاسو د
اقاربو نه . نو نسبت دوئ ته مجازًا دې ﴿اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيْنَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ﴾ ((الا)) په معنى د
((لکن)) سرد استثناء منقطع ده. مابعد ترينه په تاويل د اسم سره مبتداء ده. او خبر ئ محذوف

دي او د ((فاحشه)) نه مراد زنا ده او خبر ئې محذوف دي ((ای فعلیکم تادیبهن وعضلهن)) . یعنی په وخت د ابیان د دوئ کښې زنا نه لازم دي تادیب د دوئ یا منع کول د فاحشه نه. په خپله یا قاضی ته په پیش کولو سره

ابن کثیر د عبدالله بن مبارک او ده د عبدالرزاق نه روایت کړې دي چه ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا يَحِلُّ لَكُمۡ أَن تَرِثُواْ ٱلنِّسَآءَ ﴾ نازل شوې دي په باره د رسم د جاهلیت کښې لکه تفصیل ئې تیرشو او ﴿وَلَا تَعۡضُلُوهُنَّ﴾ نازل شو دي په باره د امر د اسلام کښې او مطلب ئې دادې چه مه تنګوئ ښځې ،عضل په معنی د تنګولو سره دې، په جونډ تیرولو کښې لپاره د دې چه دوئ مجبوره شي په خلع او مال ورکړې خاوند ته

﴿لِتَذۡهَبُواْ بِبَعۡضِ مَآ ءَاتَيۡتُمُوهُنَّ﴾ معنی داده چه تاسو ورله چه کوم مال په عوض د مهر کښې ورکړې وؤ هغه ترینه واپس واخلئ

﴿إِلَّآ أَن يَأۡتِينَ بِفَٰحِشَةٖ مُّبَيِّنَةٖۚ﴾ ددېنه مراد نشوز دې یعنې کومه ښځه چه بداخلاقه وی نو په بدل خلع اخستلو کښې حرج نشته دې لیکن که بداخلاقی دخاوند ؛طرف نه وی نو ښځې لره اګرکه ورکول جائز دی خو خاوند لره ئې اخستل جائز نه دی نو په دې تقدیر د ((الا ان یأتین)) سره استثناء متصله د عموم الاحوال والاوقات نه ده ((ای لایحل لکم ان تذهبوا بعض مااتیتموهن فی حال من الاحوال یا فی وقت من الاوقات الا ان یأتین — الخ)) .

﴿ وَعَاشِرُوهُنَّ بِٱلۡمَعۡرُوفِۚ ﴾ یعنې دښځوسره زندګی په شرعی طریقه سره تیره وئ اوشرعی حقوق ئ اداکوئ. نرمی ورسره کوئ وهل. ټکول. کنځل اوسختی ورسره مه کوئ.

ښه سلوک ورسره کوئ اوداجاهلیت په شا ن خراب سلوک مه کوئ ﴿فَإِن كَرِهۡتُمُوهُنَّ﴾ داشرط دې او جزا ئې مقدره ده چه ((فاصبروا)) دې یعنې که دښځې خوئ. خصلت. عادت تاسوته خوښ نه وی نو بیا هم صبر کوئ ځکه کیدې شی یوشې تاسوته خه نه ښکاری اوالله تعالی به تاسو دپاره په هغې کښې دینی یا دنیوی فایده ایښودې وی مثلا ښځو نه به اولا د صالحه درکړ ی او د صبر کولو ثواب به درکړی اودخیر کثیر دپاره تکلیف بر داشت کول دا دعقل اوحکمت تقاضا ده

وَإِنْ أَرَدْتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَّكَانَ زَوْجٍ ۙ وَّ اٰتَيْتُمْ اِحْدٰىهُنَّ قِنْطَارًا

او كه تاسو اراده لرئ بدل راوړل د يو ښځې په ځاى د بلې ښځې اوور كړې وي تاسو يو دوې ته ډېر مال په مهر كښې

فَلَا تَأْخُذُوْا مِنْهُ شَيْـًٔا ؕ اَتَأْخُذُوْنَهٗ بُهْتَانًا وَّ اِثْمًا مُّبِيْنًا ۞ وَكَيْفَ

پس مه اخلئ د دغه مال نه څه څيز، آيا اخلئ تاسو دغه مال. بدنامه لګونكى او ګناه كونكى ښكاره اوڅه رنګه

تَأْخُذُوْنَهٗ وَقَدْ اَفْضٰى بَعْضُكُمْ اِلٰى بَعْضٍ وَّ اَخَذْنَ مِنْكُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا ۞

اخلئ تاسو دا او حال دا دې چې رسيدلى دى بعضې ستاسو بعضو ته او اخيستې ده دې ښځو ستاسو نه وعده محكمه

﴿ وَإِنْ أَرَدْتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ ﴾ دا د ماقبل سره متعلق دې چې ښځې د مال د خاطره مه تنګوئ او كه په تاسو كښې څوک اراده اوكړى چې يوه ښځه طلاقوى او بلې ښځې سره نكاح كوى نو مخكنۍ ښځې ته ئى چې حق مهر وركړې دې هغه دې ترينه واپس نه اخلى اګركه ډېر مال وى لكه د جاهليت په دور كښې به دا دستور وو چې يوه ښځه به ئې پريخودله نو په هغې باندې به ئى په ناحق تهمت اولګولو او ظلم به ئى پرې كولو د پاره د دې چې دا مجبوره شى او مهر خاوند ته واپس وركړى نو پدې آيت كښې د دغه قسم كارونو نه منع اوشوه

﴿ وَءَاتَيْتُمْ إِحْدَىٰهُنَّ قِنطَارًا ﴾ دې آيت نه معلومړى چې ډېر مهر مقرر كول هم جائز دى. ابن كثير په روايت د احمد وغيره سره نقل كړې دې چې حضرت عمر رضى الله عنه منع وكړه چه مغالات مه كوئ په مهر كښې ځكه چې كه دا عزت وې په دنيا كښې او تقوى وې نو پدې سره به زيات لائق نبى ﷺ وو ليكن هغه د خپلو لونړو او بيبيانو مهر د دولس اوقيو نه زيات نه وو مقرر كړې. او په بل روايت كښې د څلورسوو درهمو ذكر دې. نو يوه ښځه راغله ((وفى رواية امراة من قريش)) او په عمر رضى الله عنه باندې ئى اعتراض اوكړو چه ((اماسمعت ما انزل الله تعالى : واتيتم احداهن قنطارا ؟)) نو حضرت عمر رضى الله عنه اوفرمائيل ((اللّٰهُمَّ غُفْرًا كُلُّ النَّاسِ افقه مِنْ عمر)) او بيائى په منبر باندې دا اعلان اوكړو چه كه څوک په مهر كښې څومره مال وركول غواړى نو وردې كړى

شيعه ګانو د دې واقعې د وجې نه اعتراض او طعن كړې دې په حضرت عمر رضي الله عنه په نقصان د علم او عدم اهليت د خلافت لپاره. صاحب د روح المعانى جواب كړې دې [1] چې دا آيت نص ندې په جواز د وركولو د قنطار په مهر كښې ځكه د دلته زيادت د مهر په جمله خبريه

كښې په طريقه دشر ط سره دې او دا په جواز دلالت نه کوي لکه دا قول ((ان جاءک زيد وقدقتل اخاک فاعف عنه)) دا دلالت نه کوي په جواز دقتل د اخ باندې (۲) اوکه دا تسليم کړو نو بيا په جواز د اعطاء فى المهر دلالت نه کوي بلکه احتمال دې چې دا اعطاء دې د «حُلي» يعنې زيوراتو وي په طريقه د هبې سره نه دمهر سره (۳) اوکه دا اومنلې شي نوکيدې شي چې جواز دزيادت دمهر صرف جواز او رخصت وي اوبهتر اولى او عزيمت کم والې دمهر وي لکه چې ابن حبان په روايت دابن عباس رضى الله عنه سره نقل کوي ((قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ان من خير النساء ايسرهن صداقا)) ، ((وعن عائشه رضى الله عنها قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم يمن المرأة تسهيل امرها فى صداقها)) واخرج احمد والبيهيقى مرفوعا ((اعظم النساء برکة ايسرهن صداقا)) نونهى دحضرت عمر رضى الله عنه دتيسر اود رغبت دپاره وه ماهوالافضل ته چې ثابت وو په عمل اواقوالو درسول الله صلى الله عليه وسلم سره اوهر چې جواب نه ورکول زنانه ته دى نو هغه دَ تواضع او کسر نفسى دَ وجه نه وه اودترغيب ورکولو دپاره وۆ په فهم دکتاب الله کښې او دا رنګې په اظهار دمغلوبيت دکبير کښې حوصله افزائى اوخوشالول دصغير وى.

﴿ أَتَأْخُذُونَهُ بُهْتَٰنًا وَإِثْمًا مُّبِينًا ﴾ استفها م انکارى دې په معنى د ((لايجوز)) سره او ((بهتانا)) او ((اثما)) منصوب بنابر حاليت دى ((اى باهتين وآثمين)) اوودې مطلب داندې چې بغير دبهتان او اثم نه واپس اخستل ترينه جائز دى بلکه ددې ذکر لپاره د اظهار دمزيد قباحت دې اوعادت دجاهليت ته اشاره ده چې ددوئ عادت به بهتان اواثم وو .

﴿ وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهُۥ وَقَدْ أَفْضَىٰ ﴾ پدې کښې بيان دعلت دپاره د ((لا تأخذوا)) دې يعنې مهر واپس مه اخلئ، ځکه چه يو خو افضاء راغلې ده اوبل ميثاق غليظ يعنې معاهده شوېده «افضاء» کنايه ده دجماع نه او په حکم ددې کښې خلوت صحيحه هم داخل دې اوميثاق نه عقد نکاحى مراد دې .

| وَلَا تَنكِحُوا۟ مَا نَكَحَ ءَابَآؤُكُم مِّنَ ٱلنِّسَآءِ إِلَّا مَا |
|---|
| اونکاح (۱) مکوئ دهغه ښځو چې نکاح ورسره کړې وي پلارنيکه ستاسو دښځونه مګر هغه چې |

۱- نهم حکم . ښځې بشکه په نکاح سره ملاويږي خودا مندرجه ذيل مذکورِ ښځې په نکاح سره هم نه ملاويږي

قَدْ سَلَفَ ۚ إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَمَقْتًا ۚ وَسَاءَ سَبِيلًا ﴿۲۲﴾

محکښي تېر شوي دي. بېشکه داده بې حيايي . اوسبب دغضب دالله . اوډېره بده لار ده

﴿ وَلَا تَنكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُم ﴾ دانهم حکم دي د احکامو د رعيت نه. ددي خلاف داده چي ښځي خو په نکاح سره ميلاويدي شي ليکن دا مذکوره ښځي خو په نکاح سره نشي ميلاويدي. دجاهليت د رسمونونه يو رسم داوو چي پلار به مړشو نوخوئ به ني دهغه ښځي (ميرې مور سره. نکاح کوله او دارنګي که پلاربه ښځه طلاقه کړه نوخوئ به ورسره نکاح کوله اودي قسم نکاح ته به ئي ((نکاح مقت)) ويلو او ناکح ته به ئي ((ضيزن)) ويلو او ولد به چه ترينه پيدا شو نو هغه ته به ئي ((مقيت)) او ((مقتى)) ويلو. نوپدي آيت کښي ددي قسم نکاح نه منع اوشوه. او ((مانکح)) عام دي شامل دي عقد ته اونکاح ته په نزد دامام ابو حنيفة اوامام احمد رحمهما الله باندي. نو پلار چه دَ کومي خزي سره عقد نکاح وکړي نو خوئ ته ورسره نکاح حرام دي. برابره خبره ده چه وطی ئ کړي وي يا ئ نوي کړي. او دارنګه چه پلار د کومي خزي سره زنا کړي وي نو دَ خوئ نکاح ورسره ندي صحيح په نيزد دامام ابوحنيفه رحمه الله او امام احمد رحمه الله

﴿ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ﴾ دا استثناء منقطعه ده يعني ليکن هغه چي په جاهليت کښي تير شويدی نوهغه ترک کړئ يا هغه چي په جاهليت کښي تير شويدی هغي ته حرام نه ويلي کيږی اومواخذه په هغي هم نشته. البته ددي حکم دنزول نه پس که چا نکاح اوکړ له نوهغي ته حرام ويلي شی اومواخذه به پري کيږی ﴿ إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَمَقْتًا وَسَاءَ سَبِيلًا ﴾ د ((انه)) ضمير نکاح د مانکح ته راجع دي پدي کښي ددغه عمل نهايت قباحت بيان شوېدي

**فائده مراتب دقبح** امام رازی رحمه الله وائی چي مراتب دقبح درې دی (۱) قبح شرعی (۲) قبح عقلی (۳) قبح عادی. اوالله تعالی دا قسم نکاح موصوف کړي ده په دريو وارو قبحو سره نو په ((فاحشة)) سره اشاره ده قبح عقلی ته اوپه ((مقتا – ای ممقوتا مبغوضا)) سره اشاره ده قبح شر عی ته . او په ((وساء سبيلا)) سره اشاره ده قبح عادی ته. نومعلومه شو ه چي په کوم عمل کښي دا درې واړه قبح راجمع شی نو دا ډير قبيح وی اوبعضي وائ چي په ((فاحشة)) سره اشاره ده قبح شرعی ته او ((مقتا)) سره اشاره ده قبح عقلی ته. مقت منافرت عقلی ته وائی او

په ((ساء سبيلا)) سره اشاره ده قبح عادی ته. صاحب د روح المعانی وائي چې ((**لعل ترتيب الامام اولى**))

حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ اُمَّهٰتُكُمْ وَبَنٰتُكُمْ وَاَخَوٰتُكُمْ وَعَمّٰتُكُمْ

حرام کړې شوي دي په تاسو باندې (نکاح) دمياندو ستاسو اولونړوستاسو او دخويندوستاسو او تروريانوستاسو

وَخٰلٰتُكُمْ وَبَنٰتُ الْاَخِ وَبَنٰتُ الْاُخْتِ وَاُمَّهٰتُكُمُ الّٰتِيْٓ اَرْضَعْنَكُمْ

او دماسي گانوستاساو د رويرو او خورزو او مياندې ستاسو هغه چې تاسوته ئې پي ورکړې وی

وَاَخَوٰتُكُمْ مِّنَ الرَّضَاعَةِ وَاُمَّهٰتُ نِسَآئِكُمْ وَرَبَآئِبُكُمُ الّٰتِيْ فِيْ حُجُوْرِكُمْ

او ستاسو رضاعي خويندو. اومياندې د ښځوستاسو (خواښې) اوپرکتې ستاسوهغه چې ستاسو په پالنه کښې دي. ستاسو

مِّنْ نِّسَآئِكُمُ الّٰتِيْ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ ۡ فَاِنْ لَّمْ تَكُوْنُوْا دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ

د ښځوهغو نه چې يوځائې. شوی يئ تاسودهغوئ سره، پس کچرې نه يئ تاسو يوځائې شوی دهغوئ سره نو شته گناه

عَلَيْكُمْ ۡ وَحَلَآئِلُ اَبْنَآئِكُمُ الَّذِيْنَ مِنْ اَصْلَابِكُمْ ۙ وَاَنْ تَجْمَعُوْا

په تاسو باندې او ښځې دخامنوستاسو هغه چې پيداشوي وي ستاسودشاگانونه. اوداچې تاسو جمع اوکړئ

بَيْنَ الْاُخْتَيْنِ اِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۲۳﴾

په مينځ د دوه خويندو کښې مگر هغه چې مخکښې تيرشوی دی، بيشکه الله دې بخښنه کونکې اورحم کونکې

﴿ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ اُمَّهٰتُكُمْ ﴾ (( **ای نکاح امهاتکم**)) پدې کښې دمحرماتو د نکاح بيان دې. ابن کثير دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روايت نقل کړې دې چې سبع نسبی اوسبعه صهری حرام کړې شوېدی. نوټول پدې آيت کښې د ۱۴ محرماتو بيان دې اووه (۷) د نسب د وجهې نه حرام دی. نسبی محرمات (۱) مور (۲) لور (۳) خور (۴) ترور (۵) ماسی (۶) وريره (۷) خورزه

او اووه (۷) د سبب د وجه نه حرام دی نو اسباب درې دی : (۱) رضاعت لکه (۱) رضاعی مور (۲) اوخور (۲) سبب مصاهرت لکه سخر گنئې لکه (۱) خواښې (۲) پرکتی (۳) اينگور (۴) خينه. يعنی دواړه خويندې په نکاح کښې جمعه کول (۳) دريم سبب تعلق دنکاح دې دغير چې

په راتلونکی آیت کښې ذکرشوېدې هغه یوه (۱) ده، نودا مجموعه ووه شوې. لفظ د ((امهات)) شامل دې مور او هر قسم نیاګانوته برابره خبره ده که دمو ر د طرف نه وی اوکه دپلار دطرف نه وې همدارنګه لفظ دبنات صلبی لور. بنت الابن. اوبنت البنت وی ټولوته شامل دې. اودارنګې د ((اخواتکم)) نه هم مراد عام دې. اخت اخیافی وی اوکه اعیانی وی او ((عمات)) هم عام دې چه دپلار اعیانی خور وی اوکه علاتی وی اوکه اخیافی وی او په ((خالاتکم)) کښې هم دغه سې تفصیل دې اودارنګې په ((بنات الاخت اوبنات الاخ)) کښې هم دغه تفصیل دې

﴿وَأُمَّهَٰتُكُمُ ٱلَّٰتِيٓ أَرۡضَعۡنَكُمۡ﴾ رضاعت په لغت کښې چوپلو دتی ته وائ او په اصطلاح کښې چوپل دتی دصبی دی په مُده درضاعت کښې چې دوه کاله ده په نزد دجمهور او دوه نیم کاله ده په نیزد دامام ابو حنیفة رحمه الله باندې او مراد ددینه دادې چې یوبچې دیوې ښځې یئ اوخری برابره خبره ده چې که په چوپلوسره وی اویا په بل څه ذریعې سره وی لکه بوتل وغیره. دلته دحرمت رضاعی نه صرف ددووذکر دې او په حدیث کښې دی چه ((یحرم من الرضاعة مایحرم من النسب)) . نوفقهاء کرامو تفصیل کړې دې چه دمرضعې یعنې دتی ور کوونکې ښځې دطرفه ټول حرامیږی او د رضیع یعنی دتی رودونکی دطرفه دغه بچې اودهغه ښځه او اولاد حرامیږی نو مرضعه درضیع دپاره مور ده او د مرضعه خاوند ورلره رضا عې پلار دې او د مرضعې لیور ورلره تره دې او دمرضعې خویندې ورلره تروراني دی اودمرضعې اولاد ورلره رونړه اوخویندی دی اود تی رودونکی د طرفه صرف دې دمرضعې اودهغې دخاوندخوئ دې اودده منکوحه ورلره اینګورده اودده اولادورلره نمسی (نوسی) دی.

شعر

از جانب شیر ده همه خویشان شوند  وازجانب شیر خوار همان زوجان وفروع

دا تفصیل په امومیت او په اختیت کښې درج دې چې نص کښې مذکور دی

﴿وَأُمَّهَٰتُ نِسَآئِكُمۡ﴾ پدې کښې دمنکوحې، مور، اونیاګانې ټولې داخلې دی اوصرف په نکاح کولو سره حرمت دخواښې راځی برابره خبره ده که صحبت ئې اوکړو اوکه نه

﴿وَرَبَٰٓئِبُكُمُ﴾ پرکتئ .دلته دوه قیدونه ذکر شوی دی اول ﴿ٱلَّٰتِي فِي حُجُورِكُم﴾

هغه پرکتی چې ستاسو په پر ورش کښې وی، دا قید احترازی نه دې بلکه ((خرج مخرج العادة)) دې اودویم قید احترازی دې یعنی دا چه ﴿ٱلَّٰتِي دَخَلۡتُم بِهِنَّ﴾ نوکه دیوې ښځې

سره نکاح اوشوه اوجماع یاخلوت ورسره نوی شوې نو که دغه ښځې لره طلاق ورکوی اود لور سره ئې نکاح کوی نوکولې شی. نو ددې وجه نه علماء کرام وائی چه ((**وطی الامهات یحرم نکاح البنات، ونکاح البنات یحرم نکاح الامهات**))

﴿وَحَلَٰٓئِلُ أَبۡنَآئِكُمُ﴾ ((حلائل)) جمعه د ((حلیله)) ده په معنی د ((محللة)) سره یعنې دځامنو منکوحې (اینګیندې) په صرف نکاح کولو دځوی سره دغه ښځه (انیګور) دسخر دپاره حرامه ده اګرکه جماع ئې ورسره نه وې کړی ﴿مِنۡ أَصۡلَٰبِكُمۡ﴾ ((اصلاب)) جمع د ((صلب)) ده ملا ته وائی اومراد ترینه هغه نطفه دپلار ده چې دپلار دملانه را اووزی. او په دې کښې احتراز دې دمتبنٰی نه چې هغه په عرف دعربوکښې ځوې ګڼرلې کیدلو اودا احتراز دابن الابن نه ندې ځکه چې دهغه حکم دابن دې. ﴿وَأَن تَجۡمَعُواْ بَيۡنَ ٱلۡأُخۡتَيۡنِ﴾ دخینې سره یعنې دښځې خورسره نکاح کول حرام دی تر څو چې هغه په نکاح اویا په عدت کښې وی او دامعنی دجمع ده اود اختین نه مراد عام دې نسبی وی، که اعیانی وی اوکه علاتی یا اخیافی یارضاعی وی اوپدې حکم کښې هرهغه دوه ښځې داخلې دی چې پدې دواړو کښې هره هره یوه داسې وی که چرې دا نارینه وې نو دبلې سره به ئې نکاح حرام وی لکه یوه ښځه او دهغې عمه یاخاله نو د دوئې جمع ناجائز ده اوکه دطرفینونه داسې صورت نه وو نودهغوئې جمع جائز ده اګرکه دیو طرف نه دغه مذکوره صورت وی لکه چې ځوک دکونډې ښځې سره نکاح اوکړی اوبیا دکونډې اینګور سره نکاح کوی نو دا جمع جائز ده ځکه که دغه اینګور مذکر فرض کړې شی نونکاح ددې کونډې سره جائز کیږی فی الجمله ﴿إِلَّا مَا قَدۡ سَلَفَۗ﴾ یعنې لیکن هغه چې په جاهلیت کښې څه شویدی نوهغې ته حرام نشی ویلې اومواخذه پر ې نشته دې ځکه چې ﴿إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ غَفُورٗا رَّحِيمٗا﴾

اوهرکله چې نکاح دمنکوحة الاب سره ډیره قبیحه وه نو دهغې سره ((انه کان فاحشة ـــ الخ)) ذکر شوېدې اوجمع بین الاختین په تحریم کښې قباحت دهغې نه کم دې. ځکه ویلې شویدی چې حضرت یعقوب علیه السلام جمع بین الاختین کړیده (لیا) ام یهودا او (راحیل) ام یوسف علیه السلام خویندې وې ((وهذا إنْ صح کان حلالاً فی شریعته)) . (روح) نو د دې وجه نه د دې په آخر کښې ((غفورًا رحیمًا)) ذکر شو

**څلورمه پاره ختمه شوه ولله الحمد**

وَّالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَامَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ۚ كِتٰبَ اللّٰهِ

او حرامې دي خاوندانې ښځې مګر هغه ښځې چه مالکان شي دهغوی ښي لاسونه ستاسو. لازم کړيدي په

عَلَيْكُمْ ۚ وَاُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ اَنْ تَبْتَغُوْا بِاَمْوَالِكُمْ

په تاسو. او حلال کړي شوي دي تاسو لره ماسوا ددغه مذکورونه چه طلب دنکاح په کوئ په خپلو مالونو سره

مُّحْصِنِيْنَ غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ ؕ فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ

په قيد دنکاح کښې راوستونکي. نه بې زناکونکي. پس هغه زنانه چه نفع واخلئ تاسو په دې مهر سره دهغوی نه

فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ فَرِيْضَةً ؕ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا تَرٰضَيْتُمْ

نو ورکوئ هغوی ته مهرونه دهغوی مقرر کړي شوي. او نشته ګناه په تاسو په هغې کښې چه تاسو ديوبل سره راضي شئ

بِهٖ مِنْۢ بَعْدِ الْفَرِيْضَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ۞

په هغې. روستو دمقرر کولونه . بيشکه الله پوهه په هر څه او حکمتونو والا دي

وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا اَنْ يَّنْكِحَ الْمُحْصَنٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ فَمِنْ

اوڅوک چه نه لري ستاسونه مالي طاقت ددې چه نکاح اوکړي دآزادو مومنانوښځوسره نونکاح دې اوکړي

مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ مِّنْ فَتَيٰتِكُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ

دهغې سره چه مالک وي دهغې ښي. لاسونه ستاسو د هغه ښځوستاسونه چه مومنانې دی. اوالله زيات عالم دي

بِاِيْمَانِكُمْ ؕ بَعْضُكُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ ۚ فَانْكِحُوْهُنَّ بِاِذْنِ اَهْلِهِنَّ

په ايمان ستاسو. بعضې ستاسونه دجنس دبعضو نه دی. نونکاح کوئ ددوئ سره په اجازت دمالکانو ددوئ سره

وَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ مُحْصَنٰتٍ غَيْرَ مُسٰفِحٰتٍ وَّلَا مُتَّخِذٰتِ

او ورکوئ دوئ ته مهرونه ددوئ په ښه طريقې سره چه پاکدامنې به وی نه به وي ښکاره زناکونکې اونه به پټې

١ - د معنی نفي ته اشاره ده

أَخْدَانٍ فَإِذَآ أُحْصِنَّ فَإِنْ أَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ
دوستانې نیسونکې. نوپس کله چه دوئ په قیددنکاح کښې راشي نوکه راتله اوکړی دوئ په بدکاری سره

فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ
نویه دوئ باندې نیمه ده دهغې نه چه واجب دې په آزادو ښځو دسزا نه. دانکاح دوینځو دهغه چادپاره دې چه یریږي

الْعَنَتَ مِنكُمْ وَأَن تَصْبِرُوا خَيْرٌ لَّكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝
دزنانه. ستاسونه اوصبر کول ستاسودنکاح دوینځونه ډیرغوره دی تاسولره اوالله بخښونکې رحم کونکې دې

﴿وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاءِ﴾ داعطف دې په ماقبل محرماتواوپدې کښې دمحرمات سببیو اووم(٧) قسم ذکر کیږی، ((محصنات)) د ((محصنة)) جمع ده اودا په قرآن کښې په دریو معانیوسره مستعمل دې اوله معنې ذات الا زواج دې. اودلته دامعنی مر اد ده، اودویمه معنی حُره ده، اودامعنی روستو پدې قول کښې ذکر کیږی ﴿وَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنكُمْ طَوْلًا أَن يَنكِحَ الْمُحْصَنَاتِ﴾ ((ای الحرائر)) اودریمه معنی د عفیفه او پاکدامنه ده. او دا معنی مراد ده پدې قول کښې ﴿وَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ مُحْصَنَاتٍ﴾ ددې آیت مطلب دادې چه کومه ښځه دبل منکوحه وی نو دهغې سره نکاح جائز نه دې.

﴿إِلَّا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ د دې د ظاهری معنی نه دا معلومیږی چه وینځه اگر که منکوحه د غیر وی نو د هغې سره نکاح جائز ده. حالانکه د خپلې وینځې سره خو نکاح مطلقًا کیدې نشی او پردئ وینځه چه د بل چا منکوحه وی نونکاح ورسره هم جائز نه دې. نو د دې وجه نه مفسرین وائی چه د دینه مراد ((سبایا)) دی یعنې هغه ښځې چه د یوکافر په نکاح کښې وی اومسلمانان ئی په جهاد کښې قید کړی نو چه د دارالکفر نه ئی دارِ اسلام ته راولی نو د هغه کافر حربی سره ئی نکاح ختمه شوه، نو که دا ښځه کتابیه وه یا مسلمانه وه نو د ((استبراء)) نه بعد ورسره نکاح جائز دې.

﴿كِتَابَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ﴾ دامفعول مطلق دفعل محذوفه دې ((ای کتب الله علیکم تحریم ماذکر سابقا کتابا))

﴿وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَآءَ ذَٰلِكُمْ﴾ **دا لسم حکم دی** خلاصه ئې داده چه دکومو ښځو سره نکاح حلاله ده یعنې چه هغه ماسوی ددغه مذکوره محرماتونه دی نو هغوئ سره نکاح بدې طریقه سره حلاله ده چه ﴿أَن تَبْتَغُوا﴾ دا په تقدیر د (با) سره متعلق دې په ((احل)) پورې ((ای احل بان تبتغوا))چه تاسو به طلب کوئ یعنې ایجاب اوقبول به وی. اودویم داده چه ﴿بِأَمْوَٰلِكُم﴾ یعنې نکاح بغیر دمهر نه به نه وی نو که مهر نه ووذکر شوې اویا نفې شوې وی نو بیا هم مهر مثل لازم دې. دریم دا چه ﴿مُّحْصِنِينَ﴾ همیشه دپاره به وی په زوجیت کښې د ساتلو په غرض سره او شرعی عقد سره، دیوڅو ورزو دشهوت پوره کولو په غرض سره به نه وی. نو پدې سره اشاره ده نفی دمتعې ته (**روح المعانی**).

﴿مُّحْصِنِينَ﴾ حال دې دفاعل د ﴿تَبْتَغُوا﴾ نه او ﴿غَيْرَ مُسَٰفِحِينَ﴾ ترینه دویم حال دې نو ددینه دامعلومه شوه که زانی مال ورکړی نو په هغې سره حلالوالې نشی راتلې اوورکول ئې هم حرام دی ﴿مُسَٰفِحِينَ﴾ د ((سفاح)) نه مشتق دې او مراد ترینه زناکول دی. او سفاح په اصل کښې بهولو ته وائی لکه((دَمًا مَّسْفُوحًا))نو چونکه په زنا کښې صرف منی بهول وی اونور مقصود نه وی لکه رشته داری، نسب وغیره پرې نه ثابتیږی نوځکه ورته سفاح ویلې شی

﴿فَمَا اسْتَمْتَعْتُم بِهِۦ مِنْهُنَّ فَـَٔاتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ﴾ ((ای مهورهن)) ددې آیت مقصو دادې چه پوره مهر ورکول په استمتاع سره یعنې په جماع اویا په خلوت صحیحه سره لازمیږی اوکه دجماع اویا دخلوت صحیحه نه بغیر جدائی راشی نو پوره مهر ندې واجب بلکه نیم مهر واجب دې، یا صرف متعه ده. اوکه چرې تقرر دمهر نه وی شوې او ښځې نه داسې عمل صادر شو چه نکاح پرې باطلیږی لکه ارتداد( نعوذ بالله) اوکړی یا تمکین ابن الزوج، نو بیا هیڅ نشته ور له. په ((فمااستمتعتم)) کښې (ما) موصوله دې . ((استمتعم)) ئې صله ده. موصول سره دصله نه مبتدا ده او ((فاتو هن اجورهن)) ورله خبر دې. اویا ((ما)) شرطیه دې مبتدا ده اوخبر ورله فعل شرط دې اویاجواب شرط دې اولفظ د (ما) (۱) یاعبارت دې دنساء نه او ((منهن)) ورله بیان دې. نو معنی داده چه ((**فما**)) پس هغه ((**منهن**)) یعنې ښځې ((**استمتعم به**)) چه تاسو په هغوئ سره نفعه واخلئ په جماع یا په خلوت صحیحه سره نو ((**فاتوهن**)) نوورکوئ هغوئ ته دهغوئ مهرونه. (۲) او یا (ما) عبارت دې دفعل اوطریقې نه او((**منهن**)) متعلق دې په ((**استمتعم**)) پورې.

يعنى پس فعل اوطريقه شرعيه (جماع اوخلوت ) چه تاسو په هغې سره نفعه واخلئ دښځو نه نوورکوئ دوئې ته مهرونه ددوئ . دا تشريح ددې آيت د دجمهورو سلف اوخلفونه منقول ده **اوشيعه گان وائى** چه ددېنه متعه ثابته ده، دليل دا وائى چه په قراء ت د حضرت ((أُبى)) رضى الله تعالى عنه كښې د((فمااستمتعم)) نه روستو ((الى اجل)) لفظ راغلې دې چه ددېنه صراحة جواز دمتعې معلوميږى. **جواب ددې** دادې چه حرمت دمتعې قطعى اجماعى مسئله ده او په نصوصو قطعيو سره حرمت دمتعې ثابت دې نو د جواز دثابتولو دپاره يو قراء ت شاذه نه كافى كيږى اوكه بالفرض قطعى دليل راشى نو ددليل دحرمت په مقابله كښې به مرجوح اوغير معتبر وى، نو په قراء ت شاذه سره به څنگه جواز ثابت شى، **دويم دا چه** دې آيت نه متعه اصلاحى مراد كول مخالف دسوق د آيت نه دې ځكه چه دلته ئى دمحرماتو د ذكر كولونه روستواوفرمائيل ((واحل لكم ما وراء ذالكم)) چه دغه مذكوره نه علاوه تاسولره ښځې حلال دى ليكن طريقه اواصول ئې دابيان كړى دې ((ان تبتغوا)) چه ايجا ب اوقبول به وى، ((باموالكم)) مهر به وى ((محصنين غير مصافحين)) يعنې مقصود به هميشه په قيد د نكاح كښې راوستل وى چه بغير دموت اويا طلاق نه به ښځه دخاوندنه ، نه جدا كيږى اوصرف منى بهول اوشهوت رانى به مقصودنه وى، نوپدې سره نفى دمتعه ده ځكه چه په متعه سره هميشه دښځې ساتل مقصود نه وى، او((تأهّل)) يعنې اهل اوعيال اورشته داران او اقارب جوړول، اولادپيداكول مقصود نه وى نوكه د ((فما استمتعم)) نه اصطلاحى متعه مراد شى نود آيت دسوق نه خلاف رازى اوبالفرض كه په آيت كښې دمتعې دحلالوالى طرف ته اشا ره اوشى نو بيا هم دا منسوخ دې په ﴿ إِلَّا عَلَىٰٓ أَزۡوَٰجِهِمۡ أَوۡ مَا مَلَكَتۡ أَيۡمَٰنُهُمۡ فَإِنَّهُمۡ غَيۡرُ مَلُومِينَ ﴿٣٠﴾ فَمَنِ ٱبۡتَغَىٰ وَرَآءَ ذَٰلِكَ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡعَادُونَ ﴿٣١﴾ ﴾ سره ځكه ممتوعه نه منكوحه ده اونه مملوكه ده، امام تر مذ ى رحمه الله دحضرت ابن عباس رضى الله عنه نه روايت ذكر كړې دې ((كانت المتعة في ابتداء الاسلام حتي اذا نزلت الاية ﴿ إِلَّا عَلَىٰٓ أَزۡوَٰجِهِمۡ أَوۡ مَا مَلَكَتۡ أَيۡمَٰنُهُمۡ ﴾قال ابن عباس رضى الله عنه فكل فرج سواهما فهو حرام)) .

او دارنگې امام تر مذى رحمه الله اوامام بخار ى رحمه الله روايت كړې دې ((ان عليًا قال لابن عباس ان النبي صلى الله عليه وسلم نهي عن متعة النساء وعن لحو م الحمر الاهلية زمن خيبر قال

ابو عبدالله (بخاری) وبَيّنهُ علی رضی الله عنه عن النبی صلی الله عليه وسلم انه منسوخ))
(۲ ۷۷۷) دصحيح مسلم ديو روايت نه معلوميږی چه حضرت ابن عباس رضی الله عنه دمتعې
قائل وو. دعبدالله بن زبير رضی الله عنه دخلافت په وخت کښې روايت داسې دې ((ان عبد
الله بن زبير رضی الله عنه قام بمكة فقال فقال ان ناسا اعمی الله قلو بهم كما اعمی ابصارهم يفتون
بالمتعة، يعرّض برجل (قال النووی: أی : ابن عباس) فناداه فقال انک لجلف جاف فلعمری لقد
كانت المتعة نفعل فی امام المتقين يريد رسول الله صلی الله عليه وسلم فقا ل له ابن زبير رضی الله
عنه فجرب نفسک فوالله لئن فعلتها لا رجمنک باحجارک)) ليكن رجوع دابن عباس رضی الله
عنه په صحيح رواياتو سره ثابته ده (كمافی روايت ترمذی) نو کيدې شی چه رجوع ئې روستو
د دغه قصې نه کړی وی

**فائده** ابن عباس رضی الله عنه چه اولاً دجواز دمتعې قائل وو نو په دې کښې د دوو
خبرو لحاظ ساتل ضروری دی **اول دا** چه ابن عباس رضی الله عنه په حالت اضطرار کښې ددې
دجواز قائل وولکه روايت دې چه سعيد بن جبير دوئ ته اويل : ((لقد سارت بفتياک الركبان
وقال فيهاالشعراء)) نوحضرت ابن عباس رضی الله عنه جواب ورکړو ((ماهذ افتيت وماهی الا كا
لميتة والدم ولحم الخنزير ولاتحل الا للمضطر)) لكه دطبرانی. تر مذ ی. بيهقی په روايت کښې
دی چه ابن عباس رضی الله عنه وائی ((انما كانت المتعة فی اول الاسلام كان الرجل يقدم البلدة
ليس لها معرفة فيتزوج المرأة بقدر مايری انه مقيم فتحفظ له متاعه وتصلح له شأنه حتی نزلت
الآية ﴿ إِلَّا عَلَىٰٓ أَزْوَٰجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُهُمْ ﴾ فكل فرج سواهما فهو حرام)) **دويم** دا چه ابتداء
د اسلام کښې کومه متعه جائز وه نو هغه په حقيقت کښې نكاح مؤقت وؤ لكه پدې مذكوره
روايت کښې د ی ((فيتزوج المرأة)) اودشيعه گانو چه کومه معروفه اومصطلحه متعه ده نوددې
جواز په هيڅ وخت کښې نه دې ثابت ځکه دامحض زنا ده

دنكاح مؤقت اودمتعه په مابين کښې فرق دادې چه په نكاح مؤقت کښې ايجاب اوقبول
اوگواهان وی اود ولی اجازت وی اواستبراء بحيضة وی او په متعه کښې دا امور نه وی
اودارنگې حضرت ابن عباس رضی الله عنه اولاً صرف د اباحت دمتعه قائل وو دضرورت دپاره
اودثواب قائل نه وولكه (چه شيعه گان قائل دی) اودغه وجه ده چه وې فرمائل ((كا لميتة والدم

ولحم الخنزير)) اوشيعه متعه ته عظيم ترين عبادت وائي اوددوئي دا عقيده ده چه څوک يو ځل متعه اوکړي نو د حضرت حسين رضی الله عنه مرتبې سره مساوی شی او چه دويم وارئې اوکړي نو دحضرت حسن رضی الله عنه مرتبې سره مساوی شی اودريم وارې دحضرت علی رضی الله عنه اوڅلورم وارې دحضور صلی الله عليه وسلم مرتبې سره برابر شی (نعوذ باالله. ثم نعوذ باالله)

﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا تَرَٰضَيْتُم بِهِۦ﴾ يعنې دمهر مقررکولو نه روستو کمې زيادتې جائز دې يا معاف کول ليکن دا موقوف دی په اجازت دښځې پورې او زيادتې کول موقوف دی په رضا دخاوند باندې.

﴿وَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنكُمْ طَوْلًا﴾ پدې آيت کښې دنکاح دوينځو بيان دې چه نکاح دوينځې سره جائز دې په اجازت دمالک سره. څوک چه طاقت دحرې لرې نونکاح دوينځې بهترنه دې ځکه چه اولادبه ئې غلامان وی دمالک دوينځې دپاره.

**ترکيب** ((من)) اسم شرط دې په محل درفع کښې مبتدا ده او ((لم يستطع)) **فعل** شرط دې ((فيما ملکت)) ورله جزاده . اوشرط اوجزا دواړه يايوازې شرط خبر دمبتدا دی ((طولا)) مفعول به د((لم يستطع)) دې او ((ان ينکح المحصنات)) په تاويل دمفرد سره مفعول به دې د ((طولا)) دپاره ځکه چه ((طولاً)) مصدر دې عمل کولې شی، او دا هم کيدې شی چه ((ان ينکح)) بدل شی د ((طولاً)) نه اوداهم کيدې شی چه ((ان ينکح المحصنات)) مفعول شی د ((لم يستطع)) دپاره او ((طولاً)) مفعول له شی په حذف دمضاف سره ((ای من لم يستطع نکاح المحصنا ت لعدم الطول)) او((طول)) په فتح سره وسعت دمال اوقدرت ته ويلې شی او په ضمې سره اوږدوالی ته ويلې شی اودمحصنات نه مراد حرې دی يعنی څوک چه دحرې دنکاح طاقت نه لر ی دوجه دډير والی دمهر نه نو وينځې سره دې نکاح اوکړي

﴿فَمِن مَّا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُكُم﴾ ((ای فليتزوج)) اود ((ايمانکم)) نه دبل مسلمان مملوکه مراد ده ځکه چه دخپلې مملوکه سره نکاح ته حاجت نشته، وجه داده چه ملک رقبه اوملک مملوکه دواړه په يو ځاې نشی جمع کيدې. او ((المؤمنات)) سره احتراز دې دوينځې مشرکې نه. امام شافعی رحمه الله وغيره پدې آيت سر ه استدلال کوی چه څوک دحرې دنکاح طاقت لری نو دهغه دپاره دوينځې سره اوياکتابيئ وينځې سره نکاح کول جائز نه دی. اوامام ابوحنيفه رحمه الله وائي چه نکاح دوينځې سره مطلقاجائز دې برابره خبره د که طاقت دحرې لری اوکه نه لری

اوهم دارنګي نكاح دكتابيې وينځې سره جائز دې ځکه چه داعدم جواز مفهوم مخالف داعتبار دوجه نه دې اوځمونږ په نزد مفهوم مخالف معتبر نه دې په استدلال کنبې

اوقيدد ((لم يستطع)) اود ((المؤمنات)) صرف دفضيلت اوترغيب دپاره دې يعنى نكاح دوينځې سره اولى نه دې ځکه چه اولاد به ئې مملوک دغير شى ليكن كه چا سره داخطره وى چه په زناکنبې واقع نشم نوبيا دې ورسره نكاح اوكړى ليكن بياهم اولى او بهتره نكاح دمؤمن وينځې سره ده اګركه نكاح دكتابيې سره هم جائز ده لكه نكاح دحرې كتابيې سره چه جائز ده.

**فائده** په صورت داستطاعت كنبې نكاح دوينځې مؤمنې سره يادكتابيې سره په نزد احنافو جائز دې خو مكروه دې او په نزد دنورو أئمؤو باندې نكاح دمؤمنې وينځې سره په صورت داستطاعت كنبې حرام دې اود كتابيې سره مطلقا جائز نه دې.

﴿وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِإِيمَٰنِكُمْ﴾ وجه دفضيلت اوغوره والى ايمان دې نوكله به وينځه دايمانى قوت دوجه نه دحرې نه غوره وى چه ايمانى قوت يې كم وى نوځکه نكاح د وينځې مطلقا قابل نفرت ندې لكه چه اكثر خلق ترينه نفرت كوى ﴿بَعْضُكُم مِّنۢ بَعْضٍ﴾ يعنې تاسو ټول ديوبل نه پيدايئ. هم جنس يئ نو نفرت ترينه مه كوئ ﴿فَانكِحُوهُنَّ بِإِذْنِ أَهْلِهِنَّ﴾ يعنې دوينزوسره نكاح په اجازت د مالك سره كيږى پغير د اجازت د مالك نه صحيح ندې او دارنګه حال د غلام دې

﴿وَءَاتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ﴾ د أُجُور نه مراد مهور دى يعنې چه وينځې سره نكاح اوكړئ نو مهر وركول لازم دى اودا مهر په نزد دجمهورو ملک دمولى دې لكه چه څنګه وينځه ملک دمولى دې. نسبت دمهر وينځې ته ځکه اوشو چه دا سبب دمهر دې او په نزد د امام مالک رحمه الله داملكيت دوينځې دې ﴿مُحْصَنَٰتٍ﴾ دا حال دې دضمير د ((أتوهن)) نه. دلته محصنات په معنى دپاک دامن سره دې ﴿غَيْرَ مُسَٰفِحَٰتٍ﴾ داهم حال دې دضمير د((هن)) نه. ((سفاح)) بنكاره زنا كولو ته وائى ﴿وَلَا مُتَّخِذَٰتِ أَخْدَانٍ﴾ دا عطف دې په ((مسافحات)) باندې مسافحات هغه ښځو ته وائى چه بر سرعام زناكوى، دحضرت عائشه رضي الله عنها په روايت كنبې دې ((لاتمتنع ممن جاءها وهن البغايا كن ينصبن على ابوابهن رايات)) او ((متخذات اخدان)) هغه دى چه پټه به ئې زناكوله او يا هغه دى چه مخصوص كسانو سره به ئې زنا كوله ((چه دابه

شريفانې شمارلې کيدلې)) لکه په روايت دبخارى شريف کښې دى ((يجتمع الرهط مادون العشرة فيدخلون على المرأة کلهم يصيبها – الخ)) ،په ((ولامتخذات اخدان)) کښې ددغه قبيح عمل رد هم اوشو اواشاره ده اشتراط دشهادت ته په نکاح کښې يعنې که په عقدکښې ګواهان نه وې نو دا نکاح نه دې بلکه يارانه کول دى ﴿فَإِذَآ أُحۡصِنَّ﴾ يعنې کله چه وينځې په قيد دنکاح کښې راشى نوکه زنا ترينه صادره شوه نو بيا په دوئ باندې نيم حد جارى کيږى ﴿نِصۡفُ مَا عَلَى ٱلۡمُحۡصَنَٰتِ مِنَ ٱلۡعَذَابِۚ﴾ دمحصنات نه مراد حُرې دې اوعذاب نه مراد جلد دې يعنې پنځوس دُرې به وهلې کيږى اودلته دعذاب نه رجم نشى مرادکيدې ځکه دوينځواوغلامانو دپاره رجم نشته دې او په هغې کښې تنصيف هم نشى کيدې لکه دا مذهب دائمه ؤاربعه ؤ دې او ((عبد)) هم پدې حکم کښې داخل دې په دلالة النص سره.

**فائده** وينځه چه په نکاح سره نوى ورکړې شوې نوبيا ئې همدا حکم مذکور دې نو اشتراط ((اذا احصن)) ددفعه دتوهم دپاره دې چه هغه دادې چه ددوئ حد به دنکاح په وجه زياتيږى په شان دحرو ښځو . نوپدې قيد سره دغه توهم دفعه شو.

﴿ذَٰلِكَ لِمَنۡ خَشِيَ ٱلۡعَنَتَ مِنكُمۡۚ﴾ په ((ذالک)) سره اشاره ده نکاح دوينځو ته ((العنت)) مشقت ته ويلې کيږى اودلته کښې مرادترينه زنا ده اوهغه سبب دعذاب دنيوى اواخروى دې. مطلب دادې چه نکاح دوينځو سره هغه چا دپاره مناسب دې چه شهوت پرې غالب وى اوخطره لرى په ځان باندې په حرامو کښې دواقع کيدلو ، اوکه دچا خطره نه وى نوبيا نکاح دوينځو سره نده پکار ځکه چه اولاد به ئې دبل چامملوک وى او( لام) په ((لمن)) کښې په نزد دبعضو دپاره دتخصيص د جواز دې يعنې جواز ددې قسم نکا ح خاص پدې قسم کسانو پورې دې او په نزد دبعضو دپاره دانتفاع اودبيان دمناسبت دې يعنې دا قسم نکاح ددې قسم خلقو دپاره مناسب اونافع دې نه دبل چا دپاره ﴿وَأَن تَصۡبِرُواْ﴾ يعنى تاسوځان صبر کړئ دنکاح دوينځونه اوياځان صبر کولې شئ د زنا نه اونکاح اونکړئ د وينځوسره نودا ډيره غوره ده. حضرت عمر رضى الله عنه فرمائى : چه کوم سړې دوينځو سره نکاح اوکړى نوخپله نيمه حصه ئې مملوکه کړه (قرطبى)

| ٱلَّذِينَ | سُنَنَ | وَيَهۡدِيَكُمۡ | لَكُمۡ | لِيُبَيِّنَ | ٱللَّهُ | يُرِيدُ |
|---|---|---|---|---|---|---|

اراده لري الله چه بيان کړى تاسوته داحکاموخپلونه اواوښائى تاسوته طريقې د هغه کسانو

مِنْ قَبْلِكُمْ وَيَتُوْبَ عَلَيْكُمْ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝ وَاللّٰهُ يُرِيْدُ اَنْ يَّتُوْبَ

چه مخکښې ستاسونه وو اورحمت اوکړي په تاسو. اوالله علیم حکیم دي اوالله اراده لري چه قبوله کړي توبه

عَلَيْكُمْ ۗ وَيُرِيْدُ الَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ الشَّهَوٰتِ اَنْ تَمِيْلُوْا

ستاسو. او اراده لري هغه کسان چه روان دي دنفس په خواهشاتو چه کاږه شئ تاسو دالله دحکم نه

مَيْلًا عَظِيْمًا ۝ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّخَفِّفَ عَنْكُمْ ۚ وَخُلِقَ الْاِنْسَانُ ضَعِيْفًا ۝

په کوږوالي ډېرسره اراده لري الله چه آسانتیاراولي په تاسو، ځکه چه پیداکړي شوېدي انسان کمزوری

﴿ يُرِيدُ اللَّهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ ﴾ پدې کښې ترغیب دې عمل کولو ته په احکامو باندې یعني چه په عمل کولو کښې ستاسو فائده ده

**فائده** د «یُرید» نه روستو کله «ان» ذکر وی لکه روستنی آیت کښې دی ﴿ يُرِيدُ اللَّهُ أَن يُخَفِّفَ عَنكُمْ ﴾ یالکه دسورة توبه په آیت نمبر(۳۲) کښې دی ﴿ يُرِيدُونَ أَن يُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ ﴾ اوکله ترینه روستو لام ذکر کیږی لکه په دې آیت کښې او لکه د سورت صف په آیت نمبر (۸) کښی ﴿ يُرِيدُونَ لِيُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ ﴾ نو په کوم ځاې کښې چه (ان) ذکر وی نو دغه (ان) سره دخپل مدخول نه په تاویل دمفرد سره بالاتفاق مفعول به د «یُرید» دپاره وی چه هغې ته مراد ویلې شی او په کوم ځاې کښې چه روستو ترینه لام ذکر وی لکه پدې آیت کښې نو پدې کښې دنحاتو کوفیینو مذهب دادې چه لام په معنې د (ان) سره دې اودا په تاویل دمفرد سره مفعول به دې اومراد دې اوسیبویه اونحات بصرین دیته ضعیف وائی چه فعل متعدی کیدل مفعول متاخر ته په لام سره ممتنع یاضعیف دی، نوددوئ مذهب دادې چه مفعول د «یُرید» دپاره به مقدر وی په مناسبت دمقام سره نودلته مفعول مقدر دې اوهغه ته «مراد» ویلې شی اوتقدیر دمفعول دلته دعموم دپاره دې «ای یریدالله مصالح امرکم یا مایحل لکم ویحرم ، یا ایصال النفع الیکم» یعنې پدې احکامو سره به الله تعالی خیر رسول غواړی اوستاسو مصالح غواړی. اولام په «لیبین لکم» کښې لام دعاقبت دې یعنې انجام ئې دادې چه تا سو ته بیان کوی او یا لام دعلت دې یعنې مدخول د سبب دې دمفعول محذوفه دپاره ځکه بیان سبب دې د

ایصال د نفع دیره او د مصالح دپاره. حاصل دادې چه کله به ،،مراد،، محذوف وی او علت به ئې مذکور وی او کله به مراد مذکو روی او علت به ئې محذوف وی

﴿وَيَهۡدِيَكُمۡ سُنَنَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ﴾ دا منصوب دې عطف دې په ((يُبَيِّن)) باندې او ،،لِيُبَيِّنَ،، نه مراد دادې چه ستاسو د مصلحت لپاره احکامات بیانوی او د ﴿وَيَهۡدِيَكُمۡ سُنَنَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ﴾ نه مراد قصص د انبیاؤ او دهغوئ د اُمتونو دی چه د انبیاؤ د اطاعت کوونکو انجام څه وو. او دهغوئ د نافرمانو انجام څه وو او په قرآن کښې چه اوامر او نواهي ذکر کیږی نو مقصود ترینه احکامات دی او چه قصص او امثال ذکر کیږی نو مقصود ترینه عبرت حاصلول دی او ددې دواړو مشترك مقصود دادې چه ﴿وَيَتُوبَ عَلَيۡكُمۡۗ﴾ چه الله تعالی په تاسو باندې توجه د رحمت کوی او الله تعالی علیم دې نو د بندګانو په مصلحت باندې پوهیږی او حکیم دې نو بغیر د وجوب نه د دوئ رعایت کوی ﴿وَٱللَّهُ يُرِيدُ أَن يَتُوبَ عَلَيۡكُمۡ﴾ یعنې الله تعالی غواړی چه تاسو ته خپل رحمت متوجه کړی او دا په طاعت او امتثال د احکامو سره کیدې شی، نو لهذا تاسو په احکامو باندې عمل اوکړئ چه رحمت د رته متوجه شی ﴿وَيُرِيدُ ٱلَّذِينَ يَتَّبِعُونَ ٱلشَّهَوَٰتِ﴾ یعنې فاسقان یهود او نصاری وغیره کفار دا غواړی چه تاسو د حق نه واړوی او اطاعت ترک کړئ نو د رحمت نه به محرومه شئ.

﴿يُرِيدُ ٱللَّهُ أَن يُخَفِّفَ عَنكُمۡۚ﴾ یعنې الله تعالی په تاسو باندې د آسانتیا اراده کوی نو ددې وجه نه ئې اجازت اوکړو د نکاح د وینځو سره او د وارنګې په مهر کښې د طرفینو رضامندی ئې مدنظر کړه او د وارنګې ئې اجازت ورکړو چه څلورو پورې ښځې په نکاح کولې شئ په شرط د عدل او انصاف سره ﴿وَخُلِقَ ٱلۡإِنسَٰنُ ضَعِيفٗا﴾ دا ترغیب دې اتباع د احکامو ته یعنې انسان د فطرت او خلقت په اعتبار سره کمزورې دې. نو الله تعالی احکام د ده د طاقت مناسب مقرر کړی دی او یا دا علت د ماقبل دې یعنې انسان ضعیف دې د خلقت په اعتبار سره یا د وجه د کثرت د اسبابو د شهوت او لذت نه کمزور دې په معامله د نساؤ کښې چه هغوئ نه صبر نشی کولې ،،وفی الخبر،، ((لاخير في النساء ولاصبر عنهن يغلبن كريما ويغلبهنّ لئيم فاحب ان اكون كريما مغلوبا ولا احب ان اكون لئيما غالبا)) ( **روح المعانی** ) ((قال طاؤس ليس يكون الانسان فی شیء اضعف منه فی امرالنساء ( قرطبی ) ((قال ابن مسيب لقد اتی علیّ ثمانون سنة وذهبت احدی عينی وانا

اعشو بالاخرى وصاحبی اعمی واصم (یعنی ذکره) وانی اخاف من فتنة النساء. ونحوه من عبادة بن صامت رضی الله عنه قال عباده رضی الله عنه الاترونی لا اقوم الاّ رفدًا ولا أكل الامالوّق لی (یعنی لَین وسُخِن) وقدمات صاحبی منذ زمان (قال یحی یعنی ذکره) ومایسرنی انی خلوت بامرأة لاتحل لی وان لی ماتطلع علیه الشمس مخافة ان یاتینی الشیطان فیحرکه علیَّ انه لاسمع له ولابصر)) .قوطبی.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ

اې[1] ایمان والو مه خورئ مالونه دیوبل په مینځ ستاسو کښې په ناحقه سره مګر که وی دامعامله تجارت په رضا

مِّنْكُمْ ۗ وَلَا تَقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۗ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيْمًا ۝ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ

ستسو. اومه قتلوئ ځپل نفسونه. بیشکه الله په تاسوباندې مهربان دې اوچاچه اوکړوداکاریعني خلاف کول د حکمونو

عُدْوَانًا وَّظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِيْهِ نَارًا ۗ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ۝

زیاتي کونکي اوظلم کونکي نو زردې چه داخل به کړو مونږ هغه لره اور ته. اودې داکار الله ته آسان

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ ﴾ دا یوولسم حکم دې داحکام درعیت نه. یعنې دیو بل مالونه په حرامه طریقه سره مه خورئ دا حرام خوړل دقتل سره برابر دی. ددې نه مخکښې دحرام خوړلو مخصوص دریو طریقونه ممانعت ذکر شو (۱) دیتمانو مالونه په ناحقه خوړل (۲) دښځو مهر بغیر درضا اودمعافې نه خوړل (۳) او دمیراث نه د وارثانو حق خوړل. دلته دحرامو خوړلو نه عام ممانعت ذکر کیږی اودباطل نه تمام ناجائز طریقې مراد دی. مثلا سرقه .غصب . رشوت . بیع باطل .بیع فاسد . اوربا وغیره مراددی او دا ټول پدې کښې داخل دی.

﴿ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً ﴾ دا استثناء منقطع ده ځکه تجارت شرعیه ندې داخل په بیع باطل کښې اواسم د ((تکون)) دپاره ضمیر دې چه راجع دې اموال ته ((ای تکون الاموال ذوات تجارة)) اویا راجع دې تجارت ته او((تجرة)) خبر د ((تکون)) دې او ﴿ عَنْ تَرَاضٍ ﴾ ورلره صفت دې په اعتبار دمتعلق سره ((ای تجارة صادرة عن تراض)) اود ((تراض)) نه مراد دعاقدینو رضا ده په

1 یولسم حکم . دمال د یتیم اومیراث اومهر نه علاوه حرام مه خورئ. حرام خوړل دقتل سره برابر دی

وخت دایجاب اوقبول کښې اوبیع دمُکْرِه موقوفه ده. بیع نافذه نده نو د دې وجه نه ترینه احتراز اوشو . اوحلال اشیاء بغیر دتجارت نه نور هم ډیر دی خوپدې آیت کښې دتجارت تخصیص بالذکر اوشو اومقصود دلته دناجائزه طریقونه منع کول او د جائز طریقو اجازت ورکول دی. نوتخصیص دتجارت ددې وجه نه اوشو چه دا ډیر عام دې اوبرکت والادې ((واخرج سعید بن منصور عن نعیم بن عبدالرحمن الازدي قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم تسعة اعشار الر زق في التجارة والعشرة في المواشي)) (**روح المعانی**) په لسو حصوکښې نه ۹ حصې رزق اوبرکت (یعني نوې فیصده رزق اوبرکت) په تجارت کښې دې اولسمه حصه (لسم فیصد) په مواشی یعني په حیواناتو کښې دې اوددې نه علاوه نور روایا ت په کثرت سره وارد دی. اوداهم کیدې شی چه مراد دتجارت نه منتقل کیدل دمال شی دغیر نه په طریقه شرعی سره برابره خبره ده که تجارت وی اوکه هبه وی اوکه دارث په ذریعې سره وی اویا نورې جائز طریقې وی نو دا ذکرالخاص او مراد ترینه عام دې (**روح المعانی**)

﴿وَلَا تَقْتُلُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ﴾ ددینه یاظاهری معنی مرادده چه ځانونه مه قتلوئ اوخودکشی حرامه ده نو په اتفاق دمفسرینو سره پدې کښې خودکشی داخله ده اوددې معنې تائید دابو داؤد دحدیث نه معلومږی چه حضرت عمرو بن عاص رضی الله عنه دجهاد دسفر په دوران کښې په سخته یخنۍ کښې دغسل جنابت په ځائ تیمم اوکړلو او امامت ئې اوکړلو کله چه واپس شو نو ملګرو ئی ددې خبرې شکایت رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اوکړلو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دهغه نه ددې په باره کښې پوښتنه وکړه نودوئې جواب ورکړو چه ((سمعت الله تعالی یقول ولا تقتلوا انفسکم)) نونبی صلی الله علیه وسلم تبسم اوفرمائیلو. او یا مراد دادې چه یوبل مه قتلوئ نو په ﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا۟ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ﴾ کښې دمالی حقوقو دحفاظت حکم وو اوپدې کښې دجانی حقوقو د حفاظت حکم دې او په مالی حقوقو کښې ظلم اوکوتاهی او غفلت چونکه ډیر دې نوددې وجه نه هغه مقدم شو . یا ﴿وَلَا تَقْتُلُوٓا۟﴾ دماقبل تتمه ده چه دیو بل مالونه په ناحقه سره مه خورئ ځکه چه دا دقتل سره برابر دې اویا سبب دقتل اوقتال دې

﴿وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ﴾ دا تخویف دې اواشاره ده تیر شوی منهیاتو ته او دفعل نه مراد ارتکاب ددغه منهیاتو دې ﴿عُدْوَٰنًا وَظُلْمًا﴾ منصوب بنا بر حالیت دې اویا مفعول له دی او

دا دواړه په يوه معنی سره دی بعضې وائی چه پدې کښې فرق شته اوهغه دا چه «عدوان» په بل چا زياتی کولو ته وائی لکه مال ديتيمانو يا د بل چامال خوړل په ناحقه سره او «ظلم» ګناه کول دی په خان خپل باندې لکه په باطلې طريقې سره مال حاصلول. يا دمحرماتو سره نکاح کول اوپدې دواړو قيدونو سره خارج شو هغه چه سهواً خطاً وی يا په طريقه دخطا فی الاجتهاد سره وی ﴿فَسَوْفَ نُصْلِيهِ نَارًا﴾ «صلا» داخلول دتعذيب او په أور کښې سوزولو دپاره ويلې کيږی

**إِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ**

کچرې تاسوخان ساتئ دهغه غټوګناهونونه چه تاسومنع کړې شوی يئ دهغې نه نولرې به کړو موږ ستاسو نه

**سَيِّئَاتِكُمْ وَنُدْخِلْكُمْ مُدْخَلًا كَرِيمًا ﴿۳۱﴾**

واړه ګناهونه ستاسواوداخل به کړو کړوتاسوخائې د داخليدودعزت مند ته .عزت مند خائ د داخليدلو ته

﴿إِن تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ﴾ مخکښې آيت کښې تخويف اووعيد وو په ارتکاب دمنهياتو کښې اوپدې آيت کښې بشارت دې په اجتناب دمنهياتو سره اوددې حاصل دادې چه څوک خان او ساتی دکبائرونه نو الله تعالی دحسناتو په وجه (لکه اودس وغيره نيک اعمال شو په شرط دقبوليت سره ) دصغائرو ګناهونو به معافی اوکړی. **دلته يوڅو خبرې قابل تحقيق دی** (۱) چه په نزد دبعضو دګناه دپاره او دالله تعالی دمعصيت دپاره اقسام او قسمونه نشته بلکه ګناه ټوله يوقسم دې يعنی صرف کبيره دې اودا قول داستاد ابواسحاق اسفرائينی اوقشيری او دقاضی ابوبکر باقلانی دې. دوئ وائی چه ګناهونه ټول کبيره دی خو بعضو ته صغيره په نسبت دبلې ګناه سره ويلې کيږی چه هغه ډير لوئ وی لېکن جمهور علماء وائی چه ګناه په دوه قسمه ده يو صغيره دې اوبل کبيره دې لکه ددې آيت دظاهر نه معلوميږی اودسورة نجم دآيت نه هم معلوميږی ﴿يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ إِلَّا اللَّمَمَ﴾ او دارنګې د ډيرو رواياتو نه هم معلوميږی

(۲) **دويمه خبره** فرق به مابين دګناه صغيره اوکبيره کښې نوبعضو فرق په تعريف سره کړې دې اوبعضو فرق په تعداد سره کړې دې هر چه دې فر ق دتعريف په اعتبار سره نوپدې کښې ډير اقوال دی (۱)کبيره ګناه هغه دې چه وعيدشديد پرې شوی وی په نص دکتاب

او سنت کښې اوصغیره داسې نه وی (۲)، کبیره هغه دي چه دهغې په کولو سره حد نببیږی اوصغیره ددې په عکس دي (۳) کبیره هغه دي چه نص دکتاب الله وارد وی په تحریم دهغې یا واجب وی په جنس دهغې باندې حد (۴) دحرام لعینه ارتکاب کبیره دي

اوددینه علاوه نور هم اقوال شته دي اوامام رازی رحمه الله وائ چه اکثر اهل علمو ویلی دی چه الله تعالی دټولو کبائر و تعین اوتمیز ندې کړې په شان دلیلة القدر او په شان دساعت دقبولیت په جمعه کښې اوحکمت په کښې دادې که تعین اوشی نوبیابه دانسان جرأت پیدا شی اوصغیره ګناه خفیف ګڼړل هم کبیره دی. اوهر چه دې فرق په اعتبار دعدد سره نوپدې کښې هم مختلف روایات راغلی دی په یو روایت کښې اووه (۷) دی لکه ارشاد دې ((اجتنبوا سبع الموبقات الشرک بالله والسحر وقتل النفس التي حرم الله تعالي الأبالحق واکل مال اليتيم واکل الربوا ، والتولي يوم الزحف. وقذف المحصنات المؤمنات الغافلات)) (**متفق عليه**) او د حضرت علی رضی الله عنه نه هم اووه (۷) مروی دی او د ابن عمر رضی الله عنه نه . نه (۹) مروی دی.اود ابن مسعود رضی الله عنه نه په یوروایت کښې درې مروی دی او په بل روایت کښې لس دی. او په یوروایت دصحیحینو کښې څلور دی ((الاشراکُ بالله. سحر. عقوق الوالدین. قتل النفس)) او په یوروایت دبخاری شریف کښې ورسره دیمین غموس ذکر دې او په یو روایت دصحیح مسلم شریف کښې ورسره دقول الزورذکر دي

**دریمه خبره** داده چه په نزد داهل سنت والجماعت ګناه کبیره ((سوی دکفر اوشرک نه)) معافی بغیر دتوبه نه هم ممکنه ده لقوله تعالی ﴿وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ﴾ ځکه چه دا عام دي که په توبې سره وی اوکه بغیر د توبې نه و ی او په نزد دمعتزلو باندې بغیر دتوبې نه معافی نشی کیدې اودارنګې په نزد ددوئ باندې دګناه صغیره دمعاف کیدلوډپاره دا شرط دې چه اجتناب به کوی دکبائرونه نوکه څوك اجتناب نه کوی دَ کبائرونه نودغه صغائر ګناهونه په حسنات کولوسره نشی معاف کیدې او په نزد داهل سنت والجماعت باندې ګناه صغیره په توبې هم معاف کیدې شی او په حسنات کولو سره هم معاف کیدې شی اودګناه کبیره معافی په توبه سره کیږی. یاکه الله تعالی اوغواړی نوهم معافی ممکنه ده او په حسنات کولوسره ګناه کبیره نه معاف کیږی. البته تخفیف په کښې راتلې شی اوصغائر په حسنات سره معاف کیږی لکه په حدیث کښې راغلی دی چه په اودس کولوسره ګناه معاف کیږی او په مضمضه کولوسره د ژبې ګناه معاف کیږی او په استنشاق کولوسره دپوزې ګناه

معاف کیږی او په مخ وینځلوسره دسترګو ګناه معاف کیږی او په لاسونو وینځلوسره دلاسونوګناه معاف کیږی او په مسح کولو سره دغوګونو او دسر ګناه معاف کیږی اودخپووینځلو سره دخپوګناه معاف کیږی اود اودس په آخر کښې ((حتی یخرج نقیامن الذنوب)) یعني ټول صغائر ګناهونه ئی معاف شی. اودارنګې دمونځ دپاره په راتلوسره په هر قدم باندې ګناه صغیره معاف کیږی

**خلورمه خبره** یدې آیت کښې ﴿ إِن تَجْتَنِبُوا ﴾ مذکور دې نوپدې سره معتزله استدلال کوی چه صغیره ګناه معاف کیدلودپاره اجتناب دکبائرونه شرط دې لیکن. اهل سنت والجماعت ددې استدلال نه جوابونه کوی (١) دا مذکورشرط نحوی دې شرط شرعی یعني خارج موقوف علیه ندې او په انتفا دشرط نحوی سره د حکم انتفا ضروری نده لکه ﴿ فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ ﴾ نوګواهی دزنانو جائز ده اګرکه دوه نارینه موجودوی یالکه ﴿ وَإِن كُنتُمْ عَلَىٰ سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُوا كَاتِبًا فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَةٌ ﴾ نوکه څوک مسافرنه وی اوکاتب هم موجود وی نوبیاهم رهن جائزدې اودارنګې په سورة نساء کښې دی ﴿ وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ ﴾ نوکه دا خوف نه وې نوبیاهم نکاح د ﴿ مَا طَابَ لَكُم ﴾ سره جائز دې اودارنګې ﴿ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ إِنْ خِفْتُمْ ﴾ نوکه خوف نه وی نوبیا هم قصر په سفر کښې جائز دې

(٢) دکبائرونه مرادکفر اوشرک دې اوجمعیت په اعتباردانواعواواقسامو سره دې نومطلب ددې آیت دادې چه کله تاسو دکفر اوشرک دټولواقسامونه ځان بچ کوئ نوکبیره اوصغیره ګناهونه به الله تعالی په خپل فضل اوکرم سره درته معاف کړی کما قال تعالی

﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ ﴾

(٣) بعضی مفسرینو ویلی دی چه دلته اجتناب ذکر دې ترک نه دې ذکر او اجتناب دینته وائی چه څوک قادر شی په ګناه کولو باندې اوبیائې محض دالله تعالی دخوف دوجه ترک کړی لکه چه په حدیث الغار کښې مذکور دی چه هغه یوسړې په زناکولو باندې قادرشوخوصرف دالله دیرې نه ئی پریخودله اوداسې پریخودل دګناه. عمل صالح اوحسنه ده نوبدې سره تکفیر دسیئات رازی. دا تفسیر دعامو مفسرینو دې اوحضرت مولاناشبیر احمد عثمانی رحمه الله ددې آیت تفسیر په یو بل طرزسره کړې دې چه دهغې خلاصه داده معتزله

اوددئ نور ملګري په سرسري طريقې سره ددې آيت په مضمون داسې پوهيدلی دی که دکبيرد ګناهونونه څوک ځان اوساتی اويوګناه کبيره هم اونه کړی نوبيا يوازی صغيره ګناه هرڅومره چه کوي نو هغه به ضرور بالضرور بښلې کيږی اوکه صغائرو سره هم (کيف ما اتفق) يوه يا دوه کبيره شامل شی نوبيائې معافی ممکنه نده بلکه ضرور بالضرور به دټولوسزاورکولې کيږی. اهل سنت والجماعت وائی چه پدې دواړو صورتونوکښې الله تعالی ته دمعافئ او دمؤاخذې اختيار دې نو په اول صورت کښې دمعافی لزوم او په دويم صورت کښې دمؤاخذې وجوب. دا د معتزلو بد فهمی اوناپوهی ده اوددې آيت دظاهری الفاظونه چه دمعتزلو مذهب راجح په نظر راځی؛ نوددې جواب چه عامو مفسرينو کړې دې هغه تير شو؛ ددې نه روستو مولانا رحمه الله وائی چه اصل داده چه ددې آيت عمده توجيه اواصلی مطلب معلوم شی نو دمعتزلو خرافاتو ته به هيڅ ځاې پاتی نشی او اهل حق ته به دهغوی دترديد هيڅ ضرورت پاتې نه شی نو په غور سره واورئ: دا خو ښکاره خبره ده چه ﴿إِن تَجْتَنِبُوا۟ كَبَآئِرَ مَا تُنْهَوْنَ﴾ ارشاد دې چه دلته مذکور دې. او ﴿ٱلَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَٰٓئِرَ ٱلْإِثْمِ وَٱلْفَوَٰحِشَ إِلَّا ٱللَّمَمَ﴾ سورة نجم. آيت: ۲۲. پاره: ۲۷ کښې موجود دې د دواړو مطلب يو دې. په لفظونو کښې لږ شان فرق دې نوکوم مطلب چه دهغې آيت دې نوهغه به هم ددې آيت وی اودسورة نجم دآيت په باره کښې دحضرت ابن عباس رضی الله عنه ارشاد دې چه هغه په بخاری شريف وغيره کتابونوکښې داسې دې: ((عن ابن عباس رضی الله عنه قال مارأيت شيئا اشبه باللمم مما قال ابوهريرة رضی الله عنه عن النبي صلی الله عليه وسلم ان الله کتب علی ابن آدم حظه من الزنا ادرک ذالک لامحالة فزنی العين النظر وزنی اللسان النطق والنفس تتمنی وتشتهي والفرج يصدق ذالک ويکذبه)) حبر الامة. لسان القرآن حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه ((لمم)) اوعلی هذ القياس دسيئاتو تشريح اومعنی هغې نه زياته خه نه شی کيدې کوم چه دحضرت ابوهريرة رضی الله عنه نه مروی ده پدې حديث کښې او دا حديث دابوهريرة رضی الله عنه بهترين تشريح اوتحقيق د ((لمم)) دې چه خلاصه ئې داده چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دی الله تعالی چه دبنی آدم په ذمه باندې د زناکومه برخه مقرر فرمائيلې ده نوهغه خامخاورته رسيدونکی وی نود زنا په فعل کښې دسترګو برخه ليدل دی اودژبې برخه د هغه خبرې وئيل دی چه ذريعه دفعل د زنا وی او د نفس حصه داده چه د زنا تمنی اوغوښتنه کوی

مګر د زنا واقع کيدل اونه واقع کيدل دفرجينو په عمل باندې موقوف دی نو که د فرجينو عمل واقع شوه نود سترګو . ربې . نفس تولو په زناکښې واقع کيدل محقق شو او که د تولو اسبابو او ذرائع باوجود دفرجينو فعل متحقق نه شی بلکه د زنا نه توبه او اجتناب ئی نصيب شی نو اوس د زنا هغه ټول وسائل او ذرائع دمغفرت لائق شو ل يعنې کله چه د فرجينو زناکول ختم شو نوګويا که ددوئ ماهيت منقلب شو نو دګناه نه ځاې عبادت اوګرځيدل مثلا يوسړی دغلا په نيت سره سر مسجد پورې اورسيدلو مګر په عين موقع ئې توبه اوکړله اوټوله شپه ئې په عبادت کښې تيره کړه نوښکاره خبره ده چه دهغه تلل دغلا ذريعه وه ليکن اوس دتوبې اوعبادت ذريعه شوه. نوابن عباس رضی الله عنه دحديث د ابوهريرة رضی الله عنه نه دامعلومه کړه چه ((لمم)) په اصل کښې هغه خبرې دی چه لوئ ګناه نه ده مګر دګناه دسبب کيدلو په وجه ګناه ګرځی نو چه څوک داصل ګناه نه اجتناب اوتوبه اوکړی نو ددغه ګناه ذرائع ورته معاف کيږی لکه ﴿وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِۦ وَنَهَى ٱلنَّفْسَ عَنِ ٱلْهَوَىٰ ۝٤٠ فَإِنَّ ٱلْجَنَّةَ هِىَ ٱلْمَأْوَىٰ ۝٤١﴾ او دا مطلب ندې چه ديو ګناه کبيره دسلسلې صغائر به بلې کبيره سره تعلق وی مثلا دزنا د سلسلې صغائر به دشرابو په ترک سره معاف کيږی (**انتهی مختصرا**)

﴿نُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ﴾ تکفير دکفر نه ماخوذ دې پټولو ته وائی او مراد ترينه معافی ده اودسيئات نه مراد صغائر دی.

﴿وَنُدْخِلْكُم مُّدْخَلًا كَرِيمًا﴾ ((مُدخلاً)) مصدر ميمی هم کيدې شی اومفعول د ((ندخلکم)) دپاره مقدر دې ((ای ندخللکم الجنة دخولا کريما ای حسنا)) اوظرف مکان هم کېدې شی مراد ترينه جنت دې او ((کريما)) ورلره صفت دې په معنی د ((حسنا)) سره

وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ

ژباړه: مه کوئ دهغه څيز چه غوره والې ورکړې دې الله په هغې سره بعضی ستاسونه په بعضو باندې

لِلرِّجَالِ نَصِيْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوْا ؕ وَ لِلنِّسَآءِ نَصِيْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبْنَ ؕ وَسْـَٔلُوا

دپاره دسړينه و برخه ده دهغه عملونو چه دوئ کړېدی، اودپاره دښځوبرخه ده دهغه عملونو نه چه دوئ کړېدی. اوسوال کوئ

١ دولسم حکم يعنی د کومو وارثانو حصې زياتې دی د هغوئ حصې پوره ورکوئ او دخپل حق نه دزيات خواهش مه کوئ

اللَّهَ مِن فَضْلِهِۦٓ ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمًا ﴿٣٢﴾

دالله نه دهغه دفضل بیشکه الله په هرڅیز باندې عالم دې

﴿وَلَا تَتَمَنَّوْا۟ مَا فَضَّلَ ٱللَّهُ بِهِۦ بَعْضَكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ۚ﴾ **دا دولسم حکم دې** چه دوارثانو څومره حصه مقرر ده نو دهغې نه زیاتی تمنا هم مه کوئ. مخکښې په شپږم نمبر حکم کښې فرمائیلی وو چه په میراث کښې څومره حصه چه د چامقرر ده نودهغې نه دې زیاتې نه کوی او په حکم نمبر (۱۱) کښې اوفرمائیل چه دیو بل مالونه په حرامه طریقې سره مه اخلئ نودلته علی سبیل الترقی اوفرمائیل چه دبل چا دحصې اودمال تمنی هم مه کوئ ام سلمه ؓ یوواری نبی صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړلو چه نارینه جهاد له ځی اوزنانه نشی تلې او په میراث کښې هم زنانو ته دنارینه په نیمه باندې حصه میلاویږی دَدینه مقصد اعتراض نه وو بلکه تمنی وه چه زنانوته هم دنارینو په شان فضیلت حاصل وې نوپدې ایت کښې منع اوشوه چه په داسې فضیلتونوکښې چه نه کسبی وی اونه اختیاری وی نوڅوک دې دهغې تمنی نه کوی مثلاً زنانه وائی کاش که زه نارینه وې. اویاعجمی وائی کاش که زه عربی وی وغیر ذالک بلکه تمنی اوسوال دداسې فضیلتونو پکار دې چه هغه اختیاری وی مثلاداسې سوال دې کوی چه یاالله مامتقی اوصالح اوګرځوې اوداسې سوال دې څوک نه کوی چه خدایاما صحابی اوګرزوه

﴿لِّلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا ٱكْتَسَبُوا۟ ۖ﴾ ابن کثیر په روایت دابن ابی حاتم دابن عباس رضی الله عنه نقل کړی دی چه یوه زنانه راغله اونبی صلی الله علیه وسلم ته ئې عرض اوکړلو چه زنانوته دمیراث نیمه برخه ملاویږی او دارنګه شهادت دښځو په نصف د شهادت دسړو دې نو آیا د حسناتوثواب به ورته هم په نیمه ورکولې شی؟ نوپدې آیت کښې جواب ذکر شو لکه چه څنګه نارینوته پوره ثواب دکسب د اعمالو ددوئ ملاویږی نودغه شان به زنانوته هم پوره حصه دثواب ملاویږی چه دوئ کسب کړیدې

﴿وَسْـَٔلُوا۟ ٱللَّهَ مِن فَضْلِهِۦٓ ۗ﴾ یعنې د وهبی او غیر اختیاری فضیلتونوتمنی دې څوک نه کوی او دکسبی فضیلتونو تمنی خو بهتره ده لیکن د هغې د حصول طریقه دا نه ده چه صرف تمنی ئې وکړې شی بلکه دهغې د حصول طریقه داده چه د الله تعالی نه دهغې سوال وکړئ. قرطبی وائی چه دا دلیل دې په دې چه د الله تعالی نه سوال کول واجب دی

((وعن ابن مسعود رضی الله عنه مرفوعا سلوالله تعالی من فضله فانه یحب ان یسئل وافضل

العبادة انتظارالفرج)) يعني سوال کوئ دالله تعالى نه دهغه دفضل څکه چه الله تعالى په سوال کولو باندي خوشاليږي اوبهترين عبادت انتظار د فراخئ دي. او په بل روايت دحضرت ابرهيره رضى الله عنه نه مرفوعا نقل دي چه څوک دالله تعالى نه سوال نه کوي نوالله تعالى هغه ته په غصه کيږي او په يو روايت کښ دي چه څوك اووه (٧) واري د جهنم نه پناه وغواړي نو جهنم د ده نه پناه غواړي په الله تعالى سره اوڅوك چه اووه (٧) واري د جنت سوال وکړي نو جنت هم دالله تعالى نه سوال وکړي چه دا انسان مانه راوله

وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ ۚ وَالَّذِينَ

اودهرچاد پاره مقرر کړيدي موږ وراثان دهغه مال نه چه پريخودلي وي مورواوپلار اوخپلوانو. اوهغه کسان

عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا ﴿٣٣﴾

چه کلک شوي دي قسمونه ستاسو دهغوئ سره نوورکوئ هغوئ ته برخه دهغوئ. بيشکه الله په هرڅيزباندي حاضر دی

﴿ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ ﴾ دا د دولسم حکم سره متعلق دي يعني دخپلي حصي نه دزياتي تمنى څکه مه کوئ چه دالله تعالى دهر چا دپاره وارثان ګرځولي دی اودهغوئي حصي ني مقرر کړي دی ﴿مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ﴾ ((ای يرثون مماترک ــــ الخ)) بعضي مفسرين وائي چه ددي اوله حصه ناسخه ده اودويمه حصه يعني ﴿وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ منسوخه ده. څکه د((عقدت ايمانکم)) يعني چه غوټه شوي دی اوکلک شوي دی قسمونه ستاسو په دوسئ ددوئ، ددينه مراد حلف دي چه په جاهليت کښي دا قانون وو چه يوسړی به دبل سړی سره حلف اووعده اوکړله چه خماوينه ستاوينه خما جنګ ستاجنګ خما صلحه ستا صلحه ده. نه به خماوارث ني اوزه به ستا وارث يم او ته به خما ديت ورکوي اوزه به ستا. نوديته به حلف وئيلي کيدلو نو په ميراث کښي به ديوحليف دبل حليف دپاره سدس حصه وه او دا نه ابتداء داسلام کښي هم وه نوبه ﴿وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ سره ددي قسم ميراث ذکر دي اودا آيت اولي حصی دا حکم منسوخ کړلو اودارنګي دامنسوخ دي په سورة انفال آيت نمبر (٧٥) سره يعني ﴿وَأُولُوا الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ﴾ اودا قول دابن عباس رضى الله عنه اودحسن بصري رحمه الله وغيره نه منقول دي اودحضرت ابن عباس رضى الله عنه نه بوقول

داسې مروی دي چه پدې آیت کښې منسوخ نشته اودې وائي چه هرکله مهاجرین مدینې ته راغلل نونبی صلی الله علیه وسلم ددوئي دانصاروسره مواخات قائم کړلو نومیراث به ئې په مواخات سره ملاویدلو نو دغه حکم په حدیث سره ثابت وو نو منسوخ شو ددې آیت په اولې حصې سره اودحصه ثانیه نه مراد یعنی ((والذین عقدت ایمانکم فاتوهم نصیبهم)) نه مراد نصرت اوتعاون دې اومیراث ترینه ندې مراد چه منسوخ شي

اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ

نارینه[1] حاکمان دی په ښځوباندې په سبب د دې چه غوره والې ورکړې دې الله بعضوددوئ ته په بعضوباندې

وَّبِمَآ اَنْفَقُوْا مِنْ اَمْوَالِهِمْ ؕ فَالصّٰلِحٰتُ

اوپه سبب ددې چه دوئ خرج کوی دمالونوخپلونه (په ښځو باندې) پس نېکې زنانۀ هغه دی

قٰنِتٰتٌ حٰفِظٰتٌ لِّلْغَيْبِ

چه تابعداری کونکی وی دخاوندانو. حفاظت کونکی وی دخپل خان اومال په وخت د غائب کېدلو دخاوندانو کښې

بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ ؕ وَالّٰتِيْ تَخَافُوْنَ نُشُوْزَهُنَّ فَعِظُوْهُنَّ

په سبب دحفاظت او توفیق دالله سره، اوهغه زنانه چه یریږئ تاسو دبدخوئی دهغوئ نه نو وعظ اوکړئ دوئ ته

وَاهْجُرُوْهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوْهُنَّ ۚ فَاِنْ اَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوْا

اوجدا شئ ددوئ نه په خانې دخملاستو کښې او اوهئ دوئ لره، نوکه خبره اومنله ستاسو نومه لټوئ

عَلَيْهِنَّ سَبِيْلًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيْرًا ۝۳۴

په دوئ باندې لار (دظلم) بېشکه الله دې اوچت صفاتووالا لوئې ذات والا

﴿ اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ ﴾ **دا دیارلسم حکم دې** خلاصه ئې داده چه بېشکه زنانه په استحقاق دمیراث کښې دنارینوسره شریک دی لیکن ددې باوجود زنانه دنارینو محکومې

---

[1] دیارلسم حکم یعنی وراثت کښې بېشک زنانۀ دنارینوٶ سره شریک دی لیکن نارینه حاکمان او غوره دی د دوه (۲) وجو نه

دی اوښځينه حاکم دي اوډ دې لپاره دوه ۲ سببونه بيانيږي (۱) ((قوام)) اودارنګې ((قوام)) او ... هغه چا ته ويلې کيږي چه دکار ذمه دار اوچلولوواله وی اوداخبره عقلا اوعرفا ضروری ده چه ديو اجتماعی کار اونظام دپاره يومشر ضروری وی ځکه که مشر نه وی نو بيا نظام خراب وی اوکه ټول مشران شی نو بيا هم نظام خرابيږی نو الله تعالی دتدبيرالمنزل دامورو دپا ره سړې منتخب کړي دي ليکن حکم ئی ورته اوکړلو چه دشرعيت دقانون اودمشورې په پابندی وی اومحض آمريت به نه چلوی کقوله تعالی ﴿وَعَاشِرُوهُنَّ بِٱلْمَعْرُوفِ﴾ نساء . آيت ۱۹ ﴿عَن تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ﴾ بقرة . آيت ۲۳۳

﴿بِمَا فَضَّلَ ٱللَّهُ﴾ دابيان داول علت دې يعنې سړې ځکه حاکم دې چه الله تعالی نارينه ته وهبی فطرت اوفضيلت ورکړې دې په ښځو باندې نوځکه الله تعالی نارينه خاص کړی دی په رسالت .نبوة . امامت کبری اوصغری سره . او په اقامت دشعائر وسره لکه اذان . اقامت. خطبه . وغيره شو . اوددې آيت نه اهل علمو استدلا ل کړې دې چه ښځه حاکمه نشی جوړيدې اودارنګې حديث دبخاری شريف ((لن يفلح قوم ولو امرهم امرأة)) پدې صريح دلالت کوی اودلته په دې آيت کښې ابهام اوشولو يعنې ((بعضهم على بعض)) اوداسې اونه ويلې شو ((فضلهم عليهن)) نو په دې کښې (۱) اشاره ده غايت ظهور ته يعنې ديته اشاره مقصود ده چه فضيلت د سړی په ښځه باندې دا ډير واضحه خبره ده اوددې تصريح ته ضرورت نشته. (۲) اودارنګې پدې کښې اشاره ده ديته چه فضيلت په اعتبار دجنس سره دې اوهر چه دې د افرادو په اعتبار سره نوکيدې شی چه بعضې افراد دښځو دتقوی اونسبت درسول د وجه نه بهتر وی د ډيرو افرادو د رجالونه (۳) دارنګې پدې ابهام کښې ديته اشاره ده چه فضيلت دسړو په ښځو باندې پدې سره دښځې درجه کښې څه نقصان نه راځی ځکه پدې آيت کښې ئی زنانه دسړو ابعاض ګرځولی دی نوددې مثال داسې دې لکه چه سر په بدن کښې غوره دې دلاس نه. دَ دې غوره والی په وجه دَ لاس په خپل مقام او درجه کښې څه نقصان او کمې نه راځی نودغه شان د نارينو دفضيلت په وجه سره د ښځو په خپل مقام اودرجه کښې هم څه فرق نه راځی

﴿وَبِمَآ أَنفَقُوا۟﴾ دادويم علت دې. پدې کښې دکسبی فضيلت بيان دې يعنې دښځې اودخاوند په اجتماعی زندګی کښې دټولوضروورياتو بوج دسړی په سر باندې دې نه دښځې په ذمه باندې. مثلا دخوراک. څکاک اولباس اوسکنی ذمه دار خاوند دې او دارنګې مهر

خاوند ورکوی ښځې ته او د عقل تقاضاهم داده چه ځوک خرچ کوی نوهغه دې حاکم وی نو دې وجې نه مفسرینو لیکلی دی چه کله خاوند دخرچه نه عاجز شی نو بیا حاکمیت دده ختمیږی نو په داسې وخت کښې په نزد دامام مالک رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله قاضی فسخ دنکاح کولې شی او په نزد دامام ابوحنیفة رحمه الله قاضی ته حق دفسخې دنکاح نشته بلکه مهلت به ورکولې کیږی تر حالت دیسر پورې .

﴿فَٱلصَّـٰلِحَـٰتُ قَـٰنِتَـٰتٌ حَـٰفِظَـٰتٌ لِّلۡغَيۡبِ﴾ دا تفریع ده په ماقبل او دخاوند دحال ذکر کولونه روستو دښځو ددووقسمونوبیان دې چه یوصالحات اوبل قسم ناشزات دی ((فالصالحات)) مبتداء ده او ((قانتات)) ورلره خبر دې یعنې صالحة ښځه هغه ده چه دخاوند تابعداره وی په مباحو کارونو کښې. په حدیث پاک کښې دی چه کومه ښځه دمونځ. روژې او دخاوند تابعداره وی نو دجنت تمامې دروازې ورته کولاؤ وی . نو په کومه دروازه چه ئې خوښه وی نو داخله دې شی جنت ته . کماقال صلی الله علیه وسلم ((المرءة اذاصلت خمسها وصامت شهرها واطاعت بعلها فلتدخل من اي ابواب الجنة شآءت))

﴿حَـٰفِظَـٰتٌ لِّلۡغَيۡبِ﴾ یعنې دصالحې ښځې بله علامه داده چه دا به دځپلې حیا او د پردې حفاظت کوی او دخاوند دمال او د اولاد به حفاظت کوی په وخت دغائب کیدلو دخاوند کښې. نولام وقتیه دې اومراد دادې لکه چه ځرنګه په وخت دموجودګئ دخاوند کښې چه کله غیرت منده وی ، دځپلې حیا او د پردې خیال کوی نودغه شان که حاضر نه وې نو بیا دې هم دځپلې حیا اوپردې خیال ساتی. وفی الحدیث ((خیرالنسآء امرأة اذا نظرت الیها سرتک واذا امرها اطاعتک واذا غبت عنها حفظتک في مالها ونفسها)) یعنې بهترینه ښځه هغه ده چه کله ته ورته اوګورې نوته حوشحاله شی اوکله چه حکم اوکړې نواطاعت دې کوی اوکله چه ته حاضر نه ئې نودځپل ځان اودمال حفاظت کوی.

﴿بِمَا حَفِظَ ٱللَّهُ﴾ جار اومجرور د ((حافظات)) سره متعلق دې او (ما) مصدریه دې او (با) سببیه ده ((ای بسبب حفظ الله وتوفیقه)) اویا (ما)موصوله دې اوعائد محذوف دې ((ای بالذی حفظ الله لهن من مهور ازواجهن والنفقة علیهن))

﴿وَٱلَّـٰتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ﴾ دا ددویم قسم ښځو بیان دې چه ناشزات دی. دلنه ئې

((والناشزات)) اونه ویل په صیغه داسم فاعل سره اوحالانکه په بیان دقسم اول کښې ((فالصالحات)) په صیغه داسم فاعل سره ذکر شو. ځکه دمسلمانانو ښځو کښې غالب حال دصالحات وی اوهرچه دې نشوز نو داکله کله وی اود ((تخافون)) نه مراد علم ظنی دې او نشوز بداخلاقی او دخاوند نافرمانی ته وائی او دلغت په اعتباره سره معنې ئې پورته کیدل دی لکه ﴿وَإِذَا قِيلَ انشُزُوا فَانشُزُوا﴾ اودځمکې اوچتې حصې ته هم ناشزه ویلې شی او دنشوز صفت دخاوند هم رازی لکه ﴿وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِن بَعْلِهَا نُشُوزًا﴾ دامام شافعی رحمه الله نه نقل دی چه علامې دنشوز دپاره دوه دی یوقولی او بل فعلی. قولی دادې چه کله دښځې عادت اول دا وؤ چه کله به خاوند آواز کوو نوښځې به لبیک سره جوا ب ورکوو او چه خبرې به ئې ورسره کولې نو عاجزئ سره به ئې کولې، لیکن ناساپه دا حالت بدل شو. اوفعلی دادې چه کله به خاوند کورته داخل شو نودابه ورته پاڅیدله او چه څه کار اوحکم به ئې ورته کولونو په خوشالئ سره به ئې هغه کار کولو لیکن دا حالت ئې ناساپه بدل شو نو دا علامه دنشوز ده. نوپدې علاماتوسره علم ظنی په نشوز باندې حاصل شو

﴿فَعِظُوهُنَّ﴾ دا دښځو دتادیب دپاره اوله طریقه ده ، د وعظ نه مراد فضائل بیانول دی په اطاعت لکه مخکښې تیرشول. یالکه په حدیث دبخاری کښې دی چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائی که چرې ماچاته دسجدې کولو اجازت ورکولې غیرالله ته نومابه ښځو ته حکم کړې ووچه خپلو خاوندانو ته دې سجده وکړی. اودارنګې وعید بیانول په نافرمانئ دخاوند باندې لکه دیوبل روایت مفهوم دې چه کله خاوند ښځه خپلې بسترې ته را اوبلی اوهغه انکار اوکړی نو ملائک به په دغه ښځې باندې ترصبا پورې لعنت وائ (بخاری شریف)

﴿وَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ﴾ دادویمه طریقه دتادیب ده. مضاجع جمع دمضجع ده ځاې د ویدې یا بسترې ته وائی نوعلماء کرام وائی چه پدې کښې اشاره ده چه صرف بستره ترینه جداکړئ اوهم بستری دې نه کوی. البته دخپل کورنه دې جدائی نه کوی ځکه پدغه صورت کښې زیات تکلیف رسیږی او دا جائز نه دی ځکه دفساد خطره ده او په حدیث کښې دی ((لاتهجرالا فی البیت)) یعنی جدائی ترینه صرف په کورکښې کوه

﴿وَاضْرِبُوهُنَّ﴾ دا دریمه طریقه دتادیب ده. دیته ضرب تادیبی ویلی شی اودضرب طریقه هم بیان شوېده په شرع کښې. دابن عباس رضی الله عنه نه منقول دی ((بالسواک ونحوه))

یعني دا وهل په مسواك اویا دهغې په مثل لرګی سره دی، او په بل روایت کښې دی چه دا وهل به داسې وی چه په هغې سره به هډوکي یایو اندام وغیره نه ماتیږی اونه به عیب جن کیږی. او په بل حدیث کښې دی ((ولاتضرب الوجه)) چه مخ به نه وهې. ابن عطیه رحمه الله وائې چه دا درې واړه طریقې په ترتیب سره دی. داسې دې نکوی چه ضرب مقدم کړی په نورو باندې. . اولې دواړه طریقې د تادیب لپاره شریفانه، مهذّبې طریقې دی او د انبیاؤ . صلحاؤ نه منقول دی. او دریمه طریقه د مجبورئ په درجه کښې جائزه ده لیکن په خپلو حدودو کښې دننه جائزه ده

په روایت د ابوداود کښې دی چه نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائل ((لاتضربوا اماءالله تعالی)) یعنی د لله تعالی وینځې ((زنانه)) مه وهئ. نوحضرت عمر رضی الله عنه راغې او وې فرمائل ((ذئرن النسآء علي ازواجهن)) یعنی ښځې په خاوندانوباندې زړه ورې شوې نو بیا نبی صلی الله علیه وسلم اجازت ورکړلو دوهلو نو بیا ښځو شکایت وکړلو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دخپلو خاوندانونه نونبی صلی الله علیه وسلم ووفرمائیل ((لقد طاف بآل رسول الله نساء کثیرة یشکون ازواجهن لیس اولائک بخیارکم)) یعنې دکوموخاوندانونه چه ښځې شکایت کوی نو دا غوره خلق ندی، ابن کثیر په روایت دابن عباس رضی الله عنه سره نقل کړې دي که امر ثالث (ادب ثالث) سره بیاهم اطاعت نه کوی نو بیا حلاله ده چه فدیه ددوئې نه واخلی یعنې خلع دې وکړی، یا دې طلاق ورکړی اوددې ذکرپه قرآ ن کښې اونه شو ځکه طلاق (ابغض الحلال الی الله)) دی.

﴿فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ﴾ که ښځه نشوز پریدی نوبیا ترینه هجران یاضرب جائز نه دې او د ﴿عَلَيْهِنَّ سَبِيلًا﴾ نه مراد لار دظلم ده یا ترینه مراد بهانې جوړول دی د ظلم کولو دپاره په دوئ باندې

﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا﴾ دا په منزله دعلت دې د ماقبل لپاره یعنې حقیقة خو علو اوکبریاء دالله تعالی صفت دې نوهغه سره دد حقیقی علواوکبریاء . اوهغه په چا باندې ظلم نه کوی نوخاوندانو په ښځوباندې حقیقی علونشته دې بلکه صرف ظاهری حاکمیت دی نودوئ ولې ظلم کوی

وَاِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوْا

اوکچري (١) ويريږئ تاسو يعني معلوم کړئ خلاف او کشمکش په مينځ دښځې اوخاوند کښې نو مقرر کړئ

حَكَمًا مِّنْ اَهْلِهٖ وَحَكَمًا مِّنْ اَهْلِهَا ۚ اِنْ يُّرِيْدَآ اِصْلَاحًا

يو صلح کونکې دخپلوانو دسړی نه او صلح کونکې د خپلوانو دښځې نه. کچرې نيت لري دا دواړه داصلاح

يُّوَفِّقِ اللّٰهُ بَيْنَهُمَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا خَبِيْرًا ۝

نو جوړخ به راولي الله په مينځ ددوئ کښې بېشکه الله دې پوهه خبردار

﴿ وَاِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا ﴾ **داخوارلسم حکم دې** داحکامو درعيت نه اوپدې حکم باندې دسورة په آخر کښې تنوير ذکر کيږي اوددې خلاصه داده که چرې دښځې اودخاوند په منځ کښې اختلافات طويل شي اودغه مذکورو طريقوسره اصلاح رانشي نوچونکې ددېنه دخاندانونو دجګړې خطره وی نو داسې نده مناسب. چه هرخاندان دې دخپل فريق والا حمايت په هر حال کښې اوکړی بلکه دوئ دې دخاوند دخاندان دطرف نه يو حَکم مقرر کړی او يو حَکم (فيصله کونکې) دې دَ خزې دَ خاندان نه مقرر کړی، اودا حکمين دې داصلاح کوشش اوکړی.نو الله تعالى به ددوئ اصلاح راولي اوخطاب په ((**وان خفتم**)) اوپه ((**فابعثوا**)) کښې اقاربو دزوجينو ته دې ياحکاموته راجع دې

﴿حَكَمًا مِّنْ اَهْلِهٖ وَحَكَمًا مِّنْ اَهْلِهَآ ﴾ حَکَم دخاندان دسړی اوخاندان دښځې نه لکه چه کيدې شی نو دارنګې دغير خاندانونونه هم کيدې شی ليکن دخاندان تخصيص حکه شوی دې چه دوئ په حالاتو باندې خه واقف کيدې شی اودارنګې دمشکلاتو اود اسبابو دهغې اودهغې دحل کولو باندې زيات واقف کيدې شی

﴿اِن يُّرِيدَآ اِصْلَٰحًا يُّوَفِّقِ اللّٰهُ بَيْنَهُمَآ ﴾ ضمير راجع دې حکمينو ته اوددېنه دوه خبری معلومې شوې **اول** دا چه دزوجينو په منځ کښې اتفاق راتلل دحکمينو په صحيح نيت سره کيدې شی که نيت صحيح وی نو دالله تعالى امداد به شامل حال وی او دانسانانو زړونه دالله

(١) خوارلسم حکم يعني که دخاوند اوښځې په مينځ کښې اختلاف پيداشی نومسلمانانو لره داصلاح کوشش کاردی ددې آيت پورې خوارلس احکام درعيت پوره شوچه دهغوئ خلاصه داده چه ظلم مه کوئ

په قبضه اوقدرت اوتصرف کښې د ی نو الله تعالی به ددوئ په منځ کښې اتفاق راولی

**فائده** اوداحکم دهرې جرګې والو دپاره دې چه دوئ ددوؤ فريقينو په منځ کښې صلحه کوی نوکه ددوئ نيت صفا وی نو الله تعالی به ددوئ مدد کوی او په مقصدکښې به ئی کامياب کړی

**او دويمه** دا چه دحکمينو دتقرر اودليګلو مقصد دزوجينو په منيځ کښې صلح کول اوددوئ اتفاق راوستل دی اوهرچه ده دا مسئله چه دوئ دتفريق اودجمع اختيار لری يانه نوپدې کښې اختلاف دې بعض وائی چه دتفريق يعنې دطلاق اودخلع اختيار نه لر ی ترڅوپورې چه زوجينو ورته اختيار نه وی ورکړې ځکه دوئ شرعی حاکمان اوقاضيان ندی اودتفريق کول بغير دتوکيل نه دشرعی حاکم اودقاضی کار دې دا قول دحسن او زجاج دې اودارنګې منسوب دې امام ابوحنيفه رحمه الله ته، **دويم قول** دادې چه دوئ بغير دتوکيل نه دجمع اوتفريق اختيار لری اودوئ قاضيان دی صرف وکيلان ندی اودا قول مروی دې دابن عباس اوحضرت علی رضی الله عنهما نه، اوامام مالک اوشافعی رحمهما الله هم همدا غوره کړې دې اوپدې قول کړې دې امام شعبی، دوئ دليل پيش کوی په يو واقعه سره چه صاحب دروح المعانی په روايت دشافعی اوبيهقی سره نقل کړې ده دعبيدة السلمانی نه چه يو سړې اوښځه راغلل حضرت علی رضی الله عنه ته اوهر يوسره ډير خلق وو د هغوئ دخاندان نه نو حضرت علی رضی الله عنه امر اوکړلو چه يوحکم دسړی خاندانه اوبل حکم دښځې دخاندان مقرر کړئ نوهغوئ مقررکړلو نوحضرت علی رضی الله عنه دواړه حکمينو ته اوئيل ((تدريان ماعليکما)) يعنې آيا تاسو پوهيګئ چه ستاسو ذمه داری څه ده او بيائې اوفرمائيل که تاسو دواړه په جمع او د يوبل سر ه په مصالحت باندې متفق شوئ نودغه شان اوکړئ اوکه ستاسو رائ په تفريق اوجدائی راغله نو تفريق اوکړئ نوکله چه ښځې دا خبره واريده نواوئيل چه ماته منظورده چه حکمين دواړه په قانون الهی څه فيصله اوکړی اوسړی اوئيل چه تفريق ماته منظور ندې، نوحضرت علی رضی الله عنه اوفرمائيل چه ته به هم دغه شان حکمينو ته اختيارورکوی څنګه چه اختيار ښځې ورکړې دې، نوددې واقعې نه شوافع دليل قائموی چه حکمين دتفريق اختيار لری اواحناف وائ چه داواقعه خوپدې دلالت کوی چه تفريق راوستل داموقوف دی په رضامندی باندې نو ددې وجه نه ئې سړی ته اوئيل چه ته هم حکمينو ته اختيار ورکړه لکه چه څرنګې ښځې اختيار ورکړی دې يا دا تفريق په امر دحضرت علی رضی

الله عنه سره وو او امام دتفريق اختيار لري څرنګې چه مصلحت اويني

وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْـًٔا وَّبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَّبِذِي الْقُرْبٰى

اوعبادت [۱] کوئ دالله اومه شريكوئ د هغه سره هيڅ څيز اودموريلار سره نيک سلوک کوئ اودخپلوانوسره

وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبٰى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ

اوديتيمانوسره اومسكينانوسره اودګاونډي نزدې (خپل)سره اودګاونډي لرې (پردي) سره اودملګرې دډډې سره

وَابْنِ السَّبِيْلِ وَمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ

او دمسافر سره او د هغوئ سره چه مالكان وي دهغوئ ښې لاسونه ستاسو، بيشكه الله نه خوښوي هغه څوک

كَانَ مُخْتَالًا فَخُوْرًا ۝ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ وَيَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ

چه وي متكبره خپله ستاينه كونكې داهغه دي چه بخل كوي (پخپله هم)او حكم كوي نوروخلقوته دبخل

وَيَكْتُمُوْنَ مَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا

اوپټوي هغه څيزچه وركړې دي دوئ ته الله دخپل فضل نه اوتيار كړې دي مونږ دپاره دكافرانو عذاب

مُّهِيْنًا ۝ وَالَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ رِئَآءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ

رسواكونكې اودوئ [۲] هغه كسان دي چه خرچ كوي مالونه خپل دپاره دخودنې خلقوته اوايمان نه لري په الله

وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَمَنْ يَّكُنِ الشَّيْطٰنُ لَهٗ قَرِيْنًا فَسَآءَ قَرِيْنًا ۝

اوپه ورځ دآخرت باندې اوهغه څوک چه وي شيطان هغه لره ملګرې نوډيربد دې داملګرې

﴿ وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْـًٔا ﴾ دخوارلس احكاماتو بيان نه بعد د اصل مسئلې يعني دتوحيد بيان دې يعني هر قسم عبادت مالي، بدني، قولي خاص الله تعالى لره دى او

---

۱ دخوارلس احكام رعيت نه پس مسئله د توحيد، د الله ﷻ عبادت كوئ شرك مه كوئ دا دويم امر دې (وبالوالدين) دريم امر د دفعيه دعذاب دپاره يعني احسان كوئ

۲ زجر تخويف

((شيئا)) مفعول به د تعميم دپاره دي يعني دالله سره هيڅ څوک شريک مه ګرځوئ نه ولي. نه نبي نه بت وغيره يا مفعول مطلق دي ((اى لا تشركوا شركا شيئا)) يعني هيڅ قسم شرک مه کوئ نه اعتقادي اونه فعلي او نه بل قسم

﴿ وَبِالْوَالِدَيْنِ ﴾ ((اى واحسنو الى الوالدين)) ﴿ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ ﴾ داقرابت عام دي دنسب په اعتبارسره وى اوكه د دار په اعتبارسره وى ﴿وَالْجَارِ الْجُنُبِ ﴾ ((الجنب)) دا صفت دي د ((الجار)) دپاره. جنب بعد ته وائي او دا بُعد عام دي دنسب په اعتبارسره وى اوكه د دار په اعتبارسره وى. په مسند بزاركښې دحضرت جابر رضى الله عنه مرفوعا روايت دي چه **ګاونډې په درې قسمه دي اول** هغه دي چه دهغه درې حقوق وى **اودويم** هغه دي چه دهغه دوه حقوق وى اودريم هغه دي چه دهغه يوحق وى. اول هغه دي چې ګاونډى وى اومسلمان وى او دقرابت والا وى **اودويم** هغه دي چه مسلمان وى خوقرابت نسبي نه وى. اودريم هغه دي چه كافروى نو دده صرف يوحق شو ﴿ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنبِ ﴾ ددې مختلف تفسيرونه دى : (۱) دسفرملګرې (۲) شريک درس (۳) شريک دکسب (۴) په جمات يامجلس کښې ناست ملګرې چه ستا ورسره تعارف پيداشي (۵) ښځه ﴿ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ﴾ وينځې غلامان اودارنګې حيوانات چه د انسان په ملكيت كښې وى

﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَن كَانَ مُخْتَالًا فَخُورًا ﴾ ((مختال)) خود پسند، هغه چاته وائي چه خپل شخصيت ورته زيات ښکارى اودبل حقوق په ځان باندې نه منى اود لوئي دوجې نه دخپلوانو اوګاونډيانو نه نفرت كوى اوفخورهغه دي چه خپل صفتونه پخپله خلقوته كوى اوخپله لوئي خلقوته ښکاره کوى (دوزمار). صاحب دروح المعاني دفخورپه تفسير كښې وائي ((يعدمناقبه عليه تطاولا وتعاظما)) .

﴿ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ ﴾ دا خبر دمبتدا مخذوف دي ((اى هم الذين)) يابدل دي د ((من)) نه ﴿وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ ﴾ ماقبل دضلال درجه وه اودا د اضلال درجه ده چه نورو خلقوته دبخل تعليم وركوى په قول يا په فعل او عمل سره

﴿ وَيَكْتُمُونَ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ ﴾ دېنه مراد مال اودولت دي ياعلم دى چه حقداران ترينه اُميد هم اون لرى . او يا ترينه مراد علم دين دي چه يهوديانو د رسول الله صلى الله عليه

وسلم صفتونه پټول . نو بخل عام دي چه د مال وی او که د علم دین وی.او په بهودوکښي دا دواړه قسم بخل په اعلى درجه او معيار کښي موجودوو

﴿ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ﴾ دا تخويف دي. مؤمن گنهگارته چه عذاب ورکولي شي نو دتطهیردپاره ورکولي شي اوکافرانو اومنافقانوته دتوهين دپاره ورکولی شي

﴿ وَالَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ رِئَاءَ النَّاسِ ﴾ دا عطف دي په ((**الذين يبخلون - الايه**)) باندي اوهغه چه بدل شي دماقبل نه نودابه هم بدل شي نو معنى به ئى داشي ((لايحب الله الذين ينفقون اموالهم رئاء الناس)) يعنى الله تعالى ددي دواړوقسموخلقوسره محبت نه کوی یوهغه خلق دی چه بخل کوی اوکتمان کوی اوبل هغه قسم خلق دی چه انفاق خوکوی ليکن لله یی نه کوی بلکه دخلقودخودنې دپاره ئی کوی ﴿ وَلَا يُؤْمِنُونَ ﴾ دمنافق ایمان صرف لسانی نوهغه کالعدم دي ﴿ وَمَن يَكُنِ الشَّيْطَانُ لَهُ قَرِينًا ﴾ په کلام کښي تقديردي ((ای قرينهم الشيطان ومن يكن - الخ)) او دشيطان نه مراد عام دي انسي وی اوکه جني وی

وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ آمَنُوا بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَنفَقُوا مِمَّا

اوڅه نقصان به وو دوی ته کچری دوی ایمان راوړي وي په الله اوپه ورځ دآخرت اوخرچ یی کولي دهغه مال نه

رَزَقَهُمُ اللَّهُ ۚ وَكَانَ اللَّهُ بِهِمْ عَلِيمًا ۝ إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ۖ

چه ورکړیدي دوی ته الله اودي الله په دوی باندي عالم بيشکه الله ظلم نه کوي په اندازه ديوي ذري

وَإِن تَكُ حَسَنَةً يُضَاعِفْهَا وَيُؤْتِ مِن لَّدُنْهُ أَجْرًا عَظِيمًا ۝

اوکه وی [1] ذره مقدار نيکي، زياتوی هغي لره الله اوورکوی دخپل طرفه ثواب لوئی

﴿ وَمَاذَا عَلَيْهِمْ ﴾ دا زجردي. په ((ماذا)) کښي دنحويانو دوه قوله دی اول داچه ((ما)) په معنى د ((ای شئ)) استفهاميه سره دي په محل درفع کښي مبتداده او ((ذا)) موصوله په معنى د ((الذی)) سره دي او ((عليهم)) سره دمتعلق نه صله ده، اوموصول سره د صلي نه خبر د ((ما)) لپاره دي. دويم دا چه ((ماذا)) مجموعه په معنى د ((ایّ شئ)) سره مبتداء ده او ((عليهم)) سره د متعلق

[1] . ترغيب الى الانفاق

نه خبر دي ﴿ لَوْ ءَامَنُوا ﴾ ((لو)) شرطيه دي اوجواب ئې محذوف دي ((اى لوامنوا فماذا يضرهم ذلک)) يعنى كه چرې دوئى په صدق قلب سره ايمان راوړې وې نوڅه نقصان به ورته نه وو. بلكه فائده به وه ﴿ وَأَنفَقُوا ﴾ داعطف دې په ((آمنوا)) باندې او دا مقابل دبخل دې اود انفاق نه مراد شرعى انفاق دې

﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ ﴾ دا زجراوتخويف دې ﴿ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ﴾ منصوب بنابر صفت دې دمفعول مقدردپاره نوتقدير دعبارة داسې شو ((اى ان الله لا يظلم ظلما مثقال ذرة)) اوبعضې وائى چه ((لايظلم)) متضمن دې معنى د((لاينقص، لايبخس)) لره نو دوه مفعوله غواړى . مفعول اول محذف دې چه ((احدا)) دې او ((مثقال ذرة)) ورلره معفول ثانى دې ((مثقال)) دثقل نه ماخوذ دې په اصل كښې مطلق مقدار ته ويلې شي اوپه عرف كښې ثليريشت قيراط ته ويلې شي اودلته په معنى دمقداراواندازې سره دې او ((ذرة)) وړوكى سور ميږى ته ويلى شي اودحضرت ابن عباس رضى الله عنه نه روايت دې چه دميږى سر ته ويلې شي اودويم روايت داهم دې چه دنمر واړه واړه بسرى چه په پلوشوكښې ښكاريږى هغې ته وائى .

﴿ وَإِن تَكُ حَسَنَةً ﴾ دا ترقى ده دماقبل نه چه الله تعالى ظلم نه كوى بلكه د حسناتو بدله په كثير مقداركښې وركوى ((ان تك)) په اصل كښې ((ان تكون)) وو، دجزم په وجه دنون حركت ساقط شواو د التقاء ساكنين په وجه واؤ حذف شوو اونون كله حذف كيږى چه روستو ورسره ضميرمتصل نه وى لكه پدې ځائې كښې اوكله نه حذف كيږى لكه ((ان يكن غنيا اوفقيرا)) او ((تک)) د كان ناقصه نه دې اواسم ورلره ضميردې چه راجع دې مثقال ته اوهغه مؤنث دې په سبب د اضافت كولومؤنث ته . ﴿ يُضَٰعِفۡهَا ﴾ ددينه مراد تكثيردې صرف دوه مثله ترينه ندى مراد او په ﴿ وَيُؤۡتِ مِن لَّدُنۡهُ ﴾ كښې اشاره ده چه زيادت دثواب محض په فضل دالله سره دې

فَكَيۡفَ إِذَا جِئۡنَا مِن كُلِّ أُمَّةِۭ بِشَهِيدٖ وَجِئۡنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ شَهِيدٗا ۞ يَوۡمَئِذٖ

نوڅنگه[۱] حال به وى ددوئ كله چه راولومونږ دهر امت نه گواه اوراولو مونږ تالره پدوئ باندې گواه په دغه ورځ به

۱ . تخويف اخروى .

يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَعَصَوُا الرَّسُوْلَ لَوْ تُسَوّٰى بِهِمُ الْاَرْضُ

ارمان كوي هغه كسان چه كفرني كړي دي اونافرماني ئي كړېده درسول نه چه هموار ه شي بدوئ باندې زمكه

وَلَا يَكْتُمُوْنَ اللّٰهَ حَدِيْثًا ۝

اونه به شي پټولې دوئ دالله نه هيڅ خبره

﴿ فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا ﴾ دا تخويف اخروى دي اودا خبر دمبندامحذوف دپاره دي . **اى كيف حالهم اذا ـ الخ**

﴿ مِن كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ ﴾ نه مراد نبى دا اُمت دي ﴿ وَجِئْنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ شَهِيدًا ﴾ د ((هولاء)) نه مراد دغه انبياء سابقين دى.او مراد دشهادت نه په دوئى باندې شهادت دې په صدق ددوئ باندې دې يا ((هؤلاء)) نه مراد مكذبين ددې امت دى اومراد دشهادت نه په دوئى باندې شهادت په تكذيب په دوئ باندې دې. اوياترينه مراد صحابه دى او ((على)) په معنى د ((لام)) سره دې اومراد ترينه شهادت دې په ايمان اوپه تابعدارئ دصحابؤ باندې. په بخارى شريف كښې روايت دې دعبدالله بن مسعودنه چې نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه ته ماته دقرآن پاک تلاوت اوكړه نو ما عرض اوكړو چه ((يا رسول الله أقرأ وعليك أنزل)) آيا څه تلاوت كړم اوحالانكه داخوپه تاسوباندې نازل دې نونبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې زه غواړم چه دبل چانه واورم نو ما دسورة نساء تلا وت شروع كړو. كله چه دې آيت ته څه اورسيدم ﴿ فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا ﴾ نونبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ((حسبک)) يعني بس چه كافى دي . كله چه ما دهغه مخ مبارک ته نظراوكړو نو د سترگونه ئې اوښكې بهېدلې . قسطلانى شرح بخارى وائى چه نبى صلى الله عليه وسلم ته آخرت منظر مستحضر شو او د امت دكوتاهئ خيال ئې راغې نوځكه ئې اوجړل، پدې آيت كښې لفظ دشهيد دنبى صلى الله عليه وسلم په حق كښې ذكرشوې دې. اهل بدعت ددې نه ثابتوى مسئله دحاضر او نا ظر د رسول الله ﷺ

**جواب** چه دشهيد نه مراد نگهبان اونگران دې اوخصوصا په هغه خلقوچه دنبى صلى الله عليه وسلم په زمانه كښې موجود وو لكه عبدالله بن مسعود. ددغه مذكورروايت نه هم ظاهريږى او دمسلم شريف په روايت كښې دى ((شهيدًا مادمت فيهم )) اودغه شان دبخارى

شریف په یوروایت کښې د ی ((فاقول کماقال عبدالصالح وکنت علیهم شهیدا مادمت فیهم فلما توفیتنی کنت انت الرقیب علیهم )) اوبعضوئیلی دی چه دشهادت نه مراد دټولوامت په اعمالوشهادت دې په دلیل دهغه حدیث سره چه قرطبی ذکرکړې دې چه په نبی صلی الله علیه وسلم باندې اعمال دامت پیش کیږی لیکن پدې حدیث باندې ابن کثیر ردکړې دې چه پدې حدیث کښې انقطاع ده اویو راوی پکښې مجهول دې اودا حدیث مرفوع نه دې بالفرض که دا حدیث ثابت هم شی نوبیا ترینه داخبره نه ثابتیږی چه نبی صلی الله علیه وسلم هرځائ کښې حاضر اوناظر دې او دا ډیره واضحه خبره ده

﴿ يَوْمَئِذٍ يَوَدُّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾ دا تتمه دتخویف ده ﴿ وَعَصَوُا۟ ٱلرَّسُولَ ﴾ دکفرنه علاوه عصیان مراد دی ﴿ لَوْ تُسَوَّىٰ بِهِمُ ﴾ ((لو)) مصدریه دې ((تسوی)) په تاویل دمفرد سره مفعول به دې د(یود) دپاره ((ای یتمنون تسویة الا رض هم بحیث یدفنون فیها)) او ((ٱلْأَرْضُ)) نائب فاعل د ((تسوی)) دپاره دې او (با) دتلبس دپاره ده ((ای متلبسة بهم))

﴿ وَلَا يَكْتُمُونَ ٱللَّهَ حَدِيثًا ﴾ د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه چا سوال وکړو چه په دې آیت کښې داسې ذکر دی چه دوئ به هیڅ خبره نشی پټولې لیکن بل آیت کښې داسی دی ﴿ وَٱللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ ﴾ په ظاهر کښې ددې دواړو په مینځ کښې تعارض دې ځکه په اول آیت کښې دی چه خبرې به نشی پټولې اوپه دویم آیت کښې ددې په عکس سره ذکردې

**جواب** نوهغوئ جواب اوکړو چه هرکله کفاردا وه وینی چه جنت ته دمسلمانانونه علاوه بل څوک نشی تلې نو دوئ به وائی یوبل ته چه راشئ چه انکاراوکړو دشرک نه نو وائی به ((**والله ربناماکنامشرکین**)) نو بیا به په دوئ باندې د دوئ اعضاء او جوارح ګواهی اوکړی نو په دغه وخت کښې به اقرار اوکړی نوددې وجه نه ئی او فرمائیل ﴿ وَلَا يَكْتُمُونَ ٱللَّهَ حَدِيثًا ﴾.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَقْرَبُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَنتُمْ سُكَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَعْلَمُوا۟ مَا

اې ایمان (١) والو ! مه نږدې کیږئ مونځ ته پداسې حال کښې چه تاسو نشه یئ تردې چه پوهیږئ په هغه څه

١ - د امورثلاثو (ظلم مکوئ . شرک مکوئ، احسان کوئ) نه بعد دامر مصلح یعنی مونځ بیان . چه دادامور مذکوره دپاره ممد اومعاون دې

تَقُوْلُوْنَ وَلَا جُنُبًا اِلَّا عَابِرِیْ سَبِیْلٍ حَتّٰی تَغْتَسِلُوْا ؕ وَاِنْ کُنْتُمْ

چه تاسوني وايئ او نه په حال دجنابت کښې مگر که تيريدونکي يئ دلارې تردې پورې چه غسل اوکړئ. او که تاسو

مَّرْضٰۤی اَوْ عَلٰی سَفَرٍ اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ اَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ

ناجوړه يئ يا په سفر کښې يئ ياراشي يوستاسونه لوني حاجت نه ياتاسويوځائې شوى يئ د ښځوسره

فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوْا بِوُجُوْهِكُمْ وَاَيْدِيْكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ

او نه مومئ تاسواوبه نوتيمم کوئ په زمکه پاکه باندې نومسح کړئ مخونه خپل اولاسونه خپل بېشکه الله دې

عَفُوًّا غَفُوْرًا ۝

د ېر عفوکونکي د ېر بخنه کونکي

﴿ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْتُمْ سُكٰرٰى ﴾ مخکښې خوارلس احکامه ذکرشو نو دا ټول امور انتظاميه وو، اوس دلته امرمصلح ذکرکيږي چه هغه مونځ دې ځکه دمونځ په ذريعه سره دباطن اصلا ح رازى اوخصوصا په جمعې سره مونځ کول اوصفونه سيده کول پدې سره اتفاق رازى، ((قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : لتسون صفوفكم اوليخالفن الله بين قلوبكم)) (مشکوة بحواله مسلم)

امور مصلحه د امور انتظاميؤ لپاره ممد اومعاون دې، دمونځ دپاره ظاهرى طهارت او دزړه په استحضار سره قرآن پاک لوستل او اوريدل هم ضرورى دى.

نو دلته حکم دې چه په حالت دَ نشه کښې مونځ مکوئ، او دَ بې اودسئ په حالت کښې مونځ مه کوئ. نو معلومه شوه چه په مونځ کښې قرآن لوستل او اوريدل ډير اهتمام لري. نو دَ دې وجه نه په حالت دَ نشه کښې مونځ کول ممنوع دى او دَ دې وجهې نه أقرء او أعلم بكتاب الله لره امام جوړل ضرورى دى ﴿ وَاَنْتُمْ سُكٰرٰى ﴾ داجمله حاليه ده او حال چونکه قيد وى او دارومدار دکلا م وى نومقصود په نهى سره هم دا قيد دې ﴿ حَتّٰى تَعْلَمُوْا مَا تَقُوْلُوْنَ ﴾ دا غايه ده د ((لا تقربوا)) تر دې چه پوهيږئ په هغه څه باندې چه تاسو ئى وايئ په مونځ کښې، او د دې آيت مقصد دا نه دې چه دنشې لپاره مونځ پريږدئ بلکه مقصد دادې چه دمونځ په وخت کښې

نشه مه کوئ.

نو دشرابو حرمت تدریجا راغلې دې، اول آیت دسورة بقره نازل شو اوپدې کښې اشاره وه حرمت ته خو صریح ممانعت نه وو نوځکه حضرت عمر رضی الله عنه اوویل ((اللهم بین لنا بیانا شافیا)) د هغې نه بعد بیا دا آیت نازل شو او پدې کښې هم صراحةً ممانعت نه وؤ، نوبیا حضرت عمر رضی الله تعالی عنه اوفرمائیل (( اللهم بین لنا بیانا شافیا)) نوبیا روستو آیت دسورة مائده نازل شو، ددې آیت په شان نزول کښې روایت دترمذی دې چه ترمذی ورته حسنٌ صحیحٌ ویلی دی او هغه دادې چه حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه دعوت کړې وو نوموږه طعام اوخوړلو اوبیا مو وریسې شراب اوسکل او علی رضی الله عنه فرمائی چه څه دوئی امام جوړکړم نو ماسورة کافرون شروع کړو نو د ﴿ لَآ أَعۡبُدُ مَا تَعۡبُدُونَ ﴾ په ځائې ما داسې اوویل ((ونحن نعبدماتعبدون)) نودا آیت نازل شو، چونکه دا واقعه دحرمت دشرابونه قبل وه نوپدې وجه دحضرت علی رضی الله عنه په مقام باندې څه داغ نه شی لګیدې نو د دې نه دانکار څه وجه نشته، اګر که په بعض روایتونوکښې دامامت نسبت حضرت عبدالرحمن بن عوف ته ذکر شوې دې چه ده امامت کړې وؤ او غلطی ترینه راغلې وه.

﴿ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ ﴾ ((جنب)) دا لفظ په وزن د مصدر سره دې نو ددې وجه نه مفرد، تثنیه اوجمعه مذکراو مؤنث پکښې برابردې او د جنب اصل معنی بُعد دې اوجنب اصطلاحی ((فاقدالطهارة الکبری)) هم دَ مونځ،تلاوت، مسجد نه بعید وی ځکه ورته جنبی وایئ، په دې آیت کښې دوه توجیه دی : (۱) احناف وائی چه صلوة دلته په خپله معنی سره دې نومعنئ داده : ((لا تقربوا الصلوة جنبا حتی تغتسلوا)) او ((الا عابری سبیل)) ترینه استثناء ده اوپدې کښې ابهام دې اوتفصیل ئې وروستو دې اومطلب د آیت داشو چه مه نیزدې کیږئ مونځ ته په حالت دجنابت کښې ترڅوچه تاسوغسل نه وی کړې مګرکه تاسوتیریدونکی دلارې یئ یعنی په حالت دسفرکښې یئ او اوبه بیا اونه مومئ، نو سفر اودهغه شان نور عذرونه اودهغوئ حکم روستو بیانیږی په ((وان کنتم مرضی ـ الایه)) سره

(۲) شوافع وغیره وائی چه دلته دصلوة نه موضع دصلوة مراد دې په طریقه داستخدام سره ((ای لا تقربوا موضع الصلوة المسجد جنبًا الا عابر سبیل)) مطلب دادې چه جنب دې مسجد ته نه داخلیږی مګر داچه په لارې باندې تیریدونکې وی نو بیا جائز دی تیریدل اومکث جائز نه دې اوپه نیزد د احنافو تیریدل هم جائز نه دی البته په وخت دضرورت کښې دې تیمم

اوکړي چه قادر نه وي په غسل باندې نوبیا تلې شي

﴿ وَإِن كُنتُم مَّرْضَىٰ ﴾ دا تفصیل دهغه اجمال دې چه په ((الا عابری سبیل)) کښې وو او دسفرنه علاوه دنوروعذرونوبیان دې چه هغه مرض دې نوپه ماقبل کښې ذکر دعابری سبیل یعنی ذکر دَ سفر بطور مثال وؤ او دلته د مرض نه هغه مرض مراد دې چه د اوبو استعمال سره د مرګ او یا د مرض زیاتیدلو خطره وي ﴿ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ ﴾ دا په محل دنصب کښې دې اوعطف دې په ((مرضی)) باندې ((ای کنتم علی سفر)) لیکن روستوشرط ورسره مراددې چه هغه ((ولم تجدوا ماء)) دې اوهرچه دې په حالت د روغ والی اود مقیم والی کښې یعنی څوک چه روغ وي. مقیم وي خو اوبه نه مومي نو دَ هغه دپاره نو دده دپاره هم په مذهب دامام ابو حنیفه اود امام مالک رحمهما الله باندې تیمم جائزدې اوذکر دسفر ددې وجه نه شوې دې چه غالب په حالت دسفرکښې اوبه نه موندلې کیږي اوپه حالت د حضر او اقامت کښې اسانی سره موندلې کیږي

﴿ أَوْ جَآءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ ٱلْغَآئِطِ ﴾ مدارک په حواله دامام رازی رحمه الله سره وائي چه دلته ((او)) پخپله معنی سره نه دې ځکه چه ((او)) داحد الامرین دپاره راځي نوبیا دا لازمیږي چه مریض اومسافر لره دې تیمم کول لازم شي اګرکه حدث اصغراو اکبرورته نوي لا حق شوې بلکه ((او)) په معنی د واو سره دې اوحال دې دفاعل نه نومعنی نی داده که تاسوپه سفرکښې وئ اوحال داوو چه تاسوته حدث اصغرلا حق شوې وو ((**وجاء احدمنکم من الغائط**)) او بیا درته حدث اکبر یعنی جنابت شوې وي.

﴿ أَوْ لَٰمَسْتُمُ ٱلنِّسَآءَ ﴾ او اُوبه مو اونه موندلې نوبیا تیمم کوئ اوبعضې وائی چه ((او)) زائد دې اوحضرت شیخ رحمه الله په حواله دشاه انورشاه کشمیری رحمه الله سره وائی چه ((او)) کله دتغایر مفهومی دپاره راځي (کمافی مسلم الثبوت) اودلته مفهوم د ((جاء احدمنکم من الغائط)) عام دې دماقبل نه نو د ((او جاء احدٌ منکم من الغائط)) مطلب دادې چه یا تاسو مریضان اومسافران نه وئ بلکه روغ اومقیم وئ لیکن بې اودسه اویاپه جنابت کښې وئ او اُوبه درته نه میلاویدې نوبیا هم تیمم کوئ.

**فائده** دلته قرآن نسبت دمجئ مخاطبینو ته اونکړو یعنی داسې او نه ویل ((اوجئتم من الغائط)) بلکه نسبت ئي ((احدکم)) ته اوکړو یوه وجه داده چه دانسان دا عادت دې چه په داسې

دلت کنبې یوازې والې اوتفرد خونبوی. بله وجه دا چه تصریح رانه شی په نسبت کولو مخاطبینوته د هغه فعل چه انسان ترینه حیا او شرم کوی

﴿أَوْ لَـٰمَسْتُمُ ٱلنِّسَآءَ﴾ پدې کنبې دحدث اکبربیان دې یعنی دجنابت اومراد ددینه جماع ده په نیزد د امام ابوحنیفه رحمه الله باندې او دا قول مروی دې درئیس المفسرین لسان القرآن حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه او دا قول زیات راجح دې څکه چه دا مروی دې دَ ابن عباس رضی الله عنه نه او دارنګې صیغه دمفاعله پدې دلالت کوی اوبل داچه پدې تقدیر به آیت جامع شی ټولو انواعو دحدث لره ‹اصغر،اکبر› او انواعو دطهارت لره ‹چه غسل اوتیمم › دی

اوپه نیزد دامام شافعی رحمه الله باندې مرادترینه لمس په لاس سره دې اوقُبلی ‹څکلولو› ته هم شامل دې اوداقول مروی دې دابن عمر اوابن مسعود رضی الله عنهما نه. نوپه نیزد د امام شافعی رحمه الله باندې لمس په لاس سره دنواقضو دوضوء نه دې. په یوروایت کنبې ((بشهوة مس)) اوپه بل روایت کنبې ((مطلق مس)) اوپه یوروایت کنبې بلا حائل اوپه بل روایت کنبې مطلقا نوبناء پدې قول باندې پدې آیت کنبې دحدث اکبر یعنی دجنابت ذکرنشته دې.

﴿فَلَمْ تَجِدُواْ﴾ نه موندل د ابو ډیرصورتونه لری یابه بلکل موجود نه وی اویابه ورته رسیدل مشکل وی لکه لونبې درا ویستلونه وی یاخوف د دشمن یا د درنده وی او یا اُوبه وی مګرکمې وی او د تندې ویره وی یاد مرض خطره وی او یا انسان په قیدکنبې وی یا په ګران قیمت ورته میلاویږی چه غبن فاحش پکنبې وی ((فا)) په ((فلم تجدوا)) کنبې دعطف دپاره ده او دا عطف دې په ((کنتم)) باندې اودا مجموعه شرط دې اوجزا ورلره دا قول دې چه ((فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا)) ((صعیدا)) مفعول به ده او ((طیبا)) ورلره صفت دې اود صعید معنی په نیزد دامام ابوحنیفه رحمه الله باندې وجه الا رض ده نوتیمم په هغه شی سره کول جائز دې چه هغه دجنس الارض نه وې چه په اور باندې به نه ویلې کیږی اونه به سوزی او امام شافعی رحمه الله په نیزد د ((صعید)) معنی تراب منبت ده ‹هغه خاوره چه ګیاه ترینه زرغونیږی › نوپس داسې کانړې چه په هغې باندې ګرد اوغبارنه وی نوپه هغې باندې تیمم په نزد د امام ابوحنیفه رحمه الله جائز دې اوپه نزد د امام شافعی رحمه الله جائزنه دې ترڅوچه خاوره پرې نه وی.

﴿فَامْسَحُواْ بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ﴾ دا تفصیل دتیمم دې او ددینه مراد لاسونه دی ترڅنګلو پورې په نیزد د احنافو باندې.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يَشْتَرُونَ الضَّلٰلَةَ وَيُرِيدُونَ

آيا (۱) ته نه ګورې هغه کسانو ته چه ورکړې شوېدي ورته يوحصه دکتاب نه اخلي ګمراهي اوغواړي

أَن تَضِلُّوا السَّبِيلَ ﴿٤٤﴾ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِأَعْدَائِكُمْ ۚ وَكَفٰى بِاللَّهِ وَلِيًّا

چه تاسو هم واوړئ دسمې لارې نه اوالله ښه عالم دې ستاسويه دښمنانواوکافی دې الله دوست حمايتي

وَكَفٰى بِاللَّهِ نَصِيرًا ﴿٤٥﴾ مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ

اوکافی دې الله مددګار بعضې ديهوديانو نه داسې خلق دي چه بدلوی کلمې دالله (تورات) په اړولوسره

عَن مَّوَاضِعِهِ وَيَقُولُونَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ

دخپلو ځائيونو نه اووائي دوئ واوريدومونږ اونه ئې منومونږ او وائي واوره ته آوريدل دې نه وی کړی شوي تاته

وَرَاعِنَا لَيًّا بِأَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِي الدِّينِ ۚ وَلَوْ أَنَّهُمْ

اوراعناوائي پداسې حال کښې چه تاووی ژبې خپلې (محرّف ته) اوعيب لګوی په دين اسلام کښې، اوکه دوئ

قَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا وَاسْمَعْ وَانظُرْنَا

ونيلې وې چه واوريدومونږ اوخبره منو اواِسْمَعْ ئې ونيلې وې بغيردغَيْر مُسْمَع نه او اُنْظُرنا ئې ونيلې وې (نه راعنا)

لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَأَقْوَمَ وَلٰكِن لَّعَنَهُمُ اللَّهُ بِكُفْرِهِمْ

خامخابه غوره وې دوئ لره اوښه برابر، ليکن لعنت کړېدې پدوئ باندې الله په سبب دکفردوئ

فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٤٦﴾

نوايمان نه راوړی دوئ مګر کم خلق

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتٰبِ ﴾ دا زجردې اهل کتابوته چه دوئ په خپل کتاب باندې عمل پرينښودلې دي اوګمراه شوی دی اود اغوا ړی چې تاسوهم په خپل کتاب باندې

۱ - زجر اهل کتابو ته

عمل پريږدئ اوگمراه شئ، ﴿ وَٱللَّهُ أَعۡلَمُ بِأَعۡدَآئِكُمۡ ﴾ دا تسلی ده مؤمنانوته چه الله تعالی ته ستاسو دشمنان ښه معلوم دی اوهغه به ستاسومددکو ی اودستاسو نصرت به کوی او دالله مدد اونصرت چه شامل حال شی نو دا کافی دي.

﴿ مِّنَ ٱلَّذِينَ هَادُواْ ﴾ دابيان د ((اُوتوا)) د ي ياخبر د مبتدا محدوفي دي ((ای هم من الذين هادوا)) يا ((من الذين هادوا قوم يحرفون ــ الخ )) .((يحرفون الكلم)) تحريف تغيراوتبدل ته وائی نوکه صرف معنی بدله شی نودا تحريف معنوی دي اوکه لفظ بدل شی نودا تحريف لفظی دي

اود ((ٱلۡكَلِمَ)) نه مراد كلمات اواحكام دتوراة دی ﴿ عَن مَّوَاضِعِهِۦ ﴾ دمقدرسره متعلق دي ((ای بصرفه عن مواضعه)) يعنی دوئ تغيراوتبديل کوی په احکامو دَ توراة کښې په اړولو سره دځيل ځاي نه چه دکلماتو مدلول اومقصد وغيره پريږدی اوبل څه ترينه اراد ه کوی

﴿ سَمِعۡنَا وَعَصَيۡنَا ﴾ په خوله ((سمعنا)) وائی او په زړه کښې ((عصينا)) وائی يا د نبی کريم صلی الله عليه وسلم په حضور کښې ((سمعنا)) وائی اوچه ځان له شی نو ((عصينا)) وائی

﴿ وَٱسۡمَعۡ غَيۡرَ مُسۡمَعٖ ﴾ داعطف دي په په ((سمعنا)) باندې نو د ((يقول)) ماتحت دي او ((غيرمسمع)) حال دي اوپدې کښې دوه احتماله دی يو معنی صحيحه ده اوبل معنی فاسده ده او دوئ به اراده کوله معنی فاسده ، معنی صحيحه ئ دا ده ((غيرمسمع كلامًا مكروها ولا اذى)) يعنی تاته دی نشی اورولي بده خبره او دتکليف خبره نوپدې صورة کښې دادعاد خيرده اومعنی فاسده ئې داده چه په تا دې هيڅ څه نشی اورولي يعنی کوڼ شی او يا چه مړشی څکه مړی ته هم څه نشی اورولي نوپدې صورة کښې دا بددعا ده اودارنگې د ((راعنا)) دوه معنی دي يوه معنی صحيحه ده چه زمونگ رعايت اوگړه اومونږته توجه اوکړه اوبله معنی فاسده ده چه دا په سريانئ ژبې کښې مشتق دي درعونت نه اواحمق ته ائی يا ئې معنی ده گډوبيزوشپونکې يعنی ((راعينا)) چه عين ته کسره اشباعی ورکړې نو دا بد ترين الفاظ دکفردی چه پيغمبر صلی الله عليه وسلم ته وائی چه ته دانسانانودپاره مربی اومعلم نه ئی بلکه دگډو اوبيزو دپاره ئی ياد ((راعنا)) معنی دنگاهبان ،حاضر اوناظر ده يا دا لفظ دمصرپه اصطلاح کښې معبود اعظم (نمر) ته وائی نودا لفظ موهم دشرک دي ﴿ لَيَّۢا بِأَلۡسِنَتِهِمۡ ﴾ ((ليا)) مصدر دي په معنی داسم فاعل سره اودا حال دي دضمير د ((يقولون)) نه يادضمير د ((يحرفون))

نه يعنى خپلې ژبې اړوى او ناوه وى ئى دمنزّل نه محرّف ته ﴿ وَطَعْنًا فِي الدِّينِ ﴾ دامفعول مطلق دي يامفعول به دي دفعل محذوفه دپاره ((اى يطعنون طعنا يايقصدون طعنا)).

**فائده** پدې آيت كښې بيان دې چه يهودپخپله ګمراه دى خپل كتاب ئې پرېښى دى اوناسو هم ګمراه كول غواړى پدې طريقې سره چه كوم مركز د هدايت كتاب الله دې نو په هغې كښې تحريف او تبديلى كوى اودا (چشمهٔ هدايت) تاسوته خړوى او اشتباه. التباس دربانديې راولى اوالفاظ كفريه موهومه دشرك په تاسوكښې رائج كوى خو تاسو دالله پنده اونبيئ نوهغه تاسولره كافي دي اوستاسوحافظ دي

﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ ﴾ يعنى كه چرې دوئې د((سمعناوعصينا)) په ځاى ((سمعناواطعنا)) ونيلې وې اوصرف واسمع ئې ويلې وې بې د((غير مسمع)) نه او ((انظرنا)) ئې ويلې وې په ځاى د ((راعنا بانديې نودابه دوئې دپاره خيروې ﴿ وَأَقْوَمَ ﴾ اى اعدل يعنې ډيره دعدل خبره اوبرابره به وې ﴿ وَلَكِن لَّعَنَهُمُ اللَّهُ ﴾ دلته ذكر دمسبب دې په ځاى دسبب باندې يعنې دوئ خير او اقوم پرېښودلو نولعنت پرې الله نازل كړلو ﴿ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ كه ((قليلا)) صفت درجال وى نومعنې ئې داده چه دوئ نه ډېر لږ خلق ايمان راوړى ياصفت د ((ايمانا)) دې ((اى لايؤمنون الاايمانا قليلا)) ايمان قليل خو ندې معتبر نومعنې داشوه چه ددوئ بالكل ايمان نه راوړى

يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَٰبَ ءَامِنُوا بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا لِّمَا

اې اهل كتابو ايمان راوړئ په هغه كتاب چه نازل كړيدې مونږ تصديق كونكې دهغه كتاب

مَعَكُم مِّن قَبْلِ أَن نَّطْمِسَ وُجُوهًا فَنَرُدَّهَا عَلَىٰٓ أَدْبَارِهَآ

چه تاسوسره دې مخكښې ددېنه چه وران كړو مونږ مخونه (صورتونه)نواوبه كړخوو هغه په شاګانو دهغوئ

أَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا لَعَنَّآ أَصْحَٰبَ السَّبْتِ ۚ وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ مَفْعُولًا ۝

يابه لعنت اوكړو په دوئ لكه چه لعنت كړيدې مونږ په خاوندانو د خالي دورځې. اودې حكم دالله پوره كړې شوې

﴿ يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَٰبَ ﴾ پدې كښې دعوت دې اهل كتابوته دايمان. اودتخويف دې يعنې كه تاسوايمان رانه وړئ نو خطره ده چه تاسو ته به په دې دوه قسمه سزاګانو كښې يوه سزا دركړې شي. اول داچه﴿ أَن نَّطْمِسَ وُجُوهًا ﴾ ((طمس)) په لغت كښې دېته وائى چه ليكلې

شوې خط اويا نقش دلوح نه وران كړې شي. صاحب د روح المعاني وغيره فرمائي چه الله تعالى چه دانسان په مخ كښې حاجبين ((روزې)) په شكل دنون جوړې كړى دى اوسترګې په شان دصاد دى اوپوزه په شان دالف ده اوخوله په شكل دميم ده نود الله تعالى به داروان كړى ﴿فَنَرُدَّهَا عَلَىٰٓ أَدْبَارِهَآ﴾ ((فا)) دتفصيل دپاره ده دا تفصيل د طمس دې چه مخونه به ئې په شان دڅټونو اوګرځوؤ چه سترګې اوپوزه به پكښې نه وى اويا دا چه مخكښې حصه به ئې شاته كړو اوشاته حصه به ئې مخكښې راولو. يا دا معنى ده چه ددوئ رؤساء او مشران به ذليل كړو. دويمه سزا داده چه ﴿أَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا لَعَنَّآ أَصْحَٰبَ ٱلسَّبْتِ﴾ ضمير د ((هم)) راجع دې اهل كتابوته يا وجوه ته اود ((لعن)) نه مراد مسخ اوتبديل دصورت انسانى دې چه په صورت اوشكل كښې به دخنزير او دشادوګانوپه شان وى، اويا ترينه مراد دخائسته انسانى اخلاقو ازاله ده او په خسيس اخلاقوكښې اخته كول دى، دلته كلمه د ((او)) دمانعة الخلو دپاره ده اوكه څوک اعتراض اوكړى چه ايمان خودوئې نه وو راوړى نوداعذابونه په دوئې ولې نازل نشو. نوددې **څوجوابات دى** : ((۱)) حضرت تهانوى رحمه الله فرمائي چه په قرآن كښې دا سې لفظ نشته دې كه چرې دوئ ايمان نه راوړى نوخامخابه طمس اومسخ راځى. بلكه مطلب دادې چه ددوئى دا جرم ددې مذكورې سزا مستحق دې نوكه الله تعالى سزاورنه كړى نودا دهغه رحمت دې ((۲)) داعذابونه به قرب دقيامت كښې وى لكه په مشكوة شريف باب القدر كښې دى چه دا قسم عذابونه به په منكرينو دقدر راځى ((۳)) داعذابونه به به دوئ باندى په قيامت كښې راځى ((۴)) دطمس نه مراد ذليل كول دمشرانو ددوئى دى اودلعنت نه مراد دصفاتو د انسانيت زائل كول دى اودا اُمور واقع شوى دى ((۵)) د آيت مطلب دادې چه كه چرې هيڅ په دوئ كښې ايمان رانه وړلو نو دا مذكوره عذابونه به واقع شى اوهركله چه بعضو لدوئ نه ايمان راوړلونوعذاب نازل نه شو، ابن كثير او روح المعاني په روايت دابن جرير ذكر كړې دى چه عبدالله بن سلام رضى الله عنه دشام نه واپس شو او دا آيت ئى واوريدلو نوخپل اهل اوعيال ته دتلونه مخكښې دنبى صلى الله عليه وسلم حضورته راغې اواسلام ئى راوړلواو وې وئيل چه يارسول لله زما دا ګمان وو چه تاته درسيدلو نه مخكښې زماشكل مسخ نه شى. دغه شان دكعب الاحبار چه لوئى عالم د يهودو وؤ په زمانه دحضرت عمر رضى الله عنه كښې ئى اسلام راوړلو ((قال كعب اسلمت مخافة ان تصيبه هذه الآية)) نومعلومه سوه چه دغه عذابونه په دنياكښې موعود وو خودبعضې اهل كتابو دايمان راوړلو په وجه واپس شو

إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ

بېشکه الله نه بخښي چه شرک اوکړې شی دالله سره او بخښي هغه گناهونه چه ددېنه علاوه دی هغه چا

لِمَنْ يَّشَاءُ ۚ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدِ افْتَرٰى إِثْمًا عَظِيْمًا ۞ أَلَمْ

چه خوښه ئې شی اوچاچه شرک اوکړو دالله سره نوبه تحقیق سره ده جوړکړه، په الله باندې دروغ لوئې

تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ يُزَكُّوْنَ أَنْفُسَهُمْ ۚ بَلِ اللّٰهُ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَاءُ

نه ګورې هغه کسانو[۱] ته چه ستائنې کوی دخانونوخپلو، بلکه الله پاکوې هغه چالره چه خوښه ئې شی

وَلَا يُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ۞ اُنْظُرْ كَيْفَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ

اوظلم به نشی کېدې پدوئ په اندازه د تاردهډوکی دکهجورې، اوګوره څنګه جوړه وی دوئ په الله باندې دروغ

وَكَفٰى بِهٖ إِثْمًا مُّبِيْنًا ۞

او پوره دی دا دورغ ګناه ښکاره.

﴿ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ ﴾ پدې آیت کښې دتوحید د دعوې اعاده ده سره دتفصیل نه چه ګناهونه خوهر یو قبیح اوبد دې لیکن شرک زیات قبیح اوبد ترین دې، ځکه چه شرک ناقابل معافی جرم دې، ددې دمعافی هیڅ صورت نشته حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه په قرآن کښې دا آیت ماته زیات مرغوب دې ((فقد اخرج الترمذی منه وحسنه، احب اية الی لی القرآن ان الله لایغفر ان یشرک به ویغفر مادون ذالک لمن یشآء)) اومراد دشرک نه کفر دې مطلقا اوتخصیص بالذکر دشرک شوې دې دوجه دکثرت نه حتی چه بعضې علماء کرام فرمائی چه تمام انواع دکفر راجع دی شرک ته اومراد د ((لایغفر)) نه دادې چه څوک مرشی په حالت دشرک باندې نودهغه مغفرت محال دې اوڅوک چه په حالت دحیاة کښې وی نودشرک نه معافی په توبه سره کیدې شی ﴿ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَاءُ ﴾ یعنې علاوه د کفر او شرک نه د نورو ګناهونو معافی کیدې شی برابره خبره ده که په توبې سره وی اوکه بغیر دتوبې نه وی، نو د

---

[۱] زجر اهل کتابو ته

گناه کبیره معافی پغیر د توبې نه هم کیدې شی په شرط د دې سره که مشیت الهی وی. هم د دې وجه نه حضرت علی رضی الله عنه دې آیت ته ((احب آیة الی فی القرآن)) وئیلی دی ﴿ فَقَدِ ٱفۡتَرَىٰٓ ﴾ ((افتراء)) دروغ جوړولو ته اوارتکاب دګناه ته وائی اوداجمله دماقبل دپاره علت دې یعنی شرک ځکه ناقابل معافی دې چه دا ددروغوانتها ده ددینه زیات دروغ اوزیات ګناه بلکه ددې سره برابره ګناه بله نشته دې

﴿ أَلَمۡ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يُزَكُّونَ أَنفُسَهُمۚ ﴾ دمسئله توحید بیان نه روستو اهل کتابوته دوه زجرونه بیانیږی داوال زجر دې چه دوئ ځان نه اولیاؤالله اواحباؤ الله وائی اودارنګې ابناء الله وائې لیکن الله تعالی فرمائی چه دافیصله زما په اختیارکښې ده چه زه چاته پاک اومقرب اوولی وایم نوپه حقیقت کښې هغه پاک اومقرب وی لیکن دوئ خو په شرک اونورومعاصیوکښې مبتلا دی نودوئ ځنګه اولیاء او مقرب کیدې شی

﴿ وَلَا يُظۡلَمُونَ فَتِيلًا ﴾ دا کنایه ده دقلت نه. فتیل په اصل کښې ((مافی شق النواة)) نه وائی یعنی هغه مزې چه دکجورې دهډوکی په چاؤد کښې وی دفتل اصل معنی ده مزې رانغښتل دی. دتقلیل دبیان دپاره دا درې الفاظ استعمالیږی: (۱) فتیل (۲) نقیر (۳) قطمیر اونقیر هغه داغ ته وائی چه دکجوری په هډوکی کښې وی اوقطمیر هغه نرې پټ چه دکجورې دهډوکی دپاسه وی

﴿ ٱنظُرۡ كَيۡفَ يَفۡتَرُونَ ﴾ یعنی دا دتعجب خبره ده چه دوئ په الله تعالی باندې افتراکوی یعنی شرک وغیره اوبیاهم ځان نه مقربین وائی یا دامطلب دې چه دوئ دادعوه کوی چه ﴿نَحۡنُ أَبۡنَٰٓؤُاْ ٱللَّهِ وَأَحِبَّٰٓؤُهُۥۚ ﴾ یا دا دعوه کوی چه ﴿لَن يَدۡخُلَ ٱلۡجَنَّةَ إِلَّا مَن كَانَ هُودًا أَوۡ نَصَٰرَىٰۗ ﴾ نوجواب اوشوچه دامحض افتراء ده ﴿ وَكَفَىٰ بِهِۦٓ ﴾ بازائده په فاعل د ((کفی)) داخیلږی نو ((به)) فاعل دکفی دې اوبازائده ده.

أَلَمۡ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ أُوتُواْ نَصِيبٗا مِّنَ ٱلۡكِتَٰبِ يُؤۡمِنُونَ بِٱلۡجِبۡتِ

آیا[۱] ته نه ګورې هغه کسانوته چه ورکړې شوېده ورته یوه حصه د کتاب نه یقین کوی په بُت (یاسحر)

---

۱- دویم زجر اهل کتابو ته.

وَالطَّاغُوتِ وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا هٰٓؤُلَآءِ أَهْدٰى مِنَ الَّذِينَ اٰمَنُوا سَبِيلًا ۝ أُولٰٓئِكَ

او شیطان باندې اووائی په باره دکافرانو کښې چه دوئ دمومنانونه زیات په سمه لار دي دغه کسان دي

الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ وَمَنْ يَّلْعَنِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ نَصِيرًا ۝

چه لعنت کړیدی پدوئ باندې الله. اوهغه څوک چه لعنت اوکړی په هغه باندې الله نوهیڅرې به ته اونه مومندې هغه لره مددګار

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ ﴾ دادویم زجر دې چه دوئ پخپله شرک کوی اودمشرکانو په حق کښې وائی چه ﴿ هٰٓؤُلَآءِ أَهْدٰى مِنَ الَّذِينَ ءَامَنُوا سَبِيلًا ﴾ نوپدې وجه دوئ ملعون دی او دوئ نه علم ندې حاصل شوې بلکه حسد ورته ملاؤشوې دې. ﴿ أَمْ يَحْسُدُونَ النَّاسَ ﴾

﴿ يُؤْمِنُونَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوتِ ﴾ اهل لغت وائي چه ((جبت)) په اصل کښې جبس وو. سین په تاسره بدل شوې دې اوجبس رذیل اوبې خیره شی ته وائی اوطاغوت مبالغه ده په طغیان کښې. اوددې دواړو په مصداق کښې مختلف اقوال دی حضرت ابن عباس رضی الله عنه ابن جبیر اوابوالعالیه وائی چه جبت په حبشی لغت کښې ساحر ته وائی اودطاغوت نه مرادکاهن دې اودحضرت عمر رضی الله عنه نه منقول دی چه جبت سحر دې اوطاغوت شیطان دې امام مالک رحمه الله نه مروی دی چه جبت بتان دی اوطاغوت هرمعبود من دون الله دې. امام قرطبی وائی چه دا قول زیات پسندیده دې . یوقول دا دې چه جبت بت اوطاغوت هغه شیطان دې چه په بت کښې داخل شی او آوازونه کوی اود ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه جبت حیی بن احطب دې اوطاغوت کعب بن اشرف دې اودا دواړه دیهودیانو غټ علماء وو ددې ټولو أقوالو په منځ کښې څه تناقض نشته ټول ترینه مرادکیدې شی اوددې آیت په **شان نزول** کښې مفسرین وائی چه حی بن احطب اوکعب بن اشرف دواړه دجنګ أحد نه روستو مکې ته لاړل سره دیوجماعت نه. او دَ ابو سفین سره چه پدغه وخت کښې نې ایمان نه وو راوړې او دکفاروسردار وو نوده سره ملاؤ شو اودنبی صلی الله علیه وسلم خلاف نې دتعاون وعده ورسره اوکړه نواهل مکه والو دوئ ته اووئیل چه تاسویهود یې اعتماده خلق نې نومونږه په تاسو اعتمادنه کوو ترڅوپورې چه تاسوزمونږ دې بتانوته سجده نه وی کړې (جبت. طاغوت ) نودوئ دقریشو د مطمئن کولودپاره بتانوته سجده اوکړه اومشرکینوته نې ((اهدی سبیلا)) هم اووئیل حالانکه دوئ دیهودو علماء وو اوبتانوته سجده خو د دوئ عقیده نه وه خو د خپل سیاسی مفاد دپاره ئی کړې وه اوبیادیرش دیرش کسان دَ

طرفینونه دخانه کعبې مخې جمع شواوعهد ئې اوکړلو چه مونږ به تول دمحمد ((صلی الله علیه وسلم)) خلاف جنګ کوو

﴿هَٰٓؤُلَآءِ أَهۡدَىٰ﴾ ابوسفیان دوئ ته اوئیل چه تاسو اهل علم یئ نوتاسو اوایئ چه څوک په حقه دي مونږه یامحمد ؟ نوکعب تپوس اوکړلو چه ستاسو دین څه دې. نو ابوسفیان اوئیل چه مونږ حج ،عمره، طواف. دحاجیانوخدمت. صله رحمی کوؤ لیکن دوئ خپل آبائې دین ترک کړې دې. صله رحمی ئې پریخودې ده. نوکعب ورته اوئیل چه تاسو زیات په حقه یئ. کله چه په انسان باندې نفسانی خواهشات غالب شی اود دنیا لالچ ئی واخلی نو بیا هر قسم اقوالواوکارونوته اماده شی ((اعاذناالله بفضله)) ﴿أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ لَعَنَهُمُ ٱللَّهُ﴾ یعنې دغه دمذکوره قول اوعمل په وجه دوئ مستحق دلعنت دي

أَمۡ لَهُمۡ نَصِيبٞ مِّنَ ٱلۡمُلۡكِ فَإِذٗا لَّا يُؤۡتُونَ ٱلنَّاسَ نَقِيرًا ۝

آیاشته دوئ لره حصه دبادشاهئ نه(که وي، نودغه وخت به ورنکړی خلقوته په قدر ددا غ په هډوکي دکهجورې کښې

أَمۡ يَحۡسُدُونَ ٱلنَّاسَ عَلَىٰ مَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضۡلِهِۦۖ فَقَدۡ

آیا حسد کوی دوئ دخلقو سره په هغه څه چه ورکړې دي الله دوئ ته دفضل خپل نه نو پس په تحقیق سره

ءَاتَيۡنَآ ءَالَ إِبۡرَٰهِيمَ ٱلۡكِتَٰبَ وَٱلۡحِكۡمَةَ وَءَاتَيۡنَٰهُم مُّلۡكًا عَظِيمٗا ۝

ورکړې وؤ مونږ آل دابراهیم ته کتابونه اوپیغمبری او ورکړې وه مونږ هغوئ ته بادشاهی لویه

فَمِنۡهُم مَّنۡ ءَامَنَ بِهِۦ وَمِنۡهُم مَّن صَدَّ عَنۡهُۚ

پس بعضې[۱] ددوئ نه هغه څوک دی چه ایمان ئې راوړې دې پدې، اوبعضې هغه دی چه منع یی کړېده دده نه

وَكَفَىٰ بِجَهَنَّمَ سَعِيرًا ۝

او پوره دي جهنم اور بل کړې شوې

﴿أَمۡ لَهُمۡ نَصِيبٞ مِّنَ ٱلۡمُلۡكِ﴾ ((اَم)) منقطعه دي په معنی د ((بلْ أ)) سره دې او ((بلْ)) د انتقال دپاره راځی اوهمزه داستفهام انکاری لپاره ده، پدې آیت کښې دیهودیانو دقول رد دې چه

۱ - اهل کتابو کښې دوه جماعتونه دي.

دوئ به ویل خپلو اتباعوته چه بادشاهي به زمونږه لاس ته راځي اودارنګي دعوه به ئې کوله چه الله تعالی دخزانو اختیار مونږته راکړې دې او دنبوة حق صرف زمونږه دې نو الله تعالی ددوئ رد اوکړو چه دا أمور ددوئ حصه اوحق نه دې بلکه وې فرمائیل چه په دوئ کښې بخل په داسې اتمې طریقې سره موجود دې که چرې د دوئ په لاس کښې څه اختیاروې نودوئ به هیڅ چاته څه نه وورکړی دنقیر په مقدار

﴿ أَمۡ يَحۡسُدُونَ ٱلنَّاسَ ﴾ ((ام)) په معنی د ((بل)) سره یعني دوئ سره نه علم شته. نه بزرګی اونه استحقاق دنبوة اومملکت بلکه دوئ سره حسد دې چه دوئ حسد کوی مؤمنانوسره اورسول الله صلی الله علیه وسلم سره په وجه دهغه دفضائلوچه الله تعالی ورله ورکړی دی

﴿ فَقَدۡ ءَاتَيۡنَآ ءَالَ إِبۡرَٰهِيمَ ﴾ نو لکه چه څه رنګه مونږه آل دابراهیم ته چه اسلاف دمحمد صلی الله علیه وسلم دی انعامات ورکړی ووخکه چه په هغوکښې اهلیت اوصلاحیت وونودغه شان مونږه حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته انعامات ورکړی دی خکه چه په ده کښې هم اهلیت اوصلاحیت وو اوچه څنګه مونږ ابراهیم علیه السلام ته حکومت اوبادشاهی ورکړې وه نودغه شان به حضرت محمد ﷺ اوده ده اتباعوته ورکوو ﴿ فَمِنۡهُم مَّنۡ ءَامَنَ بِهِۦ ﴾ په اهل کتابو کښې بعضې نیکان او انابت والا دی نوهغوئ ایمان راوړی په محمد ﷺ باندې اوبعضې ضد او دتعصب والا دی نوهغوئ ایمان نه راوړی.

﴿ صَدَّ عَنۡهُ ﴾ ((صدّ)) لازمی هم رازی نومعنی ئې داده چه منع کیږی د ایمان نه. او متعدی هم رازی نومعنی ئې داده چه نورخلق منع کوی د ایمان نه

﴿ وَكَفَىٰ بِجَهَنَّمَ سَعِيرًا ﴾ دا تخویف[1] دې او ((جهنم)) فاعل د ((کفی)) دې او ((سعیرا)) تمیزدې په معنی دمفعول سره ((اي مسعورة علیهم)) یعني بل کړې شوې په دوئې باندې

إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِـَٔايَٰتِنَا سَوۡفَ نُصۡلِيهِمۡ نَارٗا ۖ كُلَّمَا

بیشکه هغه کسان چه کفر ئې کړیدې په آیاتونوزمونږ زرده چه داخل به کړومونږ هغوئ لره اورته. هروخت

نَضِجَتۡ جُلُودُهُم بَدَّلۡنَٰهُمۡ جُلُودًا غَيۡرَهَا لِيَذُوقُواْ ٱلۡعَذَابَ ۗ

چه سنکوری شي څرمنې ددوئ بدلې به کړو دوئ له څرمنې نورې دپاره ددې چه اوڅکی عذاب

[1] تخویف اخروی

إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَزِيزًا حَكِيمًا ۝ وَالَّذِينَ اٰمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

بېشکه الله دي زورآور حکمتونووالا اوهغه کسان[۱] چه ایمان ئې راوړي دي اوعملونه کوي نېک

سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ خٰلِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۖ

ژر ده چه داخل به کړومونږ هغوئ لره جنتونوته چه بهیږي به لاندې دهغې نه ولې. همېشه به وي په هغې کښې همېشه.

لَهُمْ فِيهَا أَزْوٰجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۖ وَنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيلًا ۝

وی به ددوئ دپاره په هغې کښې بیبیانې پاکې اوداخل به کړومونږ دوئ لره سوري همېشه راحت ورکوونکي ته

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ دا تخویف اخروی دي په ترک دایمان﴿ نَضِجَتْ جُلُودُهُم بَدَّلْنَٰهُمْ جُلُودًا غَيْرَهَا ﴾ یعني دهرې سوزیدلې څرمنې په ځائ به بله څرمن ورکړو چه هغه به په صورت کښې دهغې نه بدله وی لیکن اصل ماده به یوه وی صرف صورت به بدل شوې وی. نودا سوال وارد نه شوچه هغه بلې څرمنې خو ګناه نده کړې نوهغه ولې سوزولې کیږی اوالله تعالی پدې هم قادر دې چه بغیر دبدلولونه همیشه دغې ته عذاب ور کړی خوحکمت په بدلولوکښې دادې چه دالله تعالی دیوبل قسم قدرت اظهار اوشی. اودویم حکمت دادې چه کله څرمن بدله شی او نوې څرمن رابنکاره شی نوهغه ډیره تنکئ وی نوعذاب ورته زیات محسوسیږی.

﴿ لِيَذُوقُواْ ٱلْعَذَابَ ﴾ مراد دوام دذوق دې ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ﴾ دا بشارت اخروی دې ﴿وَنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيلًا ﴾ ((ظلیل)) صفت مشبه دې دلفظ د ((ظلا)) لپاره دَ مبالغه اوتاکید. لکه طول طویل. یومٌ أیوم. لیلٌ ألیل. که څوک **سوال** وکړی چه په جنت کښې خونمر نشته نوسورې به څنګه وې . **جواب** دادې چه اګر که نمر نشته لیکن نُور شته دې. نوسورې دنور دې نه ده نمر. امام رازي رحمه الله وائي چه بلاد دحجاز ګرم دی اوسورې دهغوئ په نزدلوئ سبب د راحت دې نو ددې وجه نه سورې کنایه ده دهمیش راحت نه نوکه څوک **سوال** اوکړی چه په جنت کښې خوګرمي نشته نو دسوری څه فائده ده. نو**جواب** دادې چه داشجار وغیره سوری نه کنلو کښې یو قسم لذت اومزه حاصلیږی اګرکه دګرمی دفع کولو دپاره نه وی

---

۱ بشارت اخروي

إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمٰنٰتِ إِلٰى أَهْلِهَا ۙ وَإِذَا حَكَمْتُمْ

بېشکه الله حکم کوی تاسوچه اداکوئ امانتونه (حقونه) حقدارودهغې ته (اودافرمائي) کله چه فېصله کوئ تاسو

بَيْنَ النَّاسِ أَنْ تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ ۚ إِنَّ اللَّهَ نِعِمَّا يَعِظُكُمْ

په مېنځ دخلقو کښې نوفېصله کوئ په انصاف سره . بېشکه الله - ډېرښه دي هغه څيز چه وعظ درکوي تاسونه

بِهٖ ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ سَمِيعًا بَصِيرًا ۝

په هغې ، بېشکه الله دي اوريدونکي لېدونکي

**دسورة دويمه حصه نهه[۹] احکام سلطانيه** پدې حصه کښې دهغه احکاماتو ذکر دې چه دهغې تعلق د سلاطينو او وُلاتو او اصاحب اقتدار سره دې

**اول حکم** ﴿ إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمٰنٰتِ ﴾ دا خطاب حکامو او أمراؤ ته دې «**خازن قرطبی وغيره**» حُکامو اوصاحب اقتدار طبقې ته حکم دې چه دحقدارو حقوق دخلقونه واخلئ اوحقدارو ته ئې اورسوئ او په عدل او انصاف سره فيصله کوئ اورعيت ته حکم دې چه ددغسې حکامو تابعداری کوئ اوپدوئ باندې خپلې فيصلې اومسئلې حل کوئ

﴿أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمٰنٰتِ إِلٰى أَهْلِهَا﴾ يعنې رسوئ حقوق حقداروته. ددې آيت **د شان نزول** په باره کښې مفسرين وائی چه دا په حق دعثمان بن طلحه رضی الله عنه کښې نازل شوې دې. عثمان بن طلحه وائی چه په جاهليت کښې به دبيت الله چابيانې زما په لاس کښې وې نومابه دپير او د جمعرات په ورځ خانه کعبه کولاوه وله اوخلق به ورته داخيلول نويوه ورځ نبی صلی الله عليه وسلم تشريف راوړلو بيت الله ته د داخيلدلو دپاره، «او پدغه وخت کښې عثمان بن طلحه نه وو مسلمان شوې» نوده نبی کريم صلی الله عليه وسلم منعه کړلو اوسختې سختې خبرې ئې ورته اوکړې نو نبی صلی الله عليه وسلم برداشت وکړو اوده ته ئې اوفرمائيل چه اې عثمان ! شايد چه ته به يوه روځ دبيت الله چابيانې زما په لاس کښې اووينې اوزما به اختيار وی چه چاته ئې حواله کوم. عثمان بن طلحه اووئيل که چرې داسې اوشول نوقريش به

۱ دسورت دويمه حصه (احکام سلطانيه) دااول حکم دې يعنی حکام دې دحقدرانو حقوق دخلقو نه دوئ دپاره واخلی او رعيت دې دحکامو فرمانبرداری کوی اوپه دغه شان حکامو دې خپلې فېصلې کوی

هلاک اوذلیل شی. نونبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه قریش به آباد اوعزت مند شی.
نو عثمان اووئیل چه زه په زړه کښې په خپلو خبرو نادم شوم اود اسلام راوړلو اراده مې
اوکړله خودقوم دیرې مې پوره نه کړله ، اوکله چه فتح مکه اوشوه نونبی صلی الله علیه وسلم
دده نه چابیانې واغستلې اوپه بل روایت کښې دی چه حضرت علی رضی الله عنه دده دلاس نه
چابیانې واغستې په زوره سره نودا آیت نازل شو، نونبی صلی الله علیه وسلم واپس چابیانې
ورکړې اوورته ئې اوفرمائیل چه دابه همیشه تاسره اوستاخاندان سره وی اوکه څوک ئې تانه
اخلی نوهغه به ظالم وی ((آه ، مختصراً)) ددې آیت شان نزول اګرکه خاص دې لیکن حکم ئې
عام دې. مفسرین وائی چه پدې کښې هر حق داخل دې برابره خبره ده که حقوق الله وی اوکه
حقوق العباد وې، اعتقادې وی اوکه قولی وی یافعلی وی نودا هر یوامانت او هر حق خپل
حقدارته رسول ضروری دی. دارنګې امامت ، افتاء ، درس اوتدریس ،اوهره عهده . ملازمت
،حقدارته رسول لازم دی. حتی چه بعضې علماء وائې چه ووټ هم یو امانت دې اوحقدار ته
ورکول ضروری دې اوغیر مستحق ته ورکول خیانت دې اوبعضې مفسرینو مزید تشریح کړې
ده چه ژبې ته د ژبې حق ورکول هم ضروری دی اوهغه داچه د دروغواوفحش ګوئی، غیبت،
چوغلئ نه اوساتلې شی او دالله ذکر اوتلاوت او دخیر خبرې پرې اوکړې شی اودارنګې
سترګوته دسترګو حق ورکول ضروری دی نو دغه شان ټولو اندامونوته دهغوئ حقوق ورکول
اودالله تعالی په مرضی کښې استعمالول دهغوئ آمانات دی. اوددې نعمت شکریه هم ده
نوبناپدې تشریح ﴿ إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ ﴾ خطاب عام دې حاکم، محکوم، زوج، زوجه مالک،
مملوک، استاد، شاګرد، ټولو ته خطاب دې، او امانات ورکول دتمامو هغه حقوقو اواوامرو
پوره کول دی چه د هر هر کس سره متعلق دی.

﴿ أَن تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ ﴾ عدل په لغت کښې برابروالی ته وائی او په عرف کښې مقابل د ظلم
او زور ته وئیلی شی. دبل چا په حق کښې کمې کول تفریط دې او زیاتی کول افراط دې
افراط اوتفریط دواړه ظلم او جور دې او د دې په مینځ کښې عدل دې او تعیین او معلومیت
د دې په غیر د کتاب الله او سنت نه ممکن نه دې ﴿ إِنَّ اللَّهَ نِعِمَّا يَعِظُكُم بِهِ ﴾ دا د ماقبل دپاره په
منزله د تعلیل دې. لفظ د ((الله)) اسم د ((ان)) دپاره دې او جمله د ((نعما)) ئې خبر دې. ((نعما)) په
اصل کښې ((نعم ما)) دې ((نعم)) فعل دې، فاعل ئې ضمیر مبهم دې او ((ما)) ئې تمیز دې په
معنی د ((شیئا)) سره یا ((ما)) په معنی د ((الشئ)) معرف سره دې او ((یعظکم)) صفت د موصوف

محذوف دیاره دي (( ای نعم الشئ شئ یعظکم به)) یعنی هغه شئ چه په هغې سره الله تعالی تاسو ته وعظ اونصیحت کوی هغه ډیر ښه شئ دي

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ ۚ فَاِنْ تَنَازَعْتُمْ

اې ایمان والو حکم منئ دالله اوحکم منئ درسول او دحاکمانو ستاسونه. نوکه اختلاف اوکړ

فِيْ شَيْءٍ فَرُدُّوْهُ اِلَى اللّٰهِ وَالرَّسُوْلِ اِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ

تاسوپه څه څیز کښې نو اوګرځوئ فیصله دهغې الله اورسول ته که یئ تاسو ایمان لرئ په الله اوپه ورځ

الْاٰخِرِ ۭ ذٰلِكَ خَيْرٌ وَّ اَحْسَنُ تَاْوِيْلًا ۝

دآخرت. دادیرغوره او ډیر ښائسته انجام والادي

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ ﴾ حکم بالعدل بغیر د کتاب او سنت نه ممکن نه دي نو ځکه حکم وشو چه ((**اطیعوا الله**)) د دې نه مراد کتاب الله دي او ((**واطیعوا الرسول**)) د دې نه مراد سنت درسول الله دي او دا دواړه په شرع کښې مستقل دلیلونه دی نو دد ې وجه نه ئې دواړه ذکر کړل او ((**اطیعوا**)) ئې مکرر ذکر کړو ﴿ وَأُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ مِنكُمۡ ﴾ دلته ((اطیعوا)) په لفظ کښې مکرر نه دي ذکر شوې ځکه چه د اولوالامر اطاعت مستقل او مطلقا نه دي بلکه په دې شرط سره ضروری دي چه د الله تعالی او د رسول د حکم ماتحت او موافق وی ((مالم یؤمر بمعصیة فاذا امر بمعصیة فلا سمع ولا طاعة )) (متفق علیه).

د ((**اولوالاومر**)) **په تفسیر کښې مختلف اقوال دی** [1] د دې نه مراد سلاطین. بادشاهان خلیفه ګان دی . لیکن د دوئ اطاعت مشروط دي په ((مالم یومر بمعصیة)) سره [2] امیر د لښکر مراد دی لکه د بخاری شریف د یو روایات نه معلومیږی چه دا آیت د عبدالله بن حذافه او دده د ملګرو په حق کښې نازل شوې دې. نبی کریم صلی الله علیه وسلم د هغه ملګرو ته تاکید کړې وو چه د امیر اطاعت کوئ نو دې غصه شو. او پل بل روایت ((د غیر بخاری)) کښې دی چه مزاح ئې ملګرو نه حکم وکړو چه لرګی جمع کړئ نو هغوئ راجمع کړل او په هغې ئې اُور بل کړو نو امیر ورته حکم وکړو چه اوس ورداخل شئ دې اُور ته. نو بعضو اراده اوکړه دداخلیدو او بعضو انکار اوکړو نو بیا دا اور مړ شو او د امیر غصه هم کمه شوې وه. نو نبی

کریم صلی الله علیه وسلم سره دا قصه بیان شوه نو دوئ او فرمائیل (( لو دخلوها ماخرجوا منها الی یوم القیامة انما الطاعة في المعروف))

۳. علماء فقهاء یعنی مجتهدین أمت ترینه مراد دی. دا قول په نیز د مفسرینو راجح دی نو د امر نه مراد علم دین دي نو دوئ خاوندان د علم دین دی. پوهه دی په استنباط د حکمو د نصوصو نه. یعنی هغه احکام چه صراحه په قرآن او سنت کښې نشته یا په کښې احادیث متعارض دی نو د دغه شان احکامانو تلاش مجتهدین دقرآن او سنت د منصوصاتو نه کوی نو د دوی اطاعت او تابعداری په حقیقت کښې اطاعت دالله او د رسول دي. چونکه په ظاهر کښې دغه احکامات مجتهدینو ته منسوب دی نو په ظاهر کښې د دوئ اطاعت او تابعداری ده. او ددوئ اطاعت ځکه ضروری دي چه هر کس نه پوهیږی په استنباط داحکامو دنصوصو اونه هر څوک د احادیثو په مابین کښې دتطبیق یا د ترجیح صلاحیت لری نو د دې وجه نه دهغه چا اتباع ضروری ده چه صلاحیت لری.

(۴) امام رازی رحمه الله وائي چه د ((**اولوالامر**)) نه مراد اجماع دامت ده ځکه چه د اجماع معصومیت قطعی دې نو دهغې داتباع قطعی حکم پکار دې په خلاف د اُمراؤ او دسلاطینو نه ځکه چه معصوم ندی دخطاء نه . او همدارنګه ((المجتهد قد یصیب وقدیخطئ)) نو ددې وجه نه ددوئ اتباع حکم قطعا اومطلقًا نشی کیدي.

﴿فَإِن تَنَٰزَعۡتُمۡ فِي شَيۡءٖ فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ﴾ یعني کله چه ستاسو نزاع په یوه مسئله کښې راشی نو دهغې دحل دپاره رجوع اوکړئ کتاب الله اوسنت د رسول الله ته. منکرین دقیاس استدلال کړي دي په دې آیت سره چه قیاس حجت شرعی ندي ځکه چه الله تعالی په دې آیت کښې حکم کړي دې درجوع کولو کتاب الله اوسنت ته. نه قیاس کولوته. که قیاس حجت وي نوالله تعالی به حکم کړي وي درجوع کولو قیاس ته. نوددې **جواب داد ي** چه دا آیت دلیل په نفی دقیاس ندې بلکه دا دلیل دې په اثبات دقیاس باندې. بلکه دا آیت متضمن دې تمام ادله شرعیو لره

﴿فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ﴾ دا دحجیت دکتاب الله بیان دې او په ﴿وَٱلرَّسُولِ﴾ کښې حجیت دسنت دی. او رد الی الکتاب والسنة قیاس دې. ځکه علة القیاس مستنبط وی. یادکتاب الله نه یا د سنت درسول نه. نوقیاس رد الی الکتاب والسنة دې بل شئ ندې او د ﴿فَإِن تَنَٰزَعۡتُمۡ﴾ نه

معلومه شوه كه چرې نزاع نه وى نوعمل به په متفق عليه باندې كيږى اودغه اجماع ده ﴿إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ﴾ دا تاكيد د ماقبل دې ﴿ذَٰلِكَ خَيْرٌ﴾ دا اشاره ماقبل ته ده يعني الله تعالى او اولو الامرخير دې. دخير نه مراد اصلح دى ﴿وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا﴾ او ډير ښائسته انجام. يعني په اطاعت دالله اودرسول اود اولوالامر كښې ستاسو دپاره ډيره اصلاح ده او انجام ئې هم ډير ښائسته دې. نومعلومه شوه چه د اولوالامر اتباع نه كولوكښې اصلاح هم نشته او انجام ئې هم ښائسته نه وى. دتاويل معنى ده انجام اومآل او دزجاج نه مروى دى چه رد الى الكتاب والسنة احسن دې ستاسو دهغه تاويل نه چه په كښې رد الى الكتاب والسنة نه وى (روح) رد الى الكتاب والسنة بعينه قياس دې نو تاويل پدې تقدير سره په معنىٰ دبيان المراد من اللفظ سره دې او په اول تقدير سره تاويل په معنى دعاقبت اوانجام سره دې او تاويل پدې دواړو معنو كښې حقيقت دې

**فائده** بعضې غير مقلدينو دامام زجاج داقول نيم ګړې ذكر كړې دې چه كتاب اوسنة ته رجوع كول ښائسته دى ستاسو تاويلاتونه، حالانكه د زجاج پوره كلام هغه دې چه مونږه ذكر كړلو. او په تفسير د «**فان تنازعتم فى شئ**» كښې داسې وائى چه «الفاظ د آيت او اقوال د محققينو . مفسرينو صريح دلالت كوى چه خطاب عام دې اوهر چه مقلد دې نو په هغه باندې الله تعالى دمسئلې اودليل تحقيق كول واجب كړى دى په دليل ددې آيت سره

چه ﴿فَسْـَٔلُوٓا۟ أَهْلَ ٱلذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾ ځكه چه علم مسئله ده سره ددليل شرعى نه نوهر كله چه مقلد ته علم ددليل حاصل وى نودغه وخت كښې كله تنازع دمجتهد سره پيداكيږى «انتهى». لوئ مفسر اومحقق علامه الوسى رحمه الله وائي چه ((ولاشک ان هذا انمايلائم حمل اولوالامر على الامراء دون العلماء لان الناس والعامة منازعة الامراء فى بعض الامور وليس لهم منازعة العلماء اذالمراد بهم المجتهدون والناس ممن سواهم لاينازعونهم فى احكامهم)) اودا قول هم قابل تعجب دې چه الله تعالى په مقلد باندې دمسئلې اودليل وضاحت واجب كړې دې په دليل د ((فاسئلوا اهل الذكر)) سره ځكه دلته خوالله تعالى په مقلد باندې داهل الذكر نه سوال اودهغه اتباع لازم كړې ده نو بيا دمقلد تنازعه دمجتهدسره څرنګه پيداكيدې شى نود نص ((فاسئلوا اهل الذكر ان كنتم لاتعلمون)) مدلول اودعقل مقتضى داده چه څوک پوهه نه وى نود پوهه اتباع دې كوى. نه چه نزاع دې ورسره كوى ځكه د ((لايعلمون)) نزاع د ((اهل الذكر)) سره خلاف

دمقتضى دعقل اودنص نه ده او د تقليد حاصل هم دادي چه څوک قدرته وی په استنباط دجزئياتو دنصوصو او په احاديثو متعارضوکښي دتطبيق يا د ترجيح صلاحيت نه لری نوهغه دي دهغه چا اتباع کوی چه هغه دغي صلاحيت لری اوچونکه مجتهد ددي صلاحيت لری نولهذا په هغه لازم دی معلومول دمسئلي ددليل نه اوجائز ندی ورلره تقليد دبل مجتهد په خلاف دمقلد نه (صرح به الفقهاء) اوهر چه ددی دموجوده زماني غير مقلدين چه عوام بلکه اکثر ملايان ئي دعربي دعبارة دقواعدومطابق دصحيح لوستلوصلاحيت نه لری نو دوئي دخپلو مشرانو ړوند تقليد کوی اود سلف صالحينو تقليد ته ناجائز اوشرک وائي. اومشران اواکابر علماء ئی د اجتهاد او داستنباط صلاحيت نه لری نو په خپل فهم سره چه دقرآن اوحديث څه مفهوم بيان کړی نوهغې ته کتاب اوسنت وائي اودسلف صالحينو بيان کړي مفهوم اوتشريح دکتاب الله اودحديث مقابل ګرځوی چنانچه دوئ ليکی چه

**فائده** : بعضي مقلدينو پدې آيت سره دليل نيولي دي دتقليد داثبات دپاره چه پدې آيت کښي امر دي اطاعت دالوالامرباندي، اوهغه علماء مجتهدين دی ليکن دا استدلال ئي ډير کمزوري دي دډيرو وجوهو نه **اوله وجه** داده چه اطاعت غير دي د تقليد نه اوپدې کښي ذکر داطاعت دي ..... آه. **جواب** بيشکه الفاظ اولغوی معنی غير دی ليکن مصداق ئي غير ندي **والا فعليکم البيان، اودويمه** وجه چه مخ کښي ذکر شوچه د اولوالامر اطاعت ئي مستقل ندي ذکر کړي بلکه ددوئ اطاعت د الله اودرسول داطاعت دلاندې داخل دي. ((**جواب** هر کله چه اطاعت ثابت شو اوضروری شو نو بيا ئی اطاعت ضروری شو نو تقليد ثابت شو)) يعنی چه اولوالامر په قرآن اوسنت سره قول اوعمل کړي وی نوهله به دهغه اطاعت کيږی ((آيا مجتهدينو قرآن اوسنت پريخودلي دي اودهغوئ قول اوعمل دقرآن اوسنت مقابل دي ؟)) **دريمه وجه** داده چه اطاعت د اولوالامر ئی مشروط کړي دي چه په وخت د تنازع کښي قرآن اوسنت ته رجوع لازم ده اودا خلاف دي دمعنی د تقليد نه ((**جواب** د اولوالامر د اطاعت حکم اوبيا ورسره دتنازع حکم عجيبه دي)).

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ

آيا [1] نه ګوري هغه کسانوته چه دعوی (خودا)کوی چه دوئ ايمان راوړي دي په هغه څه چه نازل کړی شوېدی تاته

[1] - زجر منافقينو ته چه فيصله درسول ئي کافی نه ګڼړله .

وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّتَحَاكَمُوْٓا اِلَى الطَّاغُوْتِ

او په هغه کتابونو چه نازل کړې شوی دی مخکښې ستانه. اراده لری چه فیصله یوسی شیطان ته

وَقَدْ اُمِرُوْٓا اَنْ يَّكْفُرُوْا بِهٖ ۗ وَيُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ

اوحال داچه دوی ته حکم کړې شوې وو چه دوئ دې انکار کوی دفیصلې دهغه نه. اواراده لری شیطان

اَنْ يُّضِلَّهُمْ ضَلٰلًۢا بَعِيْدًا ۝

چه گمراه کړي دوی لره په گمراهئ لرې سره

﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزْعُمُونَ﴾ داد ﴿أَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُوا۟ ٱلرَّسُولَ﴾ سره متعلق دې اومنافقینو ته زجر دې چه په خوله باندې دعوی دایمان کوی اوعمل ئې ددوئ ددعوې نه سراسر مخالف دې. ددې آیت په **شان نزول** کښې حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه نقل دی چه یو منافق چه نوم ئې بشر وو بظاهر کلمه گو مسلمان وو دیهودی سره ئې جگړه وه نو یهودی او دهغه متعلقینو منافق ته اوئیل چه فیصله به نبی علیه السلام باندې کوو دا ځکه چه دده یقین وو چه نبی علیه السلام به دحق فیصله کوی او رشوت به نه اخلی. نومنافق اوئیل چه فیصله به دیهودیانو په سردار کعب بن اشرف باندې کوو «دا ځکه چه هغه رشوت اخستلو اوپه ناحقه به ئې فیصله کوله اودغه منافق هم په ناحقه باندې وو» خو بالاخر فیصله نبی علیه الصلوة والسلام ته پیش شوه. نونبی علیه الصلوة والسلام دیهودی په حق کښې فیصله اوکړه نومنافق په دې باندې راضی نه شو. په قرطبی کښې دی چه بیا فیصله حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته پیش کړې شوه نوهغه هم دیهودی په حق کښې فیصله اوکړه. نو بیا هم منافق راضی نه وو. او یهودی ته ئې اوونیل چه فیصله به په حضرت عمر رضی الله عنه باندې کوو. دمنافق داخیال وو چه ددې ظاهر مسلمان یم نوحضرت عمر رضی الله عنه به زما په حق کښې فیصله اوکړی. اوروسته رغبت اوکړی. نوکله چه لاړل دواړه حضرت عمر رضی الله عنه عنه ته پیش شو. نو یهودی اوئیل چه ددې مقدمې فیصله رسول الله اوابوبکر صدیق دواړو زما په حق کښې کړې ده لیکن بشر په هغې راضی ندې نوحضرت عمر رضی الله عنه ترینه تپوس اوکړو چه آیا دغه شان قصه ده. نومنافق اقرار اوکړلو چه هو . نو بیا حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه تاسو دلته کینئ زه راځم. اولاړ اوخپله توره ئې را واغسته او دمنافق سر ئې قلم کړلو. او وې فرمائیل څوک چه

د رسول الله صلی الله علیه وسلم په فیصله باندې نه راضی کیږی نو د عمر فیصله بیا د هغه په حق کښې داده. نوبیانورو منافقانو د مقتول په باره کښې د قصاص او یا د دیت مطالبه اوکړله اوعذر نې پیش کړلو چه د بشر مقصود اصلاح او جوړخت وو نو پدې وجه دا آیاتونه نازل شول

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ ﴾ ((زعم)) قول باطل ته هم وائي ((غلطه دعوی)) او اعتقاد باطل ته هم وائي. یعنې دوئ دا دعوه کوی چه مونږه ایمان لرو په قرآن باندې او په هغه کتابونو باندې چه د قرآن نه مخکښې نازل شوی دی یعنې تورات. اکثرمنافقین په یهودو کښې وو نو د دوئ زبانی دا دعوه وه چه مونږه لکه څنګه چه توراة منو نو د غه شان قرآن هم منو یعنې دوئ خو د اسلام مدعیان دی خو ددې با وجود ﴿ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓاْ ﴾ اراده اوعزم لری چه فیصله شیطان (کعب بن اشرف) ته یوسی نو غیر شرعی فیصله د شیطان حرکت اوتعلیم دې. نو غیر شرعی فیصله کول شیطان طرفته فیصله وړل دی ﴿ وَقَدْ أُمِرُوٓاْ ﴾ دا جمله حالیه ده یعنی حالانکه دوئ د پاره دا جائز نه وه د دوه وجوهو نه. اول دا چه دوئ ته حکم شوې ووچه دوئ دې په شیطان کفر اوکړی یعنی په اعتقاد اوعمل دواړو سره دې ترینه مخالفت وکړی نو هغه ته فیصله وړل ددې حکم خلاف کول دی

اودویمه وجه داده چه: ﴿ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ ﴾ چه شیطان خو داسې دشمن دې چه انسان د حق لارې نه لرې کوی او ګمراهی ته ئې رسوی، مفسرین وائی چه ددې نه واضحه معلومه شوه چه په غیر شرعی قانون باندې فیصله کول (په خپل اختیارسره) یا کفر دې یا ګمراهي ده

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَىٰ مَآ أَنزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ رَأَيْتَ

اوکله چه اوونیلې شي دوئ ته چه راشئ هغه کتاب ته چه نازل کړیدې الله تعالی اوراشئ رسول ته نووینې ته

الْمُنَافِقِينَ يَصُدُّونَ عَنكَ صُدُودًا ۝ فَكَيْفَ إِذَآ أَصَابَتْهُم

منافقینولره اعراض(څنګ) کوی ستانه په اعراض کولوسره پس څنګه حال به وی کله چه اورسیږی دوئ ته

مُّصِيبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ثُمَّ جَآءُوكَ يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ

مصیبت په وجه د هغه عملونو چه مخکښې لیږلی دی لاسونو د دوئ بیا راشی دوئ تاته قسمونه خوری په الله

اِنْ اَرَدْنَآ اِلَّآ اِحْسَانًا وَّتَوْفِيْقًا ۝

چه مونږ اراده نه وه کړې مګر د احسان (صلح) او دجوړخت

﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ ﴾ يعنى كله چه دوئ ته دعوت داتباع دقرآن اوسنت وركړې شي نومنافقين ترينه اعراض كوى ﴿ فَكَيْفَ إِذَآ أَصَٰبَتْهُم ﴾ دابيان دقباحت دحال دمنافقينو دې اود ﴿ مُّصِيبَةٌ ﴾ نه مراد واقعه دقتل دحضرت عمر رضي الله عنه ده يا ترينه مراد ظهور دنفاق ددوئ دې ﴿ جَآءُوكَ يَحْلِفُونَ ﴾ يعنى دوئ د دروغو عذرونه او د دروغو قسمونه كوى چه مونږ: اصلاح اودجوړښت دپاره راغلي يو او دشرعى فيصلې نه انكارنه كوو

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يَعْلَمُ اللّٰهُ مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ

داهغه كسان دي چه پوهه دې الله په هغه څه (نفاق) چه په زړونو ددوئ كښې دى، نوپس ته اعراض اوكړه ددوئ نه

وَ عِظْهُمْ وَقُلْ لَّهُمْ فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيْغًا ۝

اووعظ كوه دوئ ته اووايه دوئ ته په باره د نفسونو ددوئ كښې خبره اثرناكه

﴿ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ يَعْلَمُ ٱللَّهُ ﴾ دا ددوئ دعذر او دتاويل رد دې چه الله تعالى عالم دې چه ددوئ په زړونوكښې نفاق ، اسلام دشمنى او غصه ده نو ﴿ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ ﴾ نو ددوئ داعذرونه مه قبلوه يا دا چه ددوئ دباطن راز مه ښكاره كوه ځكه دا كله دشر دزياتوالى سبب ګرځى او په ضد اونفاق باندې زيات مضبوط شى ﴿ وَقُل لَّهُمْ فِىٓ أَنفُسِهِمْ ﴾ يعنى او وايه دوئ ته قول بليغ. نهايت مؤثر په حالت ديواځې والى كښى نو «في انفسهم» په معنى دخلو اود يواز والى دې يا معنى دا ده چه په باره دنفسونو ددوئ كښې چه په هغې كښې ئى نفاق پټ ساتلې دې يا «في انفسهم» د «بليغا» سره متعلق دې خودا په نزد دكوفيانو جائزدې يعنى تقديم دمعمول دصفت مشبه ((اى قولابليغا مؤثرافى قلوبهم)) .

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا لِيُطَاعَ بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَلَوْ اَنَّهُمْ

اوندې لېږلې مونږ هيڅ رسول مګر دپاره ددې چه تابعدارې اوكړې شي دهغه په حكم دالله سره. اوكه داخلق

| إِذْ | ظَّلَمُوٓا | أَنفُسَهُمْ | جَآءُوكَ | فَاسْتَغْفَرُوا | اللَّهَ | وَاسْتَغْفَرَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

کله چه ظلم اوکړو دوئ پخپلو ځانونو تاته راغلي وي اوبخښنه يې غوښتې وي دالله نه اوبخښنه غوښتې وي

لَهُمُ الرَّسُولُ لَوَجَدُوا اللَّهَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ۝

دوئ لره رسول نوخامخا به ئې موندلي وي الله لره توبه قبلونکي اورحم کونکي

﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ ﴾ دا ترغيب دې په اطاعت درسول باندې يعنې درسول دبعثت مقصد صرف اطاعت وی ﴿إِلَّا لِيُطَاعَ ﴾ دا استثناء مفرغه ده ((ای وما ارسلنامن رسول لشئ من الاشیآء الالیطاع)) ﴿بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ ((اذن)) په معنی د ارادې اويا توفيق سره دې يعنی اطاعت صرف هغه څوک کولې شی چه الله تعالی توفيق ورکړې وی اودالله تعالی د ارادې او دتوفيق نه بغير څوک اطاعت نشی کولې.

﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوٓا أَنفُسَهُمْ ﴾ منافقينو چه کومه طريقه دمعذرت پيش کړې وه چه ددروغو قسمونه وؤ نو هغه موجب دنجاة نده بلکه موجب دهلاک ده اوکوم معذرت چې موجب دنجاة دې نو هغه پدې آيت کښې ذکر کيږی اوهغه داچه دوئ دخپل قصور اقرار يې کړې وې اونبی کريم صلی الله عليه وسلم ته حاضر شوی وې اوپخپله ئی هم دالله تعالی نه معافی غوښتلې وې اونبی کريم صلی الله عليه وسلم هم ددوئ دپاره معافی غوښتلې وې نوالله تعالی به ضروربالضرور دوئ ته معافی کړې وه، نوپدې آيت کښې دتوبې دقبليدلو او د دوئ معاف کيدلو دپاره داشرط ذکرشوې دې چه دوئ دنبی کريم صلی الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شی اونبی دې ددوئ دپاره مغفرت اوغواړی، ددې وجه داده چه دوئ دنبی کريم صلی الله عليه وسلم فيصله اونه منله اوبې اعتمادی ئی ظاهره کړله په نبی صلی الله عليه وسلم باندې نودا سبب د ايذاء درسول الله صلی الله عليه وسلم وؤ نوددې جرم دوجه نه توبه بغير ددغه شرط نه نشی کيدې اودبل چا د جرم دپاره دغه شرط نشته دې. البته اخلاص ورلره شرط دې

**فائده** دجمهور علماؤ قول دادې چه درسول الله روضې مبارکې ته حاضری کول او زيارت ته تلل سعادت عظمی اودلوئ خير او برکت او اجر اوثواب ذريعه ده. اوهمدارنګې استشفاع ((طلب دشفاعت)) د نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه په زمانه دحياة برزخی کښې

جائز دي او دينه ناجائز ويل دبعضي حضراتو تفرد دي اوشرک اوبدعت ورته ويل افراط او غلو دہ. اوددي آيت په ضمن کښي امام قرطبی، ابن کثير په حواله ديوجماعت دمحدثينو او نورو محقيقنو اومفسرينو واقعه د اعرابی ذکر کړي ده اورد او تنقيد ئي پري ندي کړی نودينه معلوميږی جواز داستشفاع من النبی صلی الله عليه وسلم په نيز د دوئ. نوکه بالفرض دا حضرات دشرک اودبدعت مرتکب وي نونعوذ باالله بيا ده دوئ په قول باندي اعتماد پاتي نه شو اودوئي نه اخذ دتفسير په هيڅ ځائ کښي ندي پکار برابره خبر ه ده که دچا رائ سره موافق وی اوکه نه وی. البته تحقيق کول اوترجيح ورکول داهل علم فريضه ده او دعلمی ذوق مقتضی ده او د ادب دائري نه وتل سبب دخسران اود آخری خاتمي خرابيدو ذريعه ده. الله تعالی دي زمونږه حفاظت اوکړی

فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا

پس ندی مؤمنان اوستاپه رب قسم چه نشی مؤمنان کېدي ترڅوچه تا حاکم اونه منی په هغه معامله کښي

شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ

چه پيدا شوي وي په مينځ ددوئ کښي اوبيا نه مومی پخپلو زړونو کښي خفګان دهغه فيصلي نه چه تاکړي وی

وَيُسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا ۝ وَلَوْ اَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ

اوپه خوشئ سره اومني ستافيصله په همېشه منلوسره اوکچري فرض کړي وي مونږېدوئ باندي په اطاعت درسول کښي

اَنِ اقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ اَوِ اخْرُجُوْا مِنْ دِيَارِكُمْ مَّا فَعَلُوْهُ اِلَّا قَلِيْلٌ مِّنْهُمْ

داچه قتلوی خانونه خپل يا اوځئ دکلوکورونو خپلونه. نه به ووکړي داکار مګرلږ کسانو ددوئ نه

وَلَوْ اَنَّهُمْ فَعَلُوْا مَا يُوْعَظُوْنَ بِهٖ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ

اوکچري دوئ کړي وي هغه کار چه وعظ کولي شي دوئ ته په هغي سره نوخامخابه وو دېرغوره دوئ لره

وَ اَشَدَّ تَثْبِيْتًا ۝ وَّ اِذًا لَّاٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ لَّدُنَّآ اَجْرًا عَظِيْمًا ۝

اودېرزيات کلکونکي په دين اودغه وخت خامخا به ورکړي وو مونږ دوئ ته دطرف خپل نه اجرلوئي

﴿ وَلَهَدَيْنَٰهُمْ صِرَٰطًا مُّسْتَقِيمًا ﴾

اوخامخا به پاخه کړي وي مونږ دوئ په لاره نيغه

﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ ﴾ هركله چه منافقينو دايمان دعوه كوله نوپدې آيت كښې دايمان درې شرائط بيان شوى دى چه كه دا درې شرائط په چاكښې نه وى نومسلمان نشى كيدې . اول دا چه ﴿ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ ﴾ چه تاله حكم اوفيصله كونكې اومنى.
دويم دا چه ﴿ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِىٓ أَنفُسِهِمْ حَرَجًا ﴾ چه په زړه كښې به ئى شك اوتنګى نه وى په باره دفيصلې درسول الله صلى الله عليه وسلم كښې بلكه يقين ئى وى چه فيصله د رسول الله صلى الله عليه وسلم بالكل حقه ده، اوبعضې وائى چه د ((حرجًا)) نه مرادخفګان دې يعنى كه فيصله ددوئ خلاف اوشى نودوئ به ناراض نه وى، اودريم شرط دادې چه ﴿ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴾ چه ديقين راتلونه وروستو د ضداوعناد دوجه نه د حكم خلاف هم اونه كړى. نوكه دچا په زړه كښې تصديق اويقين په حقيت دحكم درسول الله باندې وى اوضداوعناد دوجه نه ئى نه منى نودغه كفر جحودى دې، په ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ ﴾ كښې تاكيدات دى. حرف د ((لا)) ذكر كول قسم.تكرار، اواضافت درب ضمير ته په طريقه دخطاب سره پدې كښې اشاره ده چه الله تعالى پدې حكم كښې دخپل صفت دربوبيت اظهار كوى اودخپل نبى دشان حفاظت كوى.
اولفظ د ((لا)) په ((فلا وربك)) كښې بعض وائى چه زائد دې دتاكيد دنفى دپاره دې يا دتاكيد دقسم دپاره دې اوبعضې وائى چه دپاره دنفى د زعم دمنافقينودې ((اى لاالامر كمازعم المنافقون من ادعاء الايمان والتحاكم الى الطاغوت)) اوحضرت شيخ رحمه الله فرمائې چه د ((لا)) مدخول مقدر دې او په كلام كښې تكراردې دتاكيددپاره نوتقدير دعبارت دارنګې دې ((فلايؤمنون وربک لايؤمنون)) يعنى دوئ مؤمنان ندې اوستا په رب مې دې قسم وى چه دوئ مومنان ندې ترڅوپورې چه تاله حَكَم او فَيْصَلْ اونه منى ﴿ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ﴾ ((شجر)) په معنى د ((اختلف)) او ((اختلط)) سره دې نو دا ماده په اختلاط اواختلاف دلالت كوى نو ونې ته شجر ځكه وائې چه د دې څانګې د يوبل نه مختلفې وى او په يوبل كښې ننوتې وى. دغه رنګې كجاوه ((هَودج))، لرګې . لختې چه كِجاوه ترينه جوړه شوى وى نوهغې ته ((شِجار)) وائې ځكه

چه دهغې لختې هم په يوبل كښې داخلې شوى وى (قرطبى) . مفسرينودې آيت نه دليل گرځولې دې په عصمت د نبى صلى الله عليه وسلم باندې د هرگناه نه ځكه چه الله تعالى په مونږ باندې د هغه دهر حكم اتباع او انقياد باطنى اوظاهرى لازم كړې دې. نومعلومه شوه چه د ده په اعمالواو اقولو كښې هيڅ قسم شائبه د گناه نشته. ﴿وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ﴾ دا زجردې چه اطاعت د رسول خو آسان كار دې اوكه مونږه پدوئ مشكل كار فرض كړې وې نو

﴿مَّا فَعَلُوهُ إِلَّا قَلِيلٌ مِّنْهُمْ﴾ ((قليل)) په رفع سره بدل دې د ضمير د ((فعلوه)) نه اودا راجع دې په نزد د نحويانو باندې او نصب هم جائز دې بنا بر استثناء.. ددې آيت **په شان نزول** كښې روايت دې چه كله ((بشر)) منافق په ظاهر كښې كلمه گو مسلمان وو او د نبى صلى الله عليه وسلم د فيصلې نه ئى اعراض اوكړواو واقعه د قتل د هغه راغله ((كما مر تفصيله)) نو يهوديانوطعن اوكړلو په مسلمانانو باندې چه تاسو مسلمانان د خپل نبى فيصله نه منئ اومونږه يهوديانوته چه كله نبى موسى عليه السلام د يوبل دقتلولو حكم اوكړلو نو مونږه ددغه سخت حكم تعميل وكړو حتى چه مونږ كښې اويا زره كسان قتل شول. نوپدې آيت كښې ددې طعن جواب اوشو. اوضمير د ((عليهم)) اود ((منهم)) راجع دې عامو خلقوته چه شامل دې مومنانو. منافقانو كافرانو ټولوته نود ((قليل)) مصداق صرف مخلصين دى ځكه چه مخلصين اگرچه كثير وى فى نفسه ليكن قليل دى په نسبت سره منافقينواوكافرانوته. نوددې **جواب** حاصل دادې چه اطاعت نه كول او انقياد نه كول دا د منافقينوكاردې اومخلصين انقياد اواطاعت كوى اوكله چه دا آيت نازل شو نوصحابه كرامواوئيل ((ابوبكر. عمار بن ياسر، ابن مسعود. ثابت بن قيس. مقداد وغيره رضى الله تعالى عنهم نومونه په رواياتوكښې راغلى دى)) كه چرې مونږ ته الله تعالى حكم اوكړى چه د خپل ځان د قتلولو يا د وتلو د خپل ملك او د كورونونه نومونږه به خامخا دغه شان كړى وو ليكن ((الحمدلله الذى عافانا)) نونبې صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ((ان من امتي رجالا الايمان اثبت في قلوبهم من الجبال الرواسي)) ترجمه زما په اُمت كښې داسې خلق دى چه ايمان د هغوئ په زړونو كښې زيات مضبوط اوكلك دې د محكمو غرونونه. په بعضې رواياتوكښې دى چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه اوفرمائيل كه چرې داحكم نازل شوې وې نو په خدائ مې دې قسم وى چه د ټولونه به اول ما پدې حكم خپل ځان اوخپل اهل بيت قربان كړى وو، نونبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ((صدقت يا

ابابكر)) چه ته رشتيا وائي اي ابوبكر ' اوبعضې وائي چه ضمير د ((**عليهم**)) او ((**منهم**)) منافقينو ته راجع دي. يعنی كه چرې دوئ ته داحكم شوې وې نوپدې كنبې به لږ كسانوصرف د ريا او د سمعة دپاره كړې وو دا توجيه ضعيفه ده. اوبعضې وائي چه پدې آيت كنبې بيان د كمال د لطف د الله تعالی دې پدې امت باندې نوضميرمومنانوته راجع دې پدې شان كه الله تعالی پدې امت باندې دا فرض كړې وې چه تاسوخپل ځان قتل كړئ نوډيرولږ وكسانوبه ځان قتل كړې وې اودكثيردقتل موقعه به نوې راغلې په شان دبنی اسرائيلو بلكه الله تعالی به په خپل لطف اوكرم سره دلږو كسانوقتل دقبول دتوبې دپاره كافی كړې وې او د ډيرو قتل ته به ئې نه وې پرې خودلې. ځكه چه د الله لطف اوكرم پدې اُمت باندې زيات دې اوپدې اُمت كنبې مخلصين زيات دی او په بنی اسرائيلوكنبې كم وو ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ فَعَلُوا﴾ پدې كنبې ترغيب دې اطاعت درسول ته چه د ده اطاعت كنبې د دنيا او آخرت خير دې﴿وَأَشَدَّ تَثْبِيتًا ﴾ يعنې اطاعت سبب د پوخ والی اوكلك والی دې په ايمان باندې او اطاعت سبب د خير هم دې او د بقاء دخيرهم دې اودا دواړه څيزونه مطلوب دانسان دی ﴿أَجْرًا عَظِيمًا﴾ دآخرت خير ﴿وَلَهَدَيْنَاهُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ﴾ مراد ددينه ثبات اوكلك والې دې په صراط مستقيم باندې

**وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ**

اوچاچه [1] تابعدار اوكړه دالله او درسول نوپس دغه خلق به ملگری وی دهغه كسانو چه انعام كړيدې الله

**عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُولَٰئِكَ رَفِيقًا ﴿٦٩﴾**

په هغوئ باندې چه پيغمبران دی اوډېر رينبتني دی اوشهيدان دی اوصالحان دی. اونبه دي دوئ ملگري

**ذَٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللَّهِ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ عَلِيمًا ﴿٧٠﴾**

دا فضل دې دالله دطرفه، اوبوره دې الله پوهه په هرڅيز باندې

﴿وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ ﴾ دا بشارت دې په اطاعت باندې اوتفصيل د اجر عظيم دې، ددې آيت **په شان نزول** كنبې ابن كثير وغيره متعدد روايات د حضرت عائشه

1 بشارت

رضی الله عنها نه نقل کړی دی چه حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائي چه يو صحابي د نبی صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړلوچه يارسول الله زما په زړه کښې ستا محبت د خپل خان نه هم زيات دې او د خپلې بی بی او د اولاد نه هم زيات دې. او په بعضو اوقاتوکښې «ستاسو د عشق اومحبت په وجه» زه بې آرامه شم نوچه کله ستاسو زيارت اوملاقات اوکړم نو آرام راته حاصل شی. ليکن ماته فکر ددې خبرې د ې چه تاسو به د دنيا نه انتقال کوئ اوما نه به هم مرگ راځی خوتاسو به په اعلی عليين جنت کښې يئ اوماته خو اول دا معلومه نده چه آيا جنت به راته ملاؤشی اوکه نه. نوکه ملاؤ شی نوبيا به زما درجه اوستا درجه کښې ډير فرق وی او زما درجه به ستا د درجې نه ډيره ادنی وی. نوملاقات به نشی کيدې نوماته به څنگه صبر او آرام حاصل شی، نونبی کريم صلی الله عليه وسلم پخپله جواب ورنکړو تر دې چه دا آيت نازل شو اونبی کريم صلی الله عليه وسلم هغه صحابی ته بشارت ورکړلو چه د مراتبو باوجود به دملاقات موقعه ملاويږی نوهغه ډير خوشحاله شو. يو شاعر څه ښه ويلی دی.

**چه دلبر په کښې ليدې شی دا محشر اختر زما دې**

او د معيت نه مراد مساوات ندې بلکه ملگر تيا اويواځائ کيدل اوملاقات ترينه مراد دې اودا په عالم برزخ کښې هم دې لکه نبی کريم صلی الله عليه وسلم په وخت د وفات کښې اويل ((مع الذين انعم الله عليهم)) او په بل روايت کښې دی ((اللهم الرفيق الاعلي)) او په احاديثوکښې د جديد مړی د روح ملاقات د پخوانی مړی د روح سره اوتپوسونه د حال د جوندو ترينه ثابت دی. اودارنگې مرافقت اوملاقات په جنت کښې هم ترينه مراد دې او په جنت کښې د يوبل د ملاقات او زيارت متعدد صورتونه کيدې شی. يوداچه هرڅوک به په خپل خپل مقام کښې وی او د يوبل به ديدار اوملاقات کوی لکه په مؤطا امام مالک کښې په روايت د ابو سعيد خدری رضي الله عنه منقول دی چه جنتيان به دخپل جنت دريچونه اوچت طبقاتو واله داسې وينی لکه په دنياکښې چه تاسوستوری وينئ. اوبل صورت داکيدې شی چه اعلی طبقاتو واله به لاندې راکوز شی. اودريم صورت دادې چه ادنی درجاتو والا د اعلی درجاتووالا د ملاقات دپا ره به ځی اعلی طبقاتو ته، ددې ماقبل تفصيل نه معلومه شوه چه د معيت معنی يوځائ کيدل .اوملاقات اوملگرتياده لکه چه د ﴿وَحَسُنَ أُولَٰئِكَ رَفِيقًا﴾ نه معلوميږی. ددې نه مراد مساوات ندې او نه شرکت په وصف د نبوت کښې مراد دې. نو د

قادیانی ملعون استدلال پدې آیت سره باطل شو . ملعون داسې وائي چه ددې آیت مطلب دادې چه څوک اطاعت د الله او د رسول کوی نو هغه په صفت د نبوة کښې د د انبیاءٔ سره شریک شو او په صفت د صدیقیت کښې د صدیقینو سره شریک شو او په صفت د شهادت کښې د شهداؤ سره شریک شو او په صفت د صالیحیت کښې د صالحینو سره شریک شو نوڅوک چه په وصف د نبوة کښې شریک شی نوهغه نبی اوګرځی لکه څرنګه چه صدیق او شهید او صالح ګرځی **جواب** د ماقبل تفصیل نه معلومه شود چه د معیت نه مراد اشتراک ندې په وصف د نبوة کښې بلکه ملګرتیا وملاقات ترینه مراد دې او په اطاعت د الله رسول سره معیت د انبیاؤ ملاویږی اونبوة نه ملاویږی ځکه چه نبوة وهبی امر دې کسبی ندې چه په کسب سره حاصل شی. البته په اطاعت سره صدیقیت اومعیت د صدیقینو سره اودارنګې شهادت اوصالحیت ملاویدې شی ځکه دا کسبی اموردی اوددې وجه نه په سورة حدید آیت نمبر ۱۹ کښې داسې ذکر دی ﴿وَالَّذِينَ ءَامَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِۦٓ أُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلصِّدِّيقُونَ ۖ وَٱلشُّهَدَآءُ عِندَ رَبِّهِمْ﴾ او ((هم النبیون)) ئې ندی ویلی ځکه نبوة په کسب سره نه حاصلیږی اودلته ئې ((مع النبیین)) ویلی دی ځکه په اطاعت سره معیت د انبیاؤ حاصیلیږی نه نبوة.

﴿مِّنَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ وَٱلصِّدِّيقِينَ وَٱلشُّهَدَآءِ وَٱلصَّٰلِحِينَ ۚ﴾ پدې کښې دوه قوله دی :یو دا چه صفات د یو موصوف دپاره دی یعنی انبیاء ﷺ ځکه هرنبی لره چه څنګه وصف د نبوة ثابت دې نو دارنګې هر نبی صدیق هم دې، دحضرت ابراهیم په شان کښې وارددی ﴿إِنَّهُۥ كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا﴾ دارنګې هر نبی شهید دې لکه په سورة نحل آیت نمبر ۸۹ کښې دی چه ﴿وَيَوْمَ نَبْعَثُ فِى كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا عَلَيْهِم مِّنْ أَنفُسِهِمْ ۖ وَجِئْنَا بِكَ شَهِيدًا عَلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ ۚ﴾ دارنګې د عیسی علیه السلام په شان کښې راغلی دی ﴿وَيُكَلِّمُ ٱلنَّاسَ فِى ٱلْمَهْدِ وَكَهْلًا وَمِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ﴾ سورة آل عمران . آیت نمبر ۴۶

نوبناپدې قول باندې دلته د ((**منعم علیهم**)) نه صرف انبیاء مراد دی. **دویم قول** دادې چه دا جدا جدا ذواتو دپاره دی نودا څلورجماعتونه دی، نودنبیینوخوتعریف واضح دې. ددې نورو په تفسیر کښې متعدد اقوال دی (۱) په ((**صدیقین**)) کښې درجې د ابوبکر رضی الله تعالی عنه ته اشاره ده او په ((**شهداؤ**)) سره حضرت عمر ، حضرت عثمان ، حضرت علی رضی الله عنهم

نه اشاره ده او په «الصالحين» كښې باقي ټولو صحابو ته اشاره ده نو بنا پدې قول باندې دمنعم عليهم نه مراد انبياء اوصحابه دي

۲. دا مراتب په اعتبار دقرب الهي اومعرفت الهي سره دي نو اوله درجه د انبياؤ ده نو د دوئ مثال داسې دې لكه چه څوك دقريب نه يوشي وينى ﴿ أَفَتُمَارُونَهُ عَلَىٰ مَا يَرَىٰ ﴾ او «صديقين» په معرفت كښې انبياؤ ته قريب وى. ددوئ مثال داسې دې لكه چه څوك دلرې نه يوشي وينى. دحضرت على رضي الله عنه نه چا تپوس اوكړو چه آيا تا الله تعالى ليدلې دې؟ نو دوئ اوفرمائيل چه زه خو دداسې ذات عبادت نه كوم چه مانوى ليدلې بيائې اوفرمائيل چه الله تعالى خو دخلقو سترګو ندې ليدلې ليكن د دوئ زړونو د ايمانى حقيقت په ذريعه سره ليدلې دې . ددې ليدلو نه مراد علمي معرفت والا ليدل دى او «شهداء» چه مقصود ددلائلو په ذريعه سره پيژنې اومشاهده ورنه نه وى حاصله ددوئ مثال داسې دې لكه چه څوك په آئينه كښې يوشي وينى دقريب نه لكه حارثه رضى الله عنه فرمائي چه ماته داسې محسوسيږى چه زه دخپل رب عرش وينم. په ((ان تعبدالله كانك تراه)) كښې دېته اشاره ده او «صالحين» هغه دى چه مقصود دتقليد اواتباع په ذريعه سره پيژنې او ددوئ مثال داسې دې لكه چه څوك دلرې نه يوشي په آينه كښې وينى. ((فان لم تكن تراه فانه يراك)) كښې دېته اشاره ده «روح ، معارف»

(۳) حضرت شاه عبدالعزيز "رح" وغيره حضراتو د صديق تعريف داسې كړې دې چه دا هغه څوك دې چه كمالات دنبوة اوصفات دنبوة په كښې په طور دَ ظليت سره موجود وى اودپو وينسه برابر مخالف نه وى لكه حضرت ابوبكر صديق اوحضرت عائشه اوحضرت ابوذر رضى الله تعالى عنهم او «شهيد» هغه دې چه داجراء دحق په باره كښې دهيڅ چا لحاظ نه كوى اوبر څوجه اجراء دحق نه وى شوې نوداسې پريشان او بى اطمينان وى لكه بې هوش. لكه چه حضرت عمر رضى الله تعالى عنه. چه په بعضى اوقاتو كښې به ئى د نبى كريم صلى الله عليه وسلم سره ظاهرى طور باندې مقابله كوله اونبى كريم صلى الله عليه وسلم به ورنه تبسم كولو خوشحاله به ووجه زما په أمت كښې داسې كسان هم شته چه دحق په باره كښې دهيڅ چا لحاظ اوخيال نه ساتى، او «صالحين» هغه دى چه فطرى طورباندې دګناه نه متنفر وى ظاهراً اوباطنا لكه حضرت عثمان غنى رضى الله عنه په جاهليت كښې هم زنا نده كړى ((كماقال عثمان ومازنيت في الجاهلية ولا في الاسلام)) نوبناپدې تقدير «صديق ، شهيد ، صالحين» په صحابو پورې خاص نه دى ليكن دوئ منبع او مدار دَ صديقيت .شهادت .صالحيت دې په

هر صحابی کښې دغه مذکور تمام صفات موجود وو لیکن په چا باندې به چه دکوم صفت غلبه وه نو په هغه نوم سره به مسمی وو لکه یو عالم مؤرخ .محدث .فقیه .اومتکلم وی لیکن چه د کوم وصف اوصفت غلبه په هغه وی نو په هغه لقب سره مسمی کیږی اویادیږی

﴿ ذَٰلِكَ ٱلْفَضْلُ مِنَ ٱللَّهِ ﴾ داجواب **دیوسوال** دې چه عام خلق اګر که اطاعت کوونکی وی لیکن دوئ په عمل کښې د انبیاؤ اودصحابونه کم دی نودوئ ته به څنګه د هغوئ رفاقت حاصل شی، نو **جواب** دادې چه دا دعمل په وجه نده بلکه دا دالله تعالی فضل اومهربانی ده په ((**ذالک**)) سره اشاره ده معیت اورفاقت ته چه په ماقبل کښې ذکرشو

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ خُذُوا۟ حِذْرَكُمْ فَٱنفِرُوا۟ ثُبَاتٍ أَوِ ٱنفِرُوا۟ جَمِيعًا ﴿٧١﴾

اې[1] ايمان والو راواخلئ وسله خپله نو اوځئ جهادله ډلې ډلې يا اوځئ ټول په جمع سره يوځائې

وَإِنَّ مِنكُمْ لَمَن لَّيُبَطِّئَنَّ فَإِنْ أَصَٰبَتْكُم مُّصِيبَةٌ قَالَ

اوبیشکه بعضې ستاسونه خامخا هغه دی چه روستوکیږي دجهادنه، نوکه اورسیږی تاسوته څه مصیبت. وائی

قَدْ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَىَّ إِذْ لَمْ أَكُن مَّعَهُمْ شَهِيدًا ﴿٧٢﴾

دې چه په تحقیق سره انعام کړې وو الله په ما باندې کله چه نه اوم څه د دوئ سره حاضر جنګ ته

وَلَئِنْ أَصَٰبَكُمْ فَضْلٌ مِّنَ ٱللَّهِ لَيَقُولَنَّ كَأَن لَّمْ تَكُنۢ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُۥ

اوکه اورسیږی تاسوته فضل دالله دطرفنه نو خامخاوائې دې چه ګویا کښې نه وې په مینځ ستاسواودده کښې

مَوَدَّةٌ يَٰلَيْتَنِى كُنتُ مَعَهُمْ فَأَفُوزَ فَوْزًا عَظِيمًا ﴿٧٣﴾

هیڅ دوستي، هائې ارمان چه څه وې د دوئ سره نوکامیاب شوې به وې په کامیابئ لوئې سره

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ خُذُوا۟ حِذْرَكُمْ ﴾ دا **دویم حکم** دې داحکامو سلطانیونه. ددې حاصل دادې چه پورته شئ اومسلح شئ اودکفارو سره جهاد اوکړئ ((**حذر**)) بکسرالحاء وسکون الذال او په فتحتینو سره ((**حَذَر**)) په معنی د سامان بچاؤ یعنې اسلحې سره راخې او په معنی د

[1] دویم حکم داحکام سطانیو نه . راپورته شئ مسلح شئ جهاد اوکړئ

تيقظ او د بيداري او احتياط سره هم راځي اودلته دواړه معنى صحيح دي يعنى مسلح شئ يا خپل حفاظت کوئ او بيدارشئ، اوددينه مراد استعداد للجهاد دي يعنى دجهاد دپاره تياري اوکړئ. نو په لفظ د ((خذوا)) کښې جمع بين الحقيقة والمجاز رانغله. دلته دوه امره دي اول امر دتياري دجهاد دي. اسلحه اودخپل حفاظت سامان اخستل. او دويم امر دتللو دې جهاد ته. نومعلومه شوه چه اسباب اختيارول دتوکل منافی ندی ځکه چه داسبابو اختيارولو حکم شوي دي. البته په زړه کښې په اسبابو باندې اعتماد کول د توکل منافی دی. نوددې وجه نه بعضو علماؤ د توکل تعريف داسې کړي دې ((نزع الاسباب عن القلب لاعن القالب)) يعنى توکل دينه وائی چه اسباب د قلب نه باهر ته وباسی يعنې يقين اواعتماد پرې ونکړې شی او د ظاهر نه يعنې د جسد نه لرې نه کړې شی

﴿فَانْفِرُوا﴾ دا دويم امر دې دا د ((نفور)) (واوی) ياد ((نفير)) (يايی) نه ماخوذ دې نفراونفرت دينه وائی چه طبيعت يوشی نه منی. او ((فزع)) ته هم وائی اواستعمال د ((نفر. انفروا)) ددشمن دمقابلې دپاره وتلو او دعلم دطلب دپاره وتلو کښې کيږی نو په دې لفظ کښې اشاره ده چه د جهاد لپاره او دعلم د طلب لپاره داسې وتل پکار دې چه د اهل او عيال او کور کلی محبت په زړه پاتې نه شی او دهغوئ محبت مانع د سفر لپاره نشی ﴿ثُبَاتٍ﴾ دامنصوب دې اوحال دې دضمير د ((انفروا)) نه. ((ثبات)) جمع د ((ثبة)) ده ډلې ډلې ته وائې، دا په هغه وخت کښې چه نفير عام نه وی ﴿أَوِ انْفِرُوا جَمِيعًا﴾دا په هغه وخت کښې چه نفير عام وی اول سريه ده اودويم غزوه ده اودا دواړه صورتونه دمختلفواحولو په اعتبار سره دی. نودلته ((او)) د تنويع دپاره دې

﴿وَإِنَّ مِنْكُمْ لَمَنْ لَيُبَطِّئَنَّ﴾ دا زجر دې منافقينوته چه په دوئ کښې دا دوه خصلتونه دی اول دا چه دجهاد دپاره نه ځی اودويم داچه دجهاد نه پاتې کيدل دَ الله تعالی انعام ګڼړی . او دا فعل متعدی هم راځی اولازمی هم راځی په اول تقدير سره ئی معنې دا ده چه نورخلق د جهاد نه روستو کوی اومنع کوی او په دويم تقدير سره ئی معنی دا ده چه په پخپله د جهاد نه روستو کيږی ﴿فَإِنْ أَصَابَتْكُمْ﴾ دا د منافقينو د حال بيان دې چه پخپله د جهاد دپاره نه ځی اوچه کله تاسو لاړشئ اوتاسوته مصيبت ((يعنی هزيمت، قتل)) اورسی نو دوئ خوشحاليږی اوکه تاسوته په جهاد کښې فتح اوغنيمت ملاؤ شی نو دوئ په پاتې کيدلوخفه وی او ارمان

کوی کاش مونږ جهاد ته تلې وې، نو مال غنیمت به راته ملاؤ شوې وو

مقوله د ((لَيَقُولَنَّ)) دپاره ((يَالَيْتَنِي)) دې، او ﴿كَأَن لَّمْ تَكُنْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ مَوَدَّةٌ﴾ جمله معترضه ده اودا ددې دپاره ده چه اشاره اوشی چه دوئ تمنی اوارمان د معیة د مومنانوسره د نصرت او د غلبې حاصلو دپاره ندې بلکه د حرص د دنیا د وجه نه دې او د مؤمنانو سره د دوئ هیڅ تعلق نشته دې. حضرت شیخ د خپل شیخ توجیه دا سې بیانوی ((يَالَيْتَنِي كُنتُ مَعَهُمْ)) د مومنانو د خوشامد دپاره وائی . یعنی چه کله مومنانو ته فتح اوغلبه حاصله شی نو بیا دوئ د مؤمنانو د خوشامد دپاره ((**یالیتنی ـ الایه**)) وائی ، او ((**کان لم تکن بینکم وبینه**)) دا د خوشامد تاکید دې چه ځما خو د مومنانوسره تعلق نه وو او د دې باوجود د دوئ دمعیت تمنی اوارمان کوم، نوکه تعلق مې مخکښې نه ورسره وې نو بیا به ما زیاته تمنی کړې وې د دوئ د معیة او د ملګرتیا.

| فَلْيُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يَشْرُونَ الْحَيَوٰةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ ۚ وَمَن يُقَاتِلْ |
|---|
| نوجنګ دې کوي په لار دالله کښې هغه کسان چه خرڅوی (قربانوی) ژونددنیا په آخرت باندې. اوچاچه جنګ اوکړو |
| فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُقْتَلْ أَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا ۝ |
| په لار دالله کښې نوقتل کړې شو یاغالب شو نوزر ده چه وربه کړو مونږ هغه ته اجر لوئې |

﴿فَلْيُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ دا ترغیب الی ا لجهاد دې یعنی فوز عظیم دا ندې چه د جهاد نه پاتې شی اویا جهاد ته د مال غنیمت دپاره لاړشی. بلکه فوز عظیم دا دې چه په اخلاص سره د جهاد دپاره لاړشی او د اعلاء د کلمة الله د پاره لاړشې اوبیا یا غالب شې اویامغلوب شی نو نو بهرحال به ورته فوز عظیم حاصل شی .

﴿الَّذِينَ يَشْرُونَ الْحَيَوٰةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ﴾ دا فاعل دې د ((فلیقاتل)) د پاره او ((یشرون)) په معنی د ((یبیعون)) سره دې یعنې خرڅوی ا وقربانوی به دنیا په آخرت باندې نو دینه مخلصین مومنان مراد دی. یا ((یشرون)) په معنی د اخستلو سره دې او د دینه مراد بیا منافقین دی. یعنی منافقان چه دنیا د آخرت په مقابله کښې اخلی نودوئ دې نفاق پریږدی او په اخلاص سره دې قتال اوکړی. د حضرت تهانوی رحمه الله د کلام نه دا سې معلومیږی چه فاعل د ((فلیقاتل)) ضمیر دې چه راجع دې هغه چاته چه طلب ګار د فوز عظیم دې ((اوالذین یشرون الحیاة الدنیا))

ورلره مفعول دي او د دېنه مراد کفار دي چه څوک د فوز عظيم طلب کوی نو هغه دي ...
اوکړی د کافرو سره ﴿وَمَن يُقَـٰتِلْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ يعنی په جهاد کښې فوز عظيم يقينی دی
په هرحال کښې دي. ((وفی الحديث : انتدب الله لمن خرج فی سبيله لايخرجه الا ايمان بی وتصديق
برسلی ان ارجعه بما نال من اجر او غنيمة اوادخله الجنة )) (متفق عليه)

**ترجمه** الله تعالی ذمه واری اخستې ده هغه چاته يا بلنه ئی ورکړې ده هغه چاته چه
اوځي د کورنه په لاره د الله کښې اونه اوباسی دلره مگر ايمان په ماباندې اوتصديق زما په
رسولانوباندې چه يا به زه واپس کړم ده لره کورته د هغه څه سره چه حاصل شوي وی د اجر
اوغيمت يا به ده لره جنت ته داخل کړم. او په بل روايت کښې دی ((عن ابی امامة قال : قال
رسول صلی الله عليه وسلم : ثلاثة كلهم ضامن علی الله، رجل خرج غازيًا فی سبيل الله فهوضامن علی
الله حتی يتوفاه فيدخله الجنة اويرده بمانال من اجر وغنيمة ورجل راح الی المسجد فهوضامن علی الله
ورجل دخل بيته بسلام فهوضامن علی الله)) (مشكواة)

**ترجمه** يعنې درې کسانوته الله تعالی ذمه وار شوې دې يوهغه کس چه د الله په لاره
کښې جهاد وغزا د پاره لاړشی نوالله تعالی ذمه اخستې ده چه که وفات شی نوجنت ته به ئی
داخل کړی اوکه وفات نه شونوکورته به ئی د اجر اوغنيمة سره واپس کړم. او دويم هغه کس دې
چه مسجدته لاړشی نوالله تعالی دده ضامن دې د خير اوبرکت ورکولو او دريم هغه کس دې چه
کله کورته د ځليږی نو په سلام سره نوالله تعالی د ده ضامن دې د خير او د برکت ورکولو.

وَمَا لَكُمْ لَا تُقَـٰتِلُونَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ ٱلرِّجَالِ وَٱلنِّسَآءِ

اوځه ... عذر دي ستاسو چه جنگ نه کوئ په لار دالله کښې اودپاره دخلاصولودکمزورو دنارينا نه اوزنانه

وَٱلْوِلْدَٰنِ ٱلَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا مِنْ هَـٰذِهِ ٱلْقَرْيَةِ ٱلظَّالِمِ أَهْلُهَا وَٱجْعَل

او واړه بچي هغه چه وای اې ربه زمونږ اوباسې مونږ ددې کلي نه چه ظالمان دی اهل ددې. اومقرر کړه

---

۱ دريم حکم سلطانی يعنی پورته شئ مسلح شئ او ضعيف مسلمانان چه د کفارو په پنجه کښې دی
آزاد کړئ هغوئ بخيله د ونلو طاقت نه لرئ دعاګانې غواړی چه اې الله مونږ نه دظالمانو نه نجات راکړې

لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ وَلِيًّا ۙۚ وَّاجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ نَصِيْرًا ۝

دپاره زمونږ دطرفه خپل نه دوست بچ کوونکی اومقرر کړه زمونږ دپاره دطرفه خپل نه امداد کوونکی

﴿ وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُوْنَ فِي سَبِيْلِ اللّٰهِ ﴾ دا **دریم حکم** دې د احکام سلطانیونه یعنې پورته شئ اومسلح شئ اوکوم کسان چه د کافرو په قیداو په پنجه کښې دی نوهغوئ آزاد کړئ خکه هغوئ د وتلو طاقت نه لری اوکمزوری دی او دا دعاکوی چه یا الله مونږه ددې کلی نه چه اهل ئی ظالمان دې را اوباسې ﴿ وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ ﴾ پدې کښې مضاف مقدر دې ((ای فی خلاص المستضعفین)) نو دلته د جهاد دوه مقصده بیان شو یو ((فی سبیل الله)) . یعنی د الله تعالی دین غالب کیدل مقصد د جهاد دې اوبل د ضعیفانو خلاصول او آزادول د کفارو د لاسونو نه . اومستضعفین په درې قسمه دی، اول ﴿ مِنَ الرِّجَالِ ﴾ بوډاگان، معذورین، دویم ﴿ وَالنِّسَآءِ ﴾ او دریم ﴿ وَالْوِلْدَانِ ﴾ یعنې ماشومان بچی، ﴿ الظَّالِمِ اَهْلُهَا ﴾ ظالم د قریة دپاره وصف بحال متعلقه دې یعنې کلې (مکه) ندې ظالم، بلکه اهل ئی ((مشرکان)) ظالمان دی ﴿ وَلِيًّا ﴾ داسې دوست چه دظلم د ظالم نه مونږه بچ کړی ﴿ نَصِيْرًا ﴾ مدد را سره اوکړی په تللو کښې

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ الطَّاغُوْتِ

مومنان [1] جنګ کوی په لار دالله کښې . اوکافران جنګ کوی په لار د شیطان کښې

فَقَاتِلُوْٓا اَوْلِيَآءَ الشَّيْطٰنِ ۚ اِنَّ كَيْدَ الشَّيْطٰنِ كَانَ ضَعِيْفًا ۝

نوجنګ کوئ دملګرو دشیطان سره، بیشکه مکر دشیطان کمزورې دې په مقابله دمکر دالله کښې

﴿ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُقَاتِلُوْنَ ﴾ دا ترغیب دې قتال ته یعنې د مومنانوقتال د الله په لاره کښې دې او د ا د الله تعالی د راضی کولو دپاره وی او دمشرکینو جنګ په لاره دشیطان کښې دې او دشیطان دراضی کولو دپاره دې، نوکله چه کفار په لاره د شیطان کښې جنګ کوی نو مومنانو ناسو خامخا د رحمن په لاره کښې جهاد وکړئ او د شیطان د ملګروسره وجنګیږئ

﴿ اِنَّ كَيْدَ الشَّيْطٰنِ ﴾ د شیطان مکر یعنې د کفاروهغه خفیه تدبیرونه اوهغه منصوبې چه د حق ختمولودپاره کوی نوهغه اګر که ډیر قوی اومضبوط تدبیرونه او منصوبې دی لیکن د الله

[1] ترغیب الی الجهاد

تعالی د تدبیر او د نصرت په مقابله کښې کمزوری دی، او په بل آیت کښې چه ئې د ښخومکرته عظیم ویلی دی نوهغه په مقابله د نارینوکښې دې نه په مقابله د شیطان کښې

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ قِيْلَ لَهُمْ كُفُّوْٓا اَيْدِيَكُمْ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ۚ

آیا نه گورې ته هغه کسانو ته چه اوونیلې شو هغوئ ته بندکړئ لاسونه خپل اوقائم کړئ مونځ او ورکوئ زکوة.

فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ يَخْشَوْنَ النَّاسَ كَخَشْيَةِ اللّٰهِ

بس هرکله چه فرض کړې شو په هغوئ باندې جنگ نوډغه وخت یوډله ددوئ نه. یریدل دخلقونه پشان دیرې دالله

اَوْ اَشَدَّ خَشْيَةً ۚ وَقَالُوْا رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا الْقِتَالَ ۚ لَوْلَآ اَخَّرْتَنَآ

بلکه څه زیاته یره. اوونیل دوئ چه اې ربه زمونږ ولې فرض کړوتاپه مونږ باندې جنگ، ولې نه روستو کولو تامونږلره

اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ۭ قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا قَلِيْلٌ ۚ وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ اتَّقٰى ۣ

د یوسبتې نزدې پورې. وایه چه مزې ددنیالږې دی، اوآخرت ډېرغوره دې هغه چالره چه یریږی دالله نه

وَ لَا تُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ﴿۷۷﴾

اوظلم به نشي کېدې په تاسو په قدرد تار په هډوکي دکهجورې کښې

﴿ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ قِيْلَ لَهُمْ ﴾ دا زجردې په ترک د جهاد باندې، د آیت مطلب دادې چه کله دجهد د دپاره شرائط او وسائل پوره نه وی نو د مونځ، زکوة اود نورو اعمالو پابندی پکارده ځکه دا جهاد دنفس سره دې چه پدې سره روحانی قوة زیات شی نو د کفاروسره به مقابله آسانه شی. نو دا مشق اوتیارې دې دجهاد دپاره نوهر کله چه شرائط پوره شی او قتال فرض شی نو بیا دمنفقینو[1] په شان په جهاد کښې سستی مه کوئ اومرگ دخوف دوجه نه جهاد مه پرېږدئ ځکه دمرگ نه خلاصي نشته دې، هر ځائ کښې چه تاسو یئ نومرگ به رازی. پدې آیت کښې د مفسرینو دوه قوله دی **اول** دادې چه دا په حق دمنافقینوکښې نازل شوې دې، لکه چه د دې قول نه معلومیږی ((یخشون الناس کخشیة الله)) ((لم کتبت علینا القتال)) ، ((لولا اخرتنا الی اجل قریب)). قرطبی وائی چه دصحابونه معاذالله داسې قول نشی صادرکیدې ځکه چه دوئ عالمان

[1] زجرمنافقینوته

وو په دې چه آجال اونيتې محدودې دی او ارزاق مقسوم دی بلکه دوئ د الله تعالی د اوامرو امتثال کونکی وؤ ، سامعين،طائعين وؤ ، وصول دار آخرت ته دوئ ته غوره وؤ د قيام نه په دار دنيا کښې – آه

**دويم قول** : دادې چه دا په باره دمؤمنانو کښې نازل شوې دې دهجرت نه مخکښې په مکه مکرمه کښې کافرانومسلمانانوته ډير تکليفونه اورسول اوظلمونه ئې ورسره اوکړل نو مؤمنان راغلل دنبی صلی الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضرشول او اجازت ئې طلب کړو دقتال دکفاروسره نو نبی صلی الله عليه وسلم ورته اجازت ور نه کړو او وې فرمائيل چه ماته لا د قتال حکم ندې شوې بلکه دصبر اود عفوِ حکم شوې دې نوتاسو هم ((کفوا ايديکم)) صبر اوعفوه کوئ او مونځ اوزکوة اداکوئ، دا ددې دپاره چه په دې سره نفسونه د طاعت سره عادت شی. نو بيا جهاد کول به آسان شی نو دا خبره مسلمانانو قبوله کړه. دابن کثير اوقرطبی په روايت کښې دی چه حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه اودده ملګری دهجرت نه مخکښې مکې ته راغلل اوعرض ئې اوکړلو چه يانبی دالله ، چه مونږه په حالت دکفرکښې په عزت سره وو نو کله چه مونږ اسلام راوړلو نوذليل شو نو تاسو د جهاد اجازت راکړئ. نونبی صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چه ماته دعفوِ او دصبر حکم شوې دې، نوتا سوهم صبر کوئ اوقتال مه کوئ ددغه قوم سره، نو بيا چه هر کله دهجرت نه پس مسلمانانوته دجهاد حکم اوشو نو بيا دوئ لره پدې باندې خوشحاله کيدل پکاروو چه ددوئ درخواست قبول شو. ليکن کمزوری مسلمانان ويريدل اوتمنی ئې کوله چه دڅه مودې پورې دجهاد حکم نه وې راغلې اومونږ جوندی پاتې وې نو دا به ښه وې، نودا تمنی دمهلت په حقيقت کښې څه داعتراض د وجه نه. نه وؤ بلکه يولطيف شکايت ووچه دهغې وجه داوه چه دا عادت دې چه په کوم وخت کښې انسان ته تکليف اورسی نوجذبه اوجوش ئې زيات شی نو انتقام اغستل آسان وی ليکن د آرام اودراحت په وخت کښې جنګ اوانتقام ته آماده نه وی نودابشری تقاضا ده. نومسلمانانو چه کله هجرت اوکړو نودکفارو دايذا اوتکليف نه ورته لږ آرام ملاوشو نوهغه جوش ئې کم شوکوم چه مخکښې وونوځکه ئې اوئيل ﴿لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا الْقِتَالَ﴾ . او دا هم کيدې شی چه داخبره د وسوسې په درجه کښې وی نو په وسوسه غير اختياری باندې څه مواخذه هم نه وی او د ((**قالوا**)) نه مراد په زړه کښې وئيل مراد وی، حاصل دادې چه داکلام يا دمنافقانو قول دې او يا دکمزورو مسلمانوقول دې خو په طور دانکار ندې بلکه دخپل ضعف اودکمزورئ

شکایت کول دی الله نه یا په طور د وسوسې سره دې

﴿ إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُمْ ﴾ ددینه مراد منافقین دی او دوئ په ظاهر کښې مومنان وو یا ترینه ضعیف مسلمانان مراد دی ﴿ كَخَشْيَةِ اللَّهِ ﴾ یعنې داسې یره چه دالله نه پکار ده ﴿ أَوْ أَشَدَّ خَشْيَةً ﴾ ((ای بل اشد خشیةً)) ځکه چه خوف دالله تعالی نه عقلی وی اود دشمن نه طبعی وی او امرطبعی دعقلی نه زیات شدید وی یاددې وجه نه چه دالله نه خوف وی نود رحمت امید هم وی او د دشمن نه صرف خوف وی اود رحمت امیدنه وی نو دا ځکه زیات شو ﴿ مَتَٰعُ ٱلدُّنۡيَا قَلِيلٌ ﴾ دنیا او مافیها ټول په مقابله د اعمالود آخرت کښې چه دهغې نه یوحکم دجهاد دې دیرلږ ده

أَيۡنَ مَا تَكُونُواْ يُدۡرِككُّمُ ٱلۡمَوۡتُ وَلَوۡ كُنتُمۡ فِي بُرُوجٖ مُّشَيَّدَةٖۗ وَإِن تُصِبۡهُمۡ

هرځای چه یئ تاسو رالاندې کوی به تاسولره مرګ اګر چه یئ تاسویئ قلعه ګانومضبوطو کښې. اوکچرې اورسیږی دوئ ته

حَسَنَةٞ يَقُولُواْ هَٰذِهِۦ مِنۡ عِندِ ٱللَّهِۖ وَإِن تُصِبۡهُمۡ سَيِّئَةٞ يَقُولُواْ هَٰذِهِۦ مِنۡ عِندِكَۚ

خوشحالی نووانی دوئ دا دطرفه دالله نه ده، اوکچرې اورسیږی دوئ ته تکلیف نو وائی دوئ دا ستا دطرفه دی.

قُلۡ كُلّٞ مِّنۡ عِندِ ٱللَّهِۖ فَمَالِ هَٰٓؤُلَآءِ ٱلۡقَوۡمِ لَا يَكَادُونَ يَفۡقَهُونَ حَدِيثٗا ۝

ته اووایه داټول دطرفه دالله نه دی. نوپس څه شوی دی دې قوم لره چه قریب نه دې چه پوهه شی په څه خبرې

مَّآ أَصَابَكَ مِنۡ حَسَنَةٖ فَمِنَ ٱللَّهِۖ وَمَآ أَصَابَكَ مِن سَيِّئَةٖ

هغه چه اورسیده تاته (اې مخاطبه) څه خوشحالي نودا دفضل دالله نه ده اوهغه چه اورسیدو تاته څه تکلیف

فَمِن نَّفۡسِكَۚ وَأَرۡسَلۡنَٰكَ لِلنَّاسِ رَسُولٗاۚ

نو دادوجې د(غلطئ) دنفس ستانه دې، او اې محمده (ص) لیږلي نې مونږ ته خلقو ته رسول (رحمة اللعالمین)

وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدٗا ۝

اوپوره دې الله حاضر ناظر.

﴿ أَيۡنَمَا تَكُونُواْ يُدۡرِككُّمُ ٱلۡمَوۡتُ ﴾ دا زجردې په ترک دجهاد باندې یعنی که تاسوجهاد دمرګ دخوف دوجه نه ترک کوئ نودا غلطه ده ځکه موت دخپل وقت مقرر نه مخکښې نه راځی

او کله چه وقت موعود راشي نو په هر ځای کښې چه تاسويئ نوموت به واقع کيږی. ابن کثير په روايت دجرير دحضرت مجاهد رحمه الله نه **يوه عجيبه واقعه** نقل کړيده چه په مخکنو امتونو کښې ديوې ښځې وضع حمل اوشو ((بچه ئی پيدا شو)) دبچی د پيدا ئېښت نه لږ ساعت روستو ئی خپل نوکر اوليږه چه اور راوړی نوهغه نوکرچه کله د دروازې نه بهر شو نو ناڅاپه يو سړې ورته ظاهر شو اوتپوس ئې اوکړو چه ددې زنانه څه بچه پيداشوې دې نوده ورته اوئيل چه جينئ پيداشوې ده. نوهغه سړی ورته ددې په حق کښې درې خبرې اوکړلې يودا چه دسلوسړوسره به زناکوی. دويم داچه دا به نکاح دخپل نوکر سره کوی. دريم داچه مرګ به ئې دجولاګی ((عنکبوت)) نه واقع کيږی. نوده چه کله داخبره واريده نوفورا واپس شواوهغه جينئ ئی په خيټه کښې په چاقو اووهله اودا ګمان ئې اوکړلو چه داهلاکه شوه او په خپله اوتښتيدلو نودجينئ مور پدې باندې فورًا پتهٔ اولګوله اوآخر داجينئ روغه شوه اوبالغه شوه اوبې مثاله ښائسته وه اودغه نوکر چه اوتختيدلو نو دسمندرلارئې اختياره کړه اولاړو اوډير مال اودولت ئی اوګټلو نوواپس راغې ښارته، يوه بوډئ ورسره ملاؤ شوه اوهغې ته ئی وه وئيل چه زه د يوداسې جينئ سره واده کول غواړم چه دهغې مثال په حسن اوجمال کښې نه وی نوهغې ورته وه وئيل چه د فلانکئ جينئ نه زياته خائسته څوك نشته ده، هغې سره واده وکړه. نو کوشش ئی شروع کړو، حتی چه دغې جينئ سره ئی نکاح اوشوه

نو بيا هغه جينئ د ده نه دريافت اوکړوچه ته څوك يې ؟نو ده خپل تعارف اوکړلو چه زه دښار باشنده ووم اود چا سره نوکر ووم نو دهغوئ جينئ ماقتل کړه اوبيا زه اوتختيدلم نوهغې جينئ. ورته دخپل بدن نشانات ظاهر کړل چه هغه جينئ خو زه ووم. نوسړی ورته اوئيل چه ستا متعلق ماته د درې خبرو وينا شويده اول دسلو کسانو سره زنا کول. نوښځې اقرار اوکړلو او وې ويل چه تعداد راته ياد ندې، دويم دنوکر سره نکاح کول. نو داخومعلومه شوه. دريم چه مرګ به ئی ديو عنکبوت (جولاګی) نه وی، نودعنکبوت نه دحفاظت لپاره دې سړی يوعالی شان عمارت تيارکړو. صاف اوستره چه دعنکبوت هيڅ نشان اونوم هلته نه وو. اوپه دغه محل کښې دواړوسکونت کولو، يوه ورځ دا دواړه په دغه خپل محل کښې ملاست وو چه ناساپه عنکبوت ظاهر شو په ديوال باندې نو ښځې اوئيل چه ته ما ددې څيز نه يروی، نوفورا راپورته شوه اوهغه ئې ښکته را ارتاو کړو اومړئې کړه او په خپلوخپوئی اوچقولو نوعنکبوت خو مړشو ليکن زهرئ ددې په خپو او په نوکونوباندې اولګيدل اوددې نه دابنځه مړه شوه

نوخلاصه داده چه اسباب دحفاظت اگرکه ډیر مضبوط اوعمده وی نوبیاهم دمرګ نه خلاصي نشته دي. البته اسباب اختیارول دتوکل خلاف ندی بلکه حکم ئې شوې دې **نوهر کله چه دموت نه خلاصي نشته دې نو آخرت ته تش لاس تلل دا دعقل تقاضا نده**

﴿وَإِن تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ﴾ دا د منافقینو دبل خصلت قبیحه ذکر دې . او د ((**حسنة**)) نه مراد عام دې فتح. غنیمت. خوشحالی، فراخی وغیره، اود ((**سیئة**)) نه مراد هم عام دي. شکست اوقتل اوپریشانی. قحط سالی وغیره یعنی منافقیونوته چه کله څه حسنه اورسیږی نو دوئ وائی ﴿هَٰذِهِ مِنْ عِندِ اللَّهِ﴾ یعنی دا د الله دطرفه دي. نسبت دالله طرف ته پطوردشکریه سره د دوئ ندي مراد بلکه ددوئ مقصود نفی د اثر د اتباع درسول ده یعنی مونږته که څه خیر ملاو شوېدي نو دا د اتباع درسول د وجه نه ندي ملاوشوې بلکه دا اتفاقا په ایجاد دالله سره دي او اتباع رسول لره پدې کښې څه دخل نشته دې اوکه دوئ ته څه تکلیف اورسی نو وائی ﴿هَٰذِهِ مِنْ عِندِكَ﴾ دا ستاسوء دتدبیر دوجه نه دي یا معاذ الله تاسو سپیره یئ لکه په بل ځائې کښې راخی ﴿وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَطَّيَّرُوا بِمُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُ﴾

﴿قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِندِ اللَّهِ﴾ دا رد دې اجمالا دقول دمنافقینو یعنی هر څه دطرف دالله نه دی په اعتبار دتخلیق او ایجاد سره او په اعتبار دقضا او قدر سره لیکن ډیر دتعجب خبره داده چه دا منافقان دومره جاهلان دی چه قریبه نه ده چه په څه خبره باندې پوه شی. پدې آیت کښې مبالغه ده په تجهیل دمنافقینو کښ (۱) استفهام دتعجب (۲) نفی دقرب (۳) ((حدیثا)) نکره ذکرکول ﴿فَمَالِ هَٰؤُلَاءِ الْقَوْمِ﴾ ((ما)) استفهامیه دي او مبتداء ده ((**لهؤلاء**)) جاراومجرور په اعتبار دمتعلق مقدرسره خبردي. نوتقدیر دا شو ((ای شئ حصل لهولاء)) د لام جاره جدا لیکل دا کتابت شاذه دي لیکن چونکه په مصحف عثمانی کښې دغه شان مکتوب دی. نوځکه جدا لیکلی شی ((**القوم**)) بدل دي د ((**هؤلاء**)) نه ﴿لَا يَكَادُونَ﴾ دا جمله حال دي ((ای حال کونهم بمعزل من ان یفقهوا)) یاجمله مستانفه جواب دې دهغه سوال مقدر نه چه ناشی دي د استفهام نه.

﴿يَفْقَهُونَ حَدِيثًا﴾ داخبر د ((**لایکادون**)) دې اوفقه (عمیق) جور علم ته وائی اوددې قسم علم دحاصلولو حکم شوې دې پدې قول دالله تعالی سره ﴿فَلَوْلَا نَفَرَ مِن كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَائِفَةٌ﴾

﴿لِيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ﴾ او د ((حديثا)) نه مراد خبره ددين ده. قرآن اوحديث اومسائل مستنبطه دقرآن اوحديث ورنه مراد دی. ﴿مَّآ أَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ﴾ دا تفصيل دي د رد دقول دمنافقينو اوتعليم د ادب دي اوخطاب دي نبی کريم صلی الله عليه وسلم تهاومراد ترينه امت دي. يا خطاب عام دي هر مخاطب ته يعنی هر مسلمان لره داعقيده ساتل پکاردی چه خوشحالی اوفتح خالص دالله تعالی په فضل سره رازی. اوکه دنيک عمل په وجه رازی نوهغه هم دالله تعالی فضل دي اوتکليف اوپريشانی اوغم اوقحط سالی د انسان دبدو عملونو په وجه سره رازی

﴿فَمِن نَّفْسِكَ﴾ يعنی دګناه دنفس ستانه دي. داخطاب نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته دي او مراد ترينه امت دي يا مطلق مخاطب دي

﴿وَأَرْسَلْنَاكَ لِلنَّاسِ رَسُولًا﴾ ته رسول ئي اورسول رحمت وی نورسول الله صلی الله عليه وسلم رحمة للعالمين دي نو د رحمة للعالمين په حق کښي داسی عقيده ساتل لکه چه دمنافقينو عقيده ده انتهائي جهالت اوحماقت دي ﴿وَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا﴾ يعنی الله تعالی ګواه دي ستا په رسالت اوصداقت اوپدي چه ته رحمة للعالمين ئي

**مَنْ يُطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ ۚ وَمَنْ تَوَلّٰى فَمَآ اَرْسَلْنٰكَ**

چاچه اومنلوحکم درسول نويه تحقيق سره ده اومنلو حکم دالله ، اوڅوک چه اعراض اوکړی نونه نی ليږلي مونږ ته

**عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ﴿٨٠﴾**

په دوئ نګهبان (ساتنه کونکي)

﴿مَّن يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ﴾ دا ترغيب دي اتباع درسول الله صلی الله عليه وسلم ته . روستو د اثبات درسالت نه ﴿وَمَن تَوَلَّىٰ﴾ دا شرط دي اوجزاء ئی محذوفه ده چه ((فلايسئل عنک)) ستانه به دهغي تپوس نه کيږی ﴿فَمَآ أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا﴾ دا دمحذوفه جزا دپاره علت دي د ((حفيظ)) معنی ده حفاظت کوونکي دعملونو ددوئ اوحساب کوونکي. او دا تسلی ده سول الله صلی الله عليه وسلم ته

وَ يَقُوْلُوْنَ طَاعَةٌ ۡ فَاِذَا بَرَزُوْا مِنْ عِنْدِكَ بَيَّتَ

اووائی ⁽¹⁾ دامنافقان چه کار زمونږ ستاخپره منل دی، پس هرکله چه دوئ اوځی ستاخوانه نودشپې مشورې کوی

طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ غَيْرَ الَّذِيْ تَقُوْلُ ۖ وَاللّٰهُ يَكْتُبُ مَا يُبَيِّتُوْنَ ۚ فَاَعْرِضْ

بوډله ددوئ نه غیردهغې نه چه وئیلې وي دوئ، اوالله لیکی هغه چه دوئ څه مشوره کوی، نواعراض اوکړه،

عَنْهُمْ وَ تَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۖ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ۞ اَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ ۖ

ددوئ نه اوخان اوسپاره په الله باندې اوکافی دې الله کارساز آیا دوئ سوچ نه کوي په قرآن کښې.

وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ لَوَجَدُوْا فِيْهِ اخْتِلَافًا كَثِيْرًا ۞

اوکه وي دا قرآن دطرف دغیرالله نه نو خامخا موندلې به وو دوئ په دې کښې اختلاف (غلطی) ډېر

﴿ وَيَقُوْلُوْنَ طَاعَةٌ ﴾ ((**ای امرناطاعة**)) داشکوه ده د منافقینونه یعنی دوئ کله چه ستا خوا کښې وی نودوئ وائی چه زمونږ کار اوشان دادې چه مونږ به اطاعت کوو. ﴿ فَاِذَا بَرَزُوْا ﴾ کله چه ستا دمجلس نه اوځی نو ﴿ بَيَّتَ ﴾ دشپې دروغ جوړوی یاجرګې کوی ﴿ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ ﴾ یو ډله د منافقانونه چه هغه مشران د دوئ دی ﴿ غَيْرَ الَّذِيْ تَقُوْلُ ﴾ ((تقول)) یا صیغه د واحد مخاطب ده یعنی خلاف دهغې چه ته یې وائی یعنی خلاف دتوحید اوسنت نه. یاصیغه د واحد مونث غائب ده اوضمیر ئې راجع دې ((**طائفة**)) ته یعنی غیر دهغې نه چه وئیل دې طائفې ستا په مجلس کښې چه ((امرناطاعة))

﴿ وَاللّٰهُ يَكْتُبُ ﴾ دا تخویف دې او مراد ترینه لیکل دی په عمل ناموکښې. ﴿ فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ ﴾ داعراض نه مراد دادې چه ددوئ په بې هوده اعتراضاتو او په غلط چال باندې مه غمزن کیږه او ددوئ خبروته التفات مه کوه اوهرڅه الله ته اوسپاره هغه به دې حفاظت کوی

﴿ اَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ ﴾ دا زجردې منافقینوته د ((فا)) او د همزه په درمیان کښې مناسب

---

١ شکوي

فعل محذوف دې ((ای اَیشکون فلایتدبرون)) یا ((اَیعرضونَ فلایتدبرون)) پدې آیت کښې اشاره ده دې خبر ته چه تدبر کول په قرآن کښې ضروری دې اوصرف لفظی قرآن لوستلوسره دقرآن حق نه اداکیږی، البته دتدبر مختلف درجات دې دعامو خلقوتدبر دمجتهد تدبر په شان نه وی نو هر څوک مجتهد نشی جوړیدې، البته په تدبر اوپه غور اوفکر سره دقرآن پاک انوار اوبرکات حاصلې دې شی اودالله تعالی عظمت اومحبت اومینه اوفکر آخرت پیداکیدې شی امام قرطبی وائی چه ددې آیت نه معلوم شو حجیت دقیاس چه که یوه مسئله په قرآن اوحدیث کښې صراحةً نه وی نو دهغې دمعلوملو دپاره په قرآن اوسنت کښې غوراوفکر کولې شی او دې عمل ته اصطلاح کښې ((قیاس)) وائی.

﴿وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللَّهِ﴾ یعنی که قرآن دالله تعالی کلام نه وې نوپدې کښې به اختلاف کثیر وې نوهر کله چه پدې کښې اختلاف نشته لکه په تدبر سره معلومیږی نومعلومه شوه چه دا دالله تعالی کلام دې اود اختلاف کثیرنه مراد مخالفت دې د نفس الامر نه یعنی کذب . اودارنګې تناقض په خپل مابین کښې او مخالفت دفصاحت اوبلاغت نه مراد دې، او دمطلق اختلاف نفی ندې مراد لکه اختلاف دقراءت وغیره، پدې آیت کښې داختلاف کثیر نفی اوشوه حالانکه په قرآن کښې اختلاف قلیل هم نشته دې، ددې وجه داده چه دغتوهرڅه غټ اولوئ وی نوکه اختلاف په کښې وې نولوئ به وو اوبعض وائی چه کثرت په جانب دنفی کښې مراد دې یعنی نفی دکثرت نده بلکه کثرت اومبالغه فی النفی ده یعنې دا کلام دالله دې نوهیڅ اختلاف په کښې نشته دې.

| وَاِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِ الْخَوْفِ اَذَاعُوْا بِهٖ ۚ وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ |
|---|
| اوکله[1] چه راشي دوئ ته خبردامن یا د یرې نو دوئ مشهورکړی هغه، او کچرې دوئ حواله کولې دارائې درسول ته |

| وَاِلٰٓى | اُولِى | الْاَمْرِ | مِنْهُمْ | لَعَلِمَهُ | الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|

اوخاوندانودرائې ته ( پوهه خلق) ددوئ نه نو خامخا به معلوم کړې وې دې لره هغه کسانوچه هغوئ

1- زجر منافقینوته.

يَسْتَنْۢبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ۭ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ لَاتَّبَعْتُمُ

تحقیق کوی ددې امر له دوی نه. اوکچیرې نه وې فضل دالله په تاسواورحمت دهغه نوحامخا به تاسوتابعداری کړې وی

الشَّيْطٰنَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿٨٣﴾

د شیطان مگر لږو کسانو

﴿ وَإِذَا جَآءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ ٱلْأَمْنِ أَوِ ٱلْخَوْفِ أَذَاعُوا۟ بِهِۦ ﴾ دا زجردې منافقینوته او د «امر» نه مراد خبردې یعنې کله چه دوی ته خبر راشی د امن او دفتح د اسلامی لښکر یا د خوف نو دوی بلاتحقیق نشر او اشاعت کوی حالانکه دغه شان نه ده پکار خکه چه کله خبر غلط وی او کله او دهغې پټ ساتل د اسلام اومسلمانانو دپاره مفیدوی. دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دجهاد دپاره لښکر اولیګلو نو چه کله به دهغوی دغلبې کیدلو یا مغلوب کیدلو خبر راغې نومنافقینوبه دغه خبر په غلطې طریقې سره نشر کولو. حالانکه کله دغلبې د خبر نشر او اشاعت مفیدنه وی او کله د مغلوبیت د خبر په پټ ساتلو کښې مصلحت وی. نوددې وجه نه ددې خبر داولولامر یعنی ذی رائی «ناظم نشراو اشاعت» نه دریافت پکاردې چه اجتماعی مصلحت اودمسلمانانومصلحت په څه کښې دې

﴿وَلَوْ رَدُّوهُ ﴾ ضمیر راجع دې امرته اود رد نه مراد دریافت دې. یعنی که چرې دوی ددې خبر دریافت دنبی کریم صلی الله علیه وسلم او د ذی رایٔ صحابوشورٰی والا نه کړې وی

﴿لَعَلِمَهُ ﴾ ضمیر راجع دې امر ته یعنی معلوم کړې به وې دې امرله چه قابل د افشاء اونشر دې اوکه ندې ﴿ٱلَّذِينَ يَسْتَنۢبِطُونَهُۥ مِنْهُمْ ﴾ دا فاعل دې د «تعلم» دپاره او «هٗ» ضمیر ورله مفعول دې. د ددې دوه مطلبه کیدې شی اول دا چه د «الذین یستنبطونه منهم» نه. مراد ددینه هرهغه قسم خلق دی چه ددې قسم خبر معلومولو تالاش کوی او ددې شوق ساتی خواه منافقین وی یاغیرمنافقین او «منهم» کښې ضمیر راجع دې نبی ﷺ او ذی رایٔ صحابه کراموته. او دا جار اومجرور د علم پورې متعلق دې او مطلب نی دادې چه که چرې دې خلقو دا خبر نوې مشهور کړې اوچه نه چه ددې دمعلومولو شوق دې هغوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اودصحابه کرامو د د رایٔ نه نی دریافت کړې وې نو دهغوی نه به نی معلوم کړې وې چه داخبر قابل افشاء دې او که ندې. او دویم احتمال دادې چه «منهم» کښې من بیانیه دې او «هم»

ضمیر راجع دي اولوالامر ته او د ﴿ٱلَّذِينَ يَسۡتَنۢبِطُونَهُۥ﴾ نه مراد اولو الامر دی. نومعنی ئی داده چه خامخابه معلوم کړې وې دې امر لره هغه کسانو چه دوی تحقیق کوی چه هغه اولوالامر دی. مفسرین وائی چه **شان نزول** ددې اګرکه خاص واقعه ده لیکن حکم ئې عام دې. بې تحقیقه خبره بیانول جائزنه دی ځکه په حدیث کښې دی چه((کفی بالمرء کذبا ان یحدث بکل ماسمع)) یعنی دسړی د دروغژن کیدو دپاره داخبره کافی ده چه کومه خبره واوری نو بغیر دتحقیق نه هغه بیانوی او په بل روایت کښی دی چه ((من حدث حدیثا فهویری انه کذب فهواحدالکاذبین)) چا چه داسې خبره بیان کړه اوداګمان ئی وی چه دابه دروغ وی نودا سړې هم یودروغژن دې په هغه دوو دروغژنو کښې. دارنګې چه یوه جدیده مسئله مخې ته راشی نو دهغې دحل دپاره هم محقیقنو علماؤ ته رجوع ضروری ده

﴿وَلَوۡلَا فَضۡلُ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ وَرَحۡمَتُهُۥ لَٱتَّبَعۡتُمُ ٱلشَّيۡطَٰنَ إِلَّا قَلِيلٗا﴾ پدې کښې الله تعالی خپل احسان بیانوی او ترغیب ورکوی حکم منلوته چه په حکم منلوسره دالله تعالی فضل اورحمت ملاویږی اودشیطان نه بچا ؤ حاصلیږی ((**الا قلیلا**)) دا استثناء ده دظاهرنه دامعلومیږی چه لږ کسان محتاج ندی دالله فضل اورحمت ته دشیطان نه په بچ کیدلوکښې حالانکه بغیر دفضل دالله نه انبیاء هم نشی بچ کیدې، نو ددې دحل دپاره مختلف توجیهات علماؤ ذکرکړی دی بعضې وائی چه دا استثنا ء ده د ((**اذاعوا به**)) نه اوبعض وائی چه دا استثناء ده د ((**علمه الذین**)) نه وغیر ذلك. لیکن راجحه خبره داده چه دا استثناء ده د ((**لاتبعتم الشیطان**)) نه. لیکن مراد دفضل اورحمت نه خاص فضل اورحمت دې چه هغه نزول دقرآ ن او ارسال درسول دې. نومطلب دادې که چرې دا خاص فضل اورحمت نه وې نواکثربه دشیطان تابع شوی وو. مګرقلیل چه په هغوی خاص فضل اورحمت اګرکه نشته لیکن عام فضل اورحمت شته دې. چه اصحاب دفطرت سلیمه دی لکه زیدبن عمروبن طفیل. ورقه بن نوفل وغیرهما چه اصحاب دفطرت سلیمه وو په جاهلیت کښې نو د ((**الا قلیلا**)) مصداق دغه قسم خلق دی، حاصل دادې چه دفضل اورحمت نه مراد خاص فضل اورحمت دې او په انتفا دخاص سره انتفا دعام نه راځی نومطلق فضل او رحمت نه بغیر هیڅ څوک نشی بچ کیدلې اوبغیر دفضل خاص نه او درحمت خاص نه بعضې خلق چه اصحاب دفطرت سلیمه وی نوبچ کیدې شی

فَقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ لَا تُكَلَّفُ اِلَّا نَفْسَكَ وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ

پس [۱] جنګ کوه نه په لاره د الله کښې، ذمه داري نشته په تا مګر د خپل ځان، او تیزي ورکوه مومنانو ته په قتال

عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّكُفَّ بَاْسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۗ وَاللّٰهُ اَشَدُّ بَاْسًا وَّاَشَدُّ تَنْكِيْلًا ۝

قریبه ده چه الله به بند کړي جنګ د کافرانو. او الله ډیر سخت دي د جهته د جنګ، او ډیر سخت دي له جهته د سزا ورکولو.

﴿فَقَٰتِلۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ دا ترغیب دي قتال ته ﴿لَا تُكَلَّفُ إِلَّا نَفۡسَكَ﴾ یعني که څوک جهاد ته نه خي نو په تا باندې د هغوئ ذمه داري نشته بلکه ته خپل عمل او د طاقت مکلف ئې په «الا نفسک» کښې تقدیر دي ((ای الا فعل نفسک یاوسع نفسک)) ځکه نفس مکلف به نه وي بلکه فعل او عمل وي ﴿وَحَرِّضِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ﴾ تحریض تیزولو او ترغیب ته وائی یعنی ستا په ذمه ترغیب ورکول دي او جهاد ته تلل د هر چا خپله ذمه داري ده، ستا ذمه نده نو که څوک د جهاد نه پاتې شي نو ستا نه به ئې تپوس نه کیږي ﴿عَسَى ٱللَّهُ أَن يَكُفَّ﴾ دا وعده ده چه د جهاد په ذریعه سره به کافران او کفر مغلوب کیږي نو دوئ چه مغلوب شي او وه ویریږي نو جنګ به بند کړي وجه ئې داده چه دا جنګ په ظاهر کښې خو د مسلمانانو سره دي لیکن چونکه مومن د الله د طرفه نمائنده دي نو د دې وجه نه په حقیقت کښې دا جنګ د الله سره دي ﴿وَٱللَّهُ أَشَدُّ بَأۡسٗا﴾ او د الله تعالی جنګ ډیر سخت دي او د الله تعالی سزا ورکول ډیر سخت دی.

مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَّكُنْ لَّهٗ نَصِيْبٌ مِّنْهَا ۚ وَمَنْ يَّشْفَعْ

چا چه سفارش او کړو سفارش نیک نو وي به هغه لره برخه د ثواب د هغې په وجه، او چاچه سفارش او کړو

شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَّكُنْ لَّهٗ كِفْلٌ مِّنْهَا ۗ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقِيْتًا ۝ وَاِذَا حُيِّيْتُمْ

سفارش بد نو وي به هغه لره پیټې د ګناه د هغې په وجه، او دي الله په هر څیز باندې طاقت والا او کله چه تاسو نه

بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوْا بِاَحْسَنَ مِنْهَاۤ اَوْ رُدُّوْهَا ۗ

دعا سلام او کړي شي څه دعا سلام نو تاسو د هغې جواب ورکوئ په زیات غوره سره د هغې نه، یا جواب ورکړئ په هغې سره.

[۱] ترغیب جهاد ته

إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَسِيبًا ﴿٨٦﴾ اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ

بېشکه الله دی په هرڅیز باندې حساب کوونکې الله (چې) نشته (۱) دې حقدار دبندګۍ بل څوک په غیرد ده نه

لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ ۗ وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللَّهِ حَدِيثًا ﴿٨٧﴾

خامخا به راجمع کړی تاسو ورځ دقیامت ته نشته دې هیڅ شک په دغې کښې، اوڅوک دې ډېر رېښتنې دالله نه په خبره کښې

﴿ مَّن يَشْفَعْ شَفَٰعَةً حَسَنَةً ﴾ دامتعلق دې د «**حرض المومنین**» سره چه تحریض المومنین شفاعت حسنه دې اوموجب دثواب دې دارنګې په ماقبل کښې ذکر شو «**لا تکلف الا نفسک**» چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دبل چا په عمل باندې ماخوذ ندې نوتوهم پیداشو چه دبل چا د نیک عمل په وجه سره به ثواب هم نه ملاویږی نوپدې آیت کښې دتوهم دفعه اوشوه چه دشفاعت په وجه به ثواب ملاویږی، دلته کښې **شفاعت دوه قسمه** ذکر شوې دې یوحسنه اوبل سیئه دې. «شفاعت» دشفع نه ماخوذ دې شفع وتر (جفت طاق) تکۍ ناتکۍ دا داواړه متاقبلین دی. دشفع معنی ضم اویوځائې کول دی او شرعی معنی ئې داده چه کمزوری حقدارسره خپل قوت ضم کړې شی اویا د بې کس سره ملګرې شی اوهغه قوی کړی، نوشفاعت حسنه هغه دې چه د کوم کار دپاره شفاعت کولې شی هغه جائز وی اوطریقه ئې جائز اومشروع وې نو په رشوت سره دچا سفارش، شفاعت حسنه ندې او دارنګې دغیر مشروع کار دپاره سفارش شفاعت حسنه نه دې، نو شفاعت حسنه دا دې چه مطلوبه کار هم صحیح او جائز وی او طریقه ئې هم جائزه وی، او شفاعت سیئه دادې چه مطلوبه کار ناجائز وی یا ئې طریقه د حصول ناجائزه وی، اودارنګې په شفاعت کښې داضروری ده چه چاته سفارش پیش کوی نوهغه دې نه مجبور کوی اګر که سفارش کوونکې حاکم اعلی وی، په متعددوسندونوسره دا حدیث په صحیحینواو په صحاح سته ؤکښې مروی دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دحضرت عائشه رضی الله عنها آزاد کرده وینځې بریره رضی الله عنها ته سفارش اوکړلوچه دخپل خاوند مغیث سره دنکاح تعلق اولړه نوهغې اویل یارسول الله ! که ستاسوحکم وی نوبسروچشم قبول اومنظوردې اوکه صرف سفارش وې نو زه مغیث سره تعلق دنکاح قائم ساتل نه غواړم، نونبې کریم صلی الله علیه وسلم حضرت بریرة رضی الله عنها مجبوره هم نه کړله اوناراض ترینه هم نه شو،

[1] جهاد ددې مسئلې دپاره کیږي

اودارنګي په سفارش باندې معاوضه اخستل ناجائز اوحرام دی او رشوت دې

دشفاعت حسنه دپاره ډیرصورتونه کیدې شي دچا دجائز مقصد دحصول دپاره سفارش کول. د مصیبت زده یا د قیدی خلاصولو د پاره سفارش کول دمدیون دقرض د ادا کولو دپاره مجاهد جهد ته روان وی اواسلحه اوسفر خرچ ورسره نوی‌نودهغه سفارش کول دپاره داسلحې اودخرچه انتظام کولو یانورقسم دینې امورو‌کښې دوسائلو یانور مالي وغیره تعاون کول او دهغې سفارش کول دا ټول په شفاعت حسنه کښې داخل دی. اودارنګه د یومسلمان د یوجنز حاجت پوره کیدلولپاره د الله تعالی عنه سوال کول یا دعاء مغفرت د چا لپاره غوښتل دا ټول په شفاعت حسنه کښې داخل دی .

دحدیث پاک مفهوم دې چه څوک دبل مسلمان دپاره دحاجت اودمغفرت دعاکوی پښې شاه نو دا ډیره قریبه ده اجابت ته اوفرښتې دعاکونکی ته وائی چه ((ولک بمثل)) یعنې الله تعالی دې دغه شان ستا مغفرت اوکړی او ستاحاجت دې پوره کړی

﴿يَكُن لَّهُۥ نَصِيبٌ مِّنْهَا﴾ یعنی په شفاعت حسنه سره سفارش کونکی ته پوره اجر ملاویږی او په شفاعت سیئه سره سفارش کونکی ته دګناه حصه ملاویږی علماء کرام وائی چه ووځ ورکوونکی هم برابر په ګناه او ثواب کښې شریک دې دهغه چاسره چه چاته نی ووځ ورکړېدې. د ((نصیب)) اطلاق په عرف کښې غالبًا دنیکۍ په حصه باندې کیږی او د ((کفل)) اطلا ق په عرف کښې دګناه په حصه باندې کیږی اوکله نی اطلاق په مطلق حصه باندې اوشی لکه پدې آیت کښې ﴿يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِن رَّحْمَتِهِۦ﴾ ((سورة حدید-۲۸)) او په لغت کښې ددواړومعنی مطلق حصه ده ﴿مُّقِيتًا﴾ دا په دریومعانیو کښې مستعمل دې (۱) مقتدر یعنی قدرت والا (۲) قوت یعنې روزی ورکوونکې اوروزې تقسیموونکې (۳) نګران اوحفاظت کوونکې او دا درې واړه معنې دلته صحیح کیدې شی

﴿وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ﴾ بعضې مفسرین وائی چه دا متعلق دې دمسئله دقتال سره یعنې چه کله تاسوجهادته لاړشی اوڅوک تاسوته سلام اوکړی نوهغه مه قتلوئ لکه بعضې سفرونو کښې بعضې صحابو داسې کړې وؤ، بلکه هغه مسلمان دې او هغه ته جواب د سلام ورکړئ اومعامله دمسالمې ورسره اوکړئ

حضرت شیخ رحمة الله علیه فرمائی اگر تمھارے پاس کوئی واعظ جھاد پر آمادہ کرنے کیلئے آئے

اور سلام دے تو اس کا جواب اس کے کہنے سے زیادہ دو، ورنہ اس کے کہنے کے مطابق تو ضرور دو یعنی اس کے حکم کی تعمیل کرو.

اوبعض مفسرين وائی چه دا دشفاعتِ حسنه ديو اهم فرد ذكردې، څكه سلام ديو مؤمن دبل مومن باندې شفاعت حسنه دې دهغه دپاره. دتحيه معنى ده ((حياک الله)) ويل. د عربو عادت د اسلام نه مخکښې دا وؤ چه کله به ئی چه د يوبل سره ملاقات وشو نو يوبل ته به ئی ((حيّاك الله)) ويل. په اسلام کښې دغه طريقه بدل شوه په ((السلام عليكم)) سره. ددې معنى داده چه ستا جن اومال اولاد ته دې سلامتيا وی دهر آفت نه. ابن عربی وائی چه سلام اسم دې داسماؤ دالله تعالى نه ((كمافى الحديث انى كرهت اذكرالله بغير طهور)) نومعنى ئې داده چه ((الله تعالى رقيب عليكم)) يعنى الله تعالى ستاسومحافظ دې. ((السلام عليكم)) د ((حيّا ک الله)) نه ډيرافضل دې څکه ددې معنى دا ده چه تا دې الله جوندې لرى او په ((السلام عليكم)) کښې دالله ذکر هم دې اودمؤمن دپاره دعاهم ده اودمحبت اظهارهم دې اوپدې کښې بهترينه دعا ده څکه پدې کښې دصرف حياة دعانده بلکه دحياة طيبه دعا ده يعنى عافيت والاحياة. ايمان اوعمل صالحه والا حياة د آفاتو او بلياتو نه محفوظ حياة، اوبل پدې معاهده کول دی دمسلمان رور سره چه تاته به زما دطرفنه سلامتيا وی اوهيڅ قسم ضررقولی اوفعلی به تاته نه رسوم لکه ارشاد د رسول الله صلى الله عليه وسلم دې ((المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده)) اوددې وجهې نه نبی کريم صلى الله عليه وسلم دسلام عام کولو ډيرترغيب اوتاکيدفرمايلې دې په ډيرواحاديثوکښې او په يوروايت د ابو داؤد او ترمذی کښې دی ((عن ابي هريرة رضى الله عنه والذي نفسي بيدي لاتدخلوا الجنة حتى تومنوا ولا تومنوا حتى تحابوا افلا ادلكم على امر اذا فعلتموه تحاببتم افشوا السلا م بينكم)).

**ترجمه** ((نبی کريم صلى الله عليه وسلم فرمائی قسم دی دغه ذات دې چه زما نفس دهغه په قبضه قدرت کښې دې تاسو جنت ته ترهغه وخته پورې نه شئ ننوتلی ترڅوچه مؤمنان نشئ اوتاسوکامل مومنان نشئ جوړيدلی ترڅوپورې چه ديوبل سره محبت اونه لرئ . آياتاسوخبر نه کړم په يو داسې عمل چه کله تاسو هغه کوئ نوستاسوبه يوبل سره محبت قائم شی اوهغه دادې چه سلام عام کړئ په خپل منيځ کښې)).

دجمهورومفسرينو په نزد ﴿ وَإِذَا حُيِّيتُم ﴾ نه مراد سلام دې لکه په سورة نورکښې اطلاق دتحيه په سلام باندې شوې دې

﴿فَسَلِّمُوا عَلَىٰٓ أَنفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ مُبَٰرَكَةً طَيِّبَةً﴾ ((سورة النور)) ﴿تَحِيَّتُهُمْ يَوْمَ يَلْقَوْنَهُۥ سَلَٰمٌ﴾ ((سورة الاحزاب)). او د امام مالک رحمه الله نه منقول دی چه دینه مراد تشمیت العاطش دي یعنې څوک چه پرنجي اوکړی نوهغه به ((الحمدلله)) وائی نوتا سو ورلره جواب په ((یرحمک الله)) سره ورکړئ اوبعضې ملګرو د امام ابوحنیفه رحمه الله ویلی دی چه ددینه مراد هدیه ده یعنی دهدیی بدله په مساوی یا په افضل سره ورکړئ (قرطبی) دحدیث پاک مفهوم دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به هدیه قبلوله او د هغې بدله به ئې هم ورکوله. لیکن اول قول زیات صحیح اومشهور دي او مطلب ئې دادي چه څوک تاسوته سلام وائی نوتاسو ورلره جواب ورکړئ په احسن سره دهغې نه یا کم ازکم هغه الفاظ اووائی چه تاسوته ویلی شوی وو. د احسن تفسیر دادي چه د ((السلام علیکم)) په بدله کښې ((وعلیکم السلا م ورحمة الله وبر کاته)) وه وئیل شی. دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه مروی دي چه : ((ان السلا م قد انتهی الی البرکة)) ، (بغوی) یعنې دسلام جواب په ((برکاته)) باندې ختم شوې دې، ددې نه زیاتې کلمې لکه ((ومغفرته)) وغیره منقول اومسنون ندی، ابن کثیر په روایت دجریر سره دسلمان فارسی رضی الله عنه روایت نقل کړې دې چه یوکس راغې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته او ده اوئیل ((السلام علیک یارسول الله)) نونبی کریم صلی الله علیه وسلم په جواب کښې اوئیل ((وعلیکم السلام ورحمة الله)) نو بیا بل کس راغې اوهغه اوئیل ((السلام علیک یا رسول الله ورحمة الله)) نونبی کریم صلی الله علیه وسلم په جواب کښې اوفرمائل ((وعلیک السلام ورحمة الله وبر کاته)) نوبیابل کس راغې او وې وئیل ((السلام علیک ورحمة الله وبرکاته)) نونبی کریم صلی الله علیه وسلم په جواب کښې اوفرمایل ((وعلیک)) نو دې کس بطور شکایت اویل چه زمامورااوپلا دې په تاباندې قربان شی فلانې، فلانې کس راغې نو تاسو هغوئ ته په جواب کښې زیات کلمات اویل او ما ته مو کم کلمات اوئیل؟ نونبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائل ((انک لم تدع لنا شیئا)) یعنی تا زمونږ دپاره څه کلمه پرې نه خودله، په بل روایت کښې دی چه یوکس نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته راغې اووې وئیل ((السلام علیک یا رسول الله)) نونبی کریم صلی الله علیه وسلم ور ته جواب ورکړه او وې فرمائیل : ((عشر)) یعنې لس نیکئ، اوبل راغې وې وئیل ((السلام علیکم ورحمة الله)) نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته جواب ورکړه او اوفرمائیل ((عشرون)) یعنې شل نیکئ اوبل کس راغې اووې وئیل ((السلام علیکم ورحمة الله

وبركاته)) نونبي كريم صلى الله عليه وسلم جواب وركړلواو وې فرمائيل ((ثلاثون)) يعني ديرش نيکۍ (**ابن كثير - ابوداود**).

ابتدا كول په سلام سره سنت دى، د ابوداود په يوروايت كښې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم ارشاد نقل دې چه دالله تعالى په نزد باندې په ټولوكښې هغه كس زيات محبوب دې چه په سلام باندې ابتدا كوى څكه په سلام باندې ابتداءكوونكى ته په هره فقره باندې لس نيکۍ ملاويږى اودغه رنگې دجواب وركوونكى سره د هرې فقرې د ثواب سره برابر ثواب ورته هم ملاويږى او د جواب وركوونكى په اجركښې هم څه كمې نه راځى، سلا م كول سنت دى اوجواب وركول واجب دى بغير دعذر شرعى نه جواب نه وركول ترک د واجب دى او دا گناه ده او د اعذارو شرعيو تفصيل اودارنگې دسلام تفصيلى مسائل په احاديثوكښې او په فقه كښې په تفصيل سره ذكردى، من شاء فليطالعه.

﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَسِيبًا﴾ يعنى الله تعالى دټولو اعمالو حساب كوى او بعضې د هغې نه جواب د سلام دې دا دلالت كوى په وجوب د سلام باند

﴿اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ په دې آيت كښې بيان د ما هو المقصود دې، يعنې جهاد صرف د دې كلمې دپاره كيږى. لفظ د ((**الله**)) مبتداده او ((**لا اله الا هو**)) ورله خبر دې او ((**ليجمعنكم**)) خبر بعد خبر دې، يا جمله مستانفه ده، تخويف أخروى دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَمَا | لَكُمْ | فِي | الْمُنٰفِقِيْنَ | فِئَتَيْنِ | وَاللّٰهُ أَرْكَسَهُمْ |

پس څه شوى دى (۱) تاسولره اې مومنانوچه په باره دمنافقينو كښې دوه ډلې يئ اوالله نسكور كړى دى دوئ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِمَا كَسَبُوْا | أَتُرِيْدُوْنَ | أَنْ | تَهْدُوْا | مَنْ | أَضَلَّ اللّٰهُ | وَمَنْ |

په سبب دعملونو ددوئ، آياتاسو اراده لرئ چه هدايت وركړئ هغه چاته چه گمراه كړى دى الله. اوڅوک

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يُّضْلِلِ اللّٰهُ | فَلَنْ تَجِدَ | لَهٗ | سَبِيْلًا ⑧ | وَدُّوْا | لَوْ | تَكْفُرُوْنَ | كَمَا | كَفَرُوْا |

چه الله يې گمراه كړى نوهرگزبه نه مومې ته هغه لره لار . غواړى دوئ چه كافران شئ تاسو لكه چه دوئ كافران دى

(۱) - څلورم حكم سلطانى : يعنى هغه منافقين چه دمدينې نه بهر نوروښارونوته تلى دى هغه قتلوئ اودهغوئ په قتلولو كښې اختلاف مه كوئ.

فَتَكُوْنُوْنَ سَوَآءً فَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ اَوْلِيَآءَ حَتّٰى يُهَاجِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ط

نو بیا تاسو به ټول برابر شئ. نو پس تاسو مه نیسئ ددوئ نه دوستان تر دې چه دوئ هجرت اوکړی په لار د الله کښې.

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ ص

نو که دوئ مخ اوګرزو نو بیا نیسئ دوئ لره په قېدکولو سره او قتلوئ دوئ لره کوم ځائې نې چه مومئ تاسو دوئ لره.

وَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَّ لَا نَصِيْرًا ﴿۸۹﴾

او مه نیسئ د دوئ نه دوست او نه مددګار

﴿فَمَا لَكُمْ فِى الْمُنٰفِقِيْنَ فِئَتَيْنِ﴾ ((ما)) استفهامیه دې او استفهام د توبیخ دپاره دې ((في المنافقين)) متعلق دې د مقدر سره ((ای افترقتم فی المنافقین)) پدې آیت کښې **خلورم حکم سلطانی ذکردې** .خلا صه ئې داده چه کله تاسو جهاد ته لاړشئ او دمدینې نه باهر تاسوته منافقین ملاؤشی نوهغه قتلوئ او ددوئ په باره کښې اختلا ف مه کوئ مګرهغه چه هغوئ سره ستاسو معاهده شوی وی اوغیر جانبداره وی هغه مه قتلوئ اوکوم منافقین چه په مدینه کښې وی دهغوئ دقتل اجازت نشته، دا ددې آیت خلاصه ده او ددې په **شان نز ول** کښې قرطبی وغیره دوه روایتونه ذکرکړی دی اول روایت دصحیحینو او دترمذی وغیره دې د زیدبن ثابت رضی الله عنه نه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم کله جنګ احدته لاړ نوځه کسان د لارې نه واپس شو نو صحابه کرام ددوئ په باره کښې دوه جماعتونه شول. بعضو اوئیل چه ((نقتلهم)) اوبعضو اوئیل چه ((لا نقتلهم)) ، ((دا د دوئ اجتهاد وؤ چه بعضوظاهر حال ته اوکتل چه کلمه ئې ویله نو هغوئ وه ویل چه دا مسلمانان دی اوبعضو باطن ته نظر وکړو نو وې ویل چه دوئ کافران دی، او د دویم جماعت اجتهاد صحیح وؤ)) د بخاری شریف په روایت کښې دی ((انها طيبة تنفي الخبث كماتنفي النار خبث الفضة)) دویم روایت دابن عباس رضی الله عنهما نه دې چه دا نازل دې په حق د هغه قوم کښې چه په مکه کښې وو او ایمان ئې راوړې وو او هجرت ئې نه وو کړې او دائی وئیل که محمد صلی الله علیه وسلم غالب شو نو مونږ به ئې اوپیژنو چه دا حق نبی دې اوکه زمونږقوم اهل مکه غالب شو نو دا مونږته زیاته محبوبه خبره ده، نومسلمانان ددوئ په حق کښې دوه ډلې شو. نودا آیت نازل شو. او په یوبل روایت کښې دعبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه نه داسې راغلی دی چه یوقوم مدینې ته راغې اواسلام ئې ظاهر کړلونو دوئ ته بیماری اولګیدله نودوئ واپس لاړل

نو په لاره کښې دوئ سره صحابه کرام ملاؤ شو نوهغوئ ترينه د واپس کيدلو تپوس اوکړنو نو دوئ اووئيل چه په مونږ باندې آب او هوا موافق رانغله نو مکې ته لاړل او بيا مدينې ته واپس رانغلل اوبيا دوئ مرتد شول او د تجارت بهانه ئې اوکړه اومکې ته بيا واپس لاړل نو دصحابه کرامو ددوئ په حق کښې دوه رائې شوې نوبعضواوئيل چه منافقان دي قتلول ئې پکاردي اوبعضو اوئيل چه دوئ منافقان ندي نو ددوئ په حق کښې دا آيت نازل شو. قرطبي وائي چه اول روايت اصح دې سنداً اودويم روايت زيات موافق دې د الفاظو دقرآن سره

﴿حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا﴾ داځکه چه کوم خلق په مدينه کښې وونوهغوئ دپاره هجرت نه وونوتاويل ترې کيدې شي چه مراد هجرت نه کفراونفاق پرې خودل دی اوتوبه کول دی . اوهمدارنګه د هجرت اطلاق په خروج للجهادهم کيږی نو دا معنی هم اراده کيدې شي. اوداسې توجيه هم کيدې شي چه اصل سبب نزول هغه دې چه په دويم روايت کښې ذکرشوې دې اودصحيحينواوترمذی روايت مقصد دادې چه دغه منافقين هم ددې ايت مصداق کيدې شي ځکه چه مفسرينوداقانون ذکرکړې دې چه اسباب دنزول ديوايت چه کله متعددواقعات ذکرشي اومختلف وی نودغه ځای کښې اصل شان نزول يوه واقعه وی اونوروواقعاتو ته .((نزلت في كذا وكذا)) . ويلې شی نودهغې مراد داوی چه دا نور هم مصداق کيدې شي او د آيت حکم ورته شامل دې. دلته ددريو فرقو ذکردې اوله فرقه چه پدې آيت کښې مذکورده دا هغه ده چه دمدينې نه باهر نوروځائينوته تلي وو نو ددوئ په باره کښې داحکم دې چه دوئ د نفاق او ددوئ دقتل په باره کښې اختلاف مه کوئ ﴿وَاللَّهُ أَرْكَسَهُم﴾ ((ركس)) په اصل کښې ردکول او پړمخې کولوته وائي اودلته ترينه مراد دادې چه الله تعالی دوئ لره علانيه کفر طرف ته واپس کړی دی يادا چه دوئ به الله تعالی پړمخې جهنم ته غورځوی ﴿بِمَا كَسَبُوٓا﴾ دينه مراد منافقت والا عملونه دی ﴿وَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ﴾ دا دمنافقينو دلوئ خباثت ذکردې چه دوئ خپل ځان مسلمان ښکاره کوی او په زړونو کښې ئې کفردې او دا غواړی چه تاسوهم کافرشئ ﴿لَوْ تَكْفُرُونَ﴾ کښې لو مصدريه دې ﴿حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ هجرت په ابتدا داسلام کښې فرض وو او د اسلام دپاره علامه اوشرط وو په شان د اقرار لسانی دشهادتينو او د فتح مکې نه روستوحکم اوشو چه ((لا هجرة بعدالفتح)) يعنی فتح دمکې نه روستوهجرت فرض ندې. يعنی هغه هجرت چه مکې نه مدينې ته وو او شرط وو دپاره د اجراء داحکامو شرعيو. نو دا حکم چه پدې آيت کښې

دي نودا په ابتداء داسلا م کښې وو چه هجرت شرط وو دپاره د ايمان نواوس حکم ئې منسوخ دې. البته هجرت دداسې دارالکفر نه چه په هغې کښې مسلمان په ادا دفرائضو باندې قادرنه وی نو بيا اوس هم هجرت کول فرض دی خو شرط دايمان نه ندې لکه چه څنګه مخکښې وو، او دهجرت اطلاق په خروج للجهاد باندې هم کيږی نودلته دا معنی هم مراد کيدې شی او په منافقينو دمدينې منطبق کيدې شی اودهجرت بله معنی داده چه ترک دکفر اوشرک او نفاق اومعاصيؤ اوکړی لکه په حديث کښې راغلی دی ((المهاجر من هاجر ما نهى الله عنه ورسوله)) نودلته دامعنی هم مراد کيدې شی. ﴿فَإِن تَوَلَّوۡاْ﴾ يعنې که دوئ مخ واړوی دهجرت اود ايمان نه ﴿فَخُذُوهُمۡ﴾ ددې نه قيد کول مراد دی، ﴿وَٱقۡتُلُوهُمۡ حَيۡثُ وَجَدتُّمُوهُمۡ﴾ هرځائ نه مراد دادې چه په حل کښې وی اوکه په حرم کښې وی، ﴿وَلَا تَتَّخِذُواْ مِنۡهُمۡ وَلِيّٗا وَلَا نَصِيرًا﴾ ددې نه معلومه شوه چه دکفارو نه طلب د مدد حرام دې (معارف)

| إِلَّا ٱلَّذِينَ يَصِلُونَ إِلَىٰ قَوۡمِۭ بَيۡنَكُمۡ وَبَيۡنَهُم مِّيثَٰقٌ |
|---|
| مګرهغه کسان چه يوځائې کيږی (تعلق لری)دهغه قوم سره چه په مينځ ستاسو کښې اودهغوئ کښې وعده وی |
| أَوۡ جَآءُوكُمۡ حَصِرَتۡ صُدُورُهُمۡ أَن يُقَٰتِلُوكُمۡ |
| ياراشی دوئ تاسوته په داسې حال کښې چه بندوی سينې ددوئ ددېنه چه دوئ جنګ اوکړی تاسوسره |
| أَوۡ يُقَٰتِلُواْ قَوۡمَهُمۡۚ وَلَوۡ شَآءَ ٱللَّهُ لَسَلَّطَهُمۡ |
| ياجنګ اوکړی دقوم خپل سره ، اوکه اراده وې دالله نوخامخابه به ئی دوئ مسلط کړې وې |
| عَلَيۡكُمۡ فَلَقَٰتَلُوكُمۡۚ فَإِنِ ٱعۡتَزَلُوكُمۡ فَلَمۡ يُقَٰتِلُوكُمۡ وَأَلۡقَوۡاْ |
| په تاسونوخامخابه جنګ کړې وې دوئ تاسوسره، نوپس که څنګ اوکړی دوئ ستاسونه اوجنګ نه کوی تاسوسره اوپيش کړی |
| إِلَيۡكُمُ ٱلسَّلَمَ فَمَا جَعَلَ ٱللَّهُ لَكُمۡ عَلَيۡهِمۡ سَبِيلٗا ۝ |
| تاسوته صلح ، نونه ده ګرزولې الله تاسولره په دوئ باندې لار (دجنګ کولو). |

﴿إِلَّا ٱلَّذِينَ يَصِلُونَ﴾ دا استثناء دَه دِقتل او د اخذ نه، دا د دويمې فرقې بيان دې چه هغه معاهد ، يامعاهدالمعاهد ياغير جانبدارخلق دی يعنی دکوموخلقوسره چه ستاسو معاهده وی

دجنګ د نه کولو یا ددغه شان خلقوسره څوک معاهده اوکړی اودوئ سره یوځائ شی نودیته معاهدالمعاهد وائی، او دارنګې هغه خلق چه غیر جانبدار وی اونه تاسوسره جنګ کوی اونه خپل قوم سره جنګ کوی نو دا قسم خلق مه قید کوئ او مه ئی قتلوئ.

﴿أَوْ جَآءُوكُمْ حَصِرَتْ صُدُورُهُمْ﴾ ((حَصِرَتْ)) جمله حالیه ده په تقدیر د ((قد)) سره او په نزد دبعضې نحویانو تقدیر د ((قد)) ضروری ندې ((أَن يُقَاتِلُوا)) ذلته کښې ((من)) مقدر دې ((ای من ان یقاتلوکم)) او ((حصر)) انقباض، بندش اونفرت ته وائی، ددې نه غیرجانبداره خلق مراد دی چه تاسوسره جنګ ته هم نوی تیار اوخپل قوم سره هم جنګ ته نوی تیار، پدې کښې یوبل قول قرطبی ذکر کړې دې ((قالوا نسلم ولا نقاتل)) یعنی مراد هغه خلق دی چه اسلام راوړی اوشرط اولګوی چه مونږ به ستاسو په قتال کښې شرکت نه کوو یعنی د خپل قوم سره به د قومیت د وجه نه قتال نه کوؤ، نودوئ ته په اول د اسلام کښې اجازت وو اوبیا چه کله اسلام قوی شو نو دا حکم منسوخ شو ﴿وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ﴾ دا بیان د احسان دې په مومنانوباندې چه الله تعالی دکفارو په زړونو کښې ددوئ رعب اچولې دې او دکفارو رعب ئې ددوئ په زړونو کښې ندې اچولې نو دا دالله تعالی احسان دې، نو د ﴿لَسَلَّطَهُمْ﴾ نه مراد دادې چه دوئ به ئی زړه ور کړې وې

﴿فَإِنِ ٱعْتَزَلُوكُمْ﴾ دا تفصیل دې د ((الا الذین)) اوپدې کښې دوه شرطه دی اول اعتزال کول ددې کول اوځنګ کول ستاسو دقتال نه یعنی دخپلو ملګرو ملګرتیا پریږدی په وخت دقتال دهغوئ کښې لتاسوسره اودویم داچه ﴿وَأَلْقَوْا إِلَيْكُمُ ٱلسَّلَمَ﴾ د ((سلم)) معنی ده انقیاد او صلح، او په لفظ د ((القوا)) کښې اشاره ده اظهارته ددوئ دطرفه په شان دمحسوس یعنی دوئ طلب او درخواست دصلح وکړی ﴿فَمَا جَعَلَ ٱللَّهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيلًا﴾ ((ای علی اخذهم وقتلهم)) ﴿سَبِيلًا﴾ مراد دسبیل نه اجازت دې یعنی په دغه صورت کښې د دوئ د قید کولو او قتل کولو اجازت نشته دې او دا معنې ده ﴿إِلَّا ٱلَّذِينَ﴾ ده.

سَتَجِدُونَ | اٰخَرِيْنَ | يُرِيْدُوْنَ | اَنْ | يَّاْمَنُوْكُمْ | وَيَاْمَنُوْا

زرده چه اوبه مومی تاسو نورخلق(منافقین) اراده به لری دوئ چه په امن کښې وی دوئ ستاسونه اوپه امن کښې وی دوئ

قَوْمَهُمْ ۭ كُلَّمَا رُدُّوْٓا اِلَى الْفِتْنَةِ اُرْكِسُوْا فِيْهَا ۚ فَاِنْ لَّمْ

دقوم خپل نه هرکله چه دوی اوبللې شي فتنې ته نو نسکور پریوزی په هغې کښې، نوکه دوی ستاسو د ضرره

يَعْتَزِلُوْكُمْ وَيُلْقُوْٓا اِلَيْكُمُ السَّلَمَ وَيَكُفُّوْٓا اَيْدِيَهُمْ فَخُذُوْهُمْ

په څډه نشی اوپېش نه کړي تاسونه پیغام دصلح اوبندنه کړی لاسونه خپل دجنګ ستاسونه نو نیسئ دوی لره په قیدکولو سره

وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ ۭ وَاُولٰۗىِٕكُمْ جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ

اوقتلوئ دوی لره چه په کوم ځائې کښې ئې بیاموئ، اودغه کسان ګرزولې دي مونږ تاسولره په هغوئ باندې

سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ﴿۹۱﴾

حجت ښکاره

---

﴿ سَتَجِدُوْنَ اٰخَرِيْنَ ﴾ د وجدان نه مراد اطلاع اوخبریدل دی اودا ددریم فریق بیان دې ((دفع الوقتی)) چه صحابوته خپل ایمان ښکاره کوو، دپاره دحفاظت دخپل ځان او دمال او اولاد او دکافرانو سره ئې پټ رازونه ساتل او شرک ئې کولواودمسلمانانو سره جنګ ته تیاروو

﴿ يُرِيْدُوْنَ ﴾ یعنی نیت ئې صرف دخپل ځان بچ کول وی ﴿ كُلَّ مَا رُدُّوْٓا اِلَى الْفِتْنَةِ ﴾ د ((رد)) نه مراد دعوت اوبلنه اومتوجه کول دی اود ((فتنه)) نه مراد شرک کول یاقتال کول دی مؤمنانو سره یعنی کله چه دوئ اوبللې شی شرک ته نوشرک اوکفرکوی اوچه کله اوبللې شی جنګ کولو ته د مؤمنانوسره نوجنګ ته هم تیاروی ((ارکسوافیها)) نه مراد اوړیدل دی شرک ته یا اوړیدل دی دعهد نه ﴿ فَاِنْ لَّمْ يَعْتَزِلُوْكُمْ ﴾ ددې فرقې سره دقتال دپاره درې شرطونه بیانیږی اول داچه دوئ ستاسوسره دجنګ نه څډه ځنګ نه کوی اودویم داچه ﴿ وَيُلْقُوْٓا اِلَيْكُمُ السَّلَمَ ﴾ داعطف دې په ((يعتزلو)) باندې نو د ((لم)) دلاندې دې ((ای لم یلقوا)) چه طلب دصلح اونه کړی، دریم داچه ﴿ وَيَكُفُّوْٓا ﴾ دا هم د نفی ماتحت دې یعنی ستاسره دجنګ نه منع نه شی.

﴿ فَخُذُوْهُمْ ﴾ نو قید کوئ ئی ﴿ وَاقْتُلُوْهُمْ ﴾ او قتلوئ ئی ﴿ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ ﴾ هر چرته چه ستاسولاس وربانديې بر شی ﴿ وَاُولٰۗىِٕكُمْ ﴾ په اسم شاره ذکرکولوسره اشاره ده دیته چه دا قسم خلق ممتازدی دنورونه په علاماتودهغوئ سره ﴿ عَلَيْهِمْ ﴾ ((ای علی اخذهم وقتلهم))

﴿ سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ﴾ حجت ظاهر په استحقاق دقیداوقتل دهغه خلقو

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ اَنْ يَّقْتُلَ مُؤْمِنًا اِلَّا خَطَـًٔا ۚ وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا

اونه[۱] دي جائز هيڅ يو مسلمان دپاره دا چه قتل کړی مومن لره مگر په غلطئ سره. اوڅوک چه قتل کړي مومن لره

خَطَـًٔا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَّدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ اِلٰٓى اَهْلِهٖٓ اِلَّآ

په غلطئ سره پس[۲] لازم دي په ده باندې آزادول دمرئی مومن اودیت سپارلې شوې وارثانو دمقتول ته مگر

اَنْ يَّصَّدَّقُوْا ؕ فَاِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ

داکه هغوئ ئی معاف کړي، نوکه[۳] وی مقتول دداسې قوم نه چه دښمنان ستاسو وی اودې یعنی مقتول پخپله مومن وی

فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ؕ وَاِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ

نوپه قاتل باندې آزادول دمرئ مومن دی او[۴]کچرې وی مقتول دداسې قوم نه چه په مینځ ستاسواودهغوئ کښې

مِّيْثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ اِلٰٓى اَهْلِهٖ وَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ۚ فَمَنْ

پخه وعده وی نو لازم دې دیت سپارلې شوې وارثانو دهغه ته او آزادول دمرئ مومن دی، نوپس څوک

لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً

چه نه مومی مرئی مومن نوپه هغه باندې روژې دی دوه میاشتې پرله پسې، دامقرر دی په طریقه دتوبې سره

مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ۝

دطرفه دالله نه، اودې الله پوهه حکمتونو والا.

﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ اَنْ يَّقْتُلَ مُؤْمِنًا﴾ **داپنځم حکم دې** داحکاموسلطانیونه، ددې حاصل دادې چه بیشکه کافران اومنافقان چه باهر دمدینې نه دی نوهغوئ قتلوئ لیکن دا خیال کوئ

---

۱ - پنځم حکم منافقان کافران بېشکه پهٔ لاره کښې قتلوئ لیکن خیال ساتئ چه چرته ستاسودلاسونوئ مسلمان قتل نشي عمداً، اوکه خطاءً قتل شی نودهغې حکم واوړئ.

۲ - دقتل خطاء اول صورت اودهغې حکم.

۳ - دویم صورت اودهغې حکم.

۴ - دریم صورت (دذمی یا کافر معاهده) اودهغې حکم.

چه چرته یومسلمان عمداً قتل نه کړئ البته که خطاءً قتل درنه صادر شونو دهغې حکم واوری. ((ماکان)) دلته ذکر دنفی دې اومرادترینه نهی ده، نهی ئی په صورة دنفی کښې راؤړله دمبالغه فی الحکم دپاره یعنې په اسلام کښې ددې خبرې هیڅ وجود او تصورنشته چه یومؤمن بل مؤمن لره عمداً قتل کړی. البته که چرې خطاءً قتل ترینه صادر شی نوحکم ئې دلته ذکرکیږی او مراد ددې آیت نه ((**وماکا ن لمؤمن ان یقتل مؤمنا**)) دادې چه دمؤمن قتل بغیر دشرعی اجازت نه جائز ندې او که شرعی اجازت وی لکه قتل قصاصاً نو دا قتل ابتداءً ندې او دارنگه قتل حداً هم قتل ابتداءً بغیر د شرعی اجازت نه ندې ﴿إِلَّا خَطَـًٔا﴾ دا استثناء منقطع ده یعنی که قتل خطا اوشو نوحکم ئې دا مذکوردې نو ﴿إِلَّا خَطَـًٔا﴾ مطلب دا ندې چه قتل خطا جائز او مشروع دې ځکه خطاء غیر اختیاری څیز وی اوپه غیراختیاری سره انسان مکلف نه وی، نه دفعل اونه دترک نوهغې ته مشروع اویاغیرمشروع نشی ویلې زمخشری وائی چه ((**وماکان لمؤمن ان یقتل مؤمنا**)) دا اخبار دې او ((**الا خطاء**)) استثناء مفرغه ده معنی دا شوه چه لائق ندی دشان دمؤمن سره چه قتل کړی یومؤمن لره په هیڅ علت او وجه سره مگر په علت او په وجه دخطاء سره یا په هیڅ حال کښې داحولونه مگر په حال دخطاء کښې.

**قتل خطا په دوه قسمه دې** : یوخطاء فی الظن دې چه په یومسلمان باندې دا گمان وکړی چه دا کافرحربی دې اویا ښکار دې او یا سبُع دې اوقتل ئې کړی. او**دویم خطاء فی الفعل** دې چه دښکار په نیت یا دنشان په نیت غشې روان کړی اوهغه غشې په دغه ښکار یا نشان باندې ونه لگی او لاړشی او په یومسلمان باندې اولگی اوهغه مړشی ﴿فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ﴾ **دقتل خطاحکم** دادې چه پدې کښې قصاص نشته دې بلکه پدې کښې کفاره او دیت په عاقله باندې شته دې چه هغه کفاره غلام آزادول دی داسې غلام یا وینزه چه هغه مؤمن وی ځکه غلامی اورقیة موت حکمی دې نوچه کله مؤمن غلام یا وینزه آزادکړی نو دا احیاء حکمی شوه نوگویا که چه یومؤمن ئی مړکړو اوبل ئې ژوندې کړو او دیت سل اوښان دی یائی قیمت یا زراشرفئ دی یالس زره دراهم دی، یعنی دسپینو زرو دراهم مراد دی.

﴿وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦٓ﴾ دیت عوض د وینې دمقتول دې او دا حق د وارثانو دې نو دا به وارثانو ته په قدر د حصو د میراث سره ورکولې شی ((**مسلمة**)) معنی ده اداء کړې شوې، ورکړې شوې ((**اهله**)) نه مراد وارثان دی، ﴿إِلَّآ أَن يَصَّدَّقُوا۟﴾ مگر که ورثه مقتول معاف

کړی تو ل دیت یابعضې دیت نو په دغه مقدارسره به معاف شی ځکه دا ددوئ حق دې نودوئ دمعافئ اختیارلری ﴿ فَإِن كَانَ ﴾ ضمیر دَ کان راجع دې مقتول ته په قتل خطاء سره ﴿مِن قَوۡمٍ عَدُوٍّ لَّكُمۡ وَهُوَ مُؤۡمِنٞ ﴾ عَدوٌ په معنی داعداء سره دې نو دآیت معنی داده که مقتول پخپله مؤمن وو خو په دارحرب کښې اوسیدلو اوهجرت ئې نه ووکړې نوددې قسم قتل حکم دادې چه پدې کښې دیت نشته دې اوکفاره یعنی تحریر رقبة مؤمنة شته دې، عصمت د دم په دوو وجوهو سره رازی ایمان او دارالاسلام، پدې کښې یوقسم عصمت چه ایمان دې هغه شته دې نوددې وجه نه کفاره شته دې اوبل قسم یعنې دارالاسلام نشته دې نوددې وجه نه دیت نشته دې برابره خبره ده چه ورثه د ده چه په دار حرب کښې مسلمانان وی اویا کافروی، حکمددیت په شان دحکم دتوارث دې نوځنګه چه اختلا ف ددین اود دارمانع دمیراث دې نودغه شان حکم د دیت دې ﴿ وَإِن كَانَ مِن قَوۡمِۭ بَيۡنَكُمۡ وَبَيۡنَهُم مِّيثَٰقٞ فَدِيَةٞ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰٓ أَهۡلِهِۦ وَتَحۡرِيرُ رَقَبَةٖ مُّؤۡمِنَةٖ ﴾ دلته دوه قوله دی : **اول** داچه ددینه مراد هغه مؤمن دې چه په کافرانو معاهدینو کښې اوسیږی او دَمسلمان دلاسه خطاء قتل شی، دا قول دحسن او ابراهیم نخعی دې، اوشاه ولی الله رحمه الله دیته راجح ویلی دی، علامه روح المعانی وائی چه دَ دې قول په بناء باندې ((الی اهله)) نه مراد هغه وارثان دی چه مسلمانان وی ځکه کافر دمسلمان نه وارث نشی جوړیدلې لیکن علا مه قرطبی وائی چه د ده دیت کافرانو وارثانو ته د معاهدې دوجه نه ورکولې شی . **دویم قول** دادې چه ددې نه مراد مؤمن ندې بلکه کافرمعاهد ذمی مراد دې یعنې ضمیر د ((**وان کان**)) ذمی معاهد ته راجع دې ځکه دلته قید د ((وهومؤمن)) نشته دې نوکافر ذمی معاهدته دعهد دوجه نه دیت ورکولې شی، البته دذمی په دیت کښې اختلا ف دې چه آیا پوره دیت دې اوکه نیم دیت دمؤمن دې نو دمدارک.وغیره حضراتو مفسرینورایه داده چه دیت د ذمی په شان ددیت دمسلما ن دې ځکه الله تعالی په دواړو کښې یعنی په قتل دمؤمن اود ذمی کښې کفاره او دیت ذکرکړی دی نولکه څرنګه چه په دواړو کښې کفاره یوشان ته ده نو واجبه ده چه دیت دې هم یوشان وی، او د ترمذی په روایت کښې دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ((عَامِرِيَيْنِ)) دیت ورکړې وو په شان د دیت دمسلمینو او په یو بل روایت کښې دی چه ((دمائهم کدمائنا)) امام احمد ، امام شافعی، امام مالک رحمهم الله وائی چه دیت دمعاهد یهودی په نصف ددیت دمسلم دې .

﴿ فَمَن لَّمْ يَجِدْ ﴾ مفعول د ((لم يجد)) دپاره مقدردي ((اى فمن لم يجدالرقبة)) يعني چاته چه د آزادولو دپاره غلام ملاؤ نه شو نو بيادي پرله پسي (پې درپې) روژې اونيسى، **فقهاؤ تصريح** کړې ده چه دزنانه دحيض اويا دنفاس په وجه تتابع ته نقصان نه رسيږي.

﴿ تَوْبَةً مِّنَ اللَّهِ ﴾ داخبر د ((كان)) دپاره دي ((اى فكان توبة))، **يامفعول له دفعل مقدره دي** ((اى شرع ذلک توبةً اى لا جل التوبة))

**فائده** اقسام دقتل اواحکام ئې په نزد د احنافو دا مذکور دي (۱) **قتل عمد** ((وهوالقتل بالمحددالمقطع كالسيف والسكين وغيرهما وحكمه الاثم والقصاص اوالدية)) (۲) **شبه العمد** ((وهوالقتل بماسوى ذلک مما لا يقتل به غالبا کالعصى وحكمه الاثم والدية على عاقلته)) (۳) **قتل خطاء** ((وهوعلى قسمين خطاء فى الفعل وخطاء فى الا عتقاد كمامر)) (۴) **جارمجرى الخطاء** ((كَانْ يُنقلب على اخر فى النوم فيقتله وفيهماالاثم لا جل ترک الاحتياط والكفارة والدية على عاقلته)) (۵) **قتل بسبب** ((كحفرالبير فى ملک الغير بغيراذنه فيقع فيه شخص فيموت وحكمه الدية على على العاقلة دون الكفارة)) په قتل عمد اوشبه عمد کښې ديت مغلظه دي او په نورو کښې ديت مخففه دي هرکله چه ديت د اوښانو وى نو بيا په کښې مغلظه اومخففه راتلې شى اوکله چه ددراهمو او دنانيرو وى نوبيا په کښې تقسيم نشته نو ديت مخففه بالاتفاق د اوښانو دادي چه پنځه قسمه به ورکولې شى په دې کلونو کښې هغه دادي (۱) شل ابن مخاض (۲) شل بنت مخاض (۳) شل بنت لبون (۴) شل حقي (۵) شل جذعي
اوديت مغلظه په نزد امام شافعى اوامام محمد دادي: چه درې قسمونه به ورکړې شى (۱) - ۳۰ حقه (۲) - ۳۰ جذعه (۳) - ۴۰ مُسِنّة حوامل، او په نزد امام ابوحنيفه رحمه الله دا څلور قسمونه دى (۱) - ۲۵ بنت مخاض (۲) - ۲۵ بنت لبون (۳) - ۲۵ حقه (۴) - ۲۵ جذعه اوديت ددنانيرو زر ديناره دي اود دراهمو په نيزد د احنافو لس زره درهمه دي او په نزد دامام شافعى رحمه الله باندې دولس زره درهمه دي.

| وَمَنْ يَّقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهٗ جَهَنَّمُ خٰلِدًا فِيْهَا وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ |
|---|
| اوخوک چه قتل کړي مومن لره په قصدسره نو سزاده دهغه جهنم دي همېشه به وى په هغې کښې اوالله غضب کړي دي |
| وَ لَعَنَهٗ وَ اَعَدَّلَهٗ عَذَابًا عَظِيْمًا ۝ |
| په هغه باندې اولعنت يې کړېدې په هغه اوتيار کړې دي هغه لره عذاب لوئې |

﴿ وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا ﴾ دا وعيددې په ارتکاب دقتل عمد باندې. پدې کښې څلورامورمذکور دی **اول** داچه جزاء يی جهنم دې هميشه به پکښې وی. **دويم** داچه دالله غضب دې پده باندې، **دريم** داچه دالله تعالی لعنت دې پده باندې يعنی درحمت خاصه نه به لرې اومحرومه وی، **اوڅلورم** داچه ده لره ئی عذاب عظيم تيارکړې دې نو ددې نه دامعلومه شوه چه قتل دمؤمن عمداً په ګناهونوکښې ډيره لويه ګناه ده. روح المعانی په روايت دبيهقی اوابن عدی سره دحضرت ابن عمر رضی الله عنه نه نقل کوی. ((قال قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :من اعان علی دم امرئ مسلم بشرط کلمة كُتِبَ بين عينيه يوم القيامة آئس من رحمة الله)) .

**ترجمه** چاچه تعاون اوکړلو دبل سره په تويولو دوينې دمسلمان باندې اګرکه په نيمه کلمه سره وی نو دقيامت په ورز به دده د دواړوسترګو په منځ کښې ليکلی وی چه ته دالله تعالی درحمت نه نا اُميده شه، او په يوبل روايت کښې دبر اء بن عازب رضی الله عنه نه روايت دې چه : ((قال النبي ﷺ لزوال الدنيا اهون عندالله من قتل مؤمن ولوان اهل السموات واهل الارض اشترکوا في دم مؤمن لا دخلهم الله تعالی النار))

**ترجمه** خامخا زوال او ورانيدل د دنيا اوهر هغه څه چه پدې کښې دی ( لکه مساجد مدارس وغيره ) دا دالله تعالی په نزد معمولی دی د قتل دمؤمن نه (دمؤمن قتل زيات جرم دې د دنيا اوما فيها خرابولونه ) اوکه چرته ټول دآسمانونووالا مخلوقات او د ځمکې والا مخلوقات ديومؤمن په قتل کښې شريک شی ( په ناحقه ) نو دوئ به ټول الله تعالی اورته داخل کړی، او په بل روايت کښې دې چه که چرې ثقلين ( جن اوانس ) ديومؤمن په قتل باندې راجمعه شی نوالله تعالی به دوئ ټول جهنم ته نسکور واچوی، الله تعالی جنت حرام کړې دې په قاتل او آمر باندې نو ددې قسمه احاديثواو رواياتونه استدلال کړې دې خوارجو او معتزلو چه قاتل د مؤمن په ناحقه به په جهنم کښې هميشه وی او دغه سې قول ابن عباس رضی الله عنه نه مروی دې چه دقاتل به توبه نه قبليږی اودې به هميشه هميشه په جهنم کښې وی او دجمهوروسلفو او د اهل سنت والجماعت مذهب دادې چه دقاتل توبه قبليږی او استدلال ددوئ د آياتونو دعموماتونه دې لکه ﴿ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ ﴾ څکه قتل عمداً او دارنګه هره ګناه کبيره غير دې دشرک نه نومغفرت ئې ممکن دې شرعًا، دارنګې داقول دالله تعالی ﴿ وَهُوَ الَّذِي يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِ ﴾ [حم شوری : (٢٥)] او دارنګې دوئ استدلا ل کوی په هغه احاديثوسره

چه منجمله د هغې نه روایت دصحیحنو دې. او مفهوم ئې دادې چه یو کس دمخکښې اُمتونو نه (دبنی اسرائیلو نه) سل قتلونه کړې وو او بیائې هم مغفرت شوې وو په توبې سره اوهرکله چه شرائع من قبلنا په قرآن اوحدیث کښې نقل شی په غیر د رد نه نو په هغې باندې حجت کیدې شی نو هرکله چه دبنی اسرائیلو قاتل ته په توبې سره معافی کیدې شی نو دې اُمت ته په طریق اولی کیدې شی که دالله تعالی خوښه شی. په صحیحینو کښې دعباده بن صامت رضی الله عنه حدیث دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دوئ ته اوفرمائیل ((تبایعونی علی ان لا تشرکوا ـــ الخ)) یعنی تاسو ما سره پدې باندې بیعت اوکړئ چه شرک به نه کوئ او زنا به نه کوئ اوسرقه به نه کوئ اوقتل دنفس په ناحقه به نه کوئ نو چاچه وفا اوکړه پدې باندې نو اجر ئې په الله باندې دې اوکه دچانه پدې کښې څه گناه اوشې اوسزا ورته ورکړې شی نو هغه ورله کفاره ده. او دچا نه چه په دغه امورو کښې څه گناه وشوه او الله تعالی په هغه پرده واچوله نو امر ئې الله تعالی ته حواله دې که وغواړی نوعفوه به ورته وکړی اوکه وغواړی نو عذاب به ورله ورکړی. نو پدې حدیث کښې ((ان شاء عفیٰ عنه)) راغلی دې روستودسرقې اوقتل بغیر حقٍ اود زنانه نو معلومه شوه چه دقاتل په قتل عمد سره معافی ممکنه ده اود آیت نه جواب په ډیرو وجوهو سره دې بعضې حضرات وائی چه دا محمول دې په مستحل باندې که څوک قتل دمؤمن حلال اوگڼری نودې به همیشه په جهنم کښې وی ځکه چه حلال گڼړل قتل دمؤمن لره داکفر دې نود کفر په وجه به همیشه وی په جهنم کښې،اوبعضې وائی چه ددې مطلب دادې چه که چرې الله تعالی پوره جزاورکوی نوهمیشه دپاره ئې جهنم سزاده. لیکن په سبب د توبې او په فضل خپل سره دا سزانه ورکوی یعنی پدې آیت کښې صرف استحقاق دجزاذکر دې اوجزا ورکول داموقوف دی په مشیت پورې، اوبعضې وائی چه خلود نه مراد مکث طو یل دې په جهنم کښې یعنی ډیره زمانه به په جهنم کښې وی ، ځکه چه په نیزد د اهل سنت والجماعت باندې خلود مکث طویل ته وائی ، قاضی بیضاوی په تفسیر د سورة بقره کښې د خلود معنی داسې لیکی ((الخلد والخلود فی الاصل الثبات المدید ، دام او لم یدم)) اوهرچه دې قول دابن عباس رضی الله عنه چه د قاتل توبه نه قبلیږی، دې به همیشه په جهنم کښې وی نو دا په تغلیظ اوزجر باندې محمول دې، صاحب د روح المعانی وغیره نقل کړی دی چه ابن عباس رضی الله عنه به ویل چه د قاتل توبه قبلیږی نو یوکس ورته راغې اوتپوس ئې اوکړلو چه آیا دقاتل دپاره توبه شته؟ ((قال الا النار)) نو ده ا وئیل چه قاتل دپاره هیڅ نشته سوی د اورنه نومجلس

والوخلقوورته اوئیل چه اي ابن عباس تاخو مونږته داسې فتوی راکوله چه دقاتل توبه شته دي او دې سائل ته دي اوئیل چه نشته دې، نوابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل چه د اسائل په غصه کښې ووا وده اراده وه دقتل «نوماورته ځکه دغه شان فتوی ورکړله چه منع شی دقتل نه» نوهرکله چه دغه مجلس والاؤ تحقیق اوکړلو نو صورت حال هم دغسې وو. سفیان رحمه الله وائی چه سلف اهل علم داسې ووچه چا ترینه دقاتل په باره کښې تپوس اوکړلو نودوئ به ورته ویل چه دقاتل توبه نه قبلیږی او بیا به چه څوک پدې ګناه کښې مبتلا شو نو هغه ته به ئې دتوبې حکم کولو

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا ضَرَبۡتُمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ فَتَبَيَّنُواْ وَلَا تَقُولُواْ لِمَنۡ أَلۡقَىٰٓ |
|---|
| اي ایمان والو! کله چه تاسو سفرکوئ په لار دالله کښې نو تحقیق کوئ اومه وایئ هغه چاته چه پیش کړی |
| إِلَيۡكُمُ ٱلسَّلَٰمَ لَسۡتَ مُؤۡمِنٗا تَبۡتَغُونَ عَرَضَ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا فَعِندَ ٱللَّهِ مَغَانِمُ كَثِيرَةٞۚ |
| تاسوته سلام چه نه ئې ته مومن، غواړئ تاسو سامان دژونددنیا پس الله سره غنیمتونه ډیر دی. |
| كَذَٰلِكَ كُنتُم مِّن قَبۡلُ فَمَنَّ ٱللَّهُ عَلَيۡكُمۡ فَتَبَيَّنُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِمَا |
| دغسې وئ تاسو مخکښې نواحسان اوکړو الله په تاسوباندې، پس تحقیق کوئ، بېشکه الله په هغه عملونو |
| تَعۡمَلُونَ خَبِيرٗا ۝ |
| چه تاسوئې کوئ خبردار دې. |

**﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا ضَرَبۡتُمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ دا شپږم حکم دې په احکامو سلطا نیو کښې** خلاصه ئې داده چه هر کله تاسودجهاد دپاره په سفرلا رشئ اوڅوک تاسوته دخپل اسلام والی اظهار اوکړی نو په هغه بدګمانی مه کوئ اوبلا تحقیقه ئې مه قتلوئ د دنیا دلا لچ دپاره

په روایت دترمذی وغیره کښې دی چه صحابه کرام جهاد دپاره تلی وو نو پدوئ باندې دبنی سُلیم قبیلې یو سړې تیر شو او ده سره بیزې وې اوسلام ئې اوکړلو صحابوته نوصحابو

[1] شپږم حکم . یعني چه جهادته ځئ او پهٔ لار کښې تاسو سره داسې څوک ملاؤشي چه داسلام دعوي کوي نو بې تحقیقه هغه مه قتلوئ دمال دغنیمت دپاره .

اوئيل چه ده دخپل ځان اودمال دحفاظت دوجه نه سلام اوکړلو او خپل اسلام ظاهروي نوده لږ، ئې قتل کړلو او دهغه بيزې ئې راوستلې نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته . نودا آيت نازل شو او حکم اوشو چه تاسو بلا تحقيقه څوک مه قتلوئ اوکه څوک سلام اوائي نودا ورته مه وائې چه ته مسلمان نه يئ د ((السلام)) نه مراد ((السلام عليکم)) دې يا ترينه مراد انقياد او استسلام دې لکه په بعضې رواياتو دشان نزول کښې دی چه هغه سړی کلمه دشهادت اوئيله ( **اشهد ان لا اله الا الله** ) او نه يوبل روايت کښې دی چه هغه اوئيل چه زه تسليم يم.

﴿ تَبْتَغُونَ عَرَضَ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا ﴾ يعنی د دنيا او دمال دلالچ په وجه داسې کارمه کوئ. د ((عرض)) نه مراد مال دغنيمت دې او په لفظ دعرض سره تعبيراوشو اشاره ده دې خبرې ته چه ددنيا ټول څيزونه عرضي دی، دوام اوبقانه لری ﴿ فَعِنْدَ اللّٰهِ مَغَانِمُ كَثِيرَةٌ ﴾ دا دالله تعالى وعده ده مجاهدينوسره چه دوئ ته به حلا ل او غير مشکوک مال اوغنيمتونه ورکړی. ﴿ كَذٰلِكَ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلُ ﴾ دغه سې خوتاسوهم وئ چه دخوف دوجه نه به مو ايمان پټ ساتلو په شان ددغه مقتول سړی، نوالله تعالى احسان اوکړلو په تاسوباندې چه عزت اوقوت ئې درکړلو حتی چه تاسو خپل ايمان ښکاره کړلو. يا داچه په ابتداء داسلام کښې تاسونه هم صرف کلمه اسلام قبوله شوې وه اوروستوالله تعالى احسان اوکړلواوتاسوئې په اسلام باندې محکم اوثابت کړئ ﴿ فَتَبَيَّنُوٓا ﴾ دا تاکيد دحکم دې.

| لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجٰهِدُونَ |
|---|
| برابرندی[۱] ناست کسان(دجهادنه) دمومنانونه چه دهغوئ څه عذرنه وی اوهغه مسلمانان چه جهاد کونکی وی |
| فِي سَبِيلِ اللّٰهِ بِأَمْوٰلِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ ۚ فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِينَ |
| په لار دالله کښې په مالونوخپلوسره اوځانونو خپلو سره، غوره والې ورکړې دې الله جهادکونکو ته |
| بِأَمْوٰلِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقٰعِدِينَ دَرَجَةً ۚ وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ |
| په مالونوخپلو سره اوځانونو خپلو سره په ناستو کسانو باندې په درجه کښې، او دهريوسره وعده کړېده الله |

۱ - ترغيب الى الجهاد او بشارت مجاهدينوته

الْحُسْنٰى ؕ وَفَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿ۙ﴾ دَرَجٰتٍ

د ښـه جنت، او غوره والي ورکړېدي الله جهاد کونکولره په ناستوکسانو په ثواب لوئي سره　　ډېرې درجې

مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَّرَحْمَةً ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۹۶﴾

دطرفه دالله نه اوبخښنه کول او خاص رحم ، او دې الله　بخښونکې او رحم کونکې

﴿لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ﴾ دا ترغيب الى الجهاد دې او دمجاهدينو دپاره بشارت اخروى دې مراد دقاعدينو نه هغه خلق دى چه جهاد ته نوى تللى اوحضرت ابن عباس رضى الله عنه فرمائى　مطلب دادې چه څوک جنګ بدر ته ندى تللى اوڅوک چه تللى دى نو دوئ په مرتبه کښې برابر ندى ځکه دبدرييانوصحابؤ مرتبه ډيره لويه ده .

﴿غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ﴾ ((غير)) په رفع سره دې اوبدل دې د ((قاعدون)) نه او يا صفت دې چونکه د ((القاعدون)) نه مراد جنس دې نو دا په حکم دنکره کښې دې نو غيرُ په اضافت سره معرفه نه ګرځى، صفت دقاعدون دپاره صحيح دې او په يوقرء ت کښې ((غير)) په جر سره صفت دې د ((المؤمنين)) دپاره، يا ترينه بدل دې اومراد دَ ((ضرر)) نه هغه عذرونه دى چه د هغې په وجه جهاد ته نشى تللې لکه ړوند دې اوګوډ دې يا ورسره مال نه وى وغيره، په روايت دبخارى کښې دى هرکله چه دا آيت نازل شو

﴿لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ﴾ نورسول الله　اوفرمائيل چه کاتب راته راوبلئ يعنى زيدبن ثابت رضى الله عنه چه دا آيت اوليکى نوهغه راغې او دوات او لوح کَتِف ورسره وو نونبى کريم صلى الله عليه وسلم　ورته دليکلوحکم اوکړلو او عبدالله بن مکتوم دغه ځائې کښې روستو ناست وو او راغې اوشکايت ئې اوکړلودخپل ضرارت (ړوندوالى ) نوده اويل چه يارسول الله که چرې ماطاقت لرلې دجهاد نوزه به تلې وې جهادلره نوپدغه ځائې کښې ورسره دا نازل شو

((غيراولي الضرر)) نودينه دامعلوميږى چه څوک دجهاد شوق لرى او دجهاد نه پاتې شو دعذر دوجه نه نودې مجاهدينوسره برابر شريک دې په ثواب اواجرکښې، لکه په يوحديث دبخارى کښې دى چه دغزوه تبوک نه په واپسئ کښې نبى کريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه په مدينې کښې داسې خلق دى چه تاسو په کوم ځائې کښې تيريدل کړى دى يا په کومو بيابانونو يا وادى موقطع کړى وې نوهغه خلق د تاسو سره په اجر کښې شريک دى .

صحابه کرامو سوال وکړو چه هغوئ په مدینه کښې دی او بیا هم زمونږ سره په اجر کښې شریك دی. نونبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل هو ! دوئ په مدینې کښې دی خو عذر بند کړی وو

﴿ فَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَٰهِدِينَ ﴾ داد ((لایستوي)) بیان دي ﴿ دَرَجَةً ﴾ منصوب بنزع الحافض دي ((ای فی الدرجة)) یا ((درجة)) په معنی دفضیلةً سره دي نو دا مفعول مطلق دي د فَضَّلَ دپاره ﴿وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَىٰ ﴾ ((کلاً)) مفعول اول دي د ((وَعَدَ)) دپاره او ((الحسنی)) ورلره مفعول ثاني دي اومراد د ((کلاً)) نه ((کلا من المجاهدین والقاعدین)) دی یعني دجنت وعده هرمؤمن سره ده اگرکه جهاد لره لاړ نشی لیکن درجه ئې کمه اوناقصه ده او دمجاهدینو درجه ډیره لویه اوکامله ده ددې وجه نه دوباره ذکرشو چه ﴿وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَٰهِدِينَ ﴾ او د ﴿أَجْرًا عَظِيمًا ﴾ ذکر هم وشو. او د ﴿ دَرَجَٰتٍ ﴾ ذکر په صیغه دجمع سره وشواوبیا ورسره ﴿وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً ﴾ ذکرشو دپاره ددې چه اشاره شی کمال درجې دمجاهدینوته. دمجاهدینو د بشارة دپاره اول ئې ((دَرَجَةً)) ذکرکړې وو او ثانیا ئې ((دَرَجَٰتٍ)) ذکرکړلو نوبعضې مفسرین وائې چه دا دویم د اول دپاره تفسیر دې ځکه اول وار ((دَرَجَةً)) نکره مبهمه وه نو دویم ځل ئې دهغې تفسیر اوتفصیل اوشو او په دواړو ځایونوکښې مفضل اومفضل علیه یوشې دی خو اول ابهام اودویم تفصیل دې او دا ډیر ألطف وی، اوبعضې وائې چه په اول ځائې کښې دنیوی فضیلت ذکردې یعنی فتح، غنیمت ، ذکرجمیل او په دویم ځائې کښې دأخروی فضیلت ذکردې او دا ډیر زیات دې نوځکه صیغه دجمع ذکرشوه، اوبعضې وائې چه په اول کښې تفضیل په هغه چامراد دې چه دجهاد نه پاتې شوې وی دعذر د وجه نه او په دویم ځائې کښې تفضیل په هغه چا مراد دې چه بلا عذره دجهاد نه پاتې شوې وی او په داسې قسم خلقو باندې دمجاهدینو فضیلت زیات دې په نسبت سره اول قسم ته ،نوځکه دلته صیغه دجمع ذکرشوه، اوبعض وائې چه ددویم نه مراد هغه خلق دی چه جهاد مع النفس کوی، ددوئ فضل اواجر زیات دې په دلیل د دې حدیث سره ((رجعنامن الجهادالاصغرالی الجهاد الاکبر)) صاحب د روح المعانی وائی دا توجیه ضعیفه ده. والحدیث لا اصل له کما قال المحدثون.

او ((درجات، مغفرةً ، رحمةً)) منصوب دی بدل د ((اجراً)) نه یا و رلره فعل ناصب مقدردې

((ای اعطاهم درجة ومغفرة ورحمة)) او په حدیث پاک کښې دی چه په جنت کښې سل درجات دی اود هرې درجې نه بلې درجې پورې دومره فاصله ده څومره چه د زمکې نه تر آسمان پورې ده

إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي

بیشکه هغه کسان (1) چه فرښتې دهغوئ روح قبض کوی پداسې حال کښې چه دوئ ظلم کونکی وی

أَنْفُسِهِمْ قَالُوا فِيمَ كُنْتُمْ ۖ قَالُوا كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الْأَرْضِ ۚ

پخپل ځانونو (په ترک دهجرت) وائی ورته دوئ په څه کښې وئ تاسو(2) دوئ وائی چه وو مونږ کمزوری په زمکه کښې

قَالُوا أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوا فِيهَا ۚ فَأُولَٰئِكَ

وائي به ورته ملائک آیا نه وه زمکه دالله فراخه چه هجرت کړې وې تاسو په هغې کښې، نودغه کسان

مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَسَاءَتْ مَصِيرًا ﴿٩٧﴾

ځائې ددوئ جهنم دې، او ډېر بدځائې دګرځېدلودې داجهنم.

﴿إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ﴾ **دا اووم حکم سلطانې دې**: پدې کښې محصور مسلمانانوته حکم دې اودارنګې داسې مسلمانانوته چه په دارحرب کښې وی نوهغوئ ته حکم دې چه تاسوهجرت اوکړئ ځکه په تاسوباندې هجرت کول فرض دی او د ستاسو دنصرت دپاره اګرکه مجاهدین درلیګلې شی لیکن که تاسو سره له قدرت نه هجرت نکوئ نو

دا ستاسو ظلم دې د ﴿ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ﴾ نه مراد ترک دهجرت دې سره دقدرت نه. اوقیام په دارحرب کښې، اوملګرتیا دکفارو سره په جنګ کښې، اوتکثیر دسواد دهغوئ سره داظهار د د ایمان نه، اومراد دملائکونه ملک الموت دې اود هغه اعوان دی او ((**توفی**)) صیغه یا دفعل ماضی ده او یا صیغه دفعل مضارع ده په اصل کښې ((تتوفی)) وو یوه (تا) تخفیفا حذف

---

1 - اووم حکم کوم خلق چه کافرانو سره قبد دی نو که دوئ دهجرت قدرت لري او هجرت نه کوي نو داظلم دې یعني دوئ دې هجرت اوکړي هجرت په دوئ فرض دې.

2 - ددې جواب مقدر دې ((اي كنا في الاسلام)) قالوا كنا جواب دسوال مقدر دې چه ((فماذاعملكم)) یا ((لِمَ تعلموا)) قالوا.

شويده اومراد د((توفی))نه قبض د ارواحودي، يعنی حالت دنزع اوزنکدن مراددي نو په داسې خلقوباندې چه هجرت فرض وی او سره دقدرت نه هجرت نه کوی نوفرشتې به ورته په حالت دقبض دروح کنبې وائي ﴿فِيمَ كُنتُمْ﴾ چه په کوم دين کنبې وئ تاسو ؟ دا سوال د توبيخ دپاره دي اوددې سوال دپاره جواب مقدردې چه ((قالواكنافى الاسلام)) يعنې مونږخو مسلمانان وو

﴿قَالُوا كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الْأَرْضِ﴾ دا جواب دي دسوال مقدره دفرشتونه اوهغه سوال مقدر دادې چه ((فماذاعملكم؟)) چه تاسوڅه عملونه کړيدی نوهغه اوښايئ؟ نو دوئ به جواب ورکوی اوعذربه بيانوی چه ((كنامستضعفين)) يعنی مونږکمزوری اومغلوب وو په مونځ اوحج وغيره دشعائر داسلام باندې قادرنه وو، نوفرشتې به ورته وائې چه بيا تاسو هجرت ولې نه کولو ﴿أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةً﴾ دالله تعالی زمکه خوتنګه نه وه ((ملک خداتنګ نيست پائ ګدا لنګ نيست)) قرطبی وائي ((يفيدهذاالسوال انهم ماتوامسلمين ظالمين)) يعنی دا موت د دوئ به حالت د کفر نه دې. ورنه دوئ ته به ئی په ترک د هجرت توبيخ نه ورکولو بلکه په کفراوشرک سره به ئي توبيخ ورکوولکه چه څرنګه مشرکينوته توبيخ په کفراوشرک سره ورکولې کيږی لکه ﴿حَتَّىٰ إِذَا جَاءَتْهُمْ رُسُلُنَا يَتَوَفَّوْنَهُمْ قَالُوا أَيْنَ مَا كُنتُمْ تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ سورة اعراف ، آية : (۳۷)

﴿فَأُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ﴾ دا تخويف دي په ترک دهجرت باندې اودلته تابيد او ددوام ذکر نشته دي ځکه چه دوئ کافران نه وو او دليل ئې دادې چه د مؤمن مسلمان دپاره سزاجهنم دې که الله ورته معافی اونه کړي.

إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ لَا يَسْتَطِيعُونَ حِيلَةً وَلَا يَهْتَدُونَ

مګر کمزوري (۱) دسړونه(بوډګان)اوزنانه اوبچي طاقت نه لری دحيلې دوتلو او نه پيژنی

سَبِيلًا ﴿٩٨﴾ فَأُولَٰئِكَ عَسَى اللَّهُ أَنْ يَعْفُوَ عَنْهُمْ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَفُوًّا غَفُورًا ﴿٩٩﴾

لار(دهجرت کولو) نودغه کسان قريبه ده چه الله معافی اوکړی دوئ ته، اودې الله معافی کونکې بخښونکې

۱ - يعنی معذورين مستثنی دی.

| |
|---|
| وَمَنْ يُهَاجِرْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرٰغَمًا كَثِيْرًا وَّسَعَةً ؕ |
| اوچاچه `هجرت اوکړو په لاردالله کښې اوبه مومي په زمکه کښې خايونه داوسيدلو(دهجرت) دپراوفراخي درزق |
| وَمَنْ يَّخْرُجْ مِنْۢ بَيْتِهٖ مُهَاجِرًا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ |
| اوڅوک چه اوتلودخپل کور نه هجرت کونکي طرف دالله اورسول دهغه ته بيالاندې کړو ده لره مرګ |
| فَقَدْ وَقَعَ اَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝ |
| نو په تحقيق سره ثابت شو اجر دده الله سره ، او دې الله بخنه کونکي، رحم کوونکي |

﴿ اِلَّا الْمُسْتَضْعَفِيْنَ ﴾ دا استثناء منقطعه ده په معنی د ((لکن)) سره او((**المستضعفين**)) ورلره اسم دې ﴿ فَاُولٰٓئِكَ عَسَى اللّٰهُ ﴾ ورلره خبردې ((**عسى**)) په کلام الهی کښې دوعدې دپاره راځی ﴿ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ ﴾ دا بيان دې د مستضعفينو چه دا درې قسمه خلق دی بوډاګان. زنانه او واړه بچيان ﴿ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴾ دا بيان دضعف اودکمزورئ دې يعنی دوئ له د هجرت کولوڅه تدبير نه ورځی، لار د هجرت او ځائ د هجرت ورته نوی معلوم ﴿ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّعْفُوَ عَنْهُمْ ﴾ دمعذورينو دپاره ترک دَهجرت ګناه ندې ددې با وجود دلته ذکر د عفو اوشو اشاره ده دې خبرې ته چه تر ک دهجرت اګرچه دمعذورينو دپاره ګناه ندې خو پکارده چه دوئ ئی ګناه اوګڼړی اوبې خوفه نه شی . ﴿ وَمَنْ يُّهَاجِرْ ﴾ دا بيان دبشارت اُخروی اودنيوی دواړه دې دمهاجرينودپاره ﴿ مُرٰغَمًا ﴾ ځائ دهجرت اودا ماخوذ دې د ((راغمت قومی)) رغم پوزه ککړکيدلوته وائې يعنې ذلت، څوك چه د خپل قوم نه هجرت وکړی نو په هغوئ باندې د ذلت داغ لګی او د ﴿ وَسَعَةً ﴾ نه مراد د رزق فراخی ده ﴿ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ اَجْرُهٗ ﴾ د هر دينی مقصد دپاره چه څوک لاړشی لکه : جهاد، طلب دعلم، حج، طلب د رزق حلال. دا ټول په هجرت الی الله والرسول کښې داخل دی او د ﴿ عَلَى اللّٰهِ ﴾ نه مراد وجوب تفضلی دې يعنی په

[1] ترغيب هجرت ته

سبب د وعدي دالله پاک سره اوپدې تعبیرکښې اشاره ده عظمت د دې اجر ته .

وَاِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْاَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَقْصُرُوْا

اوکله [1] چه تاسوسفرکوئ په زمکه کښې نوپس نشته دې په تاسو گناه چه قصراوکړئ

مِنَ الصَّلٰوةِ ۖ اِنْ خِفْتُمْ اَنْ يَّفْتِنَكُمُ

په مونځ کښې(قصردرکعاتو یاقصر دکیفیت) ، که یریږئ ( [2] تاسوددېنه چه تکلیف کښې به واچوی تاسولره

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ اِنَّ الْكٰفِرِيْنَ كَانُوْا لَكُمْ عَدُوًّا مُّبِيْنًا ﴿١٠١﴾

کافران ، بېشکه کافران دی ستاسو دپاره دښمنان ښکاره

﴿ وَاِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْاَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَقْصُرُوْا مِنَ الصَّلٰوةِ ﴾ **دا اتم حکم سلطانی دې** اوخلاصه ئې داده چه کله تاسو په سفر دجهادباندې ځئ نو د صلوة خوف طریقه ازده کړئ. ځکه چه دمونځ فرضیت نه ساقطیږی.

**قصر په څوقسمه دې** یوقصر د رکعتونودې لکه صلوة مسافر بل قصر دکیفیت دې چه بعضې مونځ امام سره اداکړی اوبعضې ځان له اوکړی لکه په صلوة خوف کښې، اوبل قصر دقراءت دې چه مونځ په مختصرقراءت سره اداکړی، نودلته کښې درې واړه معنی اراده کول صحیح دی نوکه قصرنه قصر دکیفیت مرادشی نوروستنې آیت ددې آیت دپاره تشریح او تفسیر دې، لیکن دجمهورو علماؤ قول دادې چه دلته مراد قصر د رکعاتو دې یعنی دڅلورو رکعاتو په ځائې دوه رکعته اداکول، اودا قصر د فجر اومغرب په مونځ کښې نشته دې پدلیل دعمل درسول الله صلی الله علیه وسلم او د اصحاب کرامو سره. اوپدې آیت کښې هم ورته اشاره ده ﴿مِنَ الصَّلٰوةِ﴾ دلته ((من)) تبعیضیه دې یعنې قصر په بعضې مونځونو کښې دې کوم چه څلور رکعته وی، اوقصر په سفرکښې په نزد دجمهورو باندې واجب دې او په نزد د امام شافعی رحمه الله باندې رخصت دې، اولفظ د ﴿فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ﴾ دلالت نه کوی پدې چه

١ . اتم حکم یعني چې جهاد له زئ نو دصلوة الخوف طریقه زده کړئ ځکه چه دمونځ فرضیت په هیڅ وجه سره نه ختمیږي .

٢ . ((ان خفتم)) قید اتفاقی دې دقصر حکم خوف پورې خاص نه دې .

قصر واجب ندي. لکه په باره دسعی بين الصفاوالمروه کښې هم لفظ د ,,**لاجناح**،، ذکر دې او هغه دلالت نه کوی پدې چه سعی واجبه نده، صاحب دروح المعانی وائي چه خلق چونکه پوره مونځ سره عادت دی نودقصر په وخت کښې دا وهم رازی چه دا به ګناه وی نو ددې توهم دختمولودپاره ,,**فليس عليكم جناح**،، ذکر شويدې.

﴿إِنْ خِفْتُمْ أَن يَفْتِنَكُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟﴾ دفتنې نه مراد د دشمنانوحمله ده. دلته يو **سوال** واردیږی چه دا جمله پدې باندې دلالت کوی چه دقصردپاره خوف شرط دې اوحالانکه جمهورعلماء ددې قائل ندی **جواب** دادې چه ﴿إِنْ خِفْتُمْ﴾ شرط نحوی دې اوشرط شرعی ندې چه په انتفاء سره ئی حکم منتفی ګيږی، اودشرط نحوی په انتفاء سره حکم منتفی کيدل ضروری ندی لکه پدې قول دالله تعالی کښې ﴿وَإِن كُنتُمْ عَلَىٰ سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُوا۟ كَاتِبًا فَرِهَٰنٌ مَّقْبُوضَةٌ﴾ دلته ,,**وان كنتم علي سفر**،، شرط نحوی دې اوسره ددې نه چه بغير دسفرنه هم رهن جائز دې.

**د ويم جواب** دادې چه د ابوداؤد او دمسلم روايت دې چه يعلی بن اميه دحضرت عمر رضي الله عنه نه تپوس اوکړلو چه پدې آيت کښې خو دقصر دپاره خوف شرط کړې شوېدې او اوس خو خلق په امن کښې دي نوحضرت عمر رضي الله عنه ورته اوئيل چه ما هم تعجب کړې وو دهغې نه چه تا ترينه تعجب اوکړلو نو ماتپوس اوکړلو د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه نوحضور اکرم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه ((صدقةٌ تصدَّق الله بها فاقبلوا صدقته)) يعنې اول قصر مشروط وو په خوف سره خوالله تعالی صدقه اوکړله اودوه رکعتونه ئي بالکل ساقط کړل نو بيخی پاتې ندی او ددې حديث نه معلوم شو وجوب دقصردپاره دمسافر

﴿إِنَّ ٱلْكَٰفِرِينَ كَانُوا۟ لَكُمْ عَدُوًّا مُّبِينًا﴾ دا جمله علت دې دقصر دپاره ياد ,,**ان يفتنكم**،، دپاره او ,,**عدوا**،، اسم جنس دې قليل اوکثير دواړوته شامل دې نواسم د ((كَانَ)) اوخبرئي مطابق دی

| وَإِذَا | كُنتَ | فِيهِمْ | فَأَقَمْتَ | لَهُمُ |
|---|---|---|---|---|

اويه هغه وخت چه ته موجوديې پدوئ کښې په وخت دخوف کښې، پس اراده اوکړې چه قائم کړې ددوئ دپاره

| ٱلصَّلَوٰةَ | فَلْتَقُمْ | طَآئِفَةٌ | مِّنْهُم | مَّعَكَ | وَلْيَأْخُذُوٓا۟ | أَسْلِحَتَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|

مونځ نولښکردوه طائفې کړه، نواودريږی دې يوډله ددوئ نه په تاپسې او اودې نيسی خان سره وسله خپله.

فَإِذَا سَجَدُوا فَلْيَكُونُوا مِن وَرَآئِكُمْ وَلْتَأْتِ طَآئِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا

نوكله چه دوئ سجده اوكړي نوشى دې دوئ ستاسونه شاته، اورادې شى بله ډله چه هغوئ مونځ نه وى كړي

فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا

نومونځ دې اوكړى په تاپسې او اودې نيسى دځان سره سامان دبچاؤخپل اووسله خپله، غواړى كافران داخبره

لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَاحِدَةً وَلَا جُنَاحَ

چه تاسوغافل شئ دخپلې وسلې نه اودسامان دبچاؤخپل نه نو دوئ حمله اوكړى په تاسو حمله په يووار. اونشته دې گناه

عَلَيْكُمْ إِن كَانَ بِكُمْ أَذًى مِّن مَّطَرٍ أَوْ كُنتُم مَّرْضَىٰ أَن تَضَعُوا أَسْلِحَتَكُمْ وَخُذُوا

په تاسو كچرې وى تاسوته تكليف دباران نه، يا يئ تاسو مريضان چه كيږدئ وسله خپله، اواونيسئ ځان سره

حِذْرَكُمْ إِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ﴿١٠٢﴾

سامان دبچاؤ خپل، ببشكه الله تيار كړي دي كافرانو لره عذاب شرمونكي

﴿وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ﴾ دا دصلوة الخوف بيان دي او بنا په قول دبعضي مفسرينو دا د ماقبل آيت تفسير اوتفصيل دې، صلوة خوف په نزدبعض آئمؤ لكه امام ابويوسف اوحسن بن زياد خاص وو په نبى كريم صلى الله عليه وسلم پورې په دليل دظاهر د دې قول سره «**واذاكنت فيهم**» او په نزد داما م مزنى شافعى رح باندې منسوخ دې اوجمهورعلماء وائي چه صلوة خوف منسوخ هم ندې اوخاص هم ندې په نبى كريم صلى الله عليه وسلم پورې ځكه صحابو كرامو پس له وفات د نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه صلوة خوف اداكړې دې او په ابو داؤد وغيره كښې دى چه صحابو په طبرستان كښې صلوة خوف اداكړې دې، اوعبدالرحمن بن سمره رضى الله عنه په فتح دكابل كښې صلوة خوف اداكړې وو او داسې نور ډير واقعات هم موجود دى او تخصيص دخطاب په نبى كريم صلى الله عليه وسلم پورې دا مستلزم نڼدې تخصيص دحكم لره لكه پدې قول دالله تعالى كښې ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا وَصَلِّ عَلَيْهِمْ﴾ . **دصلوة خوف دپاره متعددې طريقې** : امام نووى و ائي چه دصلوة خوف دپاره اتلس طرق مروى دى. ابن عربى رحمه الله شارح دترمذى وائي چه دصلوة الخوف ډير طرق مروى دى

لیکن اصح په کښې شپاړلس (۱۶) دی او امام ابوداود رحمه الله دصلوة خوف دپاره متعدد ابواب قائم کړی دی اویوولس طرق ئې ذکرکړی دی بعضې علماء دهغه ټولو طریقو دجوازقائل دی چه په احادیثوکښې مروی دی اوبعضې محدثین او علماء په هغې کښې دبعضو طریقو قائل ندی. پدغه ټولو طریقو کښې په نزد داحنافو (اصحاب متون) یوه طریقه افضله ده او په نزد دشوافعو (اودارنګې اصحاب الفتاوی داحنافو) بله طریقه افضله ده د احنافو په نزد افضله طریقه داده چه لښکر دوه حصې شی یوه حصه امام سره شی اومونځ شروع کړی اوبله طائفه دې د دشمن مقابلې ته اودریږی چه اوله طائفه یورکعت اداکړی دَ امام سره نو ددشمن مقابلې ته دې لاړه شی اودا معنی د دې قول دالله تعالی ده ﴿فَإِذَا سَجَدُوا فَلْيَكُونُوا مِن وَرَآئِكُمْ﴾ دسجدې نه مراد د اول رکعت دویمه سجده ده چه پدې سره رکعت مکمل شی اوبله طائفه دې راشی او د امام سره دې دمونځ نیت اوکړی اویورکعت دې اداکړی ﴿وَلْتَأْتِ طَآئِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ﴾ ((أی : فلیصلوا رکعة واحدة)) نو بیادې دوئ ددشمن مقابلې ته لاړشی اوطائفه اولی دې راشی اوخپل یو پاتې شوې رکعت دې اداء کړی بغیر د قراءت نه، او بیا دې دویمه طائفه خپل یورکعت اداکړی په قراءت سره.

او دشوافعو او د احنافو داصحاب الفتاوی په نزد چه کومه طریقه افضله ده هغه داده چه اوله طائفه دې یورکعت امام سره اوکړی اوپدغه ځائې کښې دې دویم رکعت ځان لره اداکړی نو دوئې به فارغ شی نو ددشمن مقابلې ته به لاړشی نود ((اذاسجدوا)) معنی داده چه ((فاذاصلوا)) او دویمه طائفه دې راشی نواما م سره دې یورکعت اوکړی اوبل رکعت به ځان له اوکړی اوامام به ورته انتظاراوکړی اوسلام به یوځائې اوګرځوی اودامعنی ده ددې قول ده ((فلیصلوا معک))

﴿ ولیاخذوا حذرهم ﴾ دحذرنه مراد تیقظ اوبیداری ده، یا ترینه مراد سامان دبچاؤ او دحفاظت دې لکه ډال وغیره شو، یعنی دشمن نه خپل بچاؤ کوئ او د دشمن دمقابلې دپاره اسلحه هم واخلئ ﴿وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ داعلت دې دپاره د اخذ د حذر او د اسلحې ﴿فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَاحِدَةً﴾ دینه مراد داسې حمله کول دی چه بیا دویمې حملې ته ضرورت پاتې نشی، نومعلومه شوه چه ماقبل امر دوجوب دپاره دې ﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ﴾ یعنی دعذر په

وخت کښې اسلحه کېښودل جائزدی نودا دلیل دې پدې خبرې چه عذرنه وی نو اسلحه نیول واجب دی ﴿وَخُذُوا حِذْرَكُمْ﴾ دا تاکید دماقبل دې ﴿إِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْكَٰفِرِينَ﴾ داتاکیددې کفاروته اومرادد ((عَذَابٌ مُّهِينٌ)) نه د آخرت عذاب دې، یا ترینه په دنیاء کښې دکفارومغلوبیت مراد دې یعنی هرکله چه تاسو دخپلواعمالو لکه مونځ وغیره شو اهتمام کوئ اودخپل حفاظت اهتمام کوئ نو دشمنان به مغلوب وی .

| فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلَوٰةَ فَاذْكُرُوا اللَّهَ قِيَٰمًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِكُمْ فَإِذَا |
|---|
| پس کله چه تاسو فارغ شئ دمونځ نه نو یادوئ الله په ولاړه اوپه ناسته اوپه اړخونو خپلو، پس هرکله |
| اطْمَأْنَنتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ إِنَّ الصَّلَوٰةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَٰبًا مَّوْقُوتًا ۝ |
| چه تاسو بې خوفه یئ نوپابندي کوئ د مانځه. بېشکه مونځ پۀ مومنانو باندې فرض دې پۀ وخت وخت |

﴿فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلَوٰةَ﴾ قضاء په معنی د اداء او د فراغ سرې ده یعنی کله چه تاسو دمونځ نه فارغ شئ نو بیا دالله تعالی ذکرکوئ په ژبه او په زړه سره او په جوارحو او اعمالو او په اطاعت کولوسره یعنی دمونځ نه فراغت راتلې شی لیکن ذکر اوطاعت همشه لازم دې . **قیام، قعود، جنوبکم** دا کنایه ده د دوام نه او دمونځ مقصد هم دالله تعالی ذکردې لکه چه فرمائی ﴿وَأَقِمِ الصَّلَوٰةَ لِذِكْرِيٓ﴾ نوذکرعام دې په ژبه وی اوکه په زړه کښې وی اوکه اعضاء او جوارحو سره وی یعنې استعمال داعضاء اوجوارحو په اطاعت اومرضیاتو دالله کښې دا ذکردې.

﴿فَإِذَا اطْمَأْنَنتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ﴾ د اطمنان نه مراد دادې چه سفر اوخوف نه وی یعنی کله چه سفرنه وی نو بیا پوره مونځ کوئ قصر مه کوئ اویاکله چه خوف نه وی نو بیا پوره مونځ کوئ څکه قصر او صلوة خوف دعذر دوجه نه جائز کړې شوی دی ﴿كِتَٰبًا﴾ یعنی ((مکتوبا))، ((مفروضا)) ﴿مَّوْقُوتًا﴾ ((محدد الاوقات)) یعنی دخپل وخت نه ئی بل وخت ته ویستل جائز ندی یا ((موقوتا)) په معنی د ((مقدر)) سره دې یعنی رکعتونه اوطر یقې د ادا کولو په خاص انداز سره مقرر دی نو قصر اوصلوة خوف دعذردوجه نه جائز دی اوبلا عذرجائزنه دی

| وَلَا تَهِنُوْا فِي ابْتِغَآءِ الْقَوْمِ ۭ اِنْ تَكُوْنُوْا تَاْ لَمُوْنَ |
| --- |
| اوسستی (١) مه کوئ په طلب دقوم کافرانو کښې، کچرې يئ تاسو دردمند کيږئ (نوصبرکوئ) |
| فَاِنَّهُمْ يَاْ لَمُوْنَ كَمَا تَاْ لَمُوْنَ ۚ وَتَرْجُوْنَ مِنَ اللّٰهِ مَا |
| خکه چه هغوئ(کفار)هم دردمندکيږي لکه چه تاسو درمندکيږئ، اوتاسو اميدلرئ دالله نه هغه چه دوئ |
| لَا يَرْجُوْنَ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿١٠٤﴾ |
| اميدنه لري دهغې، اوالله په هرڅه پوهيدونکي اوحکمتونو والادې |

﴿ وَلَا تَهِنُوْا فِي ابْتِغَآءِ الْقَوْمِ ﴾ ترغيب الى القتال دې اودقوم نه مراد کفار اومشرکين دی يعنی دمشرکينوسره په جهاد کښې سستی مه کوئ اوبيشکه تاسوته به تکليف رسيږی خو هغه برداشت کوئ ځکه کفار د باطل دپاره تکليف برداشت کوی نو تاسو او هغوئ په تکليف برداشت کولو کښې برابر يئ مګر د دغه تکليفونو نه بدله کښې چه تاسوکوم اميد د رحمت اوبخشش اونعاماتو لرئ، مشرکين هغه نه لری لهذا د هغوئ تکليف محض تکليف دې اوستاسو په تکليف باندې تاسوته دائمی نعمتونه ملاوېږی نوددې وجه نه دالله په لاره کښې هرتکليف اوخوشحالی په خنده پيشانئ سره برداشت کوئ .

| اِنَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ |
| --- |
| بېشکه (٢) مونږ نازل کړېدې تاته کتاب په رښتيا سره، ددې دپاره چه ته فېصله اوکړې په مينځ دخلقو کښې |
| بِمَآ اَرٰىكَ اللّٰهُ ۭ وَلَا تَكُنْ لِّلْخَآئِنِيْنَ خَصِيْمًا ﴿١٠٥﴾ وَّاسْتَغْفِرِ اللّٰهَ ۭ |
| په هغه طريقه سره چه خودلې ده تاته الله ، اومه کيږه ته د خيانت ګرونه طرفدار اوبخښنه غواړه دالله نه |

١ - ترغيب على القتال .

٢ نهم حکم سلطانی يعنی دقواعدو شرعيۆ مطابق فيصلې کوه. نه په ظن اوتخمين سره. لپاره د دې چه دهوکه نشې. د ((طعمه)) په قصه کښې تاته دهوکه درکړې شوه. نو الله تعالی تاته قواعد شرعيه اوخودل. دا د الله تعالی لويه مهربانی ده

إِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝ وَلَا تُجَادِلْ عَنِ الَّذِيْنَ يَخْتَانُوْنَ

بې شکه الله پاك بخنه کونکې رحم کونکې دې اوته جګړه مه کوه دهغه کسانو د طرفه چه په خیانت کښې اچوی دوی

اَنْفُسَهُمْ ؕ إِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ خَوَّانًا اَثِيْمًا ۝ يَّسْتَخْفُوْنَ مِنَ النَّاسِ

خپل خانونه بېشکه الله محبت نه کوی دهغه چاسره چه وی ډېرخیانتګرګناهګار شرمیږي دخلقونه

وَلَا يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ اللّٰهِ وَهُوَ مَعَهُمْ اِذْ يُبَيِّتُوْنَ مَا لَا يَرْضٰى مِنَ الْقَوْلِ ؕ

اونه شرمیږي دالله نه اوالله ددوئ سره دې کله چه دوئ دشپې جرګه کوی دهغه څه چه ندي خوښې دالله هغه وینا

وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطًا ۝

او دې الله ددوئ په عملونو احاطه کونکې

﴿ إِنَّآ أَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ بِٱلْحَقِّ ﴾ ((باء)) د تلبس دپاره ده ((ای متلبسا ومشتملابالحق)) یا په معنی دلام سره دې او مضاف مقدر دې ((ای لاظهارالحق والباطل)).

**دا نهم حکم دې د احکاموسلطانیونه** اوخلاصه ئې داده چه الله تعالی تاته دوحی په ذریعه سره داحکاموشرعیوتعلیم درکړیدې نوفیصله دقواعد و شرعیو په مطابق کوه اوپه خپل ګمان او تخمین سره ئې مه کوه چه خطائې واقع نه شی، دا آیت دیوې واقعې سره متعلق دې چه دهغې تفصیل دادې طعمه بن ابی رق (منافق) دیو صحابي حضرت (رفاعه بن زید (رض)) دکور نه غلا اوکړه او په مال مسروقه کښې څه اسلحه وه او د اوړو یوه تیلئ وه اتفاقًا د اوړو تیلئ سورئ وه چه دهغې نه اوړه بهیدل او دغل کور پورې دغه نشان اوشو نو چه کله غل ته پته اولګیدله نو د بدنامئ نه دبچ کیدلو دپاره ئې دغه مال مسروقه د زیدبن یاسمین په نوم یهودې سره په طور د امانت کیخودله نو د شپې داواقعه اوشوه نوصبا حضرت رفاعه خپل وراره حضرت قتاده بن نعمان د تحقیق حال دپاره اولیګلو نو تفشیش نه روستو دا معلومه شوه چه دا کار دبنوابیرق خاندان (طعمه) کړې دې نو دا منافق چه کله خبر شو نو ده د غلا الزام په زیدبن یاسمین باندې اولګولو چه مال مسروقه دهغه کورنه برآمد شوې دې اودوئ قسمونه اوکړل اودخپل ایما ن او اخلاص ئی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ظاهر کړلو اونبی کریم صلی الله علیه وسلم ته ئی یقین او اطمنان ورکړلو چه ((طعمه)) چه اصل غل وو

نوډې برئ اوبې ګناه دي. نونبی کریم صلی الله علیه وسلم دمنافقانو دغه قسمونه اوشهادتونه صحیح اوګنړل او دا خیال ئې اوکړلوچه طعمه بې ګناه دې اویهودی غل دې اویهودي ته ئې دغلا دسزا ورکولو اراده اوکړه لکه معالم وغیره وائي چه ((فهمّ النبي صلی الله علیه وسلم ان یقطع ید زید الیهودی)) یعنی نبی کریم صلی الله علیه وسلم د زید بن یاسمین د لاس پرې کولو اراده وکړه نو پدې باره کښې دا آیتونه نازل شو ﴿بِمَآ أَرَىٰكَ ٱللَّهُ﴾ ((ای علمک الله)) یعنی تاته ئې خودلی ده په ذریعه دوحی خفی سره چه هغه حدیث دې او دا دلیل دې په حجیت دحدیث باندې ﴿وَلَا تَكُن لِّلْخَآئِنِينَ خَصِيمًا﴾ ((خائن)) د ((خصیما)) سره متعلق دې او د خائنو نه غلاکوونکی اودهغه دفاع کوونکې مراد دي ﴿وَٱسْتَغْفِرِ ٱللَّهَ﴾ دلته دا **سوال** کیدې شی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته د استغفار حکم اوشو نو آیا دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه څه ګناه شوې وه؟ **جواب** د استغفار ډیر وجوهات کیدې شی اوپدې آیت کښې مفسرینومختلف وجوهات بیان کړې دی، تفسیر خازن وغیره وائي چه دنبی کریم صلی الله علیه وسلم د منافقانو د چالاکی په وجه ګمان وکړو چه زید یهودی غل دې او دهغه د لاس پریکولو اراده ئې وکړه، نو که چرې دا سزا نافذه شوې وې نودا به خلاف واقع وه نوپدې کښې اګرکه نبی کریم صلی الله علیه وسلم معذور وو لیکن بیاهم د لغزش په وجه داستغفارحکم اوشو ((لووقع ذالک الامر لکان خطاءً فی نفس الامر فامره باالاستغفار منه وان کان معذورا)) ((خازن)). بعضومفسرینوویلی دی چه د استغفارحکم په طریقه د تعبد سره دې، دګناه دوجه نه ندې. اوبعضې وائي چه د انبیاؤ استغفار د((حسنات الابرارسیات المقربین)) په قانون دې یعنی کوم کار چه عامونیکانو دپاره حسنه وی نو دنبی کریم صلی الله علیه وسلم شان چونکه ډیر ارفع دې نوهغه به حسن کارنه کوی بلکه احسن به کوی نوحسن کارکول ګویاکښې دده په شان کښې سیئه دې، نوپدې وجه د استغفارحکم ورته اوشو، نو په حکم داستغفارکښې لوئ شان ددوئ ته اشاره ده ﴿وَلَا تُجَٰدِلْ﴾ یعنی د خیانت ګرو طرف داری او دهغوئ د طرفنه بحث اووکالت مه کوه ﴿يَسْتَخْفُونَ مِنَ ٱلنَّاسِ﴾ دوئ دمخلوق په مخکښې د رسوا کیدولو نه شرمیږی نو اصل خبره خوداده چه دوئ دالله نه اوشرمیږی اوګناهونه اونفاق پریږی

**فائده** (۱) د ((**ولاتجادل عن الذین**)) نه او د ((**ولاتکن للخائنین**)) نه دا نه لازمیږی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دهغوئ دطرفنه مجادله کړې وه یا ددوئ دپاره ئې دفاع کړې وه لکه په

روستو آیت کښې دی ((**لهمت طائفة منهم ان یضلوک**)) نه دا صراحتًا معلومیږی چه الله تعالی نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خپل فضل اوکرم سره محفوظ ساتلي دي او پدې آیتونو کښې چه منع دمجادله نه شویده یا د خائنینُ دپاره منع دمدافعت نه شوې ده ددې نه دا نه معلومیږی چه دا فعل په ماضی کښې شوې دې بلکه ددې فائده داصل حقیقة الحال نه خبرول دی چه د ((**طعمه**)) اوقوم د هغه دا خواهش دې اودائې منصوبه ده چه ته ددوئ طرف داری اوکړې اودفاع ئې اوکړې

**فائده** (۲) دویم مفسرین کرام فرمائي چه ددې آیت نه یوه داخبره معلومه شوه : (۱) چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم اجتهاد کړې دې په هغه واقعه کښې چه هلته نص موجودنه وو، (۲) بله داکه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به په اجتها دکښې غلط شونو په غلطئ باندې برقرارنشوېریخودلې نو اجتهاد دنبی کریم صلی الله علیه وسلم په شان د نص قطعی دې (۳) دریم دا چه اجتهادهغه څا معتبردې چه دقرآن اودحدیث د اُصولونه مأخوذ وی اوصرف رائې معتبره نده

﴿وَهُوَ مَعَهُمْ﴾ یعنی دالله تعالی نه شرم اوحیاء کول ضروری دی چه الله تعالی دهرڅاسره دې اومراد دمعیت نه دا ندې چه الله تعالی متمکن دې په مکان کښې یامحاط دزمانې دې بلکه دا معیت بلاکیف دې یامعیت په اعتبار دعلم اوقدرت سره دې ﴿إِذْ يُبَيِّتُونَ﴾ ((تبیت)) شپې تیرولوته وائې، او دشپې یوکارکول او یا مشوره کولوته هم وائې، دلته ترینه مراد دادې چه دطعمه ملګرو دهغه دبچ کولو لپاره دشپې په یوکورکښې مشوره کړې وه. ﴿مِنَ الْقَوْلِ﴾ دا بیان د ((ما)) دې، او د دې نه مراد دغه مشوره ده.

هَٰٓأَنتُمْ هَٰٓؤُلَآءِ جَٰدَلْتُمْ عَنْهُمْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا فَمَن يُجَٰدِلُ

خبردار تاسوائې خلقو(قوم دطعمه) جګړه کوئ تاسو ددوئ دطرفنه په ژونددنیوی کښې، نوپس څوک به جګړه اوکړی

ٱللَّهَ عَنْهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ أَم مَّن يَكُونُ عَلَيْهِمْ وَكِيلًا ﴿١٠٩﴾ وَمَن يَعْمَلْ سُوٓءًا

الله سره ددوئ دطرفه په ورځ دقیامت کښې یا به څوک شی په دوئ باندې ذمه وار اوچاچه عمل اوکړو بد

أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُۥ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ ٱللَّهَ يَجِدِ ٱللَّهَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿١١٠﴾

یا ئې ظلم اوکړو په خان خپل، بیابخښنه اوغواړي دالله نه اوبه مومی الله لره بخښونکې رحم کونکې

﴿ هَٰٓأَنتُمْ هَٰٓؤُلَآءِ ﴾ داخطاب دې دطعمه ملګرو او قوم ته که تاسو په دنیاء کښې طعمه لره بې نفرض بچ کړئ نو په آخرت کښې به ئې څوک بچ کړي، هلته خو دروغ نه چلیږي نوهلته به نې وکالت څوک اوکړي ﴿ وَمَن يَعْمَلْ سُوٓءًا أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُۥ ﴾ د ((سوء)) نه مراد ګناه دې اود ((ظلم)) نه مراد شرک دې یا د ((سوء)) نه مراد ګناه صغیره دې او د ((ظلم)) نه مراد کبیره ګناه دې یاد ((سوء)) نه مراد سرقه کول اود ((ظلم)) نه مراد په بل چاباندې تهمت لګول دی

﴿ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ ٱللَّهَ ﴾ ددې نه مراد دقوانینوشرعیومطابق معافی غوښتل دی چه حقوق العباد هم اداکړي یا ورته هغوئ معافی اوکړي، په قرطبی کښې دې : ((عن سفیان عن ابي اسحاق عن الاسود وعلقمه قالا قال عبدالله بن مسعود من قرء هاتین الایتین من سورة النساء ثم استغفر غفرله)) څوک چه دا دواړه آیاتونه اولولی اومغفرت اوغواړي نومغفرت به ئې کیږي ، یوایت دادې ﴿ وَمَن يَعْمَلْ سُوٓءًا أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُۥ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ ٱللَّهَ يَجِدِ ٱللَّهَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾ او بل آیت دادې ﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ جَآءُوكَ فَٱسْتَغْفَرُوا۟ ٱللَّهَ وَٱسْتَغْفَرَ لَهُمُ ٱلرَّسُولُ لَوَجَدُوا۟ ٱللَّهَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ﴾ [سورة النساء ، آية ۶۴] روایت دې دحضرت علی رضی الله عنه نه چه ما به یو حدیث واوریدلو دنبی کریم صلی الله علیه وسلم نه نوالله تعالی به ماته په هغې سره نفع راکوله څومره به چه دالله تعالی خوښه وه اوچه مابه دبل چانه حدیث واوریدلونومابه هغه ته قسم ورکولو (دتحقیق اویقین دحاصلودپاره) او ماته حدیث بیان کړلو ابوبکر رضی الله عنه اوهغه صدیق دې (نو قسم ورکولوته ضرورت نه وو) دې وائي چه کوم بنده یوګناه اوکړي اوبیا اودس اوکړي او دوه رکعته مونځ اوکړې اومغفرت اوغواړي دالله تعالی نه نوخامخابه ورته الله تعالی معافی کوی او بیائې دا آیت تلاوت کړو ﴿ وَمَن يَعْمَلْ سُوٓءًا أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُۥ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ ٱللَّهَ يَجِدِ ٱللَّهَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾

وَمَن يَكْسِبْ إِثْمًا فَإِنَّمَا يَكْسِبُهُۥ عَلَىٰ نَفْسِهِۦ ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿۱۱۱﴾

اوڅوک چه اوکړي ګناه، نوبېشکه کوي دا ګناه، ضرر ورکوی خپل ځان ته، اودې الله پوهه حکمتونو والا

وَمَن يَكْسِبْ خَطِيٓـَٔةً أَوْ إِثْمًا ثُمَّ يَرْمِ بِهِۦ بَرِيٓـًٔا فَقَدِ ٱحْتَمَلَ

اوڅوک چه اوکړي وړوکې ګناه یالوئې ګناه، بیابدنامه کړي په هغې پاک سړې، نو په تحقیق سره ده بارکړوخپل سرباندې

بُهْتَانًا وَّ اِثْمًا مُّبِيْنًا ﴿۱۱۲﴾

غټ دروغ او ګناه ښکاره.

﴿ وَمَن يَكْسِبْ إِثْمًا ﴾ يعني دګناه نه توبه ا واستغفارځکه ضروري دي چه دګناه وبال اونقصان ګناه کوونکي ته رسي نوپکارده چه توبه دې اوکړي.

﴿ وَمَن يَكْسِبْ خَطِيئَةً أَوْ إِثْمًا ﴾ يعنې څوک چه کبيره ياصغيره ګناه اوکړي اوتوبه اونه کړي بلکه دګناه تهمت په يو برى انسان باندې اولګوي لکه طعمه اودده ملګري نوبيادا زيات ضرر او نقصان دې، نو دغه شان کس په خپل سر باندې ډير دروند بوج واچوؤ.

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهٗ لَهَمَّتْ طَّآئِفَةٌ

اوکچرې نه وې فضل دالله په تاباندې اورحمت دهغه، نوددوئ به نه خطاکړې وې ځکه چه پوخ قصد کړې وو يوډلې

مِّنْهُمْ اَنْ يُّضِلُّوْكَ ؕ وَمَا يُضِلُّوْنَ اِلَّاۤ اَنْفُسَهُمْ وَمَا يَضُرُّوْنَكَ

ددوئ نه چه خطاکړي تا په فيصله کښې، اونشي خطاکولې دوئ مګر خپل نفسونه اوضرر نشي رسولې دوئ تاته

مِنْ شَيْءٍ ؕ وَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ ؕ

هيڅ ضرر. اونازل کړيدې الله په تاباندې کتاب اوسنت اوتاته ئې خودلي دى هغه خبرې[1] چه تاته ئې علم نه وؤ

وَكَانَ فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ عَظِيْمًا ﴿۱۱۳﴾

او دې فضل د الله په تا باندې لوئې

﴿ وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكَ ﴾ جواب د ((لولا)) مقدردې((اى لاضلوك)) يعنې په تا باندې د الله تعالى خصوصي فضل اورحمت نه وې نودوئ به د خپلې ډيرې چالاکئ په وجه خطاکړې وې په فيصله کښې ليکن دالله تعالى فضل اورحمت موجودوونوځکه ته خطاء نشوې او په آينده کښې به هم نه خطاء کيږې، دالله دفضل نه مراد وحى ده او د رحمت نه مراد عصمت دې يا د فضل نه مراد عامه وحى ده او د رحمت نه مراد خاص آياتونه دوحى دى، دينه وحى جلي اوخفي هم

[1] - يعني د دې معاملې پوره حقيقت تاته معلوم نه وو، الله تعالى ترينه خبرکړې

مراد کیدې شي

﴿وَمَا يُضِلُّونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمْ﴾ څوک چه بل څوک ګمراه کوی نوپه خپله به ګمراه ګیږی ﴿وَمَا يَضُرُّونَكَ﴾ او آینده تا نشی خطاکولې، یا پدې فیصله کولوکښې دوئ تا ته هیڅ ضررنشی رسولې ﴿وَأَنزَلَ ٱللَّهُ عَلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحِكْمَةَ﴾ دکتاب نه مراد قرآن دې چه وحی جلی ده او دحکمت نه مراد سنت د رسول الله صلی الله علیه وسلم دې چه وحی خفی ده

﴿وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُن تَعْلَمُ﴾ مراد ددینه اموردین دی چه هغه اسرار اوحکمتونه دقرآن او سنت دی، نو پدې وجه دوئ تا نشی خطاء کولې، یا ترینه اخبار اوحالات دانبیاؤ سابقینو مراد دی او د هغوئ اقوام، یا ترینه مراد دهغه تیرې شوې واقعې داصل حقیقت علم دې چه تاته داصل واقعې علم نه وو اوالله تعالی ترینه خبرکړې.

**فائده** بریلیان پدې آیت سره استدلال کوی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته د ((مَا كَانَ)) او د ((مَا يَكُوْنُ)) علم حاصل وو، او طریقه داستدلال ددوئ بعضې عالمان (بلکه جاهلان) داسې ذکر کوی چه ((عَلَّمَ)) باب تفعیل دې او فاعل ئې الله تعالی دې چه مفیض دې په افاضه تامه سره او مفعول اول ئې ((ک)) نبی کریم صلی الله علیه وسلم دې چه هغه مستفیض دې په استفاضه تامه سره اومفعول ثانی ورلره ((ما)) دې چه هغه دعموم دپاره دې نومعلومه شوه چه مخکې ددې آیت نه کوم څیز چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته معلوم نه وو نو دهغه ټولوعلم الله ورکړې دې **جواب** (۱) دا قانون چه فاعل د ((عَلَّمَ)) الله وی اومفعول ئې رسول الله وی، نوهلته به علم کلی وی دا خود ساخته قانون دې په هیڅ کتاب کښې ددې ذکرنشته دې اولفظ د ((ما)) اګر که په اصل کښې دعموم دپاره دې لیکن استعمال ئې په خصوص کښې شائع دې لکه په نورالانوارکښې دی، یعنی انهما (من ،ما) فی اصل الوضع للعموم ویستعملان فی الخصوص بعارض القرآئن او په قرآن کریم کښې ئې استعمال دخصوص دپاره ډیرشوې دې لکه ﴿وَءَاتَىٰكُم مَّا لَمْ يُؤْتِ أَحَدًا مِّنَ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ ((سورة مائده: ۲۰)) ﴿كَمَا عَلَّمَكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا۟ تَعْلَمُونَ﴾ ((سورة بقرة - ۲۳۹)) ﴿وَعُلِّمْتُم مَّا لَمْ تَعْلَمُوٓا۟ أَنتُمْ وَلَآ ءَابَآؤُكُمْ﴾ ((سورة انعام: ۹۱))

**جواب** (۲) مفسرینو پدې آیت کښې ((ما)) په خصوص محمول کړې دې چا ترینه احکام شرائع مرادکړی دی، اوچا ترینه امور د دین، اوچا ترینه کتاب اوحکمت مرادکړې دې اوچا

ترینه اخبارالاولین مراد کړي دی (**قرطبی، خازن، معالم وغیره**) امام رازی فرمائي : ((مایتعلق بامور الدین)) او کومومفسرینوچه ترینه علم غیب مراد کړي دي نوهغوئ علم کلی ندی ویلی او دا قول ئي په ((**قیل**)) سره ذکرکړي دي چه ضعف ته اشاره ده. **جواب** (۳) دا سورة دهجرت په څلورم کال سنه ۴ هـ کښې نازل شوې دې نو ددې نه روستو ډیر سورتونه ((تقریبا ۲۴)) سورتونه نازل شوي دی نو بنا ستا سو په قول باندې دهغې نزول ته څه ضرورت نه وو ځکه چه د تمامو امورو علم حاصل شوي وو نوبیاخوتحصیل دحاصل دي اودارنګې ددینه روستوسورة نوراو توبه منافقون نازل شوی دی او په سورة نور کښې دواقعه افک ذکر دي چه دهغې د وجه نه رسول الله صلی الله علیه وسلم ډیرسخت پریشان وؤ، په سورة توبه کښې دی، چه ((لاتعلمهم نحن نعلمهم)) دغه ټول واقعات پدې خبره ګواه دی چه ((وعلمک مالم تکن تعلم)) نه تمام مغیبات مراد نه دی

لَا خَيْرَ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنْ نَّجْوٰىهُمْ اِلَّا مَنْ اَمَرَ

نشته [1] دې هیڅ خیر په ډیرو کښې دپټوجرګودوئ نه مګر خبرپه جرګه اومشوره دهغه چا کښې دې چه حکم کوی

بِصَدَقَةٍ اَوْ مَعْرُوْفٍ اَوْ اِصْلَاحٍۢ بَيْنَ النَّاسِ ۚ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ

دصدقې یا دنېک کار یادصلح په مینځ دخلقو کښې، اوڅوک [2] چه وکړی داکار دپاره دطلب درضا

اللّٰهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۱۱۴﴾ وَمَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ

دالله نوزر ده چه ورکړو مونږ دوه ته اجر لوئې. اوڅوک [3] چه خلاف اوکړي درسول نه روستودهغې نه چه ښکاره شوي وی

لَهُ الْهُدٰى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا

هغه ته هدایت. اوروان شی پخلاف دلارې د ټولومومنانونه، وابه ړوومونږ ده لره هغه طرفته

تَوَلّٰى وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ ۗ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ﴿۱۱۵﴾

چه دې ورته واوړیدو (اختیاریې کړه) اوداخل به کړو دې جهنم ته، اوډیربدځائې دورتلودې داجهنم

---

۱ دا دنهې حکم سره متعلق دي

۲ بشارت

۳ تخویف

﴿لَا خَيْرَ فِي كَثِيرٍ مِّن نَّجْوَاهُمْ﴾ منافقینو مشورې کولې چه طعمه دغلا د الزام نه بچ کړی او په دروغه سره په بل چاباندې الزام اولګوی نوالله تعالی اوفرمائیل چه پدغه شان جرګو او مشورو کښې هیڅ خیرنشته دې بلکه خیر په دې کښې دې چه

﴿إِلَّا مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ﴾ ((ای فی نجوی من امربصدقة)) پدې سره جسمانی خیر او فائده رسیږی ﴿أَوْ مَعْرُوفٍ﴾ دیو نیک کار لکه دعوت اوتبلیغ د دین لپاره مشوره کول پدې سره روحانی خیررسیږی ﴿أَوْ إِصْلَاحٍ بَيْنَ النَّاسِ﴾ اول دواړه (یعنې صدقه، معروف) ایصال دنفع دی یو روحانی دې اوبل جسمانی دې اودا دریم دپاره دِرفع دشر دې نوددې امورو دپاره مشوره کول خیردې اوموجب د اجرعظیم دې، لیکن شرط ورلره دادې چه ﴿ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللَّهِ﴾ یعنې چه دالله تعالی رضاوی.

﴿وَمَن يُشَاقِقِ الرَّسُولَ﴾ دا تخویف دې په مخالفت دسنت رسول اواجماع باندې، په ماقبل آیتونوکښې طعمه او دهغه خاندان ته زجر نه وو دلته تعمیم دې، ((**شقاق**)) مخالفت ته وائي دا ماخوذ دې د ((شق)) نه او په مخالفت کښې هم یوسړې یوشق (طرف) ته پاتې شی، اوبل کس بل طرف ته پاتې شی یعنی څوک چه مخالفت اوکړی دقول اوفعل درسول نه او د اعتقادرسول نه ﴿مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَىٰ﴾ دا قید دمزید قباحت دپاره دې ځکه چه سرهٔ دعلم نه مخالفت درسول ډیرقبیح دې.

﴿وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ﴾ لام د استغراق دپاره دې نو پدې کښې داجماع امت ذکردې، حضرت امام شافعی رحمه الله دې سره استدلال کړې دې په حجیت د اجماع باندې، روح المعانی نقل کړی دی د امام مزنی رحمه الله نه، دې وائي چه زه دامام شافعی رحمه الله سره ناست ووم نو یوشیخ راغې چه داُون (وړئ) لباس ئي اچولې وو او عصاء ئی په لاس کښې وه اوامام شافعی رحمه الله ستنې ته تکیه لګولې وه او ناست وُ نو دې ئی ولیدو نو راپاسیدلو اوکیناستلو نو دې شیخ اوئیل چه ددین دالله تعالی دحقیت دلیل څه دې، نوامام شافعی اوئیل کتا ب الله، نوشیخ اوئیل چه بیا څه؟ نوامام شافعی اوئیل چه سنت رسول الله، نو هغه اوئیل چه بیا څه دې ؟ نو امام شافعی اوفرمائیل چه اجماع دامت، نوده اوئیل چه اجماع دڅه نه ثابته ده آیا په کتاب الله کښې ده؟ نو امام شافعی رحمه الله چپ شو او فکرمندشو نو دغه شیخ ورته اوئیل چه تاته درې

ورځي مهلت دي که تا د حجيت داجماع دپاره آيت پيش کړلونو فبها والا فاعتزل الناس، نوامام شافعي رحمه الله درې ورځې اوشپې سوچ اوفکر اوکړلونوهرکله چه درې ورځې پس دغه شيخ راغې نوامام شافعي رحمه الله دغه آيت تلاوت کړلو او وې وئيل چه الله تعالى په سبب دمخالفت دسبيل المؤمنين وعيد د دخول دجهنم بيان شوې دې، نومعلومه شوه چه مخالفت داجماع دمؤمنينو نه حرام دې او اتباع ئې فرض ده نودغه شيخ اوئيل (صدقت).

او روايت دې چه پدغه درې روځواوشپوکښې امام شافعي درې وارې د ورځې قرآن ختمولواودرې وارې د شپې، او په يو بل روايت کښې دی چه درې سوه خله واره ئې قرآن ختم کړلو مزيدتفصيل روح المعاني کښې دې )

﴿ نُوَلِّهِۦ مَا تَوَلَّىٰ ﴾ حواله به کړومونږ ده لره او اوبه سپارو ده لره هغه کارته چه ده کوم اختيارکړې دې او دغه بد اعمال به ورته آسان کړو استدراجًا. ﴿وَنُصۡلِهِۦ جَهَنَّمَ﴾ او بيا به ئې جهنم ته ددغه اعمالو په وجه داخل کړو.

إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَغۡفِرُ أَن يُشۡرَكَ بِهِۦ وَيَغۡفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَآءُۚ

بېشکه [1] الله نه بخښي دا چه شرک اوکړې شي دهغه سره، اوبخنه کوی ماسوئ دشرک نه هغه چاته چه ئې خوښه شي

وَمَن يُشۡرِكۡ بِٱللَّهِ فَقَدۡ ضَلَّ ضَلَٰلَۢا بَعِيدًا ﴿١١٦﴾ إِن يَدۡعُونَ

او څوک [2] چه شريک اوګرزوی داالله سره نوپه تحقيق سره ګمراه شو په ګمراهئ لويه سره نه بلی دوئ

مِن دُونِهِۦٓ إِلَّآ إِنَٰثٗا وَإِن يَدۡعُونَ إِلَّا شَيۡطَٰنٗا مَّرِيدٗا ﴿١١٧﴾

سوا دهغه نه . مګر ښځې او نه بلی دوئ مګر شيطان سرکش لره

﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَغۡفِرُ أَن يُشۡرَكَ بِهِۦ ﴾ داحکامو سلطانيونه روستومسئله دتوحيد ذکرکيږی يعنی شرک يو داسې جرم دې چه قابل دمعافی ندې اوڅوک چه مشرک مړشی نوالله تعالى به ورته مغفرت نه کوی. او دشرک نه علاوه نورګناهونه قابل دمعافئ دی خو په مشيت د الله تعالى

١ . د احکامو نه بعد دَ توحيدبيان تفصيلاً.

٢ . شرک اعتقادی اوشرک فعلی دواړه مراد دی.

باندې موقوف دی نو که الله تعالی اوغواړی نو مغفرت به ئې اوکړی ﴿وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ﴾ پدې کښې شرک فعلي او اعتقادي دواړه داخل دی

﴿إِن يَدْعُونَ﴾ دينه مراد مطلق عبادت دې يا طلب الحاجات مراد دې ﴿إِلَّا إِنَاثًا﴾ پدې آيت کښې مشرکينو ته په شرك باندې پيغور دې چه ستاسو هغه خودساخته معبودان او خدايان خوښځې دی نو تاسو دښځو عبادت کوئ، حالانکه تاسو په خپله معاشره کښې دښځومقام اوحيثيت بالکل ورك کړې دې او په ډير سپک نظرسره ورته ګورئ په ﴿إِلَّا إِنَاثًا﴾ کښ ډير توجيهات دی، يو دا چه د بُتانو په نومونو کښ د تانيث علامه وه لکه لات، منات، عزى، دويمه داچه د دينه مراد فرشتی دی، دوئ ويل ((الملائكة بنات الله)) او دهغوئ عبادت ئې هم کولو. دريمه دا چه دوئ خپل بتان د ښځو په شان ښائسته کول، د سرو زرو او سپينو زرو کالو سره. څلورمه وجه دا چه د دوئ عقيده وه چه يوه جنّيه (پيرئ) د هربُت سره ده او کله کله به دوئ ته ښکاره کيدله هم، پنځمه دا چه مراد د ((اناثا)) نه ((اصنامًا لا ارواح لها)) دی، يعنی جمادات دی. هرکله چه جمادات يعنی منفعل دی يعنی اثر قبلوونکی وی، فاعل يعنی اثر کوونکی ندی نوځکه پری اطلاق د ((اناثا)) وشو، ځکه اناث هم منفعل وی اوفاعل نه وی

﴿وَإِن يَدْعُونَ إِلَّا شَيْطَانًا مَّرِيدًا﴾ د دې ((يدعون)) نه مراد اطاعت دې يعنی دوئ چه د اناثو (بتانو) عبادت کوی نو دوئ په دې کښ صرف د شيطان تابعداری کوی، يا ترينه مراد بلنه او طلبَ الحاجات دې. يعنی دوئ په ظاهر کښ د بُتانو بلنه کوی، او په حقيقت کښې صرف دشيطان بلنه کوی. د شيطان د بلنې مطلب دادې چه شيطان سبب دې د دې بلنې دپاره. يا دا چه شيطان به ددوئ په بتانو کښې داخيلدلو او دوئ به ورسره کله کله خبرې هم کولې او آوازونه به ئې ورته کول چه مايوس نه شی، نو دا سوال واردنه شو چه دشيطان بلنه اوعبادت خوڅوک نه کوی. حضرت استاد به فرمائيل چه شيطان چه په چا باندې خپل عبادت کول غواړی نوخپل نوم نه ظاهروی ځکه دهيچ چا مزاج داخبره نه منی چه شيطان ته دې عبادت اوسجده اوکړی يا دهغه په نامه باندې مالی عبادت اوکړی يا ترينه حاجت اوغواړی، ځکه چه دا هر چاته معلوم ده چه دې ملعون دې. بلکه شيطان د يو ولی او د بزرګ نوم رامخکې کړی چه دده نذر اوشکرانه ادا کړئ او ده ته سجده اوکړئ نو دې به خوشحاله شی نوچه کله دې خوشحاله شو نوالله به درنه خوشحاله شی نوعوام کالانعام پدې باندې دهوکه شی اوکه څوک پرې رد کوی

نو شیطان ورته وائی چه گوره دا فلانی عالم اولیاء نه منی، بزرگان نه منی وغیر ذلك . او د دې دواړو حصرونو ((الا اناثا)) او ((الاشیطانا)) په مینځ کښې څه منافات نشته دې ځکه د اول (یدعون) نه مراد بلنه ده او د دویم ((یدعون)) نه مراد اطاعت دې اوکه په دواړوکښې حصرمراد شي نو په اول کښې حصر په اعتبار د ظاهر سره دې او په دویم کښې په حسب د حقیقت سره مراد دې

لَّعَنَهُ اللّٰهُ ۘ وَقَالَ لَاَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيْبًا مَّفْرُوْضًا ﴿۱۱۸﴾ وَّلَاُضِلَّنَّهُمْ

لعنت کړېدې په هغه الله. اوده وئیلی دی خامخابه څه اخلم ستابندګانو نه حصه مقرره اوخامخابه ګمراه کوم دوی لره

وَلَاُمَنِّيَنَّهُمْ وَلَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ اٰذَانَ الْاَنْعَامِ

اوخامخابه امیدونه ورکوم دوی ته اوخامخا به څه امرکوم دوی ته، نو ځېرې به کړی غوږونه د څاروو

وَلَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ اللّٰهِ ؕ وَمَنْ يَّتَّخِذِ الشَّيْطٰنَ وَلِيًّا

اوخامخابه څه امرکوم دوی ته چه بدل کړی دوی صورتونه جوړکړی دالله ، اوڅوک چه اونیسی شیطان دوست

مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَقَدْ خَسِرَ خُسْرَانًا مُّبِيْنًا ﴿۱۱۹﴾ يَعِدُهُمْ وَ يُمَنِّيْهِمْ ؕ

ماسوا دالله نه نو به تحقیق سره تاوان یی اوکړو تاوان ښکاره . وعده کوی شیطان ددوی سره او امیدونه ورکوی[۱]

وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطٰنُ اِلَّا غُرُوْرًا ﴿۱۲۰﴾ اُولٰٓئِكَ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۡ وَلَا يَجِدُوْنَ

دوی ته.اووعده نه کوی ددوی سره شیطان مګر دهوکې والا دغه خلق ځائې ددوی جهنم دې. اونه به مومی

عَنْهَا مَحِيْصًا ﴿۱۲۱﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ

دهغې نه خلاصې اوهغه کسان[۲] چه ایمان یی راوړې وی اوعملونه کوی نېک زر ده چه داخل به کړومونږ دوی

جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ

جنتونوته چه بهیږی به لاندې دهغې نه ولې همېشه به وی په هغې کښې همېشه،

---

۱ . تخویف

۲ . بشارت

وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا ۚ وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللَّهِ قِيلًا ﴿١٢٢﴾

وعده کړې ده الله تعالی وعده حقه اوریښتنې او څوک دی زیات ریښتنی دالله نه په خبره کښې

﴿وَقَالَ لَأَتَّخِذَنَّ﴾ شیطان چه کله ملعون شونو الله رب العزة ته ئی مخامخ داسې اوئیل چه زه به ستاپه بندیګانوکښې خان لره حصه نیسم چه هغه مشرکان اوفاسقان اودشیطان تابعداری کوونکی دی اودهغې تفصیل دادې چه ﴿وَلَأُضِلَّنَّهُمْ﴾ مراد اړول دی دحق لارې نه په وسوسره ﴿وَلَأُمَنِّيَنَّهُمْ﴾ دامیدورکولونه مرادطول عمردې. یا دجاه او دمال امیدونه دی. یا دا چه غیرطاعت ورته طاعت ښکاره کړی اوامید دثواب ورته ورکوی لکه بدعات رسومات وغیره.

﴿وَلَآمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ﴾ «بتک» قطع اوڅیرولوته وائي پدې کښې شرک فعلی دمشرکینوته اشاره ده چه کله به مشرکینو نذر لغیرالله کولو نوکوم حیوان به ئی چه دخپلو بتانو په نوم باندې نذرکولو نوغوږ ئی به ترینه پرې کړلو (څیرې کړلو) اودارنګې چه کله به ئی تحریم لغیرالله کولو لکه بحیره اوسائبه اوحام چه پدې باندې به رکوب اوبابل څه نفع حرام وه نوغوږ به ئی ترینه پرې کړلواودا علامه به دتحریم وه.

﴿وَلَآمُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ اللَّهِ﴾ خلق په معنی دمخلوق سره دې یعنې جوړ کړې شوی شکل اوصورت کښې تغیرکول او دا حرام دی، البته کوم چه په اجازت شرعی سره وی لکه ختنه اوقطع الاظفار دا په تغیر لخلق الله کښې ندې داخل نو ددې مصداق په باره کښې مفسرین ډیر امورواني (۱) سړواود ښځو یوبل سره مشابهت کول لکه سړی ځان د ښځو سره مشابه کړی ، لباس د ښځو زیورات واچوی (۲) ګیره خریبل (۳) کمول د موتې نه (۴) اوغلامان خصی کول (۵) او دارنګې ښځې دسړوسره مشابهت اختیارول لکه دسرویخته کټ کول یالباس دنارینو اچول، خالونه لګول (۶) اودارنګې نور دکفاروفیشن کول دا ټول پدې کښې داخل دی، اودحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه دخلق الله نه مراد دین الله دې، دین ته خلق الله په دې وجه ویل شوی دی چه دین فطرة دې یعنی اصل پیدایش، توحید او اسلام فطرت دې نوکفراو نوره بی دینی بدلول د فطرة دی، دا دواړه معانی یوبل ته قریب دی.

﴿وَمَن يَتَّخِذِ الشَّيْطَانَ وَلِيًّا﴾ دا تحذیر دې چه دشیطان دوستی سبب دخسران دې اوسبب دخسران دادې چه ﴿يَعِدُهُمْ وَيُمَنِّيهِمْ﴾ یعنی دَ دهوکې وعدې ورسره کوی ﴿أُولَٰئِكَ

﴿ مَأْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ﴾ دا تخويف دي ((محيص)) خائي د تختيدلو او دخلاصى ته وائى ﴿ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ﴾ دا بشارت دي ﴿ وَعْدَ اللّٰهِ حَقًّا ﴾ يعنى دهوكه په كښې نشته دي، دا دواړه مفعول مطلق د فعل مقدر دى ((اى وعد الله وعدًا حقه حقًا)) ﴿ قِيْلًا ﴾ منصوب بنابر تميز دي قَول، قِيل، قَالَ دري واړه مصدرونه رازى.

| |
|---|
| لَيْسَ بِاَمَانِيِّكُمْ وَلَآ اَمَانِيِّ اَهْلِ الْكِتٰبِ ؕ مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا |
| ندي دارومدار ستاسو په اميدونو اونه په اميدونو داهل كتابو بلكه قانون دادي چاچه عمل اوكړو بد |
| يُّجْزَ بِهٖ ۙ وَلَا يَجِدْ لَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿١٢٣﴾ |
| نو دهغې سزابه ورته وركولې شي، اونه به مومى دخپل خان دپاره ماسوى دالله نه دوست بچ كونكي اونه مددگار |

﴿ لَيْسَ بِاَمَانِيِّكُمْ ﴾ دا زجر دي اومقصد دي آيت دادي چه دين حق دچا دخواهشاتو تابع ندي لكه مشركان چه د خپل خان نه تحريمات او نذرلغيرالله ئى كولو، دا د دوئ خواهشات وؤ،دغه شان تمام انواع د شرك، او دارنگې بدعات داټول خواهشات دى اودين ندي، او لكه ځرنگه چه دين حق د چا د خواهشاتو تابع ندي نو دغه شان جزاء ئى د چا دخواهشاتو تابع نده چه بدعات به كوى او اجر به هم ورته ملاويږى، داسې نده، بلكه څوك چه بدعمل اوكړى نو دبدو سزا به ورته ملاويږى نه چه ثواب، د ((ليس)) لپاره اسم ضميردې چه راجع دې ((وعد)) ته چه مذكور دې صراحةً يا راجع دې موعود ته چه جنت د ي اومذكوردې ضمنا په ((وعد الله)) كښې يا راجع دې ايمان ته چه مذكوردې په ((والذين آمنوا)) كښې، په روايت دابن عباس رضى الله عنه كښې دى چه يهودو او نصارى اوئيل ((**لن يدخل الجنة الامن كان منا**)) اوقريشوبه ويېل ((لانبعث)) نودا آيت نازل شو ، نوخطاب مؤمنانو ته دې چه جنت او وعده د جنت په امانى سره نده ،نه د مؤمنانو په امانيو سره اونه د اهل كتابو په امانيو سره، بلكه په عمل سره ده اوقتاده اوسُدى رحمهما الله وائي چه مؤمنانو اواهل كتابو به په يوبل باندې خپل فخركولو، اهل كتابو به ويل چه ((كتابناقبل كتابكم ونبينا قبل نبيكم)) يعنې چه زمونږ كتاب ستاسو د كتاب نه وړاندې دې او زمونږ نبى ستاسو د نبى نه وړاندې دې نو مونږ زيات غوره يو، او مؤمنانو به وئيل چه زمونږ نبى صلى الله عليه وسلم، خاتم النبيين دې او زمونږ كتاب حاكم دې په ټولو كتابونو ، نو دا آيت نازل شو (**قرطبى**).

او حاصل دا دي چه د پیغمبر یا د کتاب د غوره والی په وجه تفاخر نه دي پکار بلکه د عمل په وجه غوره والي راځي. نو که د چا نبي او کتاب ډير غوره وی خو چه عمل ئې خراب وی نو سزا به ورته ورکولي شی نو د ,,**لیس بأمانیکم**,, خطاب مؤمنانو ته دي .او د مجاهد او ابن زید نه روایت دي چه خطاب اهل شرک ته دي. هغوی وئیل ((لانبعث ولا نعذب)) نو الله تعالی ورته اوفرمائیل چه ((لیس بامانیکم)) یعني وعده یا جنت موعود یا ایمان نه دي ستاسو په خواهشاتو ((اخرج ابن ابی شیبة عن الحسن موقوفاً واخرج البخاری في تاریخه عن انس مرفوعا لیس الایمان بالتمنی — الخ )) .,,**روح المعانی**,,

﴿ مَن يَعْمَلْ سُوٓءًا يُجْزَ بِهِۦ ﴾ یعنی په امانی او خواهشاتو سره د جنت وعده نده بلکه قانون دا دي چه د بد عمل سزا به ملاویږی او په عمل صالح سره به سړې جنت ته داخلیږی.

په روایت د ترمذی کښې دی چه حضرت ابوبکررضی الله عنه وائی چه زه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره ووم چه دا آیت نازل شو نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل اي ابابکر ! آیا تاته هغه آیت ونه لولم چه اوس نازل شو ، نو ما ووئیل خامخا ئې وولولئ نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا آیت ولوستلو ، نو ابوبکر رضی الله عنه فرمائی ((وجدت انقصاماً في ظهري حتي تمطأت لها)) یعنی په ابو بکر رضی الله عنه باندې داسې اثر وشو لکه چه ملا ئې ماته شوې وی. نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ((مالک)) یعني تاله څه وشو؟ نو ابوبکر رضی الله عنه عرض اوکړو چه یا رسول الله په مونږ کښې څوک داسې دي چه گناه به ئې نه وی کړې او چه هرچاته په گناه باندې سزا ورکولې شی نو څوک به بچ شی؟ نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل اي ابوبکر! خبردار ته او ستا مؤمنان ملگری .تاسو ته په دنیا کښې د تکالیفو او مصیبتونو په ذریعه بدله درکولې شی حتی چه تاسو ملاقات اوکړئ د الله تعالی سره اونه به وی په تاسو هیڅ گناه .یعنی تکلیفونه او مصیبتونه کفاره د گناهونو ده دپاره د مومنانو. او په بل روایت کښې دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل آیا ته بیماریږې ؟ تاته غم او مصیبت نه رسی ؟ صدیق اکبر رضی الله عنه عرض اوکړو چه بیشکه دا ټول راته رسیږی نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه دغه سزا ده ستاسو د گناهونو .
او د حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دي چه کله بنده ته تبه اولگی یا ده ته څه تکلیف اورسی نو دا د گناهونو کفاره وی تردې چه یو سړې په خپل جیب کښې څه څیز تلاش کړی او ملاؤ ورته نشی بلکه د بل جیب نه ورته ملاؤ شی نو په دې لږ شان تکلیف باندې هم گناه

معاف کیږی

وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ

اوڅوک چه عمل اوکړی دنېک عملونو نارینه وی او که زنانه، اودې وی مومن، نودغه کسان به داخليږی جنت ته

وَلَا يُظْلَمُوْنَ نَقِيْرًا ﴿١٢٤﴾ وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ

اوظلم به نشی کېدې په دوئ باندې په قدر دَ داغ د اډوکی دکهجورې اوڅوک زیات ښائسته دین والا دې دهغه چانه

اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ وَّاتَّبَعَ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ

چه تابع کړې ئې وي خپل مخ دالله دحکم اودې نېک عمل والا وي اوتابعدار وی دملت دابراهیم

حَنِيْفًا ؕ وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا ﴿١٢٥﴾ وَلِلّٰهِ

چه کلک وو په توحيداوحق باندې، اونیولې دې الله ابراهیم لره خاص دوست اوخاص دالله په اختیارکښې دی

مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيْطًا ﴿١٢٦﴾

هرهغه څه چه په آسمانونو کښې دی اوهرهغه څه چه په زمکه کښې دی، اودې الله په هر څیزباندې احاطه کونکې

﴿ وَمَن يَعْمَلْ مِنَ الصَّالِحَاتِ ﴾ ((من)) زائده دې یا د تبعیض دپاره دې ځکه چه اعمال صالحه کوم چه فرض نه دی نو دټولو کول ضروری ندی او کوم چه فرائض دی نو هغه هم بعضې فرائض په بعضې خلقو فرض نه دی لکه زکوة او حج وغیره ﴿ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَأُولَٰئِكَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ ﴾ یعنی دخول جنت ته دایمان په وجه دې، نه په تمنی سره لیکن دایمان صرف دعوه کول کافی نه دی بلکه دایمانی صفات ضروری دی چه هغه مکمل اطاعت او اخلاص دې او تابعداری دملت ابراهیمی ده، یعنی د صحیح طریقې تابعداری ﴿ وَمَنْ أَحْسَنُ ﴾ استفهام انکاری په معنی دنفی سره دې ((ای لا احد احسن))

((دِينًا)) تمیز دې دفاعل نه نو دا په معنې کښې فاعل دې اود ﴿ مِّمَّنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ ﴾ نه ... د اطاعت او انقیاد دې اودا په ټول بدن سره کیږی خو ذکر د ((وجه)) یعنی مخ اوشو ځکه دا په ټولو اعضاؤ کښې افضل اوغوره دې نوذکر دجزء اومراد ترینه کل دې او ﴿ وَهُوَ مُحْسِنٌ ﴾

پدې کښې د اخلاص ذکر دې ﴿ وَاتَّبَعَ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ ﴾ پدې کښې د ملت ابراهيمی يعنی صحيح طريقې تابعدارئ ذکر دې ﴿ حَنِيفًا ﴾ حال دې د ((ابراهيم)) نه، دحنيف ترجمه ده مستقيم او كلک په حق. اوپريخودونکې دهرباطل.

﴿ وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا ﴾ ابراهيم عليه السلام دالله تعالى خاص دوست دې اوڅوک چه دده په لاره باندې روان شی نو هغه به هم محبوب شی دالله. نودا ترغيب دې داتباع دملت ابراهيمی نه چه خپل خواهشات اوخودساخته عقائداوشرکيات پريږدئ اودملت ابراهيمی اتباع اوكړئ چه هغه ته الله تعالى مقام دخُلت وركړې وو او ((خليل)) دخُلت نه ماخوذ دې اوداهغه دوستئ ته وائې چه پکې هيڅ قسم کمې او نقصان او خلل نه وی، او فعيل يا بمعنى الفاعل سره دې يعنې محبت کوونکې دالله تعالى سر ه او يا بمعنى المفعول سر ه دې يعنې محبوب دالله تعالى . ﴿ وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ ﴾ دا تخويف دې يعنې كه اطاعت اونكړئ نو الله تعالى په هر څه باندې قادردې او په هرڅه باندې عالم دې نوستاسو داعمالوپوره پوره بدله به دركوى

دې ځائې پورې دسورة دواړه حصې سره دمتعلقاتو نه ختمې شوې اوس ددينه روستو دسورة ددواړوحصو په بعضو مسائلوباندې ( داولې حصې په دويم حكم اوڅوارلسم حکم باندې اود دويمې حصې په نهم حکم باندې ) تنويرذكركيږی يعنې مزيدوضاحت ئې كيږی

﴿ وَيَسْتَفْتُونَكَ فِي النِّسَاءِ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ ﴾

او دوئ ستانه [1] فتوى طلب كوی په باره دښځوكښې، ته ورته اووايه چه الله فتوى دركوى تاسوته

﴿ فِيهِنَّ ۙ وَمَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ فِي يَتَامَى النِّسَاءِ ﴾

په باره ددوی كښې. اوهغه آيت [2] چه لوستلې شی په تاسوچه نازل كړېدې په كتاب كښې په حق ديتيمانوجنيكو كښې

---

[1] دسورة په آخر كښې د دواړو حصو په درې احكاماتو تنوير . داولې حصې نه دويم حكم او څوارلسم حكم اود دويمې حصې نه نهم حكم تنوير اودا ددويم حكم تنوير دې يعنی د دويم حكم مقصد داندې چه دښځوزنانو سره نكاح مكوئ بلكه مقصد دادې چه انصاف ورسره كوئ

[2] داعطف دې په اسم جلاله باندې اودمعطوف عليه بيان دی

الّٰتِيْ لَا تُؤْتُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ

هغه زنانه چه نه ورکوئ تاسو هغوئ ته هغه (مهر) چه فرض کړې شوېدې دهغوئ دپاره اوغواړئ دا چه

تَنْكِحُوْهُنَّ وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْوِلْدَانِ وَ اَنْ تَقُوْمُوْا

نکاح اوکړئ دهغوئ سره. اوفتوی درکوی تاسوته په باره دکمزورو وړو کښې. اوداحکم درکوی چه تاسوکلك شئ

لِلْيَتٰمٰى بِالْقِسْطِ ؕ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِهٖ عَلِيْمًا ﴿١٢٧﴾

دپاره د یتیمانو په انصاف سره اوهغه چه کوئ تاسو څه نیك کار نو بیشکه الله ﷻ دې په هغې باندې پوهه

﴿ وَيَسْتَفْتُوْنَكَ فِى النِّسَآءِ ﴾ **دا تنویر ((مزید وضاحت)) دې په دویم حکم باندې** د حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه دا آیت دهغه چا په‌باره کښې نازل شوې دې چه دهغه په پرورش اوتربیت کښې به یتیمه جینئ وه اومالداره اوحسن داره به وه نوده به دهغې په نکاح کښې رغبت کولو لیکن مهر به ئې ورته نه ورکووڅومره چه بل چا به ورته ورکولو. نو آیت نمبر (٢) نازل شو. نو دوئې منع کړې شوددینه چه دوئ نکاح اوکړی دیتیمانوجینکوسره مګر دا چه دوئ سره انصاف کوی اوپوره پوره مهر ورکوی او ددوئ دحقوقوخیال اوساتی اوامر ورته اوشوچه دنوروښځو سره نکاح کوئ سوی دیتیمانو جینکونه. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائي چه بیا خلقو فتوی طلب کړله درسول الله صلی الله علیه وسلم نه پدې باره کښې نو بیا دا آیت نازل شو((**بخاری**)) . په بعض روایاتوکښې دی چه اولیاء دیتیمانوجینکومنع شو دنکاح ددوئ نه لیکن د تجربې نه دا معلومه شوه چه په بعضو ځایونو کښې د یتیمانو جینکو په حق کښې هم دا بهتره وه چه د خپل ((ولی)) په نکاح کښې راشي. نو ددې وجه نه مسلمانانو د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د داسې نکاح اجازت اوغوښتلو. نو دا آیت نازل شو

حاصل دا دې چه د ماقبل آیت -٢ نه دا په ظاهر کښې معلومیده چه ولی لپاره دیتیمانو جینکوسره نکاح جائز نه دې. نو پدې آیت کښې دا دفعه دتوهم اوشوه. چه مقصود د هغې حکم دا نه دی چه نکاح ورسره ناجائز دې بلکه مقصود دادې چه د یتیمانو جینکو سره انصاف کوئ او د هغوئ حق مهر پوره پوره ورکوئ او دارنګه دهغوئ میراث پوره پوره ورکوئ. لکه د جاهلیت دا قانون وو چه څوك اهل د جنګ کولو نه وؤ لکه زنانه. واړه بچی نو هغوئ له به ئې

په ميراث كښې حصه نه وركوله، نو كله چه آيت د ميراث نازل شو نو په دوئ دا خبره ګرانه شوه چه نابالغ بچې او ښځه هم ميراث اغستې شى؟ نو دوئ پدې انتظار كښې وؤ چه دا حكم به د څه وينى مصلحت لپاره وى او منسوخ به شى، نو چه څه وخت تير شو او نسخ رانغله نو دوئ پخبله تپوس اوكړو نو دا آيت نازل شو ﴿قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِيهِنَّ وَمَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ﴾ مراد د ((مايتلى)) نه د دې سورة آيت نمبر ۲ دې، او ((ومايتلى عليكم)) مبتداء ده او خبرئې محذوف دې چه هغه ((يفتيكم)) دې، نو تقدير دارنګې دې ((ومايتلى عليكم يفتيكم)) او داجمله عطف ده په ((الله يفتيكم)) باندې ﴿لَا تُؤْتُونَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ﴾ د دينه مراد مهر او حصه د ميراث ده، چه د جاهليت په دور كښې به ئې ښځو ته نه وركوله.

﴿وَتَرْغَبُونَ أَن تَنكِحُوهُنَّ﴾ درغبت په صله كښې چه كله ((عن)) راشى نو په معنې د اعراض سره وى او كه ((فى)) يا ((الى)) راشى نو په معنى د رغبت او ميلان سره وى د ام المؤمنين حضرت عائشه رضى الله عنها نه روايت دې چه دلته مراد اعراض كول دى د نكاح نه كله چه هغه يتيمه قليلة المال والجمال وى، يعنى لكه په دغه صورت كښې چه يتيمه كم مال او جمال والا وى نو تاسو ورسره نكاح نه كوئ نو دغه شان چه كله كثيرة المال والجمال والا وى نو بيا هم ورسره نكاح مكوئ مګر دا چه پوره حق مهر وركړئ، نو پدې تقدير سره لفظ د ((عن)) مقدر دې ((اى ترغبون عَنْ ان تنكحوهن)) او د سعيدبن جبير او مجاهد نه روايت دې چه رغبت په معنى د ميلان سره دې نو ((فى)) مقدر دې يعنى تاسو مينه كوئ د هغوئ په نكاح كښې په سبب د ډيروالى د مال او د حسن ﴿وَالْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الْوِلْدَانِ﴾ دا عطف دې په مجرور د ((فيهن)) يعنى په ((هنّ)) باندې په ((فيهن)) كښې نو معنى دا شوه چه ((الله يفتيكم فى المستضعفين)) د ((مستضعفين)) نه مراد واړه بچى دې چه په جاهليت كښې به دوئ ته او دارنګه زنانو ته به ميراث نه وركيدې، نو الله تعالى د دوئ په باره كښې تاسو ته فتوى دركوى چه دوئ د ميراث نه مه محرومه كوئ ﴿وَأَن تَقُومُوا لِلْيَتَامَىٰ﴾ ((انْ)) تفسيريه دې نو دا تفسير د ((يفتيكم)) دې، يا دلته فعل د ((يأمركم)) مقدر دې ((اى الله يفتيكم ويأمركم ان تقوموا)) د قيام نه مراد اهتمام او كوشش كول دى ﴿وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ﴾ دا ترغيب دې د اتباع د احكامو ته.

وَاِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْۢ بَعْلِهَا نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا فَلَا جُنَاحَ

او کچیرې[1] یوه ښځه یریږي (معلوم کړي) دَ خاوند دَ بدخوئی نه یا مخ ګرځول (قصداً) نو نشته دې ګناه

عَلَيْهِمَآ اَنْ يُّصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا ؕ وَالصُّلْحُ خَيْرٌ ؕ

په دغه دواړو باندې چه روغه وکړي په مینځ خپل کښې روغه کول. او روغه کول غوره کار دی

وَ اُحْضِرَتِ الْاَنْفُسُ الشُّحَّ ؕ وَ اِنْ تُحْسِنُوْا

او حاضر کړې شویدې یعنی ایخودلې شوې دې. په نفسونو کښې حرص. او که تاسو خه روید ... دوی سره

وَ تَتَّقُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿١٢٨﴾

او ځان ېح کوی د اختلاف نه. پس بیشکه الله ستاسو په عملونو خبردار دی

﴿وَاِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْۢ بَعْلِهَا﴾ دا **دحصه اولی په خوارلسم حکم باندې** تنویردې. په څوارلسم حکم آیت نمبر ۳۵ کښې ویلې شوی وو چه ((**وان خفتم شقاق بینهما فابعثوا حکمامن اهله ـ الخ**. چه که دښځې او دخاوند په مینځ کښې اختلا ف اونزاع راشی نوحکمین دې صلح اوکړی. دلته د صلحې طریقه بیانیږی اوهغه داچه هریو دې په خپلو حقوقو کښې کمې اوکړی اوپوره حق دې نه غواړی نوصلحه به راشی ځکه دانسان په مزاج کښې بخل پروت دې اوچه بل څوک ترینه دپوره حق اغستلومطالبه نه کوی بلکه څه بعضې حق ورته معاف کړی نوصلحه راتلې شی نو په صورت دنزاع دښځې اودخاوند کښې ښځه یا خاونددې څه حق معاف کړې یادې زیادت په نفقه اومهر وغیره کښې وکړی یا دې ښځه په خپلو حقوقو کښې کمې وکړی نو اصلاح به راشی، او دا صلحه زیات خیردې لیکن کچرې داصلاح راتلو څه صورت نه وی نو بیا تفریق هم جائزدې، نودا دویم شق په ماقبل کښې نه وو مذکور او دلته ذکرشو. حاصل دادې چه د زوجینو اجتماع اویا افتراق دواړه په شرعی طریقه پکاردی چه په دنیا او آخرت دواړو کښې به دخیراودخوشحالئ ذریعه شی ﴿نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا﴾ ((نشوز)) ارتفاع او اوچت والی نه واني یعنی چه خاوند ځان اوچت ګنړی د ادا کولو دحقوقو دښځې نه، صحبت .محبت ورسره

[1] دا په څوارلسم حکم رعیت باندې تنویر دې یعنی دَ هغه حکم مقصد دا دې حتی الامکان درګذر کوئ اومخکښې بې بې دې کالمعلقه نه پریدی. او پوره پوره حق وصول کول ضروری ندی. په صلح سره دې بعض حق معاف کړی

نه کوی ((اعراض)) مخ اړولوته وائي او دا عام دي دنشوزنه یا نشوزظاهری مخالفت. اواعراض باطنی مخالفت ته وائی، او یا نشوزطبعی نفرت او اعراض اختیاری نفرت دي ﴿وَٱلصُّلۡحُ خَيۡرٞ﴾ یعنی صلحه ډیره غوره ده اګرکه واجبه نده اوددي وجه نه په ماقبل کښي صرف د صلحي ذکروو ﴿وَأُحۡضِرَتِ ٱلۡأَنفُسُ ٱلشُّحَّۚ﴾ داحضارنه مراد دادي چه ((شح)) دانسان په مزاج اوطبیعت کښي پروت دي نه جداکیږی ترینه، دشح تفسیر بعضو داسي کړي دي چه حریص وی په منع د خیر، وبعضو ویلی دی چه شح حرص اوبخل دمجموعي نوم دي ﴿وَإِن تُحۡسِنُواْ وَتَتَّقُواْ﴾ داخطاب یا فقط خاوندانوته دي او یا ښځو او خاوندانو دواړوته دي یعنی دیوبل سره احسان کول اودیوبل د راضه کولونه ځان ساتل یدي الله تعالی راضی کیږی اواجر پري ورکوی.

وَلَن تَسۡتَطِيعُوٓاْ أَن تَعۡدِلُواْ بَيۡنَ ٱلنِّسَآءِ وَلَوۡ حَرَصۡتُمۡۖ

وهرګز طاقت نه لرئ تاسو چه انصاف وکړئ په مینځ د زنانو (په مینه کښ) اګرچه حرص کوئ تاسو.

فَلَا تَمِيلُواْ كُلَّ ٱلۡمَيۡلِ فَتَذَرُوهَا كَٱلۡمُعَلَّقَةِۚ

پس تاسو مه اوړئ (د یوي ښځي نه بلي ښځي ته) په ډیرو اوړیدلو سره چه پریږدي هغه یود په شان د زړندي.

وَإِن تُصۡلِحُواْ وَتَتَّقُواْ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ غَفُورٗا رَّحِيمٗا ١٢٩

اوکه اصلاح کوئ تاسو اوځان ساتئ دظلم نه په ښځو. پس بیشکه الله دي. بخنه کونکي رحم کونکي

وَإِن يَتَفَرَّقَا يُغۡنِ ٱللَّهُ كُلّٗا مِّن سَعَتِهِۦۚ

اوکه جیري جدا شول دواړه (ښځه اوخاوند) نو کفایت (ګذاره) به ورکړی الله تعالی هریوه لره دَ خپل فضل نه.

وَكَانَ ٱللَّهُ وَٰسِعًا حَكِيمٗا ١٣٠ وَلِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ

اودي الله فراخ فضل والا. حکمتونو والا. اوخاص دَ الله په اختیارکښ دی هرهغه څه چه په آسمانونو کښ دی

وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۗ وَلَقَدۡ وَصَّيۡنَا ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ

وپه زمکه کښ دی. اوپه تحقیق سره مونږمضبوط حکم کړي دي هغه کسانوته چه ورکړي شوي دي ورته کتاب

مِن قَبۡلِكُمۡ وَإِيَّاكُمۡ أَنِ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ وَإِن تَكۡفُرُواْ

مخکښ ستاسونه او تاسو ته هم. چه یره کوئ د الله نه. اوکه تاسو کفر وکړو.

فَإِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ

نو بېشکه صرف د الله تعالی په اختیار کښې دي هر هغه څه چه په آسمانو کښې دي او هر هغه څه چه په زمکه کښې دي.

وَكَانَ اللّٰهُ غَنِيًّا حَمِيْدًا ﴿١٣١﴾ وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ

او دي الله بې حاجته ستاېلې شوې. او خاص د الله په اختیار کښې دي هر هغه څه چه په آسمانونو کښې دي

وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ﴿١٣٢﴾ إِنْ يَّشَأْ

او هر هغه څه چه په زمکه کښې دي. او پوره دې الله تعالی کارساز (کارونه جوړونکې) که اوغواړي الله

يُذْهِبْكُمْ اَيُّهَا النَّاسُ وَيَأْتِ بِاٰخَرِيْنَ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيْرًا ﴿١٣٣﴾

نوفنا به کړي تاسو اې خلقو ! او را به ولي نور خلق . او دې الله پدې باندې قدرت والا

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا

څوک چه طلب کوي په خپل عمل سره بدله دَ دنیا (نو دا غلطه ده) ځکه چه دَ الله سره بدله دَ دُنیا

وَالْاٰخِرَةِ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا بَصِيْرًا ﴿١٣٤﴾

او دَ آخرت دواړو ده (نو دا دواړه دې طلب کړي) او دې الله اوریدونکې او لیدونکې د هرڅه

﴿ وَلَنْ تَسْتَطِيْعُوْٓا اَنْ تَعْدِلُوْا ﴾ د ((عدل)) نه مراد دلته برابروالې دې په قلبی محبت کښې او مقصود دَ آیت نه دادې چه قلبی محبت که دیوې ښځې سره زیات وی او بلې ښځې سره کم وی نو پدې باندې څه مواخذه نشته ځکه چه قلبی محبت دانسان په طاقت کښې ندې، البته په ظاهری امورو کښې عدل کول لازم دی لکه : قسم، نفقه، رعایت ، خوش طبعی وغیرذالک، په حدیث کښې دی چه د رسول الله محبت دحضرت عائشه رضی الله عنها سره ډیر زیات وو په نسبت دنورو ازاجو مطهراتو لیکن په حقوقو کښې به نې ډیر زیات عدل او مساوات کولو او بیا به نې دعا کوله چه ((اللهم هذا قسمي فیما املک فلاتلمنی فیماتملک ولا املک)) (ترمذی، ابوداود) یا الله دا زما تقسیم دې په هغه کار کښې چه زه نې طاقت لرم او ما مه ملامته کوه په هغې (قلبی محبت) کښې چه ته اختیار لرې او زه اختیار نه لرم ﴿ وَلَوْ حَرَصْتُمْ ﴾ ((لو)) وصلیه دې او حرص په معنی دجهد او کوشش سره دې، او پدې کښې اشاره ده دې خبرې ته چه مساوات په قلبی

محبت کښې اګر چه د انسان په وسع کښې ندې خو بيا هم ددې کوشش کول محمود دی.

**فائده** ددې آيت نه دا مطلب اخستل چه تعدد دازواجو يعنی له يوې نه زياتې ښځې کول جائزندی ځکه چه دلته وائي چه ((**ولن تستطيعوا ان تعدلوا**)) اومخکښې آيت نمبر :٣ کښې ذکر دی چه ﴿فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً﴾ يعني که عدل نشی کولې نو د يوې ښځې نه زياتې مه کوئ نو د دواړو آياتونو دجمع کولونه معلومه شوه چه ديوې نه دزياتو ښځو سره نکاح کول جائزندي، دا مطلب اغستل د دې آيت، تحريف دي اوخلا ف دي دکتاب الله اوسنت اواجماع نه او د آيت صحيح معنی هغه ده چه ذکرشوه ﴿فَلَا تَمِيلُوا﴾ يعنی تاسو په هغه حقوقوکښې چه ستاسو دطاقت ماتحت وی قصداً ميلان مه کوئ ديوې ښځې نه بلې ښځې ته چه ستاسو ورسره قلبی محبت زيات وی ﴿كُلَّ الْمَيْلِ﴾ دا منصوب دې، مفعو ل مطلق د ((**لا تميلوا**)) دې اولفظ د ((كل)) چه مضاف شی مصدرته نو د کمال فائده کوی.

﴿فَتَذَرُوهَا كَالْمُعَلَّقَةِ﴾ ((**ها**)) ضميرهغه ښځې ته راجع دې چه دهغې نه خاوند ميلان کړې دې بلې ته اودا په اصل کښې ((فتذروها)) وو نون حذف شوې دې ځکه دا مجزوم دې اوعطف دې په ((تميلو)) باندې ((اى ولا تميلوا ولا تذروا)) او ((**فا**)) د تفسير دپاره ده نو دا تفسيرد ((**فلا تميلوا**)) شو يا نون حذف شوې دې د وجه دنصب نه په تقدير د ((ان)) سره په جواب دنهی کښې او ((**معلقه**)) هغه ښځه ده چه نه يې خاوند وی چه دهغې حقوق اداکوی اونه بې خاونده (آزاده) وی چه بل خائ نکاح اوکړی ﴿وَإِن تُصْلِحُوا﴾ ددينه عفوه کول اواحسان کول مراد دی په نفقه وغيره حقوقو کښې ﴿وَتَتَّقُوا﴾ دينه مراد خان دظلم نه بچ کول دې ﴿وَإِن يَتَفَرَّقَا﴾ دا هغه زيادت دې چه مخکښې په حکم نمبر : ١۴ کښې نه وو مذکور، يعنی صلحه د زوجينو په مينځ کښې ډيره بهترده ليکن که دصلح صورت نه وی نو تفريق په طلا ق يا په خلع سره جائزدې اګرکه طلاق مبغوض اونا خوښه څيز دې ((ابغض الحلالات الى الله الطلاق)) (**ابوداود**).

﴿يُغْنِ اللَّهُ كُلًّا مِّن سَعَتِهِ﴾ د الله تعالی خزانې لامحدودې دی، فضل ئې واسع دې نوالله تعالی به دې سړی ته بله ښځه ورکړی اودې ښځې ته به بل خاوند ورکړی.

﴿وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ﴾ دا تخويف اخروی دې او بيان د توحيد دې

﴿وَلَقَدْ وَصَّيْنَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِن قَبْلِكُمْ﴾ يعنی مخکښنو خلقوته هم دتوحيد سبق

ورکړي شوي وو چه شرک مه کوئ او ستاسودشرک په وجه ماته هیڅ نقصان نه رسي، زه خو د هرڅه مالک یم. غني یم. خو په شرک باندي ناراضه کیږم اوچه ناراض او په غصه شم نو ﴿يُذْهِبْكُمْ﴾ تاسوبه ختم کړم ﴿وَلِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ دا دري واره ذکرشو دمزید تاکید دپاره. اوبعضې حضرات وائي چه اول وار بیان د وسعت مقصود دي چه الله تعالی سره دڅه شي کمي نشته دي. او دویم وار دبي نیازئ اوبی پرواهئ بیان مقصود دي یعني که چرې انکار اوکفراوکړئ نوهغه ذات څه پرواه نه لري هغه ته څه نقصان اوضررنه رسي، اودریم وار د رحمت بیان او اظهارمقصود دي یعنی که تقوی اواطاعت اختیارکړئ نوستاسوبه تمام کارونه الله تعالی جوړکړي . والله تعالی اعلم

﴿مَّن كَانَ يُرِيدُ ثَوَابَ ٱلدُّنْيَا﴾ دا ترغیب دي آخرت ته چه دالله تعالی نه د دنیا حاجتونه او د آخرت حاجتونه دواړه غواړئ، یواځې دنیا مه غواړئ «**من کان**» شرط دي اوجزاء ئي مقدره ده ((ای فظنه باطل)) یا ((لیس کماظن)) د ((ثواب الدنیا)) نه مراد دادي چه څوك دنیک عمل بدله په دنیا کښې غواړي او صرف ددنیاوی مقاصدو دپاره نیک عمل کوی نوبیدي سره نیک عمل ضائع کیږی

| يَٰٓأَيُّهَا | ٱلَّذِينَ | ءَامَنُوا۟ | كُونُوا۟ | قَوَّٰمِينَ | بِٱلْقِسْطِ | شُهَدَآءَ | لِلَّهِ | وَلَوْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

اې ایمان والو [1] شئ کلک په انصاف، گواهي کونکي (حق ظاهرونکي) دپاره دالله اګرکه ضرر وی

| عَلَىٰٓ | أَنفُسِكُمْ | أَوِ | ٱلْوَٰلِدَيْنِ | وَٱلْأَقْرَبِينَ ۚ | إِن | يَكُنْ | غَنِيًّا | أَوْ | فَقِيرًا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

په تاسو یا په موریلار باندي یا خپلوانوستاسوباندي، کچرې وی هغه څوک چه ګواهي پرې کولې شي مالدار یاغریب

| فَٱللَّهُ | أَوْلَىٰ | بِهِمَا ۖ | فَلَا | تَتَّبِعُوا۟ | ٱلْهَوَىٰٓ | أَن | تَعْدِلُوا۟ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

نو الله زیات مهربان دي په هغوئ دواړو، نوتابعداری مکوئ دخواهشاتو چه انصاف اونکړئ.

[1] په نهم حکم سلطاني باندي تنویر. یعني دنهم حکم مقصد دادي چه په شهادت اوفیصله کښې انصاف کوئ دچارعایت مکوئ دغریب غربت یا دقرابت وغیره دوجې نه په شهادت کښې کمی بیشی مکوئ

وَإِنْ تَلْوُۥٓا أَوْ تُعْرِضُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ۝

اوکه تاسو ـه تاؤ کړئ یا اعراض اوکړئ دحق دبیان نه نو بیشکه الله ستاسو په عملونو خبردار دې

**﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا كُونُوا قَوَّٰمِينَ بِٱلْقِسْطِ﴾ دا تنویر دحصه ثانیه دې په نهم حکم داحکامو سلطانیو کښې** چه ددغې حکم مقصدد دادې چه په شهادت اوفیصلوکښې پوره پوره انصاف کوئ دغریب دغربت او یا د امیر د امارت ، یا د قرابت دوجه نه په شهادت کښې کمې اوزیاتی مه کوئ **قوام**,, دمبالغې صیغه ده دقیام نه یعنی کلک اودریږئ ,,**قوامین**,, خبرد ,,**کونوا**,, دې ،

او ,,**بالقسط**,, جارمجرور په ,,**قوامین**,, پورې متعلق دې ﴿شُهَدَآءَ لِلَّهِ﴾ دا خبر ثانی د ,,**کونوا**,, دې او د ,,**لله**,, معنی داده چه دَ الله درضا دپاره چه په هغې کښې هیڅ دنیوی غرض نوی او ,,**قسط**,, انصاف په معاملاتوکښې هم وی او په اعمالو او په عقائدوکښې هم وی، اوشهادت گواهی په معاملا تو کښې اومدعی گانو کښې راځی، او بیان دحق ته هم ویلې شی. دلته دقسط او دشهادت نه عامه معنی مراد ده

﴿وَلَوْ عَلَىٰٓ أَنفُسِكُمْ﴾ ((لو)) وصلیه دې ((ای لوکانت الشهادة علی انفسکم)) شهادت په خپل نفس باندې اقرار دې یا ئی معنی داده چه اگر که د شهادت په وجه تاسو ته ضرر وی ﴿أَوِ ٱلْوَٰلِدَيْنِ وَٱلْأَقْرَبِينَ﴾ یعنی شهادة کښې دوالدینو او یا دقرابت والو لحاظ ندې جائز چه دهغوئ د وجه نه حق دشهادة اداء نه کړی ﴿إِن يَكُنْ غَنِيًّا أَوْ فَقِيرًا﴾ ضمیر د ((یکن)) راجع دې مَشهُودٌعَلَیه ته او ,,**غنیا او فقیراً**,, داخبر د ,,**یکن**,, دې دا جمله شرط دې اوجزاء ئي مقدره ده ((ای فلاتمنعوا الشهادة)) یا ((ولا تکتموالشهادة)) که چرې مشهود علیه یعنی په چاچه گواهی کیدې شی هغه غنی اوشتمن وو تاسو ترینه طمعه کوئ یا ترینه یره کوئ اویا فقیروی تاسوپرې ترس کوئ نوبیا هم دگواهی کولونه منع مه کوئ ځکه ﴿فَٱللَّهُ أَوْلَىٰ بِهِمَا﴾ یعني الله تعالی زیات قریب اوتعلق والا دې د هغوئ سره ستاسونه نوهغه چه کوم قانون مقررکړې دې دهغوئ دپاره نو په هغه کښې دهغوئ د دواړو مصلحت اوخیردې نوتاسو ته اجازت نشته دې چه د هغه مصلحت خلاف وکړئ او دځان نه دهغوئ رعایت وکړئ، بلکه دالله تعالی په مقررکړی قانون کښې دفقیراو د غنی دواړو دپاره خیر او مصلحت دې .

﴿فَلَا تَتَّبِعُوا ٱلْهَوَىٰٓ﴾ یعنې اتباع د خواهشاتو د نفس مه کوئ ﴿أَن تَعْدِلُوا﴾ . ((تعدلوا)) یا دعدول نه مشتق دې یعنې د حق نه اوړیدل او ظلم کول، مَعنی داده چه تابعداری مه کوئ د

خواهشاتو چه ظلم وکړئ ، یا د ((عدل)) نه مشتق دې په معنی دانصاف کولوسره نو بیا دلته ((لا)) مقدر دې یا ((کراهة)) مقدردې یعنی دخواهشاتو اتباع مه کوئ چه عدل اونه کړئ یاعدل به اونه کړئ ﴿وَإِن تَلْوُۥٓا۟ أَوْ تُعْرِضُوا۟﴾ ((تلوٗ)) لَیّ اللسان ژبه اړول دادی چه حق دشهادت مکمل ادا نه کړی او داسې الفاظ اوائي چه مخاطب په هغې باندې پوهه نشی، او اعراض دادې چه شهادت بالکل ادانه کړی نودا دواړه کارونه جائزنه دې نود((تلو اوتعرضوا)) خطاب گواهانوته دې او دسدی رحمه الله او د ابن عباس رضی الله عنه نه مروی دی چه دا خطاب حکاموته دې یعنی چه روستو دشهادت نه حاکم دحق فیصلې نه اعراض اوکړی نوالله تعالی به ورته سزاورکوی اوالله تعالی ستاسو په کارونو خبردار دې .

| يَٰٓأَيُّهَا | ٱلَّذِينَ | ءَامَنُوٓا۟ | ءَامِنُوا۟ | بِٱللَّهِ | وَرَسُولِهِۦ |
|---|---|---|---|---|---|
| اې هغه [1]کسانوچه ایمان مویه ژبه راوړې دې ایمان راوړئ په زړونوسره په الله | باندې اوپه رسول دهغه باندې | | | | |

| وَٱلْكِتَٰبِ ٱلَّذِى نَزَّلَ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ وَٱلْكِتَٰبِ ٱلَّذِىٓ أَنزَلَ مِن قَبْلُ |
|---|
| اوپه هغه کتاب چه نازل کړې ئې دې پخپل رسول باندې اوهغه کتاب باندې چه نازل کړې ئی دې ددېنه مخکښې، |

| وَمَن يَكْفُرْ بِٱللَّهِ وَمَلَٰٓئِكَتِهِۦ وَكُتُبِهِۦ وَرُسُلِهِۦ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ |
|---|
| اوچاچه کفراوکړوپه الله باندې اوپه ملائکودهغه اوپه کتابونودهغه اوپه رسولانودهغه اوپه ورځ دآخرت |

| فَقَدْ ضَلَّ ضَلَٰلًۢا بَعِيدًا ﴿۱۳۶﴾ |
|---|
| نوپه تحقیق سره گمراه شوپه گمراهئ لرې سره . |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ ءَامِنُوا۟﴾ دا زجراو تخویف دې بعضې مفسرین وائي چه دا خطاب مسلمانانو ته دې، ((آمنوا)) نه مراد دوام اواستقامت دې چه ایمان باندې کلک شئ اوبعض وائي چه دا خطاب منافقانوته دې اود ((آمنوا)) مراد ایمان بالقلب او بالا خلاص دې نومعنی ئي داده چه ((یاایهاالذین امنوا باللسان امنوابالقلب)) اوبعضې وائي چه دا خطاب اهل کتابوسره دې نومعنې ئې داده ((یا ایهاالذین آمنوا بالکتب السابقة)) ﴿ءَامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ﴾ ای بمحمد صلی الله علیه

[1] زجرونه منافقینوته

وسمه ﴿وَٱلۡكِتَٰبِ ٱلَّذِي﴾ ای القرآن ﴿وَمَن يَكۡفُرۡ﴾ دا تخويف دي

| |
|---|
| إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ثُمَّ كَفَرُواْ ثُمَّ ءَامَنُواْ ثُمَّ كَفَرُواْ ثُمَّ |
| بېشكه هغه كسان چه ايمان ئې راوړې وو اوبيائې كفراوكړو، بيائې ايمان راوړو، بيا ئې كفراوكړو بيا |
| ٱزۡدَادُواْ كُفۡرٗا لَّمۡ يَكُنِ ٱللَّهُ لِيَغۡفِرَ لَهُمۡ وَلَا لِيَهۡدِيَهُمۡ سَبِيلَۢا ﴿١٣٧﴾ |
| زيات شويه كفرباندې (مره شويه كفر) نوندې الله چه بخښنه اوكړې دوئ ته اونه به روان كړى دوئ لره په حقه لاره باندې |

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ثُمَّ كَفَرُواْ ثُمَّ ءَامَنُواْ ثُمَّ كَفَرُواْ﴾ دا زجردې منافقينوته[1] او د دې نه مراد منافقان دى. ايمان راوړل او بيا كفركول اوبيا ايمان راوړل اوبياكفر دا عبارة دې دتذبب نه چه كله ايمان ظاهروى اوكله كفر ﴿ثُمَّ ٱزۡدَادُواْ﴾ د دې نه مراد دوام اواثبات دې په نفاق باندې ترمرګ پورې، اوبعضې مفسرين وائي چه دينه مراد يهوديان دى چه اول ئې ايمان راوړلو په موسى عليه السلام باندې او بيائې كفر اوكړلو په سبب دعبادة دعجل سره او بيائې ايمان راوړلو اوبيائې كفراوكړلو په عيسى عليه السلام باندې او بيائې زيات كفراوكړلوچه انكارئې وكړو دنبوة دمحمد صلى الله عليه وسلم نه اول قول صحيح اوقوى دې.

﴿لَّمۡ يَكُنِ ٱللَّهُ لِيَغۡفِرَ لَهُمۡ﴾ ددې دامطلب ندې چه توبه ئې نه قبليږى بلكه مراد دادې چه دوئ ته دتوبې توفيق نه ملا ويږى. يا دا مطلب دې چه په كفراونفاق باندې دائم وى تردې پورې چه مرګ راشى نوخاتمه به ئې په كفراونفاق باندې اوشى نومغفرت ئې نشى كيدې ﴿وَلَا لِيَهۡدِيَهُمۡ سَبِيلَۢا﴾ د دې نه دجنت لار مراد ده. مغفرت اودجنت لارصرف دمؤمنانودپاره ده

| |
|---|
| بَشِّرِ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ بِأَنَّ لَهُمۡ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٣٨﴾ ٱلَّذِينَ يَتَّخِذُونَ ٱلۡكَٰفِرِينَ أَوۡلِيَآءَ |
| خبروركړه منافقانوته چه بېشكه دوئ دپاره عذاب دې دردناك داهغه خلق دى چه نېسى كافرانولره دوستان |
| مِن دُونِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۚ أَيَبۡتَغُونَ عِندَهُمُ ٱلۡعِزَّةَ فَإِنَّ ٱلۡعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعٗا ﴿١٣٩﴾ |
| سوادمومنانونه. آياطلب كوى دوئ هغوئ سره عزت نو بېشكه اختيار دعزت خوخاص الله لره دې ټول |

[1] زجر منافقينوته

﴿ بَشِّرِ ٱلْمُنَٰفِقِينَ ﴾ دا تخويف دي منافقينوته په طريقه داستهزاء اوتحقيرسره ﴿ ٱلَّذِينَ يَتَّخِذُونَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ دمنافقينو ددوو صفتونو ذكردې يودا چه كافرانوسره دوستى كوى. دويم دا چه دهغوئ ددوستئ په وجه عزت حاصلول غواړى ﴿ فَإِنَّ ٱلْعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا ﴾ يعنى اختيار دهر قسم عزت وركولو الله سره دې نو په دوستئ دكافرانو سره عزت نه حاصليږى ځكه چه هغوئ خو د الله تعال دشمنان دى

وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ اَنْ اِذَا سَمِعْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ يُكْفَرُ بِهَا

اوبه تحقيق سره نازل كړېدې الله په تاسوباندې كتاب پدې كښې دا چه كله واورئ تاسو آياتونه دالله چه كفركيږى په هغې باندې

وَيُسْتَهْزَاُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوْا مَعَهُمْ حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖٓ ۖ اِنَّكُمْ

اوخنداكيږي په هغې پورې، نومه كينئ تاسودهغوئ سره ترڅو چه مشغول شي هغوئ په نورو خبروكښې، بېشكه تاسوبه

اِذًا مِّثْلُهُمْ ۗ اِنَّ اللّٰهَ جَامِعُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْكٰفِرِيْنَ فِيْ جَهَنَّمَ جَمِيْعًا ۙ

پدغه وخت كښې ددوئ پشان يئ، بېشكه الله جمع كونكي دې منافقانواوكافرانولره په جهنم كښې ټول يوځاى

﴿ وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي ٱلْكِتَٰبِ ﴾ مؤمنانو ته وائي چه تاسو دمنافقانو په شان دكفاروسره دوستانه مه ساتئ اومونږ تاسو ته ددې سورة نساء نه (چه مدنى دې) مخكښې په سورة انعام آيت نمبر ٦٨ كښې (چه مكى دې) داحكم رالیږلى ووچه تاسو په داسې مجلس كښې مه كينئ اومه شامليږئ چه پدغه مجلس كښې دالله په آياتونوباندې كفركيږى اواستهزاءورپورې كيږى دشرک اودبدعت مجالس اودفسق اودفجورمجالس پدې ټولوكې شامليدل ګناه دى او ډير بد اثر لرى. دهرمجلس خان لره يو اثروى نوسړې چه په كوم مجلس كښې شامليږى نودهغه مجلس اثر پرې ضروركيږى. البته كه چرې دغه شان مجلس ته دوعظ اودنصيحت دپاره لاړشي نو اميددې چه دغلط اثرنه به محفوظ وى نووعظ اونصيحت نه بعد بياكيناستل جائزنه دى لكه په سورة انعام كښې دى ﴿ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ ٱلذِّكْرَىٰ مَعَ ٱلْقَوْمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ ﴿ حَتَّىٰ يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِۦٓ ﴾ د آياتونو دكفراوداستهزاء نه علاوه په بل څه كاركښې مشغول شئ ﴿ إِنَّكُمْ إِذًا مِّثْلُهُمْ ﴾ مماثلت په نفس معصيت كښې مراد دې دهغوئ معصيت كفر دې او دهغوئ سره شركت كول معصيت فسق دې ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ جَامِعُ ٱلْمُنَٰفِقِينَ ﴾ دا تخويف اخروى دې.

الَّذِيْنَ يَتَرَبَّصُوْنَ بِكُمْ ۚ فَاِنْ كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ مِّنَ اللّٰهِ

داهغه کسان دی چه انتظار کوی ستاسویه باره کښې، نوپس کچرې تاسوته فتح ملاؤشي دطرفه دالله نه

قَالُوْۤا اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ ۖ وَاِنْ كَانَ لِلْكٰفِرِيْنَ نَصِيْبٌ ۙ قَالُوْۤا اَلَمْ

وائی دوئ چه آیانه وؤمونږ ستاملګری. اوکه شی کافرانولره څه حصه (دفتح نه) نووائی دوئ کافرانوته آیا

نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ وَنَمْنَعْكُمْ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۭ فَاللّٰهُ

غالب شوی نه وو مونږ په تاسو(که دومنانوملګری وې)اوآیانه یئ بچ کړی مونږتاسو دومنانونه. پس الله به

يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ وَلَنْ يَّجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكٰفِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا ۝

فیصله اوکړی په مینځ ستاسو کښې په ورځ د قیامت. اوهرګزنه ورکوی الله کافرانولره په مومونانو باندې لار(غلبه)

﴿الَّذِيْنَ يَتَرَبَّصُوْنَ بِكُمْ﴾ دا دمنافقینو دنورو صفاتوذکردې چه دوئ انتظارکوی چه دچاغلبه او زور وی نودوئ دهغوسره ملګرتیاکوی دلالچ اودحرص دوجه نه که دمؤمنانوفتح اوغلبه شی نودوئي ته وائي ﴿اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ﴾ استفهام دتقریر دپاره دې یعنی مونږ خو تاسو سره وو نومونږ له په غنیمت کښې حصه راکړئ ﴿وَاِنْ كَانَ لِلْكٰفِرِيْنَ نَصِيْبٌ﴾ که دکافروغلبه شی نودوئي خپل احسان زباتوی او وائي چه ﴿اَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ﴾ که مونږه دمؤمنانوسره یوځائي شوې وې نودوئ به غالب شوې وې په تاسو اودلته دا لفظ مقدردې چه ((لکن ابقیناعلیکم)) لیکن مونږه په تاسو رحم اوکړلو ﴿وَنَمْنَعْكُمْ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ اوتاسو مو بچ کړئ دمؤمنانونه نوددې وجینه اوس مونږته حصه راکړئ

**فائده** دمؤمنانوغلبه چه په کافرانوراشی دایمان او اعمال صالحه په طاقت سره نودغه فتحه اونصرت الهی وی نوددې وجه نه ددې تعبیر په ((فتح)) سره اشو او ((من الله)) ذکرشو دپاره دتعظیم شان اودکفاروغلبه چه کله په مسلمانانو راشی نوهغه دمادی اسبابو د وجه نه وی نو دیته فتحه نه ویلې کیږی بلکه دا د دنیایوه حصه اوبرخه ده چه الله تعالی ئی په دنیاء کښې هرچاته ورکوی اوددې تعبیر په ((نصیب)) سره اوشو اوفتحه ورته نده ویلې او د آیت په آخر کښې نی اوفرمانیل چه الله تعالی کافرانولره په مؤمنانوباندې لار دفتحې نه ورکوی ﴿عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ

سَبِيلًا ﴾ دمؤمن نه كامل مؤمن مراد دي او د ((سبيلا)) نه مراد غلبه اوفتحه دنيوى ده كما قال تعالى ((وانتم الا علون ان كنتم مؤمنين)) دمؤمنانو سره دالله تعالى دغلبې وعده ده خو په شرط دايمان كامل سره اودالله تعالى په وعده كښې خلاف نه وى ((ومن اصدق من الله حديثا)) نوكه كافران په مؤمنانوباندې غالب شى نودا د ايمان ضعف اوياخه امتحان مقصودوى كما قال المظهرى ((واماغلبة الكفارفى زماننا فلضعف ايماننا وكثرة عصياننا)) او يا دسبيل نه مراد غلبه دحجت اودليل ده يامراد غلبه په آخرت كښې ده لكه ماقبل د آيت نه مَعلوميږى ﴿فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ﴾ اوعلماء كرامو دې آيت نه استدلال كړې دې چه ګواهي دكافر په مؤمن باندې نه قبليږى او ولايت دكافر په مؤمن باندې ندې صحيح .

إِنَّ الْمُنٰفِقِينَ يُخٰدِعُونَ اللّٰهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ ۚ وَإِذَا قَامُوٓا إِلَى الصَّلٰوةِ قَامُوا كُسَالٰى يُرَآءُونَ

بېشكه منافقان دهوكه كوى دالله سره اوالله دهوكه وركوى دوئ لره ، اوكله چه اودريږى مانځه ته اودريږى ناراسته، خودنه كوى

النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُونَ اللّٰهَ إِلَّا قَلِيلًا ۝ مُذَبْذَبِينَ بَيْنَ ذٰلِكَ ۖ لَآ إِلٰى هٰٓؤُلَآءِ

خلقو ته اونه يادوى الله مگر لږ. زوړند (اومتردد) دى په مينځ ددې (ايمان كفر) كښې، نه دى دمسلمانانو طرفته

وَلَآ إِلٰى هٰٓؤُلَآءِ ۚ وَمَنْ يُضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهُ سَبِيلًا ۝ يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا

اونه دي دكافرانوطرفته، اوڅوک چه بې لارې كړى هغه لره الله نوهرګزبه اونه مومې ته هغه لره لار اې ايمان والو

لَا تَتَّخِذُوا الْكٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ ۚ أَتُرِيدُونَ أَنْ تَجْعَلُوا لِلّٰهِ

مه نيسئ تاسوكافرانولره دوستان ماسوى دمومنانو نه، آيا تاسو دا غواړئ چه ثابت كړئ دپاره دالله

عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا مُّبِينًا ۝ إِنَّ الْمُنٰفِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ ۚ وَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا ۝

په خپل خان الزام ښكاره بېشكه منافقان به په طبقه لاندې كښې وى داور، اوهرګز به نه مومې ته هغوئ لره مددګار

إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا وَاعْتَصَمُوا بِاللّٰهِ وَأَخْلَصُوا

مګرهغه كسان چه توبه ئې اوكړه دنفاق نه اونېک عمل ئې اوكړو اوكلک ئې اونيولو دين دالله اوخالص ئې اوګرزولو

دِينَهُمْ لِلّٰهِ فَأُولٰٓئِكَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ ۖ وَسَوْفَ يُؤْتِ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِينَ أَجْرًا عَظِيمًا ۝

دين خپل دپاره دالله دغه خلق دمومنانوډلې نه دى، او زردۀ چه وربه كړى الله مومنانو ته اجر لوئې

مَا يَفْعَلُ اللّٰهُ بِعَذَابِكُمْ اِنْ شَكَرْتُمْ وَ اٰمَنْتُمْ وَكَانَ اللّٰهُ شَاكِرًا عَلِيْمًا ﴿۱۴۷﴾

څه کوی الله په عذاب ستاسوکچرې تاسوشکر کوئ اوایمان راوړئ. اودې الله قدردان پوهه په هرڅه

﴿إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ يُخَٰدِعُونَ ٱللَّهَ﴾ دا زجر دې منافقانو ته او دهغوئ دصفاتوقبيحوذكر دې چه دهوكه ده دمؤمنانوسره. او په مونځ كښې سستى اونارستى كول دى. اودينه دطبعى سستى اوناراستى نده مراد ځكه هغه په مؤمن كښې هم راتلې شى بلكه مراد دا دې چه مونځ فرض نه ګنړى او كار ثواب ئى هم نه ګنړى نوځكه سستى كوى اوكله چه مونځ كوى نو د ريا دپاره ئى كوى اودالله تعالى ذكر نه كوى مګر لږ شان، اودلږ نه مراد دادې چه اخلاص به په كښې نه وى اګركه تسبيح ورسره ډيرى وى، دلته قلت په اعتباردكيفيت سره مراد دې، قرطبى وائي چه قلت د ذكرنه مراد په مونځ كښې قلت دې يعنى په مونځ كښې تسبيح اوذكرنه كوى صرف ((الله اكبر)) په زوره سره وائى ﴿مُّذَبْذَبِينَ بَيْنَ ذَٰلِكَ﴾ دا حال دې دضمير د ﴿يُرَآءُونَ﴾ نه يا د ﴿يَذْكُرُونَ﴾ نه د ((ذب)) معنى ده شړل او ويشتل، نو دمذبذب معنى دا ده چه هرطرفته شړلې شى نومنافق د مؤمنانو د طرفه هم شړلې شى او دكافرانو د طرفه هم شړلې شى،نو دوئ پريشان حال وى ﴿لَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ﴾ ئى تفسير دې يعنى دوئ نه د مؤمنانو سره دى، نه د كافرانوسره . يا متعلق د ((الى)) مقدر دې چه **ينسبون** يا **منسوبين** دې ((اى لامنسوبين الى المؤمنين ولا منسوبين الى الى الكافرين)) او د دې جملې مطلب دادې چه نور خلق مم د دوئ په نسبت كولو كښې حيران دى، چه ـ نى مؤمنانو ته منسوب كولې شى اونه كافرانوته، اوپه اوله جمله كښې د دوئ دلازمى صفت بيان وؤ ﴿فَلَن تَجِدَ لَهُۥ سَبِيلًا﴾ لار دهدايت يعنى هيڅ كله به په هدايت رانشى اوته به دهغه دهدايت دپاره لار بيا اونه مومى. ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ دمنافقانو دصفت نه روستومؤمنانوته حكم دې چه دوئ سره او دكافرانوسره دوستانه مه كوئ د ((كَٰفِرِينَ)) نه مراد منافقين دى يا مجاهر كافران مرا ددى ﴿أَن تَجْعَلُوا۟ لِلَّهِ عَلَيْكُمْ سُلْطَٰنًا مُّبِينًا﴾ستاسو دوستانه كول دكفاروسره بنكاره حجت دې ستاسو په كفراواستحقاق دعذاب باندې د ((عليكم)) معنى ده ((على تعذيبكم)) يا ((كفركم ونفاقكم)) ﴿إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ فِى ٱلدَّرْكِ ٱلْأَسْفَلِ مِنَ ٱلنَّارِ﴾ د دوزخ طبقاتوته ((دركات)) ويلې شى او دجنت هغې ته درجات ويلې شى

**ددوزخ اووه (۷) طبقې دى** (۱) جهنم (۲) لظى (۳) حطمه (۴)سعير (۵) سقر (۶) جحيم (۷) هاويه. اومنافقان به دټولونه لاندې طبقه كښې وى او دټولونه سخت عذاب به ئى وى ځكه دوئ

د کفر سره نور قبائح زيات کړي وو. لکه استهزاء په اسلام پوري او خداع وغيره نوهرکله چه دمنافقانوکفر پټ وونو په جهنم کښې به ئې سزاه هم په پټ ځائي کښې و ي نو دا جزاء من جنس العمل ده ﴿وَلَن تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا﴾ دکافرانواودمنافقانودپاره سفارش نشته ﴿إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُوا۟﴾ پدې کښې دمنافقانو د توبې شرطونه ذکرکيږي او هغوئ ته دايمان ترغيب دې د «**تابوا**» نه يوشرط معلوميږي چه صحيح ايمان راوړل او دکفراو نفاق نه براء ت کول ﴿وَأَصْلَحُوا۟﴾ دادويم شرط دې اعمال فاسده پريخودل اونيک اعمال اختيارول ﴿وَٱعْتَصَمُوا۟ بِٱللَّهِ﴾ دا دريم شرط دې چه ذکفاروسره دوستانه دعزت حاصلولو دپاره پريخودل او دالله تعالى او دکتاب الله سره تعلق قائمول ﴿وَأَخْلَصُوا۟ دِينَهُمْ﴾ داځلورم شرط دې يعنى ريا پريخودل او په اخلاص سره نيک عمل کول ﴿مَعَ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾ ((مع)) په معنى د ((من)) سره دې يعنى دمؤمنانو د ډلې نه دی ﴿وَسَوْفَ يُؤْتِ ٱللَّهُ﴾ دا بشارة دې.

﴿مَّا يَفْعَلُ ٱللَّهُ بِعَذَابِكُمْ﴾ ((ما)) په معنى د ((اى شى)) سره دې او استفهام انکاري په معنى دنفى سره دې او دا خطاب دې منافقانوته چه الله تعالى څه کوی؟ چه تاسوته عذاب درکوی. بنده چه چاته عذاب ورکوی نومقصود ترينه نفع حاصلول وی يا بدله اخستل اوغصه سړول وی يا دفع دضرر وی اوالله تعالى ديته هيڅ حاجت نه لری نوهغه چه تاسوته عذاب درکوی نوهغه ستاسو دکفراودباطنى ګندګئ دوجه نه درکوی نوکه تاسو شکراوکړئ اوايمان راوړئ نوعذا ب به نه درکوی ﴿إِن شَكَرْتُمْ وَءَامَنتُمْ﴾ ((شکر)) مقدم ذکرشوې دې په ايمان باندې اوسره ددې نه چه حق ئې تاخيروو ځکه چه شکرسبب دايمان دې اوکفران يعنى ناشکرى سبب دکفردې اوسبب مقدم وی په مسبب باندې

﴿وَكَانَ ٱللَّهُ شَاكِرًا عَلِيمًا﴾ د ((شاکر)) معنې حضرت شيخ الهند رحمه الله په قدردان سره کوی يعنى الله تعالى دلږ عمل هم قدرکوی او ثواب پرې ورکوی «**شاکر، شکور**» داسماؤ دالله تعالى نه دی علماء معنى داکوی چه ((هوالذى يجزى بيسير الطاعات کثير الدرجات ويعطى بالعمل فى ايام معدودة نعمافى الاخرة غيرمحدوده)) **روح**، يعنى شاکر اوشکورهغه ذات دې چه په لږ طاعت سره ډيرې درجې ورکوی اود دنيا په لږه موده کښې عمل کولوسره ډيرنعمتونه په بى انتهاء زمانه دآخرت کښې ورکوی «**اللهم اجعلناشاکرين لنعمک مثنين بهاقابيلهاواتمهاعليناواعناعلى ذکرک وشکرک وحسن عبادتک**».

**پنځمه پاره ختمه شوه ولله الحمد اولاً واخراً**

لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا مَنْ ظُلِمَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ

نه ، خوښوي الله په زوره ويل (ظاهرول) دبدې خبرې (شرک) مګر هغه څوک چې ظلم کړې شوې وی په هغه باندې. اودې الله

سَمِيْعًا عَلِيْمًا ﴿۱۴۸﴾ اِنْ تُبْدُوْا خَيْرًا اَوْ تُخْفُوْهُ اَوْ تَعْفُوْا عَنْ سُوْٓءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ

اوريدونکې پوهه　که ښکاره کوئ تاسوځه نېکی يائې پټه کوئ يا معافي کوئ دبدئ نه　نوبېشکه الله دې

كَانَ عَفُوًّا قَدِيْرًا ﴿۱۴۹﴾

معافي کونکې قدرت لرونکې

﴿لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا مَنْ ظُلِمَ﴾ دا متعلق دې د ﴿لَا تَتَّخِذُوا الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ﴾ سره اود ((**السوء من القول**)) بده وينا نه مراد کلمه دکفرده ((**الامن ظلم**)) نه مراد ((من اُکره)) دې يعنی که څوک مکره کړې شی نودخپل ځان دبچ کولودپاره صرف کلمه دکفر که په ژبه اوائي نواجازت دې. اويا دا متعلق دې دمنافقانو دصفاتوسره چه دوئ کلمه دکفر وائي په خوشحالئ سره او بيا وائي چه مونږه دکافرانو ديرې دوجه نه ويلې وه نوځکه الله تعالی اوفرمائيل چه بغيردحالت داکراه نه کلمه دکفر ويل جائز ندی او په حالت داکراه کښې صرف په ژبه ويل چه زړه مطمئن وی په ايمان باندې جائزدی، اوبعضې مفسرين وائی چه ((**بالسوء من القول**)) نه مراد دعا دشر ده (خيرې ) يعنی چاته خيرې کول الله تعالی نه خوښوی مګرکه مظلوم ظالم ته خيرې کوی نو دا جائزدی. اوبعض وائي چه په چاظلم اوشی اوهغه دظالم غيبت کوی يا په شرعی عدالت کښې په هغه شکايت کوی اودهغه دظلم اودبدکردار بيان قاضی او حاکم ته کوی نو دا جائزدی. دظالم او دارنګې دهر فاسق اوګمراه نـقائص خلقوته بيانول ددې دپاره چه خلق ترينه ځان اوساتی نو دا جائز دی ((اذکرالفاسق بمافيه يحذره الناس)) (**بخاري**).

﴿وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا عَلِيْمًا﴾ پدې کښې اشاره ده چه دظالم غيبت په قدردظلم دهغه جائز دې زيادت اومبالغه کول جائزنه دی ﴿اِنْ تُبْدُوْا خَيْرًا اَوْ تُخْفُوْهُ﴾ يعنی که تاسو دخيرخبره په څرګنده وائي اويا په زړه کښې اراده کوئ اويا د بدوکارونو نه منع کوئ نو دابنه کاردې. ياتاسوسر ه

[1] دامتعلق دې د ، ولا تتخذوالکافرين اولياء) سره او دسوء نه مراد کلمه دشرک ده او د ، الا من ظلم) نه مراد (من اکره) دې

چابد او کړل او تاسو ورته معافی کوئ نو دا ښه کار دي او داسې کول پکار دي ځکه چه الله تعالی سره د قدرت نه معافی کوی نو انسان خو عاجز دي نو دده د پاره خو معافی کول خامخا پکار دي

إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهِ وَيُرِيدُونَ أَنْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ اللّٰهِ

بېشکه [1] هغه کسان چه کفر کوي په الله او رسولانو د هغه او اراده لري چه جدا والي اوکړی په مینځ د الله

وَرُسُلِهِ وَيَقُولُونَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَّنَكْفُرُ بِبَعْضٍ ۙ وَّيُرِيدُونَ

او د رسولانو د هغه کښې په ایمان کښې ،او وائی دوئ ایمان لرو مونږ په بعضو باندي او کفر کوو په بعضو باندي. او غواړی

أَنْ يَتَّخِذُوا بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيلًا ۝ أُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُونَ حَقًّا ۚ وَأَعْتَدْنَا

چه جوړه کړی په مینځ دد ې کښې بله لار دغه [2] کسان دوئ کافران دی په تحقیق سره . او تیار کړېدي مونږ

لِلْكٰفِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ۝ وَالَّذِينَ اٰمَنُوا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهِ

د پاره د کافرانو عذاب شرموونکي او هغه [3] کسان چه ایمان ئې راوړې دې په الله او په رسولانو د هغه

وَلَمْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ أُولٰٓئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيهِمْ أُجُورَهُمْ

او فرق ئې نه وي کړې په مینځ د هیڅ چا کښې د دوئ نه. دغه کسان زر دي چه چه وربه کړی الله دوئ ته اجرونه د دوئ

وَكَانَ اللّٰهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ۝

او دې الله بخښونکي رحم کونکي.

﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهِ ﴾ دا زجر او تخویف دې اهل کتابو ته ﴿ وَيُرِيدُونَ أَن يُفَرِّقُوا ﴾ دا عطف تفسیر دې د ((یکفرون)) لپاره، او فرق په مابین د الله تعالی او رسولانو کښې دا دې چه وائي د الله تعالی حکم منم او د رسول حکم نه منم لکه منکرین حدیث

﴿ وَيَقُولُونَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَنَكْفُرُ بِبَعْضٍ ﴾ لکه یهودیان وائي چه مونږه په ابراهیم

[1] - زجر اهل کتابو ته.

[2] زجر. تخویف

[3] بشارت

اواسحاق اوموسی علیهم السلام باندې ایمان لرو خو په اسماعیل اوعیسی علیهما السلام اومحمد صلی الله علیه وسلم باندې ایمان نه لرو اودارنګې نصاری عیسی علیه السلام منی اومحمد صلی الله علیه وسلم نه منی ﴿وَيُرِيدُونَ أَن يَتَّخِذُواْ بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا﴾ ذلك اشاره ده تصدیق الکل او تکذیب الکل ته په تاویل د مذکور سره، نو که څوك د کفر اوایمان نه مخلوط دین جوړوی نو دا کفر دې. ﴿أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَٰفِرُونَ﴾ داخبر دپاره د ((ان)) دې او ((حَقًّا)) په معنی دیقین سره دې یعنی ددوئ کفر یقینی اوقطعی دې اودا دتاکید دپاوه ذکرشوې دې ﴿وَأَعْتَدْنَا﴾ داتخویف دې ﴿وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾ دا بشارة دې ﴿سَوْفَ يُؤْتِيهِمْ﴾ ((سوف)) د وعدې او د تاکید دپاره دې بُعد په کنبې مقصودندې.

يَسْـَٔلُكَ اَهْلُ الْكِتٰبِ اَنْ تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتٰبًا مِّنَ السَّمَآءِ فَقَدْ

تپوس کوی ستانه اهل کتاب چه ته نازل کړې په دوئ باندې کتاب دآسمان نه، پس په تحقیق سره

سَاَلُوْا مُوْسٰى اَكْبَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَقَالُوْۤا اَرِنَا اللّٰهَ جَهْرَةً

تپوس کړې وودوئ دموسی نه دلوئې څیزددېنه نو دوئ وئیلی وو چه اوخایه مونږ ته الله په ښکاره

فَاَخَذَتْهُمُ الصّٰعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ ۚ ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا

نواونیولو دوئ لره تندر په وجه دظلم ددوئ، بیااونیولو دوئ څخی لره په خدائې سره روستودهغې نه

جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ فَعَفَوْنَا عَنْ ذٰلِكَ ۚ وَاٰتَيْنَا مُوْسٰى سُلْطٰنًا

چه راغلل دوئ ته ښکاره دلائل پس عفوه کړې وه مونږ دوئ ته ددې جرم، او ورکړې وو مونږ موسی ته دلیل

مُّبِيْنًا ۝ وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّوْرَ بِمِيْثَاقِهِمْ وَقُلْنَا لَهُمُ

ښکاره او اوچت کړې وو مونږ ددوئ دپاسه طورغردپاره دوعدې اخېستلو ددوئ نه اوونیل مونږ دوئ ته

ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَّقُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوْا فِي السَّبْتِ

چه داخل شئ دروازې ته سجده کونکی، او اوونیل مونږ دوئ ته چه تجاوزمکوئ دحدنه په ورخ دخالی

وَاَخَذْنَا مِنْهُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا ﴿۱۵۴﴾ فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ

او اخيستي وو مونږ د دوئ نه وعده كلكه . نو لعنت او كړو مونږ په دوئ په (۱) سبب د ماتولو د دوئ د وعدې خپلې لره

وَكُفْرِهِمْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَقَتْلِهِمُ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَّقَوْلِهِمْ

او په سبب د كفر د دوئ په آياتونو د الله باندې او په سبب د قتلولو د دوئ نبيانو لره په ناحقه سره او په سبب د دې وينا د دوئ

قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ؕ بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۱۵۵﴾

چه زړونه زمونږ په پردو كښې دي. بلكه مهرلګولي دي الله په هغې په سبب د كفر د دوئ نو ايمان نه راوړي دوئ مګر لږ

﴿ يَسْـَٔلُكَ اَهْلُ الْكِتٰبِ ﴾ دا زجر دې يهوديانو ته او دهغوئ د ضد او تعصب بيان دې چه دوئ ستا نه معاندانه سوالات كوى **ددې سوال حاصل** دا دې چه دوئ وئيل نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته چه كه ته برحق نبى ئې نو په تا باندې قرآن دفعةً ولې ندې نازل شوې؟ لكه په موسى عليه السلام باندې چه توراة نازل شوې وو او كه چرې په تا باندې كتاب دفعةً نازل شى نو مونږ به ستا رسالت تسليم كړو، حضرت تهانوى رحمه الله په روايت د ابن جرير رحمه الله سره ليكلى دى چه يهوديان بارګاه رسالت ته حاضر شول او وې وئيل چه الله تعالى دې زمونږ دهريو په نوم يو نوشته (خط) اوليګى چه په هغې كښې داسې مضمون وى چه محمد (صلى الله عليه وسلم) زما نبى دې او تا سو يرې ايمان راوړئ نو مونږ به ستا سو رسالت تسليم كړو ددې سوال جواب په مخكښې راتلونكى ركوع كښې ذكر كيږى ((**انا اوحينا اليک**)) او دلته دنبى كريم صلى الله عليه وسلم ته تسلى ذكر كيږى چه ته خفه كيږه مه ديهوديانو فطرت داسې دې چه دوئ معاندانه سوالات كوى. ستا نه ئې خو داسې سوال وكړو چه په تا دې كتاب جملةً واحدةً نازل شى. يا مونږ ته دې د الله تعالى د طرفه خط راشى ليكن د موسى عليه السلام نه ئې د دينه د غټې خبرې سوال كړې وؤ . هغه دا چه مونږ ته الله تعالى عيانًا ((په ښكاره)) وخايه. او د دې ګستاخئ او بى ادبه سوال په وجه په دوئ صاعقه ((تندر)) ولګيدو او مړه شول. او كتاب جملةً نازليدل خو په دنيا كښې واقع شوى دى او رؤيت د الله تعالى په دنيا كښې ندې واقع شوې، نو سوال د رؤيت د الله. غټه خبره ده په نسبت

---

۱ - زجر دې . دا داسبابو ذكر دې او حكم ئې په طور د سزا روستو رازى چه (حرمنا عليهم طيبات – الخ) دې يا جار مجرور د (لعنا) سره متعلق دې

سره نزول دَ کتاب ته جملة واحدةً

﴿ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ﴾ دا د دوئ دبل قباحت ذکردې چه دوئ معبودګرځولې ووعجل لره دلته دا شبه کیدې شی چه عبادت دعجل مقدم وؤ د سوال د رؤیت نه لکه په سورت بقره کښې چه ذکر شوی دی. او دلته عبادت د عجل په ((ثم)) سره ذکر شوې دې نو دا دلالت کوی په دې باندې چه عبادت د عجل روستې وؤ.

**جواب** دادې چه دلته **ثم** دترتیب زمانی دپاره ندې بلکه دتراخی دذکردپاره دې یا ((ثم)) استبعدیه دې خکه چه عجل معبودګرځول زیات مستبعددی دسوال دروْیت نه څکه رؤیت دالله تعالی په دنیاء کښې اګرکه واقع خو ندې لیکن ممکن دې او په آخرت کښې واقع دې اودعجل معبودګرځول ندی جائز په هیڅ حال کښې په نیزد عقل سلیم اونه شرعًا ، نه په دنیا کښې او نه په آخرت کښې ﴿وَءَاتَيْنَا مُوسَىٰ سُلْطَٰنًا مُّبِينًا﴾ مراد ترینه توراة دې یامعجزات دموسی علیه السلام دی اویا دموسی علیه السلام رعب اوجلال دې چه په فرعون باندې ئی رعب وو، نوهغه نشو قتلولې اودارنګې په بنی اسرائیلو باندې ئی رعب وو چه هغوئ ئی دا حکم ومنلو چه ((**فاقتلواانفسکم**)) نو داسې جلالی شان والا پیغمبر نه داسې معاندانه سوالات کول دلویومعاندینو او بی شرمه خلقو کار دې ﴿وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّورَ﴾ دا د دوئ دنوروقباحتونو ذکردې، طورغر پدوئ باندې اوچت کړې شوې وو دپاره د وعدې اومیثاق په عمل په توراة باندې اودا اکراه اوجبر دې په قبول داحکاموفرعیواو دا جائزدې

﴿وَقُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ﴾ دسجدې نه مراد انحناء او عاجزی ده یاترینه مرادحقیقی سجده ده او دا حال مقدره دې اویهودو ددې حکم خلاف کړې وو پدې کښې هغې ته اشاره ده لکه په سورة بقره کښې تیرشوی دی ﴿وَأَخَذْنَا مِنْهُم مِّيثَٰقًا غَلِيظًا﴾ ددې مخکښنواحکامودعمل دپاره پخه وعده مراد ده یانوری وعدې مراد دی لکه په سورة بقره کښې تیرشوی دی ﴿فَبِمَا نَقْضِهِم﴾ با سببیه ده او ((ما)) زائد دې او جارمجرورمتعلق دې د ((لعنا)) مقدرسره نو ((نقضهم)) سره دمعطوفاتونه سبب دې دلعنت کیدو دپاره پدوئ باندې، حضرت شیخ فرمائي (کماهوالمروی عن الزجاج ) چه دلته بیان داسبابو دې د آیت نمبر ۱۵۹ پورې، او په ﴿فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِينَ﴾ کښې د دغه اسبابو ذکر دې بالاجمال اوحکم مقصوده مرتب په دغه اسبابوباندې دادې چه ﴿حَرَّمْنَا

عَلَيْهِمْ طَيِّبٰتٍ ﴾ ﴿وَكُفْرِهِمْ ﴾ دادويم سبب دي ﴿وَقَتْلِهِمُ الْاَنْۢبِيَآءَ ﴾ دريم سبب دي ﴿وَقَوْلِهِمْ قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ﴾ دا څلورم سبب دي ((غلف)) په سکو ن دلا م سره جمع د ((غلف)) ده هغه څيزونه چه په پرده کښې وی نو دوئ اوئيل چه زمونږه زړونه په پردوکښې دی ستاسو خبرته ورته نه رسيږی لکه ((وقالوا قلوبنافي اكنة مماتدعوننا اليه)) حم سجده ، آيت ٥ يا ((غلف)) په سکون دلا م سره په اصل کښې غلف وو په ضمه دلام سره نوضمه په سکون سره بدل شوه تخفيفا او ((غُلُفٌ)) په معنی د ((اوعية العلم)) سره دي يعني زمونږ زړونه دعلم لوخي دی او دعلم نه ډک دی ستاسوعلم اونصيحت ته ئی ضرورت نشته دي نوالله تعالی اوفرمائيل چه داسې ندہ ﴿بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَيْهَا ﴾ ددوئ ز ړونه دکفرنه ډک دی نو دکفراو دلعنت مهرپرې لګيدلې دې .

وَّبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلٰى مَرْيَمَ بُهْتَانًا عَظِيْمًا ۝ وَّقَوْلِهِمْ اِنَّا

اوپه سبب دکفر ددوئ سره اوجوړولو دوئ سره په مريم باندې بدنامه لويه . اوپه سبب دوبناددوئ (فخرا) چه بېشکه مونږ

قَتَلْنَا الْمَسِيْحَ عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ۚ وَمَا قَتَلُوْهُ وَمَا صَلَبُوْهُ

قتل کړېدې مسيح چه عيسي خوئې دمريم دې اودالله رسول دې، اونه دې قتل کړې دوئ هغه لره اونه ئې دې په سولئ کړې.

وَلٰكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ ؕ وَاِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا

ليکن يوشان هم شکل کړې شوې وو يوکس دعيسٰی سره دوئ ته، اوبېشکه هغه کسان چه مختلف شوی دی

فِيْهِ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ ؕ مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ

په باره د قتل دعيسٰی کښې خامخا په شک کښې دی دحال دده، نشته دې دوئ لره په هغه څه علم يقيني

اِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَمَا قَتَلُوْهُ يَقِيْنًا ۝ بَلْ رَّفَعَهُ

مګر تابعداری د ګمان ، اونه دې قتل کړې دوئ هغه په رښتياسره . بلکه پورته خيژولې دې هغه نر

اللّٰهُ اِلَيْهِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ۝ وَ اِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ

الله خپل خان ته اودې الله زورآورحکمتونووالا اونشته دې هيڅوک داهل کتابونه مګرخامخابه ايمان راوړی

بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ ۚ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا ۝

په عیسی مخکښې دمرگ دهغه نه، اوپه ورځ دقیامت به شی هغه په دوئ گواهی ورکونکی

﴿وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلٰى مَرْيَمَ﴾ دکفر نه مراد کفر دې په نبوة دعیسی علیه السلام باندې یا انکار په پیداکیدو دعیسی علیه السلام باندې بغیرد نارینه نه، او په مریم بی بی علیها السلام باندې دبدکارئ تهمت، اوحال دادې چه دوئ ته دهغې په عفت باندې ښکاره دلیلونه موجودوو

﴿وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيْحَ﴾ یعنی صرف دا وینا او دعوه ددوئ چه مونږه عیسی علیه السلام قتل کړې دې نو دا سبب دلعنت دې ﴿وَمَا قَتَلُوْهُ﴾ دا ددوئ ددعوه تردید دې چه نه دوئ عیسی علیه السلام قتل کړې دې اونه ئی په سولئ کړې دې ﴿وَلٰكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ﴾ ((شُبِّهَ)) صیغه دماضی مجهول ده دشبهه نه ماخوذدې یعنې مماثلت په شکل کښې، یا په معنی داشتباه سره دې یعنی معامله اواصل خبره گډوډه کول . نو دلته **دوه توجیه دی اوله توجیه** داده چه دوئ عیسی علیه السلام ندې قتل کړې بلکه دوئ قتل کړې دې هغه څوک چه جوړ کړې شوې وؤ په شکل دعیسی علیه السلام باندې لکه دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه یهودیان کله هغه مکان ته داخل شول کوم مکان کښې چه حضرت عیسی علیه السلام وونو پدوئ کښې یوکس چه نوم ئي طیطانوس وؤ چه ډیر شریروو او عیسی علیه السلام ته به ئی اذیت رسولو هغه هم داخل شو دعیسی دقتل کولو دپاره یاګرفتارولو دپاره، نودغه سړې دعیسی علیه السلام په شکل شواوعیسی علیه السلام اسمان ته الله تعالی اوچت کړلو نویهودیانو ده لره قتل کړو نو بیا په شک کښې شول که داعیسی علیه السلام وی نوځمونږ ملګرې څه شو او که دا طیطانوس وی نوبیاعیسی علیه السلام څه شوه اوهم دارنګې د ده ظاهری حُلیه دعیسی علیه السلام پشان وه او لاندې بدن ئي دطیطانوس وو، اوابن جریر،دابن وهب رحمهما الله نه داسې روایت کړې دې چه دا مقتول دعیسی علیه السلام دحوارئینو نه وو عیسی علیه السلام اوویشت (۲۷) حوارینوسره یومکان ته داخل شوې وو نویهودیانوپرې احاطه اوکړه نوچه دوئ داخل شو نوعیسی علیه السلام خپلوملګروته اویل چه څوک جنت غواړې؟ نویوسړی آوازاوکړو چه څه جنت غوارم نوالله تعالی دده شکل دعیسی علیه السلام په شکل جوړکړو اوعیسی علیه السلام ورلره خپل قمیص اوعمامه ورکړه نویهودیانوګمان اوکړلو چه داعیسی دې نودې ئي قتل کړلو (کذاف القرطبی )

**اودویمه توجیه** داده چه دوئ ته معامله مشتبه اوګډه وډه کړې شوې ده پدې شان چه کله

يهوديان دحضرت عيسى عليه السلام دگرفتارولو دپاره مكان ته داخل شول نوعيسى عليه السلام ني اونه موندلونو يو غريب سړي ني ونيولو اوقتل ئى كړلو او دفن ئى كړلو او چاته ئي ښكاره نه كړو نوعواموته ئى اوئيل چه مونږه عيسى قتل كړو اودفن مو هم كړو اودا دويمه توجيه حضرت شاه انورشاه كشميرى صاحب رحمه الله دابن حزم دكتاب الملل والنحل (ص : ١٧٧) نه نقل كړي ده اودې ته ئي ترجيح وركړى ده.

﴿وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ﴾ يعنى كوموخلقوچه دحضرت عيسى عليه السلام په باره كښې اختلاف كړې دې چه هغه يهوديان اونصارى دى نود ((الذين)) نه مراد دواړه فرقې دى، نوپدې كښې هيڅ چاسره صحيح علم نشته بلكه تردد اوجهل دې، دشک نه مراد تردد دې يا ترينه مراد جهل دې. يهوديانو دا اختلاف په باره دعيسى كښې داسې كړې وو چه آيا كه مونږه عيسى قتل كړې دې نو زمونږه ملگرې څه شو او كه مونږه خپل ملگرې قتل كړې دې نوعيسى څه شو او دا رنگې مخ دعيسى عليه السلام اوباقى بدن ني ددوئ دملگرى وو، اونصارو اختلاف داسې كړې دې چه عيسى عليه السلام قتل شو او زمونږه دپاره كفاره دسيئات شو او بعضو وئيل چه جسم ئى قتل شو او روح ني الله تعالى خواته لاړ، اوبعضو وئيل چه قتل شوليكن درې ورځونه روستو بياجوندې شو او آسمان ته لاړ.

﴿وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا﴾ ((يقينا)) تاكيد د نفى دې ﴿بَل رَّفَعَهُ اللّٰهُ﴾ بلكه يقينى اوقطعى خبره داده چه الله تعالى خپل ځان ته او آسمان ته اوچت كړې دې،دلته رفع جسمانى مراد ده ځكه چه د ((رفعه)) ضمير هم هغه چاته راجع دې چه ((قتلوه اوصلبوه)) ضمير ورته راجع دې اوهغه جسم ته راجع دې ځكه قتل اوصلب په جسم باندې كيږى نه په روح باندې.

﴿وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ﴾ پدې كښې دوه توجيه دى **اول** دا چه د به ضمير راجع دې عيسى عليه السلام ته ((وقال الشيخ الضمير راجع الى حقية ماقاله محمد صلى الله عليه وسلم)) اود ((موته)) ضمير راجع دې اهل كتابو ته يعنى هر اهل كتاب يهودى اونصرانى چه مركيږى نو په حالت دنزع كښې چه دعالم غيب مشاهده اوكړى نوايمان په عيسى عليه السلام باندې راوړى خودا ايمان به دوئ ته نفع نه وركوى او په ورځ دقيامة به عيسى عليه السلام ددوئ په انكار گواهى وكړى. ـ دا چه دوئ به ايمان راوړى په حقيت دهغه څه چه نبى صلى الله عليه وسلم نرسېلى دى په حق دعيسى عليه السلام كښې او په ورځ دقيامت به نبى صلى الله عليه وسلم پدوئ

گواهي وکړي، **دويمه توجيه** داده چه دا دواړه ضميرونه عيسی علیه السلام ته راجع ي اومطلب دادې چه قيامت ته قريب چه کله عيسی علیه السلام د آسمان نه راکوز شي نو دموت نه قبل که يهودي وي اوکه نصراني وي نو په ده به ايمان راوړي او دا توجيه غوره ده

فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَاتٍ أُحِلَّتْ لَهُمْ

نوبس([1]) په سبب د ظلم کولو ديهوديانو سره حرام([2]) کړل مونږ پدوئ باندې مزيدار (پاک) خيزونه چه حلال شوی وو دوئ لره

وَبِصَدِّهِمْ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ كَثِيرًا ﴿۱۶۰﴾ وَأَخْذِهِمُ الرِّبَا وَقَدْ

اوبه سبب دمنع کولو ددوئ دلارې دالله نه ډيروخلقو لره اوبه سبب داخستلو ددوئ سود لره اوبه تحقيق سره

نُهُوا عَنْهُ وَأَكْلِهِمْ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ ۚ وَأَعْتَدْنَا

ددوئ منع کړې شوی وو دهغې نه، اوبه سبب دخوړلو ددوئ مالونو دخلقو لره په ناحقه سره، اوتيار کړې دې مونږ

لِلْكَافِرِينَ مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿۱۶۱﴾

کافرانو لره ددوئ نه عذاب دردناک

﴿ فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا ﴾دا دهغه اسبابو اجمالاً اعاده ده چه مخکښې ذکرشو نو (باء) سببيه ده او د ظلم نه مراد مخکښنی مذکوره جرائم دی او(حرمنا) بيان دحکم مقصودی دې، اکثر مفسرين وائي چه دتحريم طيبات نه مراد هغه اموردي چه مذکوردي په سورة انعام آيت نمبر ۱۴۶کښې ﴿ وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِي ظُفُرٍ ﴾ ليکن پدې اشکال دې چه دا امور خو مخکښې په سورة انعام کښې حرام شوی وو اويهوديانو مخالفت دعيسی او په حضرت مريم عليه السلام تهمت روستو لګولې وو نوسزا دجرم، دجرم کولونه مخکښې څنګه شوه ؟

**جواب** حضرت شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله فرمائي چه مراد دتحريم دطيبات نه دغه امور ندی چه مذکور دی په سورة انعام کښې بلکه مراد ترينه په يهودو ذلت راوستل اونصرت بندول اوحکومت اغستل وغيره دی نو دا آيت په شان د ﴿وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ ﴾

[1] - دادتمامو اسبابو مذکورو اعادة ده.

[2] - دادتمامو اسبابو مذکورو حکم دې په طور د سزا

((وضربت عليهم الذلة والمسكنة ـ الايه)) دې حضرت عثماني رحمه الله ددې ايت په تشريح کښې فرماني چه ديهوديانو ټولو مخکنو او روستنو شرارتونو ئي ذکراوفرمائيلونواوس فرمائي چه مونږ په دوئ باندې سخت شريعت کيخودو چه سرکشی ئی ماته شی ـ الخ اوصاحب روح المعانی يوجواب داهم ورکړې دې چه دتحريم دطيبات دپاره اسباب هغه عبادة العجل وغيره دی او انکاردعيسی عليه السلام اوتهمت په بی بی مريم عليها السلام اسباب د دوام او د استمرار دتحريم دپاره دی ((وقيل فى جوابه ان المراداستمرارالتحريم)) (روح المعانی)

﴿وَبِصَدِّهِمْ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ﴾ دينه مراد منع کول دخلقودی دتوحيدنه او دايمان بالرسل نه او اتباع دقرآن نه ﴿وَأَخْذِهِمُ الرِّبَوٰا وَقَدْ نُهُوا عَنْهُ﴾ سود په دوئ باندې حرام وو په توراة اوانجيل کښې داحکم موجوددې ﴿أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ﴾ د دينه مراد ټولوحرامې طريقې دمال ګټلودی لکه رشوت، دهوکه اونذرلغيرالله ﴿لِلْكَافِرِينَ مِنْهُمْ﴾ ځوک چه پدوئ کښې په کفرباندې مصر شی نو دهغوئ دپاره عذاب اليم دې اوڅوک چه ايمان راوړی لکه عبدالله بن سلام رضي الله عنه نوهغوئ دپاره ډبل اجر دې ((يوتؤن اجرهم مرتين)).

لَٰكِنِ الرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ مِنْهُمْ وَالْمُؤْمِنُونَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ

لېکن (۱) پاخه په علم کښې ددوئ نه اومومنان، ايمان لری په هغه کتاب چه نازل کړې شوېدې تاته

وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ وَالْمُقِيمِينَ الصَّلَاةَ وَالْمُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَالْمُؤْمِنُونَ

اوچه نازل کړې شوېدې مخکښې ستانه (اوشاباش دې) په قائمونکودمونځ اوورکونکی دزکوة اوايمان لرونکی

بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أُولَٰئِكَ سَنُؤْتِيهِمْ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿۱۶۲﴾

په الله او په ورځ د آخرت، دغه کسان خامخا ورکوؤ به مونږ دوئ ته اجر لوئې

﴿لَٰكِنِ الرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ﴾ دا بشارة دې مؤمنانو د اهل کتابوته لکه عبدالله بن سلام او دهغه ملګری شو . ((لکن)) حرف استدراک دې چه مخفف دې نوعمل نه کوی ((**الراسخون**)) مرفوع دې مبتداء ده سره دمعطوفاتونه ، او ﴿يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ﴾ ورله خبردې يا ((**يؤمنون**))

بشارت مومنانود اهل کتابو ته

جمله حالیه ده اوخبر دمبتدء ﴿أُولَٰئِكَ سَنُؤْتِيهِمْ﴾ دي.
﴿وَالْمُقِيمِينَ الصَّلَاةَ﴾ دا منصوب دي په نزد دسیبویه او دعامو بصریانوباندي بنا برمدح ((ای امدح المقیمن الصلوة)) نو پدي کښي اشاره ده زیات اهمیت دصلوة ته. اوامام کسائي وائي چه دا مجرور دي عطف دي په ((**ماانزل الیک**)) باندي یا په کاف باندي په ((**من قبلک**)) کښي اومرادترینه ملا ئک دی، یاعبارة په حذف دمضاف سره دي ((ای بدین المقیمن الصلوة)) امام کسائي په امام سیبویه باندي اعتراض کوی چه منصوب برمدح په آخر دکلام کښي رازی نه په وسط کښي نوسیبویه وائي چه پدي خبره باندي هیڅ دلیل نشته دي چه منصوب بر مدح فقط په آخر کښ رازی. حاصل دادي چه ((**المقیمن**)) منصوب دي یامجروردي او ((**المقیمون الصلوة**)) قراءت شاذه دي او ((**المقین الصلوة**)) قراءت متواتره دي اولحن ندي اوحضرت عثمان رضی الله عنه ته چه منصوب کړي شوي دي((ارى شیئامن لحن ــ الخ )) دا نسبت صحیح ندي اودا روایت ثابت ندي دحضرت عثمان رضی الله عنه نه ځکه چه په روایت کښي ضعف اواضطراب دي اونقطاع ده .روح.

**فائده** شیعه د((**المقین الصلوة**)) په اعراب باندي اعتراض کوی چه دا دعربیت په قانون سره لحن دي چه عثمان رضی الله عنه کړي دي اوداسي په نوروآیاتونو اعتراض کوی، نو جواب دماقبل نه معلوم شو چه دا قراءت متواتره دي اودیته لحن ویل دا حماقت دي

**حضرت استاد شیخ القران مولا نا غلام الله خان رحمه الله خپله واقعه بیانوله** چه په ما باندي دحکومت دطرف نه شکایت وونوخه ډپټی کمشنرخپل دفترته طلب کړم نوچه کله حاضرشوم نوماته معلومه شوه چه شیعه دي نوما په هغه باندي سلام اونه وئیلواوکیناستم نو هغه پوهه شو او را پاسیده او په ډیر احترام سره ئي گفتگو شروع کړه، وي وئیل حضرت چه تا خو تفسیر جواهر القرآن خولیکلي دي لیکن د((**والمقیمین الصلوة**)) په اعراب دي لیکل ندی کړی نو دا وه وایه چه دا ولي منصوب دي؟ نو ما جواب ورکړو چه دا منصوب بنابرمدح دي نو هغه اعتراض وکړو چه منصوب بنا بر مدح خو په آخر دکلام کښي راځی، نو ماجواب ورکړلو چه دا دبعضي اهل عربوقول دي اویدي هیڅ دلیل نشته دي چه دمنصوب بر مدح به فقط په آخر دکلام کښي وی . هغه چپ شو. خو دا جواب مادخپل ځان نه توکلاً کړي وو او څه ماخذ او حواله راته معلومه نه وه نو چه واپس راغلم، نو د روټۍ خوراك وغیره ضروریاتو نه قبل م تفسیر روح المعانی راواخست نو په هغي کښ هم دغه خبره وه چه ما کړیوه، خوشحال شوم اوشکر م وکړوچه غلطه توجیه م نده کړي، دا قصه به حضرت طلباؤ ته د عبرت لپاره کوله چه یو انگریزی

خوان اوعصری تعلیم شیدائی په قرآن کښې دنقص پیداکولو دپاره مذموم کوشش کوی او دومره ډیره مطالعه کوی اومعلومات حاصلوی، نومونږ تاسوله څه څه پکار دی (**والله الموفق**)

﴿وَالْمُؤْتُونَ الزَّكٰوةَ﴾ دا عطف دې په ((**يؤمنون**)) باندې نو دا هم خبر د ((لكن)) دې

﴿وَالْمُؤْتُونَ﴾ داهم عطف دې په ((يؤمنون)) باندې، او دا ئې مؤخر ذکر کړوخکه چه دا په منزله د شرط دې دپاره دَ ما قبل او شرط کله مؤخر وی ((**سَنُؤْتِيهِمْ**)) سین دَ استقبالِ قرینهٔ دې او کله کله ترینه تاکید مراد وی . دلته د تاکید لپاره دې.

إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَىٰ نُوحٍ وَالنَّبِيِّينَ مِنْ بَعْدِهِ ۚ

بېشکه [1] مونږ وحي کړېده تاته پشان دهغې چه وحی کړېوه مونږ نوح ته،اونوروپیغمبرانوته روستودهغه نه.

وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ

اووحې کړې وه مونږابراهیم ته، اواسماعیل ته اواسحاق اویعقوب ته او اولاد دهغوئ ته

وَعِيسَىٰ وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَارُونَ وَسُلَيْمَانَ ۚ وَآتَيْنَا دَاوُودَ زَبُورًا ﴿١٦٣﴾

اوعیسی او ایوب . اویونس اوهارون اوسلیمان ته، او ورکړې وو مونږ داؤد ته زبور

وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنَاهُمْ عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ

اووحی کړېوه مونږ ډېرورسولانوته چه دهغوئ احوال مونږبیان کړی دی تاته مخکښې ددېنه،

وَرُسُلًا لَمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ ۚ وَكَلَّمَ اللّٰهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا ﴿١٦٤﴾

اوداسې ډېرورسولانوته چه دهغوئ حالات مونږندي بیان کړي تاته، اوخبري کړی دی الله دموسی سره خبرې کول

رُسُلًا مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللّٰهِ

لیږلی دی مونږ رسولان زېرې ورکونکی او یرونکی د دې دپاره چه پاتې نشی دخلقودپاره په الله

[1] دا جواب دهغه سوال دی چه دَ رکوع په اول کښې ذکر شو.

| |
|---|
| حُجَّةٌۢ بَعۡدَ ٱلرُّسُلِ ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿١٦٥﴾ لَّٰكِنِ ٱللَّهُ يَشۡهَدُ بِمَآ |
| څه الزام ،بهانه، پس دلیږلودرسولانو نه. اودي الله زورآور اوحکمتونووالا لیکن الله ګواهي کوي په هغه |
| أَنزَلَ إِلَيۡكَ ۖ أَنزَلَهُۥ بِعِلۡمِهِۦ ۖ وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ يَشۡهَدُونَ ۚ وَكَفَىٰ |
| کتاب سره چه نازل کړې ئې دي تاته نازل کړې ئې دې پخپل علم سره، اوملائک هم ګواهي کوي، اوپوره دي |
| بِٱللَّهِ شَهِيدًا ﴿١٦٦﴾ |
| الله ګواهي کونکې |

﴿إِنَّآ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ﴾ دا جواب دې دسوال مذکور داهل کتابونه اوحاصل ددې دادې چه دارومدار درسالت په وحي دي اوپدې خبرې باندې ندې چه کتاب به جملةً نازل وی. اووحی راتلل تاته یقینا دی نوته هم یقینی نبی ئي لکه نوح اودهغه روستونورو انبیاؤ نه وحی راغلې ده نوهغوئ انبیاء وؤ. دلته تشبیه ورکړې شوه د **ایحاء** ((وحی کیدلو)) د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ایحاء د نوح علیه السلام سره او د نبیینو بعده سره حالانکه وحی د حضرت آدم علیه السلام نه شروع شوې ده اوهغه اول الانبیاء دي، ځکه چه دنوح علیه السلام نه مخکې وحی دتشریعاتو به لږه وه او وحی د تکوینیاتو به ډیره وه او نوح علیه السلام اول نبی تشریعی دې ،او دغه وجه ده چه حدیث دشفاعت کبری کښې ئی ورته ((اوّل نبی بعثه الله)) ویلی دی (کمافی البخاری وغیره ) اودارنګې نوح علیه السلام اول هغه نبی وو چه دقوم سره ئی مقابله راغلې وه اودوئ د انکار په وجه سره هلاک شوی وو نو پدې کښې موجوده کفاروته تنبیه مقصود ده اوهم دارنګې نوح علیه السلام اول هغه نبی دې چه دشرک ئې ردکړې دې اودینه مخکښې دشرک وجودنه وو اګرکه ګناه قتل وغیره وولیکن شرک دنوح علیه السلام په زمانه کښې شروع شوې دې یا د نوح علیه السلام نه لږ مخکښې شروع شوې دې. دشرک ابتداء دحدیث دبخاری شریف وغیره نه معلومیږی چه هغه بتان چه قوم د نوح علیه السلام ئی عبادت کولو هغه په اصل کښې نومونه د صالحینو وو چه کله وفات شول نو دهغوئ معتقدینو (مریدانو) دهغوئ تصویرونه جوړ کړل (دابه جائزوو په دغه زمانه کښې) دتسلی د‌پاره نوکله چه دوئ مړه شو نو وروسته نورو خلقو ئی عبادة شروع کړو ((وقالوالا تذرن ود ولا سواعا ـــ الایه)) ﴿وَقَالُواْ لَا تَذَرُنَّ ءَالِهَتَكُمۡ وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَلَا سُوَاعًا﴾

﴿وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰٓ إِبْرَٰهِيمَ﴾ يعنی دامذکورانبیاء خوتاسوهم منئ اوحالانکه دوئ ته جملة کتاب نه وو راغلي ﴿وَءَاتَيْنَا دَاوُۥدَ زَبُورًا﴾ دحضرت داود عليه السلام فضيلت دزبوراو درسالة او دنبوت په وجه وو، دحکومت په وجه نه وؤ نو ځکه ئی ددې ذکراوکړو، روح المعانی وغیره لیکی چه په زبورکښې یوسل پنځوس سورتونه وو او په هغې کښې حلال اوحرام اونوراحکام نه وو صرف وعظونه اوحِکَم اوفضیلتونه وواوهغه هم متفرق نازل وو .

﴿وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنَٰهُمْ﴾ دا منصوب دې په فعل مقدره سره ((ای ارسلنا رسلا)) یعنې ډیر رسولان داسې دی چه دهغوئ حالات اونومونه الله تعالی خپل نبی ته بیان کړی دی او ډیرو رسولانو تفصیلی حالات اونومونه الله تعالی خپل نبی ته ندی بیان کړی، نومعلومه شوه چه نبی صلی الله علیه وسلم لره علم کلی ندې ورکړې شوې، البته په شمار دپیغمبرانوکښې یو روایت دې چه سره دضعف نه اهل علمو قبول کړې دې چه یولاک څلویریشت زره انبیاء دی او درسولانو تعداد درې سوه او دیارلس دې -

﴿وَكَلَّمَ ٱللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا﴾ پدې کښې اشاره ده چه وحې دموسی عليه السلام علاوه دتوراة نه نجمًانجمًا وه، نوباب تفعیل د اطوارو دپاره دې﴿رُّسُلًا﴾ ((ای ارسلنا رسلا)).

﴿مُّبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ﴾ پدې کښې حکمت د ارسال الرسل دې چه خلقوته حق بیان کړی اوتخویف اوبشارت هم بیان کړی

﴿لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى ٱللَّهِ حُجَّةٌۢ بَعْدَ ٱلرُّسُلِ﴾ معتزله وائي چه ارسال درسل په الله تعالی باندې واجب دی ، د دې آیت نه استدلال کوی چه د دینه معلومیږی چه که الله تعالی ارسال الرُسل نوې کړې نو خلقو به په الله تعالی باندې حجت اودلیل قائم کولې شو ، نومعلومه شوه چه ارسال الرسل واجب دې اواهل سنت والجماعت وائي چه ارسال الرسل واجب ندی بلکه دا دالله تعالی تفضل اواحسان دې ، اوپدې آیت کښې دحجةٌ نه مراد عذر اوبهانه ده یعنی که الله تعالی دنیاء ته رسولان نه وې رالیږلي نوخلقوبه عذر او بهانه کوله چه مونږ ته هیڅ پته نه وه اوهرکله چه الله تعالی رسولان را ولیږل نودغه عذراوبهانه ختمه شوه. تائیدسورة قصص آیت نمبر ۴۷ .

﴿لَّٰكِنِ ٱللَّهُ يَشْهَدُ﴾ دامتعلق دې دسوال دیهودو سره او ((لکن)) داستدراک دپاره دې اومستدرک عنه محذوف دې یعنی ((انهم لا یشهدون لکن الله یشهد)) په یوروایت کښې راغلو

دی هرکله چه نازل شو دا آیت ((**انا اوحینا الیک**)) نوکفار و وونیل ((**ما نشهدلک**)) مونږ د دې شهادت نه کوو. نو نازل شو دا آیت یعنی که تاسو شهادت نه کوئ د رسالت د رسول الله صلی الله علیه وسلم لیکن الله تعالی یی کوی او ملائك ئی کوی.

﴿**أَنزَلَهُۥ بِعِلْمِهِۦ**﴾ دا جمله تفسیرده دماقبل یعنی د((**ماانزل الیک**)) دپاره او ((با)) په ((بِعِلْمِهِ)) کښې دتلبس دپاره ده یعنی دا قرآن نازل دې اومتلبس دې دعلم دالله سره نو لکه چه څنګه چه علم دالله تعالی ډیر زیات اولا محدود دې نو دغه سې دقرآن پاک اسراراوکمالات اوعلوم هم لامحدود دی ځکه چه هرکلام دمتکلم دعلمی شان مطابق وی

**فائده** الله تعالی شاهد دې او((**ماانزل الیک**)) مشهود دې اومشهودعلیه محذوف دې چه هغه حقانیت درسول الله دې لیکن حضرت استاذ فرمائي چه داسې هم کیدې شی چه ((**بماانزل الیک**)) مشهودبه شی و((**انزله بعلمه**)) مشهود علیه شی او مطلب داشی چه دا کتاب دخپل حقانیت ۰لوکامل والی دپاره پخپله شاهداو دلیل دې بل شاهداودلیل ته ئې ضرورت نشته لکه شاعر د فارسئ وائي:

آفتاب آمد دلیل آفتاب گر دلیلی بایدت زورومتاب

﴿**وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدًا**﴾ ((با)) زائده ده اولفظ د ((الله)) مجرور لفظا دې مرفوع محلا دې بنا بر فاعیلت ځکه چه فاعل د ((کفی)) باندې ((با)) زائده داخلیږی او ((شهیدا)) تمیز دې دفاعل نه اومطلب دادې چه الله تعالی دکومې خبرې شهادت اوکړی نو دا شهادت پوره او کافی دې. بیا دبل چا شهادت او اقرار ته ضرورت نشته دې

**إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَصَدُّوا۟ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ قَدْ ضَلُّوا۟**

بیشکه هغه کسان چه کفرئې کړیدې اومنع کوی خلق دلارې دالله نه په تحقیق سره گمراه شوی دی دوی

**ضَلَٰلًۢا بَعِيدًا ۝ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَظَلَمُوا۟ لَمْ يَكُنِ ٱللَّهُ لِيَغْفِرَ**

په گمراهی لرې سره بیشکه هغه کسان چه کفر[1] ئې کړیدې اوظلم ئې کړیدې. ندې الله چه بخښنه اوکړی

1. تخویف اهل کتابونه

لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيقًا ﴿۱۶۸﴾ إِلَّا طَرِيقَ جَهَنَّمَ خٰلِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۚ وَكَانَ ذٰلِكَ

دوی ته اونه به اوښائی ورته لار . مګر لار دجهنم همېشه به وی په دی کښې همېشه. اودې دا کار

عَلَى اللّٰهِ يَسِيرًا ﴿۱۶۹﴾

په الله باندې آسان.

﴿ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ دا زجراوتخويف دې منکرينوته، يهوديانو د رسول پاك صلى الله عليه وسلم دصفاتوکتمان هم کولواوتحريف ئې هم کولو او دنورو خلقودګمراه کولو دپاره ئې په رسالت باندې اعتراضونه هم کول. او دا صرف دضد او عناد دوجه نه. نوالله تعالى فرمائي چه دوی ګمراه دی په ضلال بعيد سره ځکه دوی پخپله هم ګمراه دی اونورخلق هم ګمراه کوی

﴿ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَظَلَمُوا ﴾ دا تخويف دې اود ((ظلموا)) نه مراد دادې چه نورخلق کفراومعصيت ته رابلی ﴿ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيقًا ﴿۱۶۸﴾ إِلَّا طَرِيقَ جَهَنَّمَ ﴾ يعنى الله تعالى ورته توفيق دصحيح لارې نه ورکوی لکه ﴿ فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْعُسْرَىٰ ﴾ او ((الا طريق جهنم)) استثناء ده که ((طريقًا)) نه مراد طريقه عامه شی او يا منقطعه ده که د ((طريقًا)) نه مراد طريقه صحيحه شی

يٰٓأَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ الرَّسُولُ بِالْحَقِّ مِنْ رَّبِّكُمْ فَآمِنُوا خَيْرًا

ای [1] خلقويه تحقيق سره راغلېدې تاسوته رسول په حقه سره دطرفه درب ستاسونه. نوايمان راوړئ دابه غوره وی

لَّكُمْ ۚ وَإِنْ تَكْفُرُوا فَإِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ

تاسولره. اوکچرې تاسوکفرکوئ پس په تحقيق سره خاص الله لره دې اختيار دهرهغه څه چه په آسمانونو کښې دی

وَالْأَرْضِ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿۱۷۰﴾

او زمکه کښې دی، او دې الله پوهه حکمتونووالا

﴿ يٰٓأَيُّهَا النَّاسُ ﴾ دا خطاب عام دې اوترغيب دې ايمان ته په رسول صلى الله عليه وسلم باندې چه ايمان راوړل ستاسو لپاره خير اوبهتردی او په کفرکولوکښې ستاسوخپل ضرردې

1 ترغيب توحيد ته

((خَيْرًا)) منصوب دي په فعل مقدره سره ((اى يكن خيرًا لكم)) ﴿وَإِن تَكْفُرُوا﴾ شرط دي او جزاء ني مقدره ده چه ((لا تضروه)) دي. او ﴿فَإِنَّ لِلَّهِ﴾ ((فان الله)) دمحذوفي جزاء قائم مقام دي

يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لَا تَغۡلُواْ فِي دِينِكُمۡ وَلَا تَقُولُواْ عَلَى ٱللَّهِ إِلَّا ٱلۡحَقَّۚ إِنَّمَا

اي اهل كتابو[1]، تجاوزدحدنه مه كوئ پخپل دين كښې. اومه وائې په الله باندې مګرحق وايئ. نده مګردادده

ٱلۡمَسِيحُ عِيسَى ٱبۡنُ مَرۡيَمَ رَسُولُ ٱللَّهِ وَكَلِمَتُهُۥٓ أَلۡقَىٰهَآ إِلَىٰ مَرۡيَمَ وَرُوحٞ

چه مسيح عيسي خوئ دمريم رسول دالله دي اوكلمه دهغه دی. چه اچولې ني دی طرف دمريم ته اوروح دي

مِّنۡهُۖ فَـَٔامِنُواْ بِٱللَّهِ وَرُسُلِهِۦۖ وَلَا تَقُولُواْ ثَلَٰثَةٌۚ ٱنتَهُواْ

دطرفه دالله نه. پس ايمان راوړئ په الله اوپه رسولانو دهغه. اومه وايئ چه خدايان درې دی. منع شئ

خَيۡرٗا لَّكُمۡۚ إِنَّمَا ٱللَّهُ إِلَٰهٞ وَٰحِدٞۖ سُبۡحَٰنَهُۥٓ أَن يَكُونَ لَهُۥ

ددې نه دابه خېروی ستاسودپاره. بېشکه صرف الله معبود دې يوازې. پاک دې ددېنه چه وی ده لره

وَلَدٞۘ لَّهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۗ

زوئ. خاص دهغه په اختيار کښې دی هرهغه څه چه په آسمانونو کښې دی اوهغه څه چه په زمکه کښې دی.

وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ وَكِيلٗا ﴿١٧١﴾

اوبوره دې الله ذمه وار د ټولوکارونو

﴿يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ﴾ دعمومي دعوت نه روستوخصوصي دعوت دې اهل كتابوته. شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله فرمايې چه د اهل كتابونه مراد نصاری دی چه دوی په خپل دين كښې غلو كړې وه او عيسى عليه السلام ته بې اله ونيلې وو لېكن صاحب دمدارک وائې چه مراد ددينه يهود او نصاری دواړه دی او غلوو د حدشرعی نه تېرېدل. كولوته وائې نونصاروافراط كړې وو د حد شرعی نه چه عيسى عليه السلام ئې اله ... وو او يهودو باقو تفريط كمې كړې وو چه د عيسى عليه السلام

[1] ژباړه: اهل كتابو

رسالت نه ئې انکار اوکړو او د دروغو ډیربد الزامات یې پرې اولګول

**فائده** داولیاؤالله اوبزرګان دین په باره کښې هم داسې حکم دې چه دهغوئ په حق کښې نه افراط وکړې شی او نه تفریط، او دا رنګه په هر عمل کښې نه افراط پکار دې او نه تفریط نه دې غیر سنت ته سنت ویلې شی او نه دې سنت ته بدعت ویلې شی، او د حضور صلی الله علیه وسلم په شان کښې حضرت عمر رضی الله عنه په خپل آخری اهم بیان کښې دا سې فرمایلی دی الا ثمّ ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال : لاتطرونی کما اطرئ عیسی بن مریم وقولوا عبدالله ورسوله)) ((**بخاری** ۲\۱ ۱۰۰۹)) یعنی ځما په مدحه کښې داسې افراط اوتفریط مه کوئ لکه څنګه چه عیسایانو دعیسی علیه السلام په باره کښې چه کوم افراط کړې وو

﴿إِنَّمَا ٱلْمَسِيحُ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ﴾ دا بیان دحق دې په ((**الا الحق**)) کښې یعنی حقه خبره داده چه عیسی بن مریم ((**ابن الله**)) ندې بلکه ابن مریم دې نو دا رد دې په عیسایانو باندې ﴿رَسُولُ ٱللَّهِ﴾ دا رد دې په یهودیانوباندې ﴿وَكَلِمَتُهُۥ﴾ حضرت عیسی علیه السلام ته د ((**کلمةالله**)) وئیلو ډیر توجیهات دی : (۱) حضرت عیسی علیه السلام په کلمه د ((کن)) سره پیداشوې دې بغیر د ماده معتاده نه (یعنې بغیر دتوسط داب نه ) (۲)امام غزالی رحمه الله وئیلی دی چه دهرمولود دپاره یوسبب قریب وی اوبل سبب بعیدوی سبب قریب منی ده اوسبب بعیدکلمه د ((کن)) ده اوهرکله چه په حق دعیسی علیه السلام کښې سبب قریب نه وو نواضافت ئې اوشو سبب بعیدته چه هغه کلمه د ((کن)) ده نویډې کښې اشار ه ده انتفاء دسبب قریب ته اوددې وضاحت دا قول دې ﴿أَلْقَىٰهَآ إِلَىٰ مَرْيَمَ﴾ چه رسولې وه داکلمه مریم ته، نودا کلمه په منزله دهغه منی ده چه اچولې کیږی په رحم کښې (۳) ((**کلمة الله**)) ئې ورته ځکه وئیلی دی چه پدې سره هدایت حاصلیږی لکه څرنګه چه هدایت حاصلیږی په کلا م دالله تعالی سره (۴) دکلمة الله معنی هغه بشارة دې چه الله تعالی مریم ته ورکړې وو ((ان الله یبشرک بکلمة منه)).

﴿وَرُوحٌ مِّنْهُ﴾ عیسی علیه السلام ته د روح الله وئیلوهم متعدد توجیهات دی (۱) روح په معنی دنفخ سره دې یعنې پوکې کول اوعیسی علیه السلام پیداشوې وو په پوکی کولو دجبریل علیه السلام سره په ګریبان دحضرت مریم کښې اود ((**منه**)) معنی من جانب الله ده، او اضافت یې الله ته دتعظیم اوتشریف دپاره دې نه دتبعیض او یا دجزئیت دپاره لکه دا زعم دعیسایانو دې لکه روایت دې چه یونصرانی حاذق دهارون رشید مناظره اوکړه دعلی بن حسین الواقدی المروزی سره، او وې ویل چه ستا په کتاب کښې داسې آیت دې چه دلالت کوی په دې چه عیسی علیه السلام د الله تعالی جزء دې او دا آیت ئې تلاوت کړو نو واقدی ورته دا آیت تلا وت کړو ﴿وَسَخَّرَ لَكُم مَّا فِي

﴿ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِ جَمِيعٗا مِّنۡهُ﴾ دلته هم ((منْ)) دي نو تمام اشياء دي جزء شی دالله نه ؟ نو نصرانی طبيب لاجواب شو او ايمان ئي راوړو نو هارون رشيد ډير خوشحاله شو او واقدی ته ئي ډير انعام ورکړو (۲) دعيسى عليه السلام سره دخلقو حيات رازی ظاهری حياة څکه احياء الموتى دعيسى معجزه وه او ادارنګي معنوی حياة هم څکه چه دي سبب دهدايت دخلقودي (۳) روح په معنى درحمت سره دي لکه ﴿وَأَيَّدَهُم بِرُوحٖ مِّنۡهُ﴾ ((بنا په يو توجيه)) نو عيسى عليه السلام رحمت دي (۴) روح په معنى دنهايت طهارت اونظافت سره راځی اوعيسى عليه السلام بغير دنطفي نه پيدادي نوځکه ئي توصيف په روح سره شوي دي (۵) روح په معنى د (سِرّ) سره رازی يعنى عيسى يو راز او حجت دي د اسرارو دالله تعالى نه (۶) چا وئيلی دی چه عبارة په حذف دمضاف سره دي ((ای ذوروح منه)) (روح المعانی)

﴿وَلَا تَقُولُواْ ثَلَٰثَةٌ﴾ د نزول دقرآ ن په وخت کښي دنصاراو دري لوئي لوئي فرقي وي يوه فرقه چه هغي ته حلوليه ويلي شی هغي ويل چه عيسى عين الله دي اوالله تعالى دنياته په شکل دعيسى کښي راغلي دي، دويمه فرقه پدي قائله وه چه عيسى ابن الله دي د دوئ دواړو رد اوشو چه عيسى ابن مريم دي نه ابن الله ، دريمه فرقه دتثليث قائله وه يعني خدايان دري دی (۱) اب (۲) ابن (۳) مريم اوبعضو داسي ويل چه (۱)اب (۲) ابن (۳) روح القدس، اومشهورقول دادي چه دنصاراو عقيده داسي وه چه معاذالله، الله تعالى يو جوهردي او اقانيم ثلاثة ته تقسيم شوي دي : اب، ابن، روح القدس، اول ذات دي دويم صفت (علم) دي اودريم حياة دي، دا ټول خرافات او بي دليله خبري دی ﴿ٱنتَهُواْ﴾ منع شئ د قول دتثليث نه اودا رد دي په قائلينو د تثليث باندي ﴿خَيۡرٗا﴾ مفعول به دفعل محذوف دي ((ای واقصدواخيرالکم کماهو المشهور عند النحاة)) او راجحه خبره داده چه داخبرد ((کان)) محذوفه دپاره دي ((ای يکن خيرلکم)).

﴿إِنَّمَا ٱللَّهُ إِلَٰهٞ وَٰحِدٞ﴾ دا صريح رد دي په تثليث باندي ﴿سُبۡحَٰنَهُۥٓ أَن يَكُونَ لَهُۥ وَلَدٞ﴾ دا صريح رد دي په قائلينو د ابنيت باندي ﴿لَّهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِ﴾ پدي کښي نفی دتصرف ده دعيسى عليه السلام اودمريم بی بی نه .

| لَّن يَسۡتَنكِفَ ٱلۡمَسِيحُ أَن يَكُونَ عَبۡدٗا لِّلَّهِ وَلَا ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ ٱلۡمُقَرَّبُونَۚ وَمَن |
|---|
| هرګز[۱] شرم نه کوی مسيح ددېنه چه شي بندګي کونکي دالله اونه ملائک مقرب، اوڅوک |

۱- يعنی عسی عليه السلام ته معبودا او خدائي نه وئيل دهغه توهين نه دي

يَّسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيَسْتَكْبِرْ فَسَيَحْشُرُهُمْ اِلَيْهِ جَمِيْعًا ﴿۱۷۲﴾ فَاَمَّا الَّذِيْنَ

چه شرم کوی دبندګئ دالله نه اوتکبراوکړی نوزرده چه جمع به کړی الله خپل خان ته ټول پس هغه کسان

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ وَيَزِيْدُهُمْ

چه ایمان ئې راوړي وي اوعملونه کوي نیک نوپوره به ورکړی الله دوئ ته اجرونه ددوئ اوزیات به ورکړی دوئ ته

مِّنْ فَضْلِهٖ ۚ وَاَمَّا الَّذِيْنَ اسْتَنْكَفُوْا وَاسْتَكْبَرُوْا فَيُعَذِّبُهُمْ

دفضل خپل نه. اوهغه څوک چه شرم اوکړی دبندګئ دالله نه اوتکبراوکړی نوعذاب به ورکړی الله هغوئ ته

عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ وَّلَا يَجِدُوْنَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۷۳﴾

عذاب دردناک ، او نه به مومی دوئ خپل خان لره سوا د الله نه څوک دوست اونه مددګار

﴿ لَّنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ ﴾ د (استنکاف) معنی ده بدګنړل اوعارګنړل، عیسیانوحضرت عیسی علیه السلام ته اله وئیل اودائې ګمان ووچه عیسی ته بنده وئیل توهین دې اومشرکین عربو به ملا ئکوته بنات الله وئیل او دهغوئې به ئی عبادت کولو او هغوئ ته به ئی د عبادو نسبت کول د هغوئې توهین ګنړلو نوالله تعالی پدوئ باندې رد اوکړو چه عبدیت دمخلوق دپاره صفت کمال دې عیسی علیه السلام اوملائک مقربین دعبدیت نه انکارنه کوی اودا دخپل خان توهین اوعارنه ګنړی اوڅوک چه عبدیت عارنه ګنړی نوهغه ته به الله تعالی پوره پوره اجر ورکوی اوڅوک چه دالله تعالی عبدیت اوبندګی عاراوګنړی نوهغه لره به عذاب الیم ورکوی .

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمْ بُرْهَانٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَاَنْزَلْنَآ اِلَيْكُمْ

اې خلقو په تحقیق سره راغلیدې دې تاسوته یقیني دلیل دطرفه درب ستاسو نه، اونازل کړیدې مونږ تاسوته

نُوْرًا مُّبِيْنًا ﴿۱۷۴﴾ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَاعْتَصَمُوْا بِهٖ فَسَيُدْخِلُهُمْ

نُورښکاره نوهغه کسان چه چه ایمان ئې راوړې دې په الله اوکلک ئې نیولې وی دا قران نوزرده چه داخل به کړی دوئ لره

فِيْ رَحْمَةٍ مِّنْهُ وَفَضْلٍ ۙ وَّيَهْدِيْهِمْ اِلَيْهِ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿۱۷۵﴾

په خاص رحمت خپل کښې او زیات ثواب کښې، او روان به کړي الله دوئ لره خپل خان طرفته په نیغه لار

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدْ جَآءَكُم بُرْهَٰنٌ ﴾ دا ترغيب دې اتباع دقرآن ته چه قرآن مضبوط اونيسئ خكه چه دا دليل قطعي دې اونور دې دا به تاسوته دصراط مستقيم هدايت كوى . ((برهان)) په لغت كښې غلبې ته وائې او په عرف كښې هغه دليل قطعي ته ويلې شى چه مفيد ديقين وى او دا سبب دغلبې دې په مقابل باندې اومراد ترينه ياقرآن دې (ابن كثير) اويارسول دې. يا معجزات دى، يا دين حق دې، او دنورنه مراد قرآن دې نوكه دبرهان نه مراد هم قرآن شى نو دا عطف دمغايرت لفظي د وجه نه دې لپاره دبيان دصفاتومتعددو ﴿ وَٱعْتَصَمُوا۟ بِهِۦ ﴾ ضمير راجع دې الله تعالى ته يا ((برهان)) ته يا ((نور)) ته ﴿ فَسَيُدْخِلُهُمْ فِى رَحْمَةٍ مِّنْهُ ﴾ مراد درحمت نه ثواب يا جنت دې اود ((فضل)) نه مراد زيادت دې په ثواب كښې، يا ((رحمت)) نه مراد ايمان اود ((فضل)) نه مراد كمال دې په دين كښې ﴿ وَيَهْدِيهِمْ إِلَيْهِ صِرَٰطًا مُّسْتَقِيمًا ﴾ دا په دنياكښې مراد دې اويا په آخرت كښې دجنت لارې ته هدايت مراد دې د ((اليه)) نه مراد ((الى دينه)) يا ((الى جنته)) دې

يَسْتَفْتُونَكَ ۚ قُلِ ٱللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِى ٱلْكَلَٰلَةِ ۚ

دوئ فتوى [۱] طلب كوى ستانه، ته ورته اووايه چه الله حكم دركوى تاسوته په باره د كلاله (ميراث) كښې،

إِنِ ٱمْرُؤٌا۟ هَلَكَ لَيْسَ لَهُۥ وَلَدٌ وَلَهُۥٓ أُخْتٌ فَلَهَا نِصْفُ مَا

كه يوسړې مړشو نه ووهغه لره اولاد (اصول فروع ئې نه وو)اوهغه لره يوخور وه پس ددې د پاره نيمه دهغه مال ده

تَرَكَ ۚ وَهُوَ يَرِثُهَآ إِن لَّمْ يَكُن لَّهَا وَلَدٌ ۚ فَإِن كَانَتَا

چه ده پريخودې دې. او دا رور وارث دټول مال دخور دې كه نه وو هغې لره هيڅ اولاد، نوكه وى دادواړه

ٱثْنَتَيْنِ فَلَهُمَا ٱلثُّلُثَانِ مِمَّا تَرَكَ ۚ وَإِن كَانُوٓا۟ إِخْوَةً

دوه خويندې، نودې دواړو لره دوه دريمې دى دهغه مال نه چه پريخودلې دې رور. اوكه وو دوئ رونړه خوېندې

رِّجَالًا وَنِسَآءً فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ ٱلْأُنثَيَيْنِ ۗ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمْ أَن

نارينه او زنانه نود نارينه دپاره پشان دبرخې ددوه زناناؤ ده، واضحه بيانوى الله تاسوته. دپاره ددې

---

[۱] - په آخر كښې دميراث په احكامو كښې دبعض صوروتونو بيان ، دسورت په آخر كښې احكام ذكر شو دپاره ددې چه معلوم شى چه پدې سورت كښې اصل مقصد داحكامو بيان دې

تَضِلُّوْا ۗ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۱۷۶﴾

چه گمراه نشئ او الله په هر څيز پوهه دي.

﴿يَسْتَفْتُوْنَكَ﴾ په احكامو دميراث كښې داخيافى خور او وروركم بيان شوي دي او داعيانى اوعلا تى خور او وروركم نه وو بيان شوي نو د سورة په آخر كښې د دې بيان دې او اشاره ده ديته چه مقصود ددې سورة نه بيان د احكامو (امورانتظاميه) دې نو ددې وجه نه د دې سورة په اول اوآخر كښې احكامات ذكرشو، د ((كلا له)) معنى مخكښې ذكرشوې ده ﴿وَلَهٗٓ اُخْتٌ﴾ دلته اخت اعيانى اوعلا تى مراد ده، دارنګې داخ نه هم اعيانى ياعلا تى اخ مراد دې، پدې آيت كښې څلورصورتونه ذكرشوى دى:

(۱) دا چه څوک مړشى اويوه اعيانى خور يا علا تى خور ئې پاتى شى.نودې لره نصف ميراث دې اومابقى دعصبو دپاره دې.

(۲) دا چه خورئې مړه شى او اولاد ئې نه وى او ورورئې پاتې شى نو ده لره ټول مال دې ځکه چه دې عصبه دې.

(۳) دا چه څوک مړشى او دوه خويندې ئى (اعيانى ياعلا تى) پاتى شى نو دوئ لره ثلثين دى.

(۴) صورة دادې چه خويندې او رونړه دواړه ئې پاتې شى نو پدې صورت كښې خويندې هم عصبه دى او د ((لذكرمثل حظ الا نثيين)) په قانون به تركه تقسيمږى.

﴿يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اَنْ تَضِلُّوْا﴾ ((يبين الله)) فعل اوفاعل دې او ((ان تضلوا)) يى مفعول له دې په حذف دمضاف سره ((اى كراهة ان تضلوا)) يا په كښې ((لام)) او ((لا)) مقدردې ((اى لان لاتضلوا)) او چا ويلى دى ((ان تضلوا)) مفعول به د ((يبين)) دپاره دې په تاويل دمصدرسره ((اى يبين الله لكم ضلا لكم)) اومقابل ئې محذوف ((اى من هداكم)).

﴿وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ﴾ نو په احكامواو په مصالحوهم عالم دې.

امام سيوطى رحمه الله ويلى دې چه ددې سورة خاتمه په احكامو دميراث باندې اوشوه او احكام دميراث په ټولو احكامو كښې آخر نازل شوى دى او احكام دميراث تعلق ساتى دمرګ سره او د انسان آخرى حالت موت دې

**اللهم ارزقنا الموت على الايمان واجعل اخركلامنا لا اله الا الله محمدرسول الله**

**تمت سورة النساء ولله الحمد اولاً واخرًا**

**۱۴ - رجب سنه ۱۴۲۷ هـ - ۹ اګست، سنه ۲۰۰۶ ع.**

| رکوع | سورة المائدة مدنية | آیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۱۶ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ۱۲۰ |
| | خاص په نوم دَ الله سره چه بې حده مهربانه اودیر رحم کونکې دې شروع کوم | |

## رقمهما حسب التلاوة (۵) وحسب النزول (۱۱۲)

دې سورت ته سورهٔ مائده ځکه وائی چه په دې کښې د مائدې ذکر دې ،

**ربط** په دریو طریقو سره دې اول **ربطِ اسمی** لکه مخکښو سورتونو کښې ذکر شو ، دویم د مضامینو دبقرې نه په سورهٔ آلِ عمران کښې مضمون د نفی د شرکِ اعتقادی اعاده شوې وه او په سورهٔ نساء کښې ترینه مضمون د امورِ انتظامیه اعاده شوې وه او دلته د مضامینو د سورتِ بقرې اعاده، دمضمون دنفی دشرکِ فعلی ده په تفصیل سره،(۳) دریم دسورتِ نساء په آخرکښې ئې فرمائیلی وؤ، ﴿يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ أَن تَضِلُّوا﴾ نودلته د دواړوقسمونو شرک ردکیږی چه ده گمراهئ نه بچ شئ .

## دسورت دمضامینو خلاصه

ددې سورت دوه حصې دی : دابتداءدسورت نه تر﴿وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ آیت نمبر (۴۰ ع ۷) پورې اوله حصه ده،اودآیت نمبر(۲۷) نه ترآخرپورې دویمه حصه ده،په اوله حصه کښې دوه مضمونه دی اول نفی دشرکِ فعلی اودویم نفی دشرکِ اعتقادی،اوپه دویمه حصه کښې بیادغه دواړومضامینو اعاده ده،برعکس،یعنی اول نفی ده شرک اعتقادی اوبیا نفی د شرکِ فعلی ده ،

**داولې حصې تفصیل : ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ﴾**

تمهید دې ټول سورت ته،بیانفی دشرکِ فعلی ده اوپدیکښې دڅلورومسائلوبیان دې،(۱) تحریمات العباد .(۲) تحریمات الله، (۳) نذرلغیرالله،(۴) نذر لله. تر آیت نمبر(۵)، پورې اوپه دې کښې ددې خبرې تنبیه هم ده چه کوم جدیدالاسلام خلق دامسائل منی،اوبل خوک ورسره جهیږ.څهاړکوی نوپه تاسوباندې دهغوئ سره تعاون ضروری دې،اوستاسودپخوانئ دښمنئ په وجه دهغوئ سره تعاون نه کول او خاموش کښیناستل تعاون علی الظلم دې،بیاد امر مصلح ذکردې،آیت نمبر(۲)،بیادایفاء العهد تاکیددې، تر آیت نمبر(۱۱) پورې بیادنقضِ

عهد دوه نمونې بيانيږي، تر آيت (۱۴) پورې ﴿ يٰٓأَهْلَ الْكِتٰبِ ﴾ آيت نمبر(۱۵)، نه دوې مضمون نفى دشرک اعتقادى بيانيږي، ترآيت نمبر(۱۹) پورې، ددې نه بعد تنبيه ده په دې چه خاموشه مه کينئ بلکه دکفاروسره جهادکوئ، اومحاربينوقطاع الطريق وغيره مفسدانوته سزا ورکوئ اوحدودجارى کوئ، اوکه خاموش کينئ نوذلت به برداشت کړئ. ددې دوه نمونې ترآيت (۳۲) پورې، بياد محاربينواوسارقينوسزاګانې ذکرکيږي تر آيت (۴۰) پورې . بيانبى صلى الله عليه وسلم ته دمنافقينواويهوديانوپه غلطه رويه اوکردار.دغم نه کولوحکم او تسلى ده.ترآيت نمبر(۵۰)پورې بيامسلمانانوته حکم دې،چه هرکله تاسوته ديهودواو منافقينو رويه معلومه شوه نود دوئ سره تعلق اودوستى مه کوئ،ګنى د دوئ ددوستئ په وجه به تاسو مرتدشئ، اوددې تاکيدذکر کيږي، اويهودوته زجرونه ذکرکيږي، تر آيت نمبر(۲۲) پورې

**ددويمې حصې تفصيل :** ﴿ يٰٓأَيُّهَا الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَآ أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ﴾ نه دويمه حصه شروع کيږي. په دې کښې اول نفى دشرکِ اعتقادى ده،اوتخويف دې اهلِ کتابوته تر آيت نمبر(۸۲) پورې. اوبيانفى دشرک فعلى ده،اودځلورو مسائلوبيان دې تفصيلاً اود دې متعلقات دى ترآخرسورت پورې اود سورت په آخر کښې ﴿ لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا فِيْهِنَّ ﴾ دټول سورت خلاصه ده.

| يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا أَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ ؕ |
|---|
| اې (۱) ايمان والو پوره کړئ لوظونه (کوم چې تاسودالله سره کړى دى په منلو د احکامو دهغه کښې، |
| أُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيْمَةُ الْأَنْعَامِ إِلَّا مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ |
| چې حلال (۲) کړې شوى دى ستاسودپاره څاورى دانعاموقسم نه، مګر هغه چې لوستلې کيږي په تاسو |
| غَيْرَ مُحِلِّى الصَّيْدِ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ ؕ إِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيْدُ ① |
| مه (۳) کيږئ حلال ګڼرونکى دښکار پداسې حال کښې چې تاسو محرمان يئ. بيشکه الله فيصله (۴) کوى هغه چې اوغواړى |

۱ . تمهيد مضامينو دسورت ته

۲ . دسورة په اوله حصه کښې اول مضمون نفى دشريک فعلى اوله مسئله تحريمات غير الله ختمولو حکم

۳ دويمه مسئله تحريمات الله باقى ساتلو حکم.

۴ علت

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَوۡفُواْ بِٱلۡعُقُودِۚ﴾ تمهيد دې ټول سورت ته.(عقود) د (عقدة) جمع ده.په اصل کښې مضبوط.کلک غوټه کولوته وائی،اودا په اجساموکښې رازی اوبیااستعمالیږی په معانیوکښې،اوعقود،اوعهود،په منځ کښې فرق بعض مفسرین داسې کوی چه په عقدکښې معنی داستیثاق اوکلک والی ده،یعنی کلکه وعده،اوعهدعام دې،اوبعض وائی چه عقدهغه وعده ده چه په مابین دطرفینوکښې وی،اوعهدعام دې چه مابین دطرفینوکښې وی یانه،اوبعض وائی چه عقودخاص دی په ایمان والوپورې اوعهودعام دی هرچاته چه آسمانی کتاب ئې منلې وی مؤمن وی یااهلِ کتاب کافروی.

**په دې آیت کښې دعقودنه څه مراد دی؟** په دې کښې دمفسرینومختلف اقوال دی.بعض وائی چه داسلام نه قبل وعدې مراد دی،بعض وائی چه بیع شراء نکاح عقودترمراد دی.بعض وائی چه پخپل مابین کښې وعدې ترمراددی،بعض وائی چه داخطاب دمؤمنینو اهلِ کتابو سره دې اودعقودنه هغه میثاق مراد دې،چه په تورات انجیل کښې د دوئ نه اخستلې شوې وو په باره دتصدیق درسول الله صلی الله علیه وسلم کښې، لیکن بِناء پدې تمام توجهاتو باندې ددې جملې دمابعد سره ربط اومناسبت نه معلومیږی نوددې وجه نه حضرت الشیخ فرمائی چه مراد تمام هغه وعدې دی چه الله تعالی دبندګانونه دایمان په وجه اغستی دی په باره دمنلو داحکامو کښې عمومًا اوپه باره دتحلیل اوتحریم کښې خصوصًا او دا روایت دې دابن عباس رضی الله عنه نه کمافی الروح، لکه د روستوآیت نمبر(٧)﴿وَمِيثَٰقَهُ ٱلَّذِي وَاثَقَكُم بِهِۦٓ إِذۡ قُلۡتُمۡ سَمِعۡنَا وَأَطَعۡنَاۖ﴾ نه معلومیږی، حضرت شاه ولی الله رحمه الله ددې آیت ترجمه داسې کوی ((ای مؤمنان ! وفا کنید به عهد هائ که بسته ید با خدا تعالی، یعنی در التزام احکام اوتعالی)) اوهرکله چه داسورت نازل شویدې په زمانه دفتح مکه کښې (کماهوالمصرح فی بعض الروایات الموقوفه) اوپه دغه وخت کښې دمشرکانو رسومات دتحلیل اوتحریم په باره کښې رائج وو.نو ددې وجه نه په دې سورت کښې مؤمنانوته حکم اوشوچه تاسوپه وخت دایمان راوړلو کښې او په وخت دبیعت کښې دنبی صلی الله علیه وسلم سره داپخه وعده کړیده،چه مونږبه دالله تعالی په احکامآتو اودنبی صلی الله علیه وسلم په سنت عمل کوؤنواوس دغه وعده پوره کړئ اوشرکیه رسومات اوبدعات ترک کړئ،اوهم دغه وعده هریومسلمان دالله تعالی سره کړیده په کلمه کښې،(لااِله الاالله محمد رسول الله) وئیل په حقیقت کښې دالله تعالی سره وعده

کول دی.په التزام داحکاموداالله تعالی اوپه سنت درسول الله صلی الله علیه وسلم کښې نوددې وعدې پوره کول ضروری دی،اود(**اوفوابالعقود**) لاندې داخل دی.

﴿**أُحِلَّتْ لَكُم بَهِيمَةُ ٱلْأَنْعَٰمِ**﴾ داددې سورت داولې حصې اول مضمون دې.یعنی نفی دشرک فعلی ده.دلته (۴) څلورمسائل ذکرکیږی.(۱) تحریمات العباد یا تحریمات الشیطن.یا.تحریمات غیرالله.ددې حکم دادې چه داباطل دی داختم کړئ.په دې آیت کښې ددې مسئلې ذکردې.(۲) تحریمات الهیه صحیح دی هغه قائم اوساتئ.ددې مسئلې ذکرپه ﴿**غَيْرَ مُحِلِّى ٱلصَّيْدِ وَأَنتُمْ حُرُمٌ**﴾ کښې دې.(۳) نذرلله صحیح دې قائم ئې اولرئ. ددې ذکرپه ﴿**لَا تُحِلُّوا۟ شَعَٰٓئِرَ ٱللَّهِ وَلَا ٱلشَّهْرَ ٱلْحَرَامَ وَلَا ٱلْهَدْىَ وَلَا ٱلْقَلَٰٓئِدَ**﴾ کښې کیږی.(۴) نذرلغیرالله.حرام باطل دې.لهذاختم ئې کړئ.ددې ذکرپه ﴿**وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيْرِ ٱللَّهِ**﴾ کښې کیږی.حضرت الاستاذ رحمه الله به ددې تشریح داسې کوله.چه چونکه الله تعالی دتمامو مخلوقاتو خالق مالک اورب دې.نوهغه بعض اشیاء حلال کړیدی اوبعضی ئې حرام کړیدی اودخپل کوریعنی حرم د احترام دپاره ئې (هدایا) مقررکړیدی اودغه شان ئې په خپل نوم باندې نذرمقرر کړیدې، نو شیطان لعین ددې په مقابله کښې تحریمات اوکړل اودخپل ځان دپاره ئې نذرونه اوهدایامقرر کړل.لیکن داخبره خوهرچاته معلومه ده چه شیطان لعین دې نودهغه په وینا سره څوک څه خیزنه حراموی اونه دهغه په نوم نذر(هدایا) ورکوی،نوددې وجه نه شیطان خپل نوم پټ کړو.اوداولیاءالله نومونه ئې رامخې ته کړل،چه دا اشیاء دهغوئ نذرونه اوهدایا دی.اوفلانې کاردهغوئ تحریمات دی،نوشیطان کارخپل چلوی،اونوم داولیاؤ استعمالوی،نوقرآن پاک ددې رداوکړوچه تحریمات العباد باطل دی ختم ئې کړئ.اونذر لغیرالله باطل اوحرام دې ختم ئې کړئ.اوتحریمات الله صحیح دی ددې تحریم قائم اولرئ، او نذرلله اوهدایا ،صحیح دی قائم ئې اوساتئ،نود(**اُحلت لکم**) مقصود دادې چه تاسودخپلو معبودانودتعظیم دپاره،بلکه په حقیقت کښې دشیطانانو دپاره، په خپل ظن اوتخمین سره کوم اشیاء حرام کړیدی لکه ﴿**وَحَرَّمُوا۟ مَا رَزَقَهُمُ ٱللَّهُ ٱفْتِرَآءً عَلَى ٱللَّهِ**﴾ ددې حرمت ختم کړئ.قرطبی وائی.(کانت للعرب سنن فی الانعام من البحیرة والسائبة والوصیلة والحام یاتی بیانهافنزلت هذه الایة رافعة لتلک الاوهام الخیالیة والآراء الفاسدة الباطلة الخ) حاصل داچه په دې آیت کښې دتحریمات غیرالله دختمولوحکم دې.لکه دامسئله روستوپه (۱) آیت نمبر (۸۷)﴿**يَٰٓأَيُّهَا**

﴿الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَٰتِ مَآ أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ﴾ (٢) اوپه آيت نمبر(١٠٣) ﴿مَا جَعَلَ اللَّهُ مِنۢ بَحِيرَةٍ وَلَا سَآئِبَةٍ﴾ كښې ذكر كيږي. (٣) اودارنګ په سورت بقره آيت نمبر(١٦٨) ﴿كُلُوا مِمَّا فِي الْأَرْضِ حَلَٰلًا طَيِّبًا﴾ (٤)اوپه سورة انعام كښې ﴿وَقَالُوا هَٰذِهِۦٓ أَنْعَٰمٌ وَحَرْثٌ حِجْرٌ لَّا يَطْعَمُهَآ إِلَّا مَن نَّشَآءُ بِزَعْمِهِمْ وَأَنْعَٰمٌ حُرِّمَتْ ظُهُورُهَا﴾ آيت نمبر(١٣٨) تر آيت نمبر(١٤٥) كښې ذكركيږي، د ((**بهيمة الانعام**)) معنى ده چارپائې ځاروى، امام راغب ددې معنى كوى چه ((كل ذات اربع فى البروالبحر،وقيل مالانطق له،خص فى التعارف بماعدالسباع والطير )) دغه شان صاحب دقاموس وائى چه بهيمة څلورو خپووالاته وائى، ياهر ژوندې چه تميزاوعقل نه لرى.بهيمه دبهم نه مشتق دې په معنى دابهام سره،اوكوم څيزچه عقل نه لرى نوهغه ته اشياءِ مبهم وى او علم ئى نلرى ، امام شعرانى رحمه الله وائى چه خبره داسې نه ده چه كومه مشهوره ده بلكه حقيقت دادې چه دعقل اوادراک نه هيڅ شئ خواه حيوان وى ياشجروى ياحجروى خالى نه دې.البته فرق دمراتبوضرورشته دې،بلكه بهيمه ته بهيمه ددې وجه نه وائى چه نورخلق د دوئ په خبروباندې نه پوهيږى نود دوئ كلام په خلقوباندې مبهم وى.اوددې وجه نه بعض حضرات ددې داسې ترجمه كوى.(بې ژبې چارپايان).

او (انعام) جمع د (نعم) ده.(فالتوځناور) ددې (٨) اته قسمه دى چه په سورت انعام كښې مذكور دى.اوپه اضافت د(بهيمه) كښې (انعام) ته درې اقواله دى (١) يوداچه دا اضافت بيانى دې يعنى بهيمه چه دې بعينه انعام دې،(٢) دويم داچه اضافت دعام دې خاص ته دپاره دتعين دمصداق دعام، (٣) دريم داچه دا اضافت دمشبه دې مشبه بِه ته.يعنى هغه بهيمه چه مشابه وى دانعام سره او وجه دشبه اجترار،(شخوندكول) اوعدم دانيابو.(يعنى سُبُعيت پكښې نه وى) يعنې ماتونكې نه وى، لكه هوسئ،حماروحشى،بقروحشى،وغيره.

﴿إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ﴾ دا استثناء متصله ده اې،(الابهيمةً يتلى عليكم تحريمه).چه ميته.منخنقه اومنذوره لغيرالله ده. ﴿غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَأَنتُمْ حُرُمٌ﴾ **دادويمه مسئله ده**.عام مفسرين وائى چه غيرمحلى الصيدحال دې د((لكم)) ضميرنه،نوترجمه داشوه حال داچه تاسونه يئ حلال ګڼونكى دښكارپه حالت داحرام كښې، حضرت شيخ رحمه الله فرمائى چه بِنا په دې تقديرباندې به دامسئله تبعى شى ځكه حال قيداوتابع وى نو بهتره داده چه داخبر د ((كان)) محذوفه شى اې

،کونوا غیر محلی الصید حالة الاحرام› (کانَ) سره داسم نه حذف کول، او خبر ورله باقی ساتل جائز دی. لکه په الفیه دابن مالک کښې دی شعر

یحذفونها و یبقون الخبر بعد اِن ولو کثیراواشتهر

یعنی حذف کوی دوئ (عرب) کان لره اوباقی پریږدی خبر پس د. (انْ) او (لو) نه زیات. اومشهور. نومعلومه چه د (اِن) او(لَوْ) نه بعد حذف د (کَانَ) شائع او کثیردي اوددي دواړونه علاوه بل ځائ کښې حذف اګرکه شائع نه دې خوجائزدې. ((اِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ)) داعلت اجمالی دې دماقبل دواړومسئلو دپاره.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحِلُّوْا شَعَآئِرَ اللّٰهِ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْيَ

اې ایمان (۱) والو؛ بې عزتی مه کوئ دنخوداللّه (د دین اللّه) اونه دمیاشتې دعزت اونه دهدې(قربانی)

وَلَا الْقَلَآئِدَ وَلَآ آٰمِّيْنَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّهِمْ وَرِضْوَانًا ؕ وَاِذَا

اونه دامیل والاڅاروو اونه د قصدکونکو دبیت الحرام، طلب کوی دوئ فضل د خپل رب اورضامندی. اوکله

حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا ؕ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ

چې تاسوداحرام نه اوځئ نوښکار کوئ (یعنې اجازت دې)اوباعث دې نه شي په تاسودښمنې دیوقوم په سبب ددې

صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا ۘ وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ

چې تاسونې منع کړی وی دمسجدحرام نه پدې خبره چې تاسوحدنه تېرشئ، اومدد کوئ دیوبل سره په نېکئ

وَالتَّقْوٰى ۘ وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ۘ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

اوتقوی کښې. او مددمه کوئ دیوبل سره په ګناه او دظلم په کارونو کښې. اوویره کوئ داللّه نه. بېشکه اللّه

شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝

سخت عذاب والا دې

۱ دریمه مسئله نذرنیاز داللّه قائم ساتلوحکم

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُحِلُّوا۟ شَعَٰٓئِرَ ٱللَّهِ ﴾ داد دريمي مسئلې بيان دي.((تحلوا)) داحلال نه مأخوذ دي. ((احلال)) مقابل اوضدد احترام دي.يعنى بې حرمتى.او((شعائر))جمع د((شعيرة)) ده او((شعيره)) هرهغه څيزته وئيلې شى چه په هغې سره بل څيزمعلوميږى.اوخاصه علامه اونخښه وى اود هريو دين خاص خاص علاموته شعائراوشعاروئيلې شى لكه زنار ،مندر. دهندوانو دپاره،اوصليب،ګرجه دنصاراؤدپاره. او ددينِ اسلام خاص علاموته شعائرالله وئيلې شى.اودا اضافت دتعظيم دپاره دي.په اصل كښې شعائردين الله دي.لكه مسجد اذان. مناسک دحج لكه تلبيه،صفامروه وغيره،صاحب دروح المعانى دعطاءؒ نه نقل كړيدى چه دشعائرالله نه مرادتمام شرائع اود دين حدوداوامرفرائض. واجبات.اونواهى مراد دى اودا راجح تفسيردي. نو د نواهى احترام،احترازدي دمنهياتونه او بې احترامى ئې اتيان دې منهياتوته اوداوامرواحترام اتيان دې ماموراتوته اوبې احترامى ترک دماموراتودې

﴿وَلَا ٱلشَّهْرَ ٱلْحَرَامَ ﴾ اوبې حرمتى مه كوئ دعزت والا مياشتې، مرادترينه رجب دي يا ټول اشهرحرم دى اوبې حرمتى ئې ((نسئ)) دي لكه په سورتِ توبه كښې رازى ياقتال كول دى په دې كښې. ﴿وَلَا ٱلْهَدْىَ ﴾ اوبې حرمتى مه كوئ دهدى ((دَ قربانئ د څاروى)) چه غصب ئې كړئ ياخپل محل ته درسيدلونه ئى منع كړئ. ﴿وَلَا ٱلْقَلَٰٓئِدَ ﴾ ((قلائد)) د ((قلادة)) جمع ده ((قلاده)) هغه څيزدې چه دهدى په غاړه اويزان كړې شى لكه نعل يابل څه څيزچه هغه علامه وى ددې چه داهديه ده.دلته ترينه مراد ،ذوات القلائد دى يعنى هغه هدايا ((څاروى)) چه دهغوئ په غاړه كښې قلاده وى نو دا ذكرالخاص بعدالعام دي،دپاره دتشريف اواهتمام شان.ياترينه مراد ،خودِقلاده.يعنى دقلادې بې احترامى مه كوئ نومنع دبې احترامئ دهدې نه په طريقِ اولى سره معلومه شوه لكه ﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ ﴾ منع اوشوه دظاهرولودزينت ،كالى، نه.نومنع دظاهرولو دمحل د زينت نه په طريقِ اولى سره معلومه شوه ﴿وَلَآ ءَآمِّينَ ٱلْبَيْتَ ٱلْحَرَامَ ﴾ اوبې حرمتى مه كوئ دقصد كوونكو دبيت الحرام په حج ياعمرې سره. او د هغوئ بې حرمتى داده چه دحج او عمرې نه منع كړې شى اوحرم ته دداخليدواجازت ورته ورنكړې شى. په (آمِّينَ البَيْتَ الحَرَامَ) كښې دوه قوله دى.(۱) يوداچه ددې نه مشركين مراد دى،چه هغوئ په حديبيه كښې مسلمانان منع كړى وؤدعمرې نه.نوالله تعالى مؤمنانوته وائى چه كه دوئ عمرې له

رازی اودالله تعالی رضا طلب کوی په خپل زعم کښې نوتاسوئې مه منع کوئ،نود ﴿وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ﴾ نه مراد دغه مشرکين دی،نوددې تقديرپه بِنادا آيت منسوخ دې، په ﴿إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ﴾ سره.

(۲) دويم قول دادې چه ددې نه مرادصرف مؤمنان دی په قرينه د ﴿يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّن رَّبِّهِمْ وَرِضْوَانًا﴾ سره. نوبيا آيت منسوخ نه دې.

﴿وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا﴾ دا امرداباحت دپاره دې، ﴿وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ﴾ د ((اجرام)) معنی اماده کول په کسب دجرم باندې ((لايجرمنّ)) دوه مفعوله غواړی مفعول اول ورله (کُم) دې،اومفعول ثانی ورله (انْ تَعْتَدُو) دې، په تاويل دمفردسره،او ﴿شَنَاٰنُ قَوْمٍ﴾ ورله فاعل دې،شَنَان،سخت بغض عداوت ته وائی،او ﴿أَن صَدُّوكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ علت دې د(شَنَانُ) دپاره اومنصوب بنزع الخافض دې،اي (لاجل ان صدوكم عن المسجدالحرام) نوپه دې کښې هم دوه توجيه دی اوله توجيه داده چه ددې نه مرادمشرکين دی اودويمه توجبه داده چه ددې نه مرادهغه مؤمنان دی چه جديدالاسلام وو.

په واقعه دحديبيه کښې هرچه مشرکانومؤمنانولره منع کړل دعمرې نه اوودداخليدلونه بيت الله ته نود دوئ په زړونوکښې مشرکانوته ډيره غصه اوبغض پيداشو،اوبياهرکله چه په اتم کال دهجرت فتح دمکې اوشوه،اوډيرومشرکانوايمان راوړو،نوهغوئ حج اوعمرې نه راتلل نو شايدچه دمؤمنانوپه زړونوکښې داخيال راغلې وي چه دوئ مونږ دعمرې نه منع کړی وُوپه حديبيه کښې نوپکارده چه اوس مونږدوئ لره منع کړودعمرې نه،نوحکم راغې چه دهغه پخوانی عداوت اوبغض په وجه دوئ مه منع کوئ دبيت الله نه ځکه چه دوئ دايمان په وجه ستاسو رونړه ګرځيدلی دی نود دوئ سره عداوت اوبغض مه ساتئ.

﴿وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ﴾ داترقی ده يعنی د دوئ سره خوبغض اوعداوت مه ساتئ بلکه تعاون ورسره کوئ اوکه څوک دوئ ته ضررتکليف رسوی نوتاسوخاموش مه کيښنئ بلکه د دوئ دفاع کوئ.او ستاسوخاموش کيښناستل تعاون علی الاثم والعدوان دې،

(بر) او (تقوی) بعض حضرات ورته مترادف وائی اوبعض وائی چه (بِر) فعل الخيرات دې.او ((تقوی)) ترک المنکرات دې،اودارنګه اِثم اوعدوان،بعضې ورته مترادف وائی او

بعض وائی چه اثم مطلقِ ګناه ته وائی خواه که دحقوق سره متعلق وی یا دعباداتو او عقائدو سره متعلق وی لکه شرک بدعت وغیره،اوعدوان ظلم ته وائی اودادحقوق سره متعلق وی.(**وَاتَّقُوا اللّٰہَ**) په تقوی سره ترک المنکرات،فعل الحسنات اسانیږی.(**اِنَّ اللّٰہَ شَدِیۡدُ الۡعِقَابِ**) داتخویف دي.

**حُرِّمَتۡ عَلَیۡکُمُ الۡمَیۡتَۃُ وَالدَّمُ وَلَحۡمُ الۡخِنۡزِیۡرِ وَمَاۤ اُہِلَّ**

حرام کړي[۱] شویده په تاسوباندي مرداره اووینه اوغوښه دخنزیراوهغه چي آوازاوچت کړېشي دپاره دتعظیم اود منختي

**لِغَیۡرِ اللّٰہِ بِہٖ وَالۡمُنۡخَنِقَۃُ وَالۡمَوۡقُوۡذَۃُ**

دغیرالله په هغې. اوهغه چي په مرئ خفه کولوسره مړه وی اوهغه چي په وهلودلرګي یاګټي سره مړه وی

**وَالۡمُتَرَدِّیَۃُ وَالنَّطِیۡحَۃُ وَمَاۤ اَکَلَ السَّبُعُ اِلَّا مَا ذَکَّیۡتُمۡ ۟**

اورارغختي اویه ښکرو وهلي شوې. اومابقي دهغه ښاروی چي خوړلي وي درنده مګر هغه چي حلال ني کړئ تاسو.

**وَمَا ذُبِحَ عَلَی النُّصُبِ وَاَنۡ تَسۡتَقۡسِمُوۡا**

اوهغه چي ذبح کړي شوي وی په نښانونو اودرګاهونو د معبودان باطلو، اوهغه چي تاسو ئې تقسیموئ یاقسمت معلومئ

**بِالۡاَزۡلَامِ ؕ ذٰلِکُمۡ فِسۡقٌ ؕ اَلۡیَوۡمَ یَئِسَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا مِنۡ دِیۡنِکُمۡ**

په غشوسره، دا ټول ګناه اوحرام دی، نن ورځ[۲] نا امیده شول کافران دمغلوب کېدلو ددن ستاسونه

**فَلَا تَخۡشَوۡہُمۡ وَاخۡشَوۡنِ ؕ اَلۡیَوۡمَ اَکۡمَلۡتُ لَکُمۡ دِیۡنَکُمۡ وَاَتۡمَمۡتُ عَلَیۡکُمۡ**

پس مه ویریږئ ددوئ نه اوویریږئ خمانه، نن ورځ پوره کړو ماتاسولره دین ستاسو اوپوره کړو ماپه تاسو باندي

**نِعۡمَتِیۡ وَرَضِیۡتُ لَکُمُ الۡاِسۡلَامَ دِیۡنًا ؕ فَمَنِ اضۡطُرَّ فِیۡ مَخۡمَصَۃٍ**

نعمت خپل اوخوښ مي کړو تاسولره اسلام دین، نوڅوک چي مجبوره کړېشو په سخته لوږه کښي

---

۱ - خلورمه مسئله نذر لغیر الله.

۲ - یعنی داخلور مسئلي داکمال دین نه دي.

غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّإِثْمٍ فَإِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۞

ليکن نه وؤ مائل کېدونکي ګناه ته، نو پس بېشکه الله بخښونکي رحم کونکي دي

﴿ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ ﴾ **داخلورمه مسئله ده**.په دې کښې دنذر لغیرالله اود نورو محرماتو ذکردې.ددې حکم دادې چه داحرام دی.ددې حرمت باقي اولرئ اودامه خورئ.میتته (مرداره) هغه حیوان چه حلال نه وی لکه سپي ګیدړوغیره.یاپه شرعی طریقه سره نه وی ذبح کړې شوې نوددې خوراک اودارنګه په هغې سره نفع اغستل جائزنه دی.نوددې وجه نه(**حرمت علیکم المیتته**) ذکرشو.اکل المیتته ذکرنشو.البته څرمن ئې بعددباغت نه خرڅول جائزدی اوپه هغې سره نفع اغستل جائز دی.اود (دم) نه مراد.دمِ مسفوح بهیدونکي وینه ده.(**وَلَحْمَ الْخِنْزِيْرِ**) خنزیر بجمیع اجزائه حرام،نجس العین دې.اوپه ده سره انتفاع حلاله نه ده.نودغوښې تخصیص صرف ددې وجه نه شویدې چه دحیوان مقصودی حصه غوښه وی نوچه داحرام شی نوباقی اجزاء ئې په طریقِ اولی سره حرام شی.﴿ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهِ ﴾ ((أُهِلَّ)) د ((إهلال)) نه مشتق دې.رفع الصوت ته وائی ((استهل الصبی)) بچي چه پیداشی اوپه زوره آوازاوکړی.یاوژاړی نوئیلي ((استهل الصبی)) حاجی یاعمره کوونکي چه په زوره تلبیه اووائی نوئیلي کیږی ((اهل الحاج،اهل المعتمر)) دمشرکانوعادت داؤوچه دخپلوبتانوپه نامه به ئې نذر،منخته کوله.نوپه زوره به ئې آوازاوکړو چه داځیزدفلانی بت په نوم دې،نودلته مرادد (مااهل) نه نذرلغیرالله دې برابره خبره ده چه رفع الصوت وی یانه وی.نو (اُهِلَّ) ذکرکول د هغوئ دعادت موافق دی.په (**مااهل لغیرالله**) کښې درې احتماله دی (۱)اول داچه دینه مراد هغه حیوان دې چه په هغې باندې په وخت دذبح کښې نوم دغیرالله یادکړې شی.لیکن داتوجیه ضعیفه ده ځکه چه بِناپه دې باندې.د (وماذبح علی النصبِ) ذکرمستدرک کیږی.مګرداچه په تخصیص بعدالتعمیم باندې محمول شی.البته کومومفسرینوچه داتوجیه لیکلي ده.نود هغوئ مقصودتخصیص اوحصرنه دې.یعنی دائې مقصودنه دې چه صرف هغه نذرلغیرالله حرام دې چه په وخت دذبح کښې په هغې باندې دغیرالله نوم یادکړې شی،نذرلغیرالله مطلقًا حرام دې.بلکه هغوئ د(**وماأهل لغیرالله**) یوصورت ذکرکړیدې حصرئې مرادنه دې.

(۲) دویم داچه مرادترینه هرهغه حیوان دې چه دغیرالله دپاره نذرکړې شی نودغه حیواز حرام دې اګرکه په وخت دذبح کښې په هغه باندې بسم الله اووئیلې شی ځکه چه داپه وج

نذر کولولغیرالله سره حرام شویدې اوحرمت په کښې سرایت کړیدې نوپه بسم الله وئیلوسره نه حلالیږی لکه سپې، ګیدړوغیره.حضرت مولاناقاسم نانوتوی رحمه الله فرمائی چه داقسم حیوان په ظاهرکښې (ذُكِرَاسمُ اللهِ عَلَيْهِ) دې نوپکارده چه حلال شی.لیکن په باطن اوحقیقت کښې (لَمْ يُذكراسم الله عليه وانه لفسق) کښې داخل دې.اواعتبارباطن اوحقیقت اونیت لره وی نودې وجه نه داحرام دې.اودارائ دجمهوروفقهاؤاومحققینوده.

(٣) دریم احتمال دادې چه د (ما اهل به لغيرالله) نه مرادعام دې چه حیوان وی اوکه غیرحیوان. نقد.یاغله.وغیره وی لکه په سورة انعام کښې دی. ﴿وَجَعَلُواْ لِلَّهِ مِمَّا ذَرَأَ مِنَ ٱلْحَرْثِ وَٱلْأَنْعَٰمِ نَصِيبًا﴾ اوداقول زیات راجح دې لیکن ددې درې واړواحتمالاتوپه بناباندې (به) په معنی د(علیه) سره دې اود(لغيرالله) معنی داده چه (لتعظيم غيرالله) نوکوم خیزچه داکرام الضیف دپاره مقررشی یاذبح کړې شی نو هغه په دې کښې نه دې داخل،اوحضرت شیخ رحمه الله دخپل شیخ مولاناحسین علی رحمه الله نه نقل کوی چه د(ماأهل) نه مراد هغه کلام دې چه په هغې سره دغیرالله دپاره نذر اوکړې شی،اومعنی ئې داده چه داسې کلام هم حرام دې چه په هغې سره منخته اونذردغیرالله دپاره اوکړې شی،اوبناپه دې توجیه باندې (بِه) بخپله معنی سره دې،په معنی د(علیه) سره ګرځولوته ئې ضرورت نشته دې

**فایده** نذردغیرالله دپاره کول کفردې،اودالله تعالی سره په عبادتِ مالی کښې شریک ګرځول دی.لکه بحرالرائق وغیره فقهاؤلیکلی دی،(منها : ان النذرعبادة والعبادة لغيرالله كفر) دارنګه وائی (منها: انه ظن ان الميت يتصرف فى الاموردون الله تعالى وذالک کفر، ومنها : ان الاولياء الكرام يتصرفون فى الامورمن النفع والضرر وذالک كفر)، (مقدمه جواهرالقرآن ص : ٥١) اودارنګه کوم خیز(حیوان وغیره) چه نذرکړې شوې وی دغیرالله دپاره، نوهغه حرام دې قطعًا. لکه خنزیروغیره چه حرام دې قطعًا (قال فى الدرالمختار: قبيل باب الاعتكاف : اعلم ان النذرالذى يقع الاموات من العوام ومايوخذمن الزيت والشمع ونحوهماممايُنقل الى ضرائح الاولياء الكرام تقربا اليهم فهو بالاجماع باطلٌ وحرامٌ ، قدابتلى الناس بذالک ولاسيمافى هذه الاعصار) والتفصيل فى مقدمة جواهرالقرآن) حضرت شیخ رحمه الله فرمائی چه بعض علماؤ (تفسیرات احمدیه) لیکلی دی چه نذرللاموات حلال دې،ددې په مطلب پوهیدلوکښې ډیرخلق دهوکه شویدی.ددغه کلام مطلب دادې چه نذرلایصال الثواب الی الاموات،یعنی نذرلله وی اوایصال ثواب امواتوته

مقصود وی، دانه چه نذر للاموات وی، اوددې په ذیل کښې حضرت الشیخ فرمائی:

((باقی رہا عوام کا فعل، تو اسکے بارے میں جب تک کھلے دلائل اور واضح قرائن سے معلوم نہ ہو جائے کہ ان کی نیت تقرب الی غیر اللہ کی ہے اس وقت حرام ہونے کا حکم نہیں لگایا جاسکتا))

داد حضرت الشیخ نهایت اعتدال دې، د حرمت فتوی لګول، یادشرک فتوی لګولو کښې نهایت احتیاط ضروری دې، دعوامونه لفظی غلطی ډیره راځی لهذا دهغوئ دنیت اوعقیدې معلومولو نه بعد فتوی لګول مناسب دی، **﴿وَالْمُنْخَنِقَةُ﴾** داپنځه قسمونونه دې چه دلته مذکور دی دا تخصیص بعد التعمیم دې په لفظ دمیتته کښې ځکه چه میته هغه حیوان دې چه حلال نه وی لکه سپې وغیره، یاحلال وی خوپه شرعی طریقه سره نه وی ذبح کړې شوې اوداپنځه هغه څاروی دی چه شرعًا حلال دی لیکن حرمت په کښې ددې وجه نه دې چه په شرعی طریقه سره نه وی ذبح شوې. (**منخنقه**) هغه حیوان دې چه دمرئ خپه کولو سره مړشی برابره خبره ده که څوک ئې پهانسی کړی یاپخپله داسې اوشی لکه چه دڅاروی په مرئ کښې رسئ سخته شی یائې په مرئ کښې دننه څه اونخلی اومړشی بغیرد ذبح نه او(**موقوذه**) هغه حیوان دې چه په لرګی لوړ یاګټې باندې اووهلې شی اومړشی بغیرد ذبح نه اوداخل دې په کښې هغه ښکارچه دغشی په پلنوسره اولګی اومړشی اوکوم ښکارچه دغشی په تیره طرف اولګی نوهغه حلال دې. **كمافي الحديث**. اودارنګه داخل دې په دې کښې هغه چه ویشتلې شوې وی په بندقه سره یعنی دټوپک په ګولئ سره ځکه هغه قتل کوی د دروندوالی اواحراق په وجه، نه دتیره والی په وجه. او (**مترديه**) هغه ده چه دبره ځائ نه (لکه کمر، غر) نه ښکته اوغورزیږی یاپه کوهی کښې اوغورزیږی مړشی. او (**نطيحة**) هغه حیوان دې چه بل څاروی په ښکرووهلې وی اومړشوې وی

﴿وَمَآ أَكَلَ ٱلسَّبُعُ﴾ لکه سپې، شرمخ، ګیدړوغیره او ددې مطلب دادې چه سبع چه دحلال څاروی نه څه حصه اوخوری نومابقی چه ژوندې نه وی پاتې شوې اونه وی ذبح شوې په شرعی طریقه سره نودغه مابقی حرام دې. اوکوم چه سبع خوړلې وی نودهغې سره حل، حرمت نه متعلق کیږی ځکه هغه ختم شویدې. ﴿إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ﴾ ((ذكاة)) (بالذال) ((اتمام فعل خاص)) نه وائی د (ذكا) معنی ((تمام ایقادالنار)) ذكاوة فى الفهم دادې چه تام الفهم سریع القبول وی اوپه کلام دعربو کښې اوپه عرف دشرع کښې ذبح ته وائی په حدیث کښې دئ (ذكوة الجنين ذكوة امه). نو د (ذكيتم) معنی داشوه چه تاسوئې ذبح کړئ په ذبح کامله سره. کامله ذبح داده چه هغه حیوان

کوم نه چه دغه مذکورعوارض پیش شوی وی اومړنه وی بلکه حیاة په کښې باقی وی اوذبح سی. اوعلامه دحیاة. اضطراب. لکئ خوزول، سترګې غړه ول وغیره ذالک دی، اودا استثناء د **والمنخنقه** اود مابعد سره متعلقه ده، اوچاچه داسې وئیلي دی چه دا استثناء د ټول ماقبل سره متعلقه ده، اوددې نه دا ثابتوی چه هغه حیوان چه نذرشی دغیرالله دپاره اوذبح شی په نوم د الله تعالی سره نودغه حلال دې، نوداقول صحیح نه دې ځکه کوم حیوان چه نذرشی دغیرالله دپاره نوهغه حرام شوپه سبب دنذرلغیرالله سره. اوحرمت په کښې سرایت اوکړو. نودهغه حلال والې هله رازی چه علت دحرمت (یعنی نذرکول دغیرالله په نوم) ئې ختم شی، یعنی په کومه وجه سره چه داحیوان حرام شوې وؤهغه وجه ختمه شی اودهغې صورت دادې چه دغه څیزواپس کړې شی یعنی ناذر(نذرکونکې) ئې واپس کړی اوبیائې پطورصدقه مبتدئیه سره دالله تعالی په نوم ورکړی نوحلِ به راشی. لیکن چه علت دحرمت نه وی ختم شوې نوهغه څیزحرام وی اوحرام په بسم الله وئیلوسره نه حلالیږی. لکه سپې، ګیدړپه بسم الله وئیلوسره نه حلالیږی. دقرآن پاک دنوروآیتونونه اوډیرومفسرینودتصریحاتونه هم دامعلومیږی چه دااستثناء د (والمنخنقه) او مابعدنه ده. مسئله دنذرلغیرالله په قرآن پاک کښې په سورة (۱) بقره. (۲) مائده (۳) انعام (۴) اعراف (۵) نحل (۲) حج کښې ذکرشوې ده. دسورت مائده ددې آیت په شان آیت نمبر (۱۷۳) په بقره کښې هم دې اودسورتِ نحل آیت (۱۱۵) هم دې نوپه دغه دواړوآیتونوکښې دااستثناء نشته دې ځکه چه هلته دمنخنقه وغیره ذکرنه دې شوې، نوپه کوم ځائ کښې چه (**والمنخنقه**) وغیره ذکرشویدې نوهتله دااستثناء شته دې لکه دادمائده آیت، اوپه کوم ځائ کښې چه صرف (وما أهل به لغیرالله) ذکردې اومنخنقه وغیره نه دی مذکورنوهلته دااستثناء نشته نومعلومه شوه چه دا استثناء د(وماأهِل بهِ لِغیرالله) سره نه ده متعلق. تفسیرکبیرکښې وائی. (۳۱۲۰) انه استثناء من جمیع ماتقدم من قوله والمنخنقه الی قوله وماأکل السبع وهوقول علی وابن عباس والحسن وقتاده) اوصاحب دمدارک (۱۲۰۹) وائی (والاستثناء یرجع الی المنخنقه ومابعدها،) صاحب دالبحرالمحیط وائی (قال علی وابن عباس والحسن وقتاده وابراهیم وطاؤس وعبیل بن عمیروالضحاک وابن زیدوالجمهورهوراجع الی المذکورات ای من قوله والمنخنقه (۳۷\٤۲۱) (جواهر)

﴿وَمَا ذُبِحَ عَلَى ٱلنُّصُبِ﴾ (علی) یاپخپله معنی سره دې یاپه معنی د(لام) سره دې (اي ماذُبِحَ لِلنصبِ) (نُصُب) جمع د (نصاب) ده. لکه (حُمُر)جمع د (حمار) ده. بعض وائی چه ددې نه مراداصنام

یعنی بتان دی،اوبعض وائی چه داهغه کانړی وؤچه دخانه کعبې نه چاپیره وؤ،دادرې سوه شپیته (۳۶۰) کانړی وؤ،موافق دعدد داصنام سره. نوګویاکښې دادهغوئ دربارونه وؤ. مشرکانوبه دلته ذبح کوله اوداعلامه وه دنذرلغیرالله،نوداذکرالخاص بعدالعام دې ځکه (مَا أُهِلَّ) مذبوح غیرمذبوح دواړوته شامل دې اوداپه مذبوح پورې خاص دې اوهم داشان داقسم خاص دې په نُصُب پورې او(ما أُهِلَّ لغیرالله به) تمام غیرالله ته شامل دې،که نُصُب وی یا اصنام یعنی بتان وی اوکه قبرونه وی، اوفرق په مابین داصنامُ (بتانو)،اوانصابُ کښې دادې چه اصنام هغه دی چه شکل ئې ورله دانسان یادبل څه حیوان جوړکړې وی،اوانصاب هغه دی چه شکل ئې ورله نه وی جوړکړې.او هلته نذرانې شکرانې اچولې کیږی اوذبحې کیږی.دپاره دتعظیم دغیرالله.اودخوشنودې دغیرالله نوپه دې قسم ذبیحه کښې مقصودتعظیم اورضاجوئ دغیرالله وی نوداحرامه ده،اګر که په وخت دذبح پرې بسم الله اووئیلې شی.ددې مثال په موجوده دورکښې دادې لکه چه جاهلان مسلمانان کوی، د اولیاؤ دخوشنودې دپاره په عرسونوکښې دهغوئ دربارته ګډ،بیزه،وغیره اشیاء اوړی اوهلته ئې ذبح کوی،

﴿وَأَن تَسْتَقْسِمُوا۟ بِٱلْأَزْلَٰمِ﴾ (استقسام) قسمت معلومول.اوبرخه معلومول دی.او(ازلام) جمع د (زَلَم) ده هغه غشی ته وئیلې شی چه دهغې وزراوتیره څوکه نه وی،دمشرکینودوه قسمه عادتونه وؤ،یوداچه دوئ به خپل قسمت معلومولو،فال به ئې اچوو،اودهغې طریقه داوه چه دهُبَل بت په څنګ کښې د کعبې په مینځ کښې (۷) اووه غشی پراته وؤ،اوپه هغې به مختلف لیکل وؤ،چاچه به خپل قسمت معلومولولکه سفریافلانې کاراوکړمه اوکه نه،نودهُبَل مجاور (منجور) ته به لاړواوهغه ته به ئې سل روپئ اویوه اوښه په نذرانه کښې پیش کړه نومجاوربه ورله دغشونه یوغشې راؤښکلونوکه په هغه به (اِفعل) لیکلې شوی وؤ،نودوئ به وئیل (امرنی ربی) چه فال مې ښه راؤوتلونوهغه کاربه ئې کولو،اوکه (لاتفعل) به ئې پرلیکلی وؤ، نودوئ به وئیل (نهانی ربی) فال مې ښه نه دې راوتلې نوهغه کاربه ئې نه کولو،اوکه په غشی به (همل) لیکلی وؤ،نودوباره به ئې مجاورته شکرانه ورکوله اوهغه به بیاپه دغه ترتیب سره کارکولو، نوشریعت داطریقه رد کړه اوددې په مقابله کښې دشرعی استخارې حکم راغې.

اودویم عادت دمشرکانوداوؤ،چه څوکسانوبه یوحیوان لکه اوښه په شریکه واغستله اوذبح به ئې کړه نوتقسیم دغوښوبه ئې چه کؤو،نودبت مجاورته به لاړل نوهغه به دیوتن په نوم یوغشې ترکش نه راؤښکلواوپه هغې به ئې (لک النصف) لیکلی وؤ،نوده ته به دټول حیوان

نیمه ملاؤشوه دغه شان په بل غشی به ئې (لک الربع) لیکلی وؤ.نوچه دچاپه نوم به هغه راؤوتونوهغه به ځلورمه حصه واغستله.اودغه شان په بل غشی به ئې لیکلی وؤ.(لاشئ لک) یابه خالی وؤ.نوهغه به محرم شو.چا داسې ویلی دی چه په غشوبه ئې نشانات اولکیرې لګیدلې وې هغه به علامه دنصف ربع وغیره وه اودهغې مطابق ئې تقسیم کولو

﴿ذَٰلِكُمْ﴾ دا اشاره ده ماقبل تمام محرماتوته په تاویل دمذکورسره ﴿فِسْقٌ﴾ یعنی حرام دی﴿ٱلْيَوْمَ﴾ ددې نه مراد حاضره زمانه ده اومایتصل به یازمانه دنزول دآیت ده (روح)

﴿ٱلْيَوْمَ يَئِسَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِن دِينِكُمْ﴾ ای (مغلوبیة دینکم، یا ابطال دینکم) ﴿فَلَا تَخْشَوْهُمْ﴾ یعنی دکفارونه داویره مه کوئ،چه دوئ به په تاسوداسې غالب شی چه ستاسودین به ختم کړی یابه تاسوختم کړی، ﴿وَٱخْشَوْنِ﴾ بلکه ځمانه یریږئ،که ځما د امر مخالفت مواوکړو نو رسوابه شئ اوزه به سزادرکړم.

﴿ٱلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ﴾ حضرت الشیخ رحمہ اللہ فرمائی چه په بیان دځلورومسائلوسره چه (۱) تحریمات الله (۲) تحریمات العباد (۳) نذرلله (۴) نذرلغیرالله دې، ددین اسلام تمام فرائض اودحلالوحراموتکمیل اوشو.د (الیوم) نه مرادهغه ورځ ده چه داآیت په کښې نازل شوچه هغه ورځ دجُمعې وه اوعرفه وه.دماسپخین اومازیدګردمونځ نه روستوپه حجة الوداع (۱۰ھ) کښې.دسعیدبن جبیررضی الله عنه نه روایت دې چه ددې نه روستونبی صلی الله علیه وسلم صرف (۸۱) ورځې حیات وؤ.پیاوفات شو.صاحب دروح المعانی داسې عبارت لیکی (ولم یلبث بعدُ سوی احدوثمانین یوماومضی (روحی فداه) الی الرفیق الاعلی صلی الله علیه وسلم) او صحابه کرامو هم ددې آیت نه فهم کړو قرب وفات دنبی کریم صلی الله علیه وسلم لکه ددې آیت په نزول باندې د حضرت عمر رضی الله تعالی عنه ژړیدل او په یو روایت کښې د ابوبکر صدیق رضی الله تعالی عنه ژړیدل مروی دی ، د (اِکمال) معنی دانه ده چه ددې نه روستووحی بنده شوه بلکه مراد دادې چه احکام،حلال، حرام،فرائض بیان شو.ددې نه روستونوراحکامات نه دی نازل شوی،داقول دابن عباس رضی الله عنه دې اوقرطبی وائی چه جمهوروائی چه مراد ددې دا دې چه معظم اوغټ غټ احکام فرائض حلال حرام مکمل شوي ددې نه روستونوراحکامات هم نازل شویدی خوهغه کم وؤ.لکه آیت دربوا اوآیت

دکلاله. بهرحال د (اکملت) معنی دانه ده چه ددې نه روستووحی بنده شویده.

قرطبی دلته سوال او جواب کړې دې: سوال: داچه (اکملتُ) دلالت کوی په دې چه دین تردې وخته پورې کامل نه وؤ.بلکه ناقص وؤاونقصان خوعیب دې،نوآیانبی صلی الله علیه وسلم اوصحابه کرام تردې وخته پورې په ناقص دین باندې عمل کولواوناقص دین طرف ته ئې دعوت ورکولو؟

اوکوم صحابه رضی الله عنهم چه په بدر،احد،وغیرهماکښې شهیدان شویدی او دارنګه اصحاب د بیعة الرضوان اونورصحابه رضی الله عنهم چه ځان مال،هرڅه ئې قربان کړی وؤاومړه وؤ.نوآیادوئ په ناقص دین باندې مړه دی؟

**جواب** دادې چه هرنقصان خوعیب نه وی ،قال تعالی: ﴿وَمَا يُعَمَّرُ مِن مُّعَمَّرٍ وَلَا يُنقَصُ مِنْ عُمُرِهِ﴾ نقصان العمرخوعیب نه دې،نودارنګه دین دنبی صلی الله علیه وسلم هروخت کامل دې په کمال سره ترخاص وخت پورې لیکن انتظاراواحتمال د نسخ اودزیات په کښې موجووؤ.اوپه دې ورځ کمالِ مطلقه راغې چه احتمال دنسخ دبعض احکامواودزیات پکښې ختم شو.نود(**اکملت لکم دینکم**) دامعنی نه ده چه دین تراوسه پورې ناقص وؤاونن ئې نقصان ختم شو.بلکه معنی ئې داده چه چه احتمال دنسخ اودزیادت په کښې ختم شو.په روایت دبخاری اونوروکتابونوکښې راغلی دی چه څه علماء دیهودوحضرت عمررضی الله عنه ته حاضر شول اووې وئیل چه ستاسوپه کتاب کښې یوداسې آیت دې که چرته هغه په مونږیهودیانوباندې نازل شوې وې نومونږبه دغه ورځ خپل (عید) جشن ګرځولې وه،نوحضرت عمررضی الله عنه تپوس اوکړوچه هغه کوم آیت دې نوهغوئ اووئیل چه هغه دادې (**الیوم اکملت لکم ـ الایه**) چه په دې کښې رب العالیمن تاسوته خوشخبری،مبارک باد درکړیدې،نوحضرت عمررضی الله عنه اوفرمائیل چه ماته ډیرښه معلوم دې چه داآیت په کوم ځائ کښې اوپه کومه ورځ نازل شویدې چه هغه ورځ دعرفې وه اودجُمعې وه. دحضرت عمررضی الله عنه دجواب مقصد دا ؤوچه اسلامی جشن،اوعیددادې چه داهمو عباداتو د اداء کولو دپاره جمع کیدل په طریقه دسنت سره اودسلفو صالحینوسره اوشی.ددې نه علاوه نورعیدونه چه خلقوایجادکړیدی اورائج کړیدی نوددې څه اصل په سلفوکښې نشته دې، دعیسایانوایجاداودهغوئ اتباع ده، ﴿وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي﴾ اکمالِ دین سبب دې او اتمام نعمت ئې مسبب دې،اوابن قیم رحمه الله وائی چه اکمال په ذواتوکښې استعمالیږی اواتمام په

اوصافو کښې استعمالیږی نوپه دې کښې اشاره ده چه دین په اعتبارداصولواواوصافو دواړوسره مکمل دې نوددې وجه نه په دین کښې دیوعبادت ایجادلکه (بدعت) حرام دې.نودا رنګه دخپل طرف دعباداتوپه کیفیاتو کښې زیادت، او ایجاد کول بدعت دې امام راغب رحمه الله وائی چه اکمال دې ته وائی چه دکوم څیزچه غرض اومقصودوی هغه پوره شی اواتمام دیته وائی چه دبل کوم څه څیزضرورت پاتې نشی.

﴿وَرَضِيتُ لَكُمُ ٱلْإِسْلَٰمَ دِينًا﴾ دلته الله تعالی درې بشارتونه،خوشخبرئ ذکرکړیدی (۱) اول اکمال دین (۲)دویم اتمام نعمت (۳) دریم داچه ((رضیتُ لکم الاسلامَ دینا)) اودا عطف دې په ماقبل نو د ((الیوم)) ماتحت دې اي (الیوم رضیت لکم الاسلامَ دینا ــ ای اعلمتکم برضائی بهِ) یعنی نن ورځ مې تاسو خبرکړئ په دې چه ماتاسودپاره اسلام دین خوښ کړیدې ځکه چه اسلام چه الله تعالی زمونږدپاره دین مقررکړیدې نودا ازلی فیصله ده،خونن ئې خبرراکړوچه اسلام مې تاسود پاره دین،پسند کړیدې ﴿فَمَنِ ٱضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ﴾ دامتعلق دې دَ محرماتوسره اوپه درمیان کښې جمله معترضه وه چه په هغې کښې ددې خبرې بیان وؤ،چه تحریمات غیرالله ختمول.اودتحریمات الله تحریم باقی ساتل اونذرلغیرالله ختمول اونذرلله باقی ساتل،په دې سره اکمال ددین راځی،اواتمام نعمت راځی،نوپه دې جمله کښې فرمائی چه که څوك مجبوره شوخوراک دمحرماتوته نوپه دومره مقدراسره خوړل چه دهلاکت نه بچ شی دا جائزدی.اوپه دې حالت داضطرارکښې ددغه ذکرشوؤ اشیاؤ حرمت په حق دمضطرکښې ختم شویدې عندالاحناف اوپه نیزدشوافعوحرمت ئې باقی دې رخصت ورکړي شویدې مضطرته لکه دامعلومیږی د ﴿فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ نه ځکه مغفرت په ارتکاب دمعصیت سره کیږی،اواحناف وائی چه ددغه محرماتوحرمت په حق دمضطرکښې ختم شویدې اود ((غفور، رحیم)) ذکرکول ددې دپاره دی چه مضطرته خوصرف دومره مقدارحلال دې چه دې پرِدهلاکت نه بچ شی،اوکیدې شی چه ددنه په دې خوړلوکښې کمې بیشې راغلې وی ځکه چه دډیرې لوږې په حالت کښې داسې کیدې شی چه ددنه لګ شان تجاوزشوې وی دحد داجازت نه نوځکه (غفور رحیم) ذکرشو،

(**مخمصه**) دخمص نه ماخوذدې (شدة الجوع) اوبالکل خالی کیدل دخیټې دطعام نه،دیته وئیلې شی.او (الخمص القدم) دښپې په درمیان کښې هغه خالی،(اوچته) حصې ته وائی چه په

وخت دتلو کښې هغه حصه په زمکه نه لګی،

نو (مخمصه) هغه لوګه ده که چرته دغه محرمات یابل کوم څیزاونه خوری نوخطره دهلاکت وی. داسې آیت په سورة بقره (١٧٣) اوانعام (١٤٥) سورة نحل (١١٥) کښې هم دې خوهلته د (مخمصۀ) ذکرنشته،څکه په دغه سورتونوکښې اضطرارعام دې شامل دې اکراه اومخمصې (لوګه) ته څکه ددغه سورتونونزول مخکښې دغلبې داسلام نه دې اوپه دغه وخت کښې اکراه راتلې شوه اوداسورت دغلبې داسلام نه بعدنازل شویدې نوداکراه خطره نه وه صرف دمخمصې خطره وه .

| يَسْـَٔلُونَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ ۖ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ |
|---|
| دوی تپوس کوی ستانه چې څه څیزونه حلال کړې شوی دی دوی لره، ته ورته اووایه چې حلال کړې شوی دی تاسو لره |
| الطَّيِّبَٰتُ ۙ وَمَا عَلَّمْتُم مِّنَ الْجَوَارِحِ |
| پاک څیزونه. اوښکار دهغه سپی چې تعلیم ورکړې وی ورته تاسو، دښکار کوونکوڅیزونونه (یعنی سپي) |
| مُكَلِّبِينَ تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللَّهُ ۖ |
| چې لیږونکي یئ او زغلوونکی یئ تاسوپه ښکار پسې، تعلیم ورکوئ تاسوهغوئ ته دهغه څه نه چې خودنه کړېده تاسوته الله، |
| فَكُلُوا مِمَّآ أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ ۖ |
| نوخورئ دهغه څه نه چې ساتلی وی سپوتاسو لره، اویادوئ نوم دالله ﷻ په هغې باندې (په سپی، په وخت دلیږلو کښې)، |
| وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ④ |
| او یره کوئ دالله نه، بېشکه الله زرحساب کوونکي دې . |

﴿يَسْـَٔلُونَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ﴾ په دې کښې درې اقوال دی،**اول**: امام زهری وائی چه صحابه کرامورضی الله عنهم به اکثردنبی صلی الله علیه وسلم نه تپوسونه کول چه کوم څیزحلال دې اوکوم حرام دې نودا آیت نازل شو.

(٢) دویم قول دادې چه عدی بن حاتم اوزیدبن مهلهل دنبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړوچه مونږخپل سپې اوباز، دښکار دپاره اولیګونوهغه کله ښکاراونیسی اوژوندې ئې راولی اوکله ئې مړکړې راوړی، نوپه دې کښې زمونږدپاره کوم یوحلال دې،نوپه دې باره

کښې داآيت نازل شوچه داصل سوال دجواب نه په زائدباندې مشتمل دې.

(٣) دريم قول دادې چه دا دابتداء دسورت سره يعنی (أحلت لكم بهيمة الانعام) سره متعلق دې داآخری قول زيات مناسب دې.

(احِل لهم) دمتكلم (لنا) په ځائ ضميردغائب (لهم) راغلې دې،شيخ رضی رحمه الله وائی چه په كوم ځائ كښې د دووضميرونواستعمال جائزوی نوهلته دمتكلم په ځائ غائب استعماليدې شی ﴿ٱلطَّيِّبَٰتُ﴾ پاک څيزونه هغه دی چه طبيعت سليمه ترينه نفرت نه كوی.او حرمت ئې په كتاب الله اوسنت اوقياس كښې نه وی راغلې،نو(طيبات) حلال دی،اوخبائث حرام دی لكه په بل آيت كښې دی﴿وَيُحَرِّمُ عَلَيۡهِمُ ٱلۡخَبَٰٓئِثَ﴾ اعراف ع ١٩(١٥٧)

داداصل سوال نه زيات امردې مشركانوبه طيبات (پاک څيزونه) دخپلومعبودانودتعظيم اوتقرب دپاره محض دخپل وهم او ګمان مطابق حرامول نوالله تعالی اوفرمائيل چه پاكيزه څيزونه ستاسودپاره حلال دی،هغه حرام مه ګنړئ ﴿وَمَا عَلَّمۡتُم﴾ داپه ((الطيبات)) باندې عطف دې اود دويم قول مطابق داصل سوال جواب دې اوعبارت په حذف دمضاف سره دې اي (صيد ما علمتم) ښكاری سپې،باز،چه ښكارژوندې مالک ته راؤرسوی نودهغې ذبح شرعی ضروری ده بغيرد ذبح كولونه نه حلاليږی،اوكه مړئې كړی،نودهغې دحلالوالی دپاره شرطونه دی،اول داچه سپې به معلم (تعليم يافته) وی داشرط په ((عَلَّمۡتُمۡ)) او ((تعلمونهن)) كښې صراحةً مذكوردې،اودمعلم والی دپاره درې علامې دی **اول** داچه خودبخودبه په ښكارپسې نه زغلی ترڅوچه مالک ورته اشاره اونه كړی،**دويم** داچه مالک ئې ليږی نود ليږلو نه پس ئې كه چرته واپس راؤبلی نوواپس راځی دادواړه علامتونه د ((مكلبين)) نه معلوميږی،**دريمه علامه** داده چه كله ښكاراونسی نوپه خپله ئې نه خوری بلكه مالک ته ئې راورسوی،داعلامه صراحةً ذكرده په ﴿فَكُلُواْ مِمَّآ أَمۡسَكۡنَ عَلَيۡكُمۡ﴾ كښې.

**دويم شرط** دادې چه مالک دغه سپې په ښكارپسې ليګلې وی داشرط صراحةً ذكردې په (مكلبين) كښې (مكلبين) دتكليب نه ماخوذدې او (تكليب) ليګل اوتيزی وركول په ښكارباندې. نوكه دمالک دليږلونه بغيرښكاری سپې كوم څيزاونيسی اومړ ئې راوړی. نو هغه حلال نه دې. نو (مكلبين) حال دې دضمير د (عَلَّمۡتُمۡ) نه،په معنی د (مُضرِيۡنَ،مُسَلِّطِيۡنَ) سره يعنی چه تاسو ئې په ښكارپسې زغلوئ اوليږئ.

دريم شرط دادې چه دښکاری سپی ليږلوپه وخت کښې دئې بسم الله وئيلې وی،داشرط صراحةً مذکوردې په (وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ) کښې.
څلورم شرط دادې چه ښکاری سپې دې هغه حيوان زخمی کړې وی نوکه چرته زخم پکښې نه وی راغلې نوبياحلال نه دې،داشرط دجوارح نه معلوميږی،جوارح دجرح نه ماخوذدې،په معنی د کسب سره لکه ﴿وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُم بِالنَّهَارِ﴾ (انعام: ۶۰) اومراددجوارحونه کسب کونکې دښکاردې لکه سپې، باز،شاهين،وغيره ليکن هرکله چه جرح زخم ته هم وئيلې شی نوامام ابوحنيفه زخم هم شرط کړيدې.
داشرطونه ددمه اضطراری دپاره دی اوکه ښکارمالک ته ژوندې رارسيدلې وؤ،نو بيا بغيرذبح نه نه حلاليږی،
**فائده** سپې پليت دې اوجوته ئې پليته ده سپی زخمی کړې اوقتل کړې ښکارحلال دې نو علماء وائی چه دلته دجوته اوزخمی کړې شوی څيزدخوړلوحکم راغلې دې نومعلوميږی چه داپاک دې نودپاکوالی سبب ئې علم اوذکردې،نوکه چرته اشرف المخلوقات په دې دواړوسره متصف شی نوبيابه څومره لويه درجه ورته حاصله شی،او ﴿تُعَلِّمُونَهُنَّ﴾ جمله حاليه ده.اوذکرئې روستود ﴿وَمَا عَلَّمْتُم﴾ نه دپاره دتاکيددې اود﴿مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللّٰهُ﴾ نه مراددادې چه هغه تعليم معتبردې چه په قرآن اوحديث کښې ذکرشويدې لکه چه مخکښې تيرشو ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ په دې کښې اشاره ده چه رعايت ددغه مذکوره شرطونوضروری دې نوکه دغه شرطونه نه وی نوهغه حلال مه ګڼړئ

| |
|---|
| اَلْيَوْمَ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ؕ وَطَعَامُ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ |
| نن ورځ حلال کړې شوی دی تاسولره پاک څيزونه، اوطعام(ذبيحه)دهغه کسانو چې ورکړې شويدې ورته کتاب |
| حِلٌّ لَّكُمْ ۪ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ ۫ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ |
| حلاله ده تاسولره، اوطعام(ذبيحه)ستاسوحلاله ده هغوئ لره، او حلالې دي تاسولره پاک لمنې مومانې ښځې |
| وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ اِذَاۤ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ |
| [illegible] لمنې ښځې دهغه کسانونه چې ورکړې شويدې ورته کتاب مخکښې ستاسونه، چې کله ورکوئ تاسوهغوئ ته |

أُجُورَهُنَّ مُحْصِنِينَ غَيْرَ مُسَافِحِينَ وَلَا مُتَّخِذِي أَخْدَانٍ ۗ

مهرونه دهغوئ په قبد دنکاح کښې راوستونکي به يئ . نه يئ ښکاره بدکاري کونکی اونه به يئ پټې اشنائی نيونکی

وَمَنْ يَكْفُرْ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ ۥ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ ۝

اوڅوک چې منکر شی دايمان نه نو په تحقيق سره بربادشو عمل دده، اودې به په آخرت کښې دتاوان والونه وی

﴿ الْيَوْمَ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ ﴾ داهم دابتداء سره متعلق دې اودطيباتونه مراد ماسوی دذبائحونه پاک خوراکونه دی، ﴿ وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حِلٌّ لَكُمْ ﴾ مراددطعام داهلِ کتابونه ذبيحه دهغوئ ده اودخوراک هغه اشياءچه حلال دی،لکه روټئ،دال چاول وغيره، داخو دټولوکافرانو والاحلال دی برابره خبره ده که اهلِ کتاب وی يانه، اوهغه څيزونه چه شرعاحرام دی لکه خمر،خنزيروغيره نودااهلِ کتابووغيره ټولوحرام دی، نوپه طعام کښې تعميم نشته دې اوداهلِ کتابونه مراد صرف يهود،نصاری دی ځکه چه په کتاب او سنت کښې اهلِ کتاب فقط يهودونصاری ته وئيلې شی نوروکفاروته نشی وئيلې، اودا رنګه مرادداهلِ کتابونه دادی چه اصلی اهلِ کتاب وی نوکه چرته معاذالله مسلمان،نصرانی يهودی شوهغه مرتددې،نودهغه ذبيحه نه ده حلاله،اوهم دارنګه دا ضروری ده چه کوم اهلِ کتاب (عيسايان) چه ذبيحه ئې حلاله ده هغه دې دهری شوې نه وی لکه په موجوده دورکښې ډيرپه نوم عيسايان دی خوهغه دهريه دی عقيدةً نودهغوئ ذبيحه حلاله نه ده،اوهم دارنګه داهلِ کتابوذبيحه هله حلاله ده چه دخپل دين په طريقه ئې ذبحه کړې وی،يعنی نوم دالله تعالی پرِذکرکړی په وخت دذبح کښې،خلاصه داده چه مراد دطعام نه ذبيحه ده،اوداهلِ کتاب نه مراد صرف يهوداونصاری دی،اود دوئ ذبيحه چه حلاليږی نوشرط ئې دادې چه اصل اهلِ کتاب دې وی،مسلمان مرتد دې نه وی،عقيده ددهريت دې نه لری اوذبح دې په طريقه دخپل دين سره کوی نوکه په وخت دذبح کښې په ذبيحه باندې نوم دعيسی عليه السلام يادبل چايادکړی.ياپربالکل نوم دالله تعالی يادنه کړی نودغه ذبيحه حرامه ده. ﴿ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَهُمْ ﴾ ددې جملې نه مقصودتاکيددحِل دې يعنی لکه څنګه چه ستاسوطعام.ذبيحه ده دهغوئ دپاره حلاله ده نودغه شان دهغوئ ذبيحه ستاسودپاره حلاله ده،اوحضرت الشيخ رحمه الله فرمائی چه مراد د(طعامُکم حلٌ لهم) نه دادې چه کوم اشياء په هغوئ په حرام وؤ،لکه ((وعلی الذين هادوا حرمنا

عليهم كل ذی ظفر)) نو ددغه اشياؤ حرمت ختم شو ﴿وَٱلْمُحْصَنَٰتُ مِنَ ٱلْمُؤْمِنَٰتِ﴾ مراد ددې نه پاک دامنې ښځې دی حُره وی اوکه وینځه وی،اوقید د (محصنت) دپاره دترغیب دې یعنی دنکاح دپاره پاک دامنه ښځه مناسب ده،نه بدکاره،فاسقه، ﴿وَٱلْمُحْصَنَٰتُ مِنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ﴾

دلته دوه قوله دی اول داچه (محصنت) په معنی دپاک دامنوسره دې حُره وی اوکه وینځه وی.اوقید د (محصنت) دترغیب دپاره دې،شرط دصحت دنکاح دپاره نه دې. مطلب دادې چه که تاسود کتابیانوسره نکاح کوئ نوداخیال ساتئ چه هغه دې پاک دامنې وی.فاسقانې.بې حیا.بدکارې دې نه وی،اوداقول دامام ابوحنیفه رحمه الله دې،اودویم دادې چه مراد د (محصنت) نه.حُری (آزادې ښځې) وی نونکاح دونیځې کتابیئې سره جائزنه ده.اودامذهب دشافعی اودجمهورودې.د اهل علمو په نیزنکاح دکتابیاتوسره جائزدې اګرکه اهلِ کتاب مشرکان دی اودا آیت مخصص دې دآیت دبقرې دپاره چه ﴿وَلَا تَنكِحُوا۟ ٱلْمُشْرِكَٰتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ﴾ اودبعض صحابه کرامورضی الله عنهم نه لکه عبدالله بن عمررضی الله عنه چه منع مروی ده،دنکاح دکتابیاتونه نوداممحمول دې په خلاف الاولی باندې نه په حرمت باندې، ﴿مُحْصِنِينَ﴾ احصان په معنی دنکاح سره دې یعنی په قیددنکاح کښې راولې، په دې کښې اشاره ده نفی دمتع ته ﴿غَيْرَ مُسَٰفِحِينَ﴾ سفاح ښکاره زناکولوته وائی ﴿وَلَا مُتَّخِذِىٓ أَخْدَانٍ﴾ (اخدان) جمع د (خدن) ده مذکرمؤنث دواړوباندې ئې اطلاق کیږی یعنی پټه دوستانه دعاشقئ په طورباندې،اوپه دې کښې اشاره ده.اشتراط دشهادت ته په نکاح کښې،نوکه ښځې اوسړی دواړویوبل سره عقدنکاح اوکړو بغیردګواهانونه نودغه نکاح نه دې (اګرکه په مخلوط کالج کښې وی (کمازعمه المودودی) بلکه دامحض یارانه ده،په جاهلیت کښې به بعضوخلقوښکاره زناکوله اوبعضوښځوبه دمخصوص کسانوسره زناکوله،اودابه ئې خپل شرافت ګڼړلو،نو الله تعالی ورته اوفرمائیل چه دادواړه حرام اوبې حیائی ده،شرافت نه دې، ﴿وَمَن يَكْفُرْ بِٱلْإِيمَٰنِ﴾ په معنی د (من) سره ده.(ای من ینکرمنَ الایمـان،) اودا جواب دسوالِ مقدردې هغه داچه هرکله نکاح دکتابیاتوسره جائزشواوداهلِ کتابوذبیحه خوړل جائزشونود دوئ دین به هم صحیح وی

| |
|---|
| يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ |
| ائې ایمان[1] والو کله چې پورته کیږئ تاسو مانځه ته نو اووینځئ مخونه خپل او لاسونه خپل دڅنګلو پورې |
| وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ ۚ وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا |
| او مسح کوئ په سرونو خپلو او اووینځئ خپې خپلې ترګیټو(پړکو شنګرو) پورې. او که تاسو په حالت دجنابت کښې یئ |
| فَاطَّهَّرُوا ۚ وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَىٰ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ |
| نوخان ښهٔ پاک کړئ (غسل اوکړئ). او که تاسو بیماران(ناجوړه یئ) یا په سفر باندې یئ یا راشي یو کس تاسو نه |
| مِنَ الْغَائِطِ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوا |
| داودس ماتي نه یا تاسو یوځائې شوي یئ د زنانؤسره او نه مومئ اوبه نو تیم کوئ په خاوره پاکه. نو مسح اوکړئ |
| بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ مِنْهُ ۚ مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ حَرَجٍ وَلَٰكِنْ يُرِيدُ |
| په مخونو خپلو او په لاسونو خپلو دهغې نه ، نه غواړې الله چې مقرر کړي په تاسو څه تنګسیا. لیکن غواړي |
| لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ⑥ |
| چې پاک کړي تاسو ، او ددې دپاره چې پوره کړي نعمت خپل په تاسو باندې ددې دپاره چې تاسو شکر اوکړئ |

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ﴾ دا د امر مصلح ذکر دې یعنی په اودس یا تیمم سره دمونځ دادا کولو اهتمام کوئ نو وفا په وعدو به آسانه شي او (شنئان) یعنی بغض عداوت به ختم شي. په ظاهره ددې آیت نه معلومیږي چه د هرمونځ دپاره اودس کول ضروري دی حالانکه داد هیچا مذهب نه دې،

**جواب** په څو وجوهاتو سره دې **اول** داچه دلته لفظ د (وانتم محدثون) مقدر دې. ځکه چه نبی صلی الله علیه وسلم په غزوة خندق کښې څلورمونځونه په یو اودس سره کړیدی او په فتح مکه کښې ئې پنځه مونځونه په یو اودس سره کړیدی، (کمافی الترمذی وغیره)،

**دویم** داچه (اذا قمتم) نه مراد دخوب نه راپاسیدل دی، (کمافی مؤطا) ځکه دلته نورنول نواقض

[1] دامر مصلح ذکر

الوضوء صراحةً مذکوردی اودخوب نه راپاسیدل نه دی مذکور.
**دریم** داچه داحکم استحبابی دي، **څلورم** داچه دامنسوخ دي.

﴿فَٱغْسِلُوا۟ وُجُوهَكُمْ﴾ فرائض الوضوء په نزد داحنافوڅلوردی چه دلته مذکوردی او په نیز د شوافعو شپږ دی څلور دا مذکور دی، او (۵) نیت او (۶) ترتیب، او په نیز د مالکیو باندې اووه (۷) دی. څلور دا مذکور دی او(۵) نیت (۶) موالات (۷) دلك هم دي، او په نیز د حنابلوؤ (۵) نیت (۶) ترتیب (۷) موالات دی.

(**فائده**) تخصیص ددې اعضاؤدپاره حضرت شاه ولی الله رحمه الله وجه داوائی چه قیاس خودا تقاضاکوی چه کله خروج دنجاست اوشی نوټول بدن دې صفاکړې شی ځکه چه بدن شئ واحد دي،نوخروج دنجاست دیوځائ نه داسې دي لکه چه دټول بدن نه خروج دنجاست شوې وی لیکن دټول بدن وینځل خوحرج دي نواکتفاء اوشوه په اعضاؤاربعوباندې وجه داده چه په انسان کښې دوه قوته دی یوقوةِ عملی اوبل قوة نظری (علمی)،دقوةِ عملی مظهرلاسونه خپې دی اودقوةِ علمی مرکز،چهره اوسر دې ،(ګویا دا دعلماؤ کالونی ده) نو د اعضاءِ اربعۍ په پاکوالی سره ټول بدن پاک شو.

﴿إِلَى ٱلْمَرَافِقِ﴾ (الی) په معنی د (مع) سره دې یاغایه داسقاط دماوراء دپاره ده، ﴿وَٱمْسَحُوا۟ بِرُءُوسِكُمْ﴾ په نزد داحنافو فرض په مسح دسرکښې ربع دسرده،اوپه نزد دشوافعو (ادنی مایُطلقُ علیه الراس) اګرکه یو ویخته وی اوپه بل روایت کښې کم ازکم درې ویخته دی،اوپه نزد دامام مالک استیعاب فرض دې اوپه نزد دامام احمدرحمه الله هم استعیاب دې اوپه یوروایت کښې مسح دبعضې سر فرض ده، ﴿وَأَرْجُلَكُمْ﴾ دلته دوه قراته دی،نصب، جر، قراءة دجر محمول دې په حالت دتخفف،یاجردجواردې،نور تفصیل په سورةِ نساء کښې تیرشویدې. ﴿إِلَى ٱلْكَعْبَيْنِ﴾ (کعبین) په باب دوضوء کښې هغه دوه ګیټئ (پړکی) چه دپنډئ دلاندې دی.اوپه باب الحج کښې هغه هډوکې دې چه دخپې په منځ کښې دپاسه وی، ﴿فَٱطَّهَّرُوا۟﴾ په تشدیدسره دې،تفصیل دمبالغې دپاره دې اودادلالت کوې په فرضیت د مضمضه اواستنشاق په غسل کښې، ﴿وَإِن كُنتُم مَّرْضَىٰٓ﴾ مراددې نه هغه مرض دې چه دهغې په وجه سړې نه وی قادرپه اودس کولو ،یادمرض دزیاتیدواوهلاکت خطره وی﴿أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ﴾ ددې سره قیدد (لم تجدواماءً) مراد دې. ﴿مِّنَ ٱلْغَآئِطِ﴾ (غائط) په لغت کښې ښکته زمکې (کندې)

نه وئيلې شی. او انسان عادةً قضاء حاجت په دغه شان ځائ کښې کوی نودلته ذکرد محل دې اومراد ترينه حال دې. يعنی قضاء حاجت، اودس ماتې کول. لوئ اودس ماتې ياورکوتې. ﴿أَوْ لَٰمَسْتُمُ ٱلنِّسَآءَ﴾ په نزد دامام شافعی رحمه الله ددې نه مسه کول مراد دی نوښځه مسه کول د دوئ په نزد ناقض الوضوء دې. البته په تفصيل کښې يې د دوئ مختلف اقوال دی. مس بشهوةٍ مراد دې. يا مطلقا. بدون الحائل مراددې يامطلقا. مس دغيرمحرمه مراد دې يامطلقا. او دا تفسيرمروی دې دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه. اوپه نزد داحنافوددې نه مرادجماع ده. اودامروی درئيس المفسرين ترجمان القرآن عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه. اوصيغه دمفاعلې چه دمبالغې دپاره ده، په دې دلالت کوی ﴿فَلَمْ تَجِدُوا۟ مَآءً﴾ د (تجدوا). لفظ په دې دلالت کوی چه طلب داوبودې ئې کړې وی. اوعدم وجدان عام دې چه اوبه نه وی موجودې ياپه قيمت ملاويږی اوسړی سره قيمت نه وی. يادبيمارئ اوجسمانی عجزد وجه نه قادرنه وی په استعمال باندې. ﴿فَتَيَمَّمُوا۟ صَعِيدًا﴾ (صعيد) وجه الارض ته وئيلې کيږی. او شوافع ئې ترجمه کوی په (تَرابًا مُنبِتًا) سره. نوزمونږپه نزدپه داسې ګټه باندې تيمم جائزدې چه ګرد اوغبارپرِ نه وی. اودشوافعوپه نزددغباروجودضروری دې (منه) ضميرراجع دې (صعيدًا) ته

﴿مَا يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيَجْعَلَ﴾ يعنی داحکامودمشروعيت نه مقصود دانه دې چه په تاسوتنګی اوتکليف راشی. نو معلومه شوه چه په شريعت کښې حرج نشته دې. امام رازی رحمه الله وائی چه ددې نه معلومه شوه چه کوم اشياء (مضار) تکليف ده وی هغه مشروع نه دی. ﴿لِيُطَهِّرَكُمْ﴾ ددې نه معلومه شوه چه تيمم طهارتِ کامله دې. پشان داودس اودغسل. ﴿وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُۥ﴾ تيمم دمخکښنو امتونودپاره مشروع نه وؤ. نوداددې امت خصوصيت دې لکه په حديث کښې دی (جعلتْ لی الارض مسجدًا وطهورًا) اوکما قال صلی الله عليه وسلم، نو په دې جمله کښې ورته اشاره ده اوپه (تَشْكُرُونَ) کښې ترغيب دې عمل ته په دې احکاموباندې

| وَاذْكُرُوا۟ نِعْمَةَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ وَمِيثَٰقَهُ ٱلَّذِى وَاثَقَكُم بِهِۦٓ ۷ |
|---|
| اوياد کړئ[۱] نعمت دالله په تاسو باندې (اوپوره کړئ) وعده دهغه، هغه وعده چې پخه کړې ئې ده تاسوسره هغه. |

[۱]. د سورة د ابتداء اعاده

اِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ۫ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

کله چې اووئیل تاسو آوریدلی دی مونږ اوتابعداری کړېده مونږ. او ویریږئ دالله نه بېشکه الله عالم دې

عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝

په هغه خبرو چې په سینو کښې دی

﴿وَاذْكُرُوا نِعْمَةَ اللّٰهِ﴾ داهم متعلق دې دابتداء دسورت سره اوپه دې کښې ترغیب دې ابفاء دعقودوته. مراد دنعمت نه ظاهری دنیوی نعمتونه هم دی اوباطنی روحانی نعمتونه هم دی.صحت.عقل. دین اسلام هدایت اودارنگه اخروی نعمتونه.﴿وَمِيْثَاقَهُ﴾ ددې نه یامیثاق ازلی مراد دې ((الست بربکم قالوا بلی)) یا هغه میثاق دې چه صحابه کرامو په وخت دبیعت کښې کړې وؤ. په سمع طاعت سره په حالت د خوشحالئ اوتکلیف اوتنگسیا اوفراخئ کښې هرحالت کښې

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ لِلّٰهِ شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ ۫ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ

ای ایمان والو شئ کلك ولاړ په حق دالله گواهی کونکی په انصاف سره. اوباعث دې نشی په تاسو بغض عداوت

قَوْمٍ عَلٰۤى اَلَّا تَعْدِلُوْا ؕ اِعْدِلُوْا ۟ هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ۫ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ

دیوقوم په دې خبره چې تاسوانصاف اونکړئ. انصاف کوئ دا ډېر نزدې دې تقوی ته اوویریږئ دالله نه

اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ۝ وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

بېشکه الله خبردار دې په هغه عملونو چې تاسو یې کوئ وعده کړېده الله دهغه کسانو سره چې ایمان ئې راوړې دې

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ عَظِيْمٌ ۝ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا

اوعملونه کوی نیک . چې دوئ لره مغفرت دې اواجر لوئې دې اوهغه کسان چې کفرئې کړېدې

وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَاۤ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ۝ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ

اوسپت د دروغونې کړېدې آیاتونوزمونږ ته دغه کسان دوزخ والا دې اې ایمان والو یادکړئ نعمت دالله

عَلَيْكُمْ اِذْهَمَّ قَوْمٌ اَنْ يَّبْسُطُوْٓا اِلَيْكُمْ اَيْدِيَهُمْ فَكَفَّ اَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ ۚ

په تاسو باندې كله چې قصد اوكړو يو قوم د دې خبرې چې اوږده كړي تاسو ته لاسونه خپل نو منع كړل الله لاسونه دهغوى ستاسو نه

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۗ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ⑪

اوويريږئ دالله نه او خاص په الله دې توكل اوكړي مومنان

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ﴾ داد «لايجرمنكم شنئان قوم» دمضمون اعاده ده. چه په حق باندې كلك اودريږئ. دحقې خبرې بيان په كلكه سره كوئ اوشهادت په عدل او انصاف سره كوئ. دخپلولئ يادښمنئ په وجه په شهادت كښې ردوبدل مه كوئ. عدل كوئ په حقوق الله اوحقوق العبد كښې. اوداعدل ډيرقريب دې تقوى ته يعنى دعدل په وجه سره انسان موصوف گرځي په تقوى سره. اوتقوى فرض ده ځكه چه ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ ﴾

﴿ وَعَدَ اللّٰهُ ﴾ دابشارت دې هغه كسانوته چه په خپلو وعدو وفاكوى.

﴿ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا ﴾ داتخويف دې هغه كسانوته چه وعدې نه پوره كوى ﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ ﴾ دادحكم سابق دوباره اعاده ده. يعنى امرپه انصاف سره كوئ اودوعدوايفاء كوئ. اودشعائرالله بې حرمتى مه كوئ. اوكه تاسوته په دې كښې څه خطره وى نوپرواه مه كوئ الله تعالى به دانصاف كولوپه وجه اود وعدوپوره كولوپه وجه ستاسوحفاظت كوى د دښمن نه. لكه نمونه ئې داد ﴿اِذْ هَمَّ قَوْمٌ ﴾ داډيرو واقعاتوته شامل دې. لكه په غزوة عسفان كښې چه مشركينوااراده كړې وه چه مؤمنان كله په مونځ مشغول شى نومونږبه پرې حمله كوؤ. نوالله تعالى حفاظت اوكړواودصلوة الخوف حكم ئې نازل كړو. اودغه شان واقعه داعرابى وه چه په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې ئې توره راويستې وه. اوالله تعالى درسول الله صلى الله عليه وسلم حفاظت اوكړو. اوهغه اعرابى ايمان راوړو، دغه شان چه بنى نضيرود صلح په بهانه دنبى صلى الله عليه وسلم دقتل منصوبه جوړه كړې وه. ليكن الله تعالى ترينه خپل نبى صلى الله عليه وسلم محفوظ اوساتلو. په صلح دحديبيه كښې هم دكفارويوه ډله دخفيه حملې په نيت راغلې وه. او صحابه كرامورضى الله عنهم گرفتاره كړه. داټول واقعات ددې په عموم كښې داخل دى. ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ ﴾ يعنى حفاظت ته دتقوى اوتوكل په ذريعه حاصليږى، نوتقوى اوتوكل په ځان كښې پيدا كړئ.

وَلَقَدْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۚ وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ

اوپه تحقيق سره[1] اخيستي وه الله پخه وعده دبني اسرائيلو نه اوليږلي او مقرر کړي وو مونږ ددوئ نه

اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيْبًا ۗ وَقَالَ اللّٰهُ اِنِّيْ مَعَكُمْ ۗ لَئِنْ اَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ وَاٰتَيْتُمُ الزَّكٰوةَ

دولس سرداران، اووئيلي وو الله چې يقيناً زه ستاسو ملګرې يم، کچرې تاسو پابندي کوئ دمانځه اوورکوئ زکوة

وَاٰمَنْتُمْ بِرُسُلِيْ وَعَزَّرْتُمُوْهُمْ وَاَقْرَضْتُمُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا

اوايمان مواولرلو په رسولانو خما اوامداد موکولو دهغوئ اوقرض مو ورکولو الله ته قرض ښائسته

لَاُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ وَلَاُدْخِلَنَّكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا

خامخا لرې به کړم ستاسو نه ګناهونه ستاسو اوخامخا به تاسو داخل کړم جنتونو ته چې بهيږي به لاندې دهغې نه

الْاَنْهٰرُ ۚ فَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ⑫

ولې، نو چاچې کفر اوکړو روستو ددېنه ستاسو نه، نو په تحقيق سره غلطه ئې کړه سمه لار

﴿وَلَقَدْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَٰقَ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ﴾ داهم دابتداء دسورت سره متعلق دې، اودنقض عهد والؤدوه نمونې په طريقه دتخويف سره ذکر کيږي، دااوله نمونه ده، (نقيب) دحالاتو تفتيش کوونکي. (نمبردار، سردار) ته وئيلې شي، بنی اسرائيل دولس خاندانونه وؤ، نو دهريو خاندان داصلاح اونظم اوضبط دپاره يو نقيب نمبردار مقرر شوې وؤ، ﴿وَقَالَ اللَّهُ إِنِّى مَعَكُمْ﴾ مراد دَ معيت په نصرت اومعونت سره دې، ﴿لَئِنْ أَقَمْتُمُ الصَّلَوٰةَ﴾ لام مؤطئه للقسم دې. او، (ان) شرطيه دې. دکلام په اول کښې چه قسم اوشرط دواړه جمع شي نو روستو جواب بيادمعنی په لحاظ سره د دواړو دپاره وی اوپه لفظ کښې داول دپاره وی، دلته قسم اول دې نو په جواب باندې ځکه لام. اونون تاکيد يه داخل شويدې،

په دې آيت کښې دهغه وعدو ذکر دې چه بنی اسرائيلو دالله تعالی سره کړې وې، (۱) اول اقامة الصلوة. (۲) دويمه وعده ورکول دزکوة (۳) دريمه وعده ايمان بالرسل عليهم السلام (۴)

1 دانقض عهدد دوو نمونو نه اوله نمونهٔ يعني لکه څرنګه چې يهودو ته د نقض عهد په وجه پنځه سزاګانې ورکړې شوې وې نو دارنګه که تاسو وعده ماته کړه نو سزا به درکړې شي

خلورمه وعده نصرت اوامداددرسولانویعنی ټول رسولان بلاتفرقه منل اودهغوئ تصدیق کول.د هغوئ مددکول اومدافعت کول دهغوئ نه اوددین دَ هغوئ نه په ذریعه د دعوت اوجهادسره.او(۵) پنځمه وعده انفاق فی سبیل الله.یعنی دزکوة نه علاوه په نورو مصارفو دخیرکښې مال صرف کول لکه بنادمساجدواومدارسواوداقسم فرض کفائی دې اوزکوة فرض عین دې. ایمان بالرسل رتبةً مقدم وو په اقامة دصلوة اوایتاء دزکوة لیکن په میثاق کښې اقامة الصلوة او زکوة مقدم ذکرشوځکه چه اقامة دصلوة اوایتاءدزکوة فی الحال وو.اوایمان بالرسل اونصرت دهغوئ،روستودراتللودهغوئ نه دی.﴿فَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ﴾ ((ای بعد المیثاق)) کفربعدالمیثاق اوقبل المیثاق. دواړه قبیح دي لیکن بعد المیثاق ډیرقبیح دې ځکه قبل المیثاق انسان عذرکولې شی چاماته علم نه وو.اوپس دمیثاق نه دغه عذرهم نشی کولې

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيثَاقَهُمْ لَعَنَّاهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوبَهُمْ قَاسِيَةً ۖ

پس په سبب دماتولوددوئ دوعدې خپلې لره. مونږ لعنت[1] اوکړو پدوئ اواوگرزول[2] مونږ زړونه ددوئ سخت

يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَن مَّوَاضِعِهِ ۙ وَنَسُوا حَظًّا

تحریف(ردوبدل)[3]کوی په کلمو کښې(یعني تورات کښې) په ارولو سره دځپل ځائ نه. اوهیره کړه[4] دوئ یوحصه

مِّمَّا ذُكِّرُوا بِهِ ۚ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلَىٰ خَائِنَةٍ مِّنْهُمْ إِلَّا قَلِيلًا

دهغې نه چې نصیحت کړې شوې وو دوئ ته په هغې سره. اوهمیشه به خبریږې نه ددوئ په خه خیانت[5] باندې مگر لږ حصه

مِّنْهُمْ ۖ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴿١٣﴾

ددوئ نه. نومعافی کوه ددوئ نه اومخ اړوه دملامت کولوددوئ نه. بېشکه الله محبت کوی احسان کوونکو سره

---

1 - دنقض عهد اوله سزا

2 - دویمه سزا

3 - دا دریمه سزاده او جمله حال دې دضمیر دلعنّا نه یعني دالله ﷻ مراد نې بدلولو او ذلیل هم شو اودس نه هم محروم شو

4 خلورمه سزا

5 پنځمه سزا

﴿ فَبِمَا نَقْضِهِم مِّيثَاقَهُمْ ﴾ په دې کښې نقض العهد. (لوظ ماتول) باندې دسزګانوذکردې. (فبما) کښې (باء) سببیه ده. او(ما) زائده دې یعنی په سبب دماتولودوعدوسره په دوئ باندې داسزاګانې واقع شوې. ﴿ لَعَنَّٰهُمْ ﴾ اوله سزا ده. یعنی الله تعالی دخپل رحمتِ خاصه نه لرې کړل. اومسخ اونورعذابونه ئې ورله ورکړل. ﴿ وَجَعَلْنَا قُلُوبَهُمْ قَٰسِيَةً ﴾ دادویمه سزاده چه زړونه ئې سخت شول. وعظ. تخویف بشارت پرې اثرنه کوی اوحسنه ته سیئه وائی اوسیئه ته حسنه وائی. انکار کوی دقبول دحق نه. قسوة قلبی دبدبختئ علامه ده. ﴿ يُحَرِّفُونَ ﴾ دادریمه سزاده. اواثر دقسوتِ قلبی دې چه دوئ تحریف کوی په تورات کښې. (الكلم) نه مراداحکامات اوکلمات دتورات دی. ﴿ عَن مَّوَاضِعِهِۦ ﴾ (ای بصرفه عن مواضعه) په اړولوسره دخپل معنی اصلی نه یعنی تحریف معنوی اوغلط تاویلونه کوی. ﴿ وَنَسُواْ حَظًّا ﴾ داڅلورمه سزاده. یعنی ذلیل هم شواوبې دینه هم شو. د(حظا) نه مراد د تورات انجیل هغه حصه ده چه په هغې کښې دتوحیداودرسالت دخاتم النبیین ذکردې. هغه ئې داسې پریخوده. لکه چه نسیأ منسیاًوی. یامراد دادې چه دتحریف په وجه ئې قوت حافظه خرابه شوه نوکتاب الله ترینه هیرشو. دابن مسعودرضی الله عنه نه روایت دې چه انسان بعضِ علم دګناه دوجه نه هیرکړی اودآیت ئې تلاوت کړو. ﴿ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلَىٰ خَآئِنَةٍ ﴾ داپنځمه سزاده. او (خائنة) مصدردې په وزن داسم فاعل سره (اي خيانة) يااسم فاعل دې اوموصوف ورله مقدردې ای فرقة خائنة، مراد دخیانت نه هغه دهوکې دی چه دوئ دنبی صلی الله علیه وسلم اومسلمانانوسره کولې. ﴿ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ دااستثناءده. د ﴿ فَبِمَا نَقْضِهِم مِّيثَاقَهُمْ ﴾ نه یاد ﴿ لَعَنَّٰهُمْ ﴾ اومابعدنه. مراد دَ قلیلاً نه عبدالله بن سلام رضی الله عنه اودهغه اتباع دی. ﴿ فَٱعْفُ عَنْهُمْ وَٱصْفَحْ ﴾ (عنهم) ضمیر راجع دې. قلیل (مؤمنانو) ته. یاراجع دې ناقضین دعهدته اومراد د (عفو) او(صفح) نه دادې چه بغیردحاجت شرعی نه د دوئ دخیانتونواظهار، محض د دوئ درسوائې دپاره مه کوه. نودا آیت منسوخ نه دې. ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾ احسان ښه خوئ دې چه دچاعیب اوخیانت بغیردشرعی ضرورت نه نه ښکاره کوی.

| وَمِنَ | الَّذِينَ | قَالُوٓا | إِنَّا | نَصَٰرَىٰٓ | أَخَذْنَا | مِيثَٰقَهُمْ | فَنَسُوا۟ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

او دهغه کسانو نه [1] چې دوئ وائي بېشکه مونږ نصارئ یوو اخستی مونږ پخه وعده دهغوئ نه نوهېره کړه دوئ

| حَظًّا | مِّمَّا | ذُكِّرُوا۟ | بِهِۦ | فَأَغْرَيْنَا | بَيْنَهُمُ | الْعَدَاوَةَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

یوحصه دهغې نه چې نصیحت کړې شوې وو دوئ ته په هغې سره. پس واچوله مونږ په مینځ ددوئ کښې دښمني

وَالْبَغْضَآءَ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَٰمَةِ ۚ وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ اللَّهُ بِمَا كَانُوا۟ يَصْنَعُونَ ۝

اوبغض د ورځې دقیامت پورې . اوزردې چې خبربه کړي دوئ لره الله په هغه کار چې دوئ ئې کوی

﴿وَمِنَ الَّذِينَ قَالُوٓا إِنَّا نَصَٰرَىٰٓ﴾ دادنقضِ عهد ،(لوظ ماتولو) دویمه نمونه ده.یعني لکه څنګه چه نصاراؤته.نقضِ عهدپه وجه داسزاملاؤشوه،چه خپل کتاب ا ر ـ ـ دفهم نه محرومه شول.اوخپل منځ کښې ئې دښمني اوبغض پیداشو.نوتاسوپه خپلووعدوباندې وفاکوئ ورنه تاسوته به هم دغه شان سزا درکړې شی.﴿وَمِنَ الَّذِينَ﴾ جارمجرار متعلق دې د (اخذنا) سره.(ای اخذنامن الذین) اوتقدیم ئې داهتمامِ شان د وجه نه دې.او﴿قَالُوٓا إِنَّا نَصَٰرَىٰٓ﴾ ئې اووئیل ((ومن النصاری)) ئې اونه وئیل په دې کښې اشاره ده دې ته چه دوئ په حقیقت کښې په نصرانیت نه وۇ.بلکه صرف دعوی وه،ځکه چه انجیل کښې بشارت دبعثت د سیدالکونین صلی الله علیه وسلم موجودوۇ،اودوئ په نبی صلی الله علیه وسلم باندې ایمان نه راؤړلو.یاپه دې کښې اشاره ده دې ته چه دوئ ځان ته لقب دنصاری،یعني انصارُدین الله کېښودو.لیکن په عمل کښې انصار الشیطان دی نوقول ئې دعمل نه مخالف دې.

﴿حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوا۟ بِهِۦ﴾ د دینه مراد ایمان بالله او ایمان په محمد صلی الله علیه وسلم دې. یعنی توحید او رسالت

﴿فَنَسُوا۟﴾ مطلب دادې چه توحید او رسالت ئې داسې پریخودلوچه نسیاً منسیاً اوګرځیدلو . یعنې دخپل کتاب د اهمې حصې (توحید اورسالت) د فهم نه محرومه شو . نو

[1] دوعدې ماتونکو دویمه نمونه یعني نصرانیانو وعده ماته کړه نوبغض عداوات تفریق ئې په مینځ کښې راغلو نوکه تاسو دالله ﷻ په وعدوعمل اونه کړو نوتاسوته به هم داسې سزا درکړې شي

دا یوه سزا ده. اودویمه سزا داده ﴿فَأَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ﴾ (اغرینا) د (غراء) نه مشتق دې (غراء) ما يلحق الشيء بالشيء كالصمغ وشبهه ، غراء هغه ته وائی چه په هغې سره یو شئ دبل سره چسپان (اینخلولی) کیږی لکه جوله ، سریش . یعنې بغض عداوت پدوئ پورې ؤنختلو. او په دوئ کښې مختلفې فرقې پیدا شوې ، یعقوبیه ، نسطوریه ، ملکانیه . او بیا په کښې نورې ډلې پیدا شوې . ﴿إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾ د عیسی ﷺ د نزول وخت مراد دې چه هغه زمانه د قرب قیامت ده ﴿وَسَوْفَ﴾ دا تخویف اخروی دې . یعنې د نقض العهد په وجه دوئ ته په دنیا کښې هم سزا ورکړې شوه اوپه آخرت کښې هم.

يَٰأَهْلَ الْكِتَٰبِ قَدْ جَآءَكُمْ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيرًا مِّمَّا كُنتُمْ تُخْفُونَ

اې اهل کتابو! [1] په تحقیق سره راغلې دې تاسو ته رسول زمونږ، بیانوي تاسو ته ډیرې مسئلې دهغې نه چې تاسو به پټولې

مِنَ الْكِتَٰبِ وَيَعْفُوا عَن كَثِيرٍ ۚ قَدْ جَآءَكُم مِّنَ اللَّهِ نُورٌ وَكِتَٰبٌ

دکتاب دالله نه اومخ اړوی د ډیرو نه ، په تحقیق سره راغلې دې تاسو ته دطرفه دالله رڼا اوکتاب [2]

مُّبِينٌ ۝ يَهْدِي بِهِ اللَّهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهُ سُبُلَ السَّلَٰمِ

واضح بیان والا هدایت ورکوی پدې سره الله هغه چاته چې تابعداری کوی [3] درضادالله لارودسلامتیانه

وَيُخْرِجُهُم مِّنَ الظُّلُمَٰتِ إِلَى النُّورِ بِإِذْنِهِ وَيَهْدِيهِمْ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ۝

اوراوباسي دوئ لره دتیرونه رڼا ته په حکم دهغه سره اورسوی دوئ لره لارې نیغې ته

﴿يَٰأَهْلَ الْكِتَٰبِ قَدْ جَآءَكُمْ﴾ دادسورت داولې حصې د دویم مضمون نفی دشرک اعتقادی بیان دې.اول بطورتمهیداهلِ کتابوته ترغیب دې د ایمان په رسالت دحضرت

---

1 دحصه اول دویم مضمون یعنې نفي دشرک اعتقادي.

2 . کتاب عطف تفسیر د نور دې مراد دنور نه قران دې.

3 . هدایت هغه چاته ملاویږي چې انابت والا وي ضد تعصب نه کوي لکه (يهدي اليه من اناب). (يهدى اليه من ينيب)

محمدصلی الله علیه وسلم باندې، اوبیادشرکِ اعتقادی رد دې،دلته داهلِ کتابونه یهود، نصارادواړه مراددی، په دې آیت کښې دحضورصلی الله علیه وسلم اوصاف بیان شویدی، اول داچه ﴿يُبَيِّنُ لَكُمْ﴾ یعنی دتورات انجیل ډیرحکمونه چه تاسوپټ کړی وو، هغه ښکاره بیانوی، اوډیرونه عفو درګزرکوی، یعنی چه کوموخبروته ضرورت دې اوتاسوپټې کړیدی نوهغه بیانوی، ﴿وَيَعْفُوا عَن كَثِيرٍ﴾ اونورې ډیرې خبرې چه تاسوپټې کړیدی اوخیانت موکړیدې لیکن هغې ته په دین کښې ضرورت نشته دې نودهغې اظهارصرف تاسودرسوائی اواظهارِخیانت دپاره نه کوی، اګرچه نبی صلی الله علیه وسلم ته ستاسودخیانت علم شته دې

«فائده» دعلماءحق دپاره هم په دې طریقه تلل پکاردی چه صرف دچارسواکولواومغلوب کولودپاره دچاقبائح نه بیانوی بلکه مقصود دې ئې صرف اظهارِحق وی، اوبلاتحقیقه د تعصب اوضدپه وجه دې په علماؤباندې دمشرک فتوی یادحق پټوونکی فتوی نه لګوی، (والی الله المشتکی).

﴿قَدْ جَاءَكُم مِّنَ اللَّهِ نُورٌ﴾ داترغیب دې اتباع دقرآن ته پس دترغیب نه اتباع درسول الله صلی الله علیه وسلم ته. دلته دقرآن دوه صفتونه ذکرشویدی، اول «نور» یعنی قرآن نوردې په دې سره حق واضحه کیږی اوظلمات دکفراوجهل پرې زائله کیږی، په سورتِ نساءآیت نمبر(۱۵۷) کښې دی ﴿وَأَنزَلْنَا إِلَيْكُمْ نُورًا مُّبِينًا﴾ اوپه سورتِ تغابن کښې دی (۸) ﴿فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَالنُّورِ الَّذِي أَنزَلْنَا﴾ . اودویم صفت ئې ﴿وَكِتَابٌ مُّبِينٌ﴾ داعطفِ تفسیردې دنوردپاره، مقصود دکتاب دوه صفتونه بیانول دی، اول داچه «نور» دې دویم داچه «مبین» دې یوبل قول دادې چه د«نور» نه مراداسلام دې، اوبل قول دادې چه دنورنه مراد رسول پاک صلی الله علیه وسلم دې، لیکن ددې نه داثابتول چه ذات د رسول الله صلی الله علیه وسلم نوردې اوبشرنه دې نودازیغ اوجهالت دې، اوتعصب دې، کومومفسرینوچه دنورتفسیرپه ذات درسول الله صلی الله علیه وسلم سره کړیدې هغوئ هم داتصریح کړیده چه دا«نور» وصف دې. لکه بشیر. نذیروصف دې. نوددې نه نفی دبشریت محضِ تعصب اوجهالت دې. صاحب دمدارک وائی. (اوالنورمحمدصلی الله علیه وسلم لانه یهتدیٰ به کمایهتدیٰ بالنورفی الظلام کماسمیٰ سراجاً) سراج دنبی صلی الله علیه وسلم په اسماؤکښې دې لیکن وصف دې، ذات ئې سراج نه دې دغه شان نورروصف دی، ذات نه دي .

(فائده) داهل بدعت نه چه دا تپوس وشی چه تاسو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته نور وایئ. نو آیا د دې مطلب دادې چه دهغه بدن مبارک، دلحم، عظم، دم نه مرکب نه وو، صرف عرض وو. یابل څه مطلب دې نودوئ ته بیاهم څه علم نه وی، لاجواب وی، ﴿ يَهْدِي بِهِ اللّٰهُ ﴾ ضمیرد مفرد (به) قرینه ده په دې باندې چه دنور اوکتاب مبین نه مراد یوشیزدې، که جداجدا ترینه مرادوې نو (بهما) وئیل پکارؤو، په دې کښې دقرآن منافع بیانیږی.

﴿ سُبُلَ السَّلٰمِ ﴾ سلام یا په معنی مصدری سره دې یعنې لارې دسلامتیادعذاب نه. اومراد د سُبل نه اعمال اواحکام دی، یاسلام اسم دې داسماؤدالله تعالی نه اوداواضع داسم ظاهرده چه په ځائې دضمیر. ﴿ وَيُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ ﴾ مراد دجهل اودکفرظلمات دی. ﴿ بِإِذْنِهِ ﴾ (ای توفیقه). ﴿ وَيَهْدِيهِمْ ﴾ دلالت موصله مراد دې.

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ ۚ قُلْ فَمَنْ

خامخاپه تحقیق (۱) سره کافر دې هغه خلق چې وائی بیشکه الله خو مسیح خوئې دمریم دې، ته ورته اووایه نوڅوک

يَمْلِكُ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا إِنْ أَرَادَ أَنْ يُهْلِكَ الْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهُ وَمَنْ

اختیارلری دالله نه دڅه څیز دانتقام، که اوغواړی چې هلاک کړی خوئې دمریم اومور دهغه اوهغه څوک

فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا ۗ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا

چې په زمکه کښې دي ټول ، اوخاص الله لره بادشاهی ده د آسمانونو او د زمکې اودهغه څه

بَيْنَهُمَا ۚ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ ۚ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝

چې ددوئ دواړو په مینځ کښې دی، پیداکوی هغه څه چې اوغواړي، اوالله په هرڅیز باندې قادر دې

﴿ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوا ﴾ داد (قدجاءکم رسولنا) سره متعلق دې او اول حکم دې یعنی تاسوته زمارسول صلی الله علیه وسلم راغلې دې چه صاف صاف حکم کوی. فتویٰ ورکوی چه یقیناً بلاشبه هغه خلق کلک کافردی چه داوائی چه

---

۱ داد (قد جاء کم رسولنا) سره متعلق دې یعنې رسول دا وائی چې یقیناً کافر دې هغه خلق چې وائی چې الله ﷻ نه په شکل دعیسیٰ ﷺ کښې راغلبدې یا ئې عیسیٰ ﷺ ته د خدائی اختیارات ورکړی دی

﴿إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلۡمَسِيحُ ٱبۡنُ مَرۡيَمَ﴾ ددې دوه مطلبه کيدې شي يوداچه دالله نه مرادمتصرف في الامور،حيوة ورکوونکې، موت ورکوونکې، دعالم تدبيرکوونکې نودالله تعالى نه مراد وصف مشهوردې، لکه صاحب دروح المعاني دراغب نه نقل کړيدی چه جمع شوه يوطائفه دعلمؤدبني اسرائيلونه او وې وئيل چه (اتعلمون انّ احدا يحيى الموتى الاالله،فقالوالا:اتعلمون احدا يبرئ الاكمه والابرص الاالله،قالوالا:نوځکه دوئ اووئيل ( **ان الله هوالمسيح ابن مريم**) دويم مطلب داچه الله تعالى حلول کړيدې په عيسى عليه السلام کښې، دې فرقې ته حلوليه،يعقوبيه وئيلې شي.

﴿قُلۡ فَمَن يَمۡلِكُ مِنَ ٱللَّهِ﴾ داد دغه مذکورقول د(**ان الله هوالمسيح ابن مريم**) رد دې په څلوروجوهٔ سره.دا اوله وجه ده.حاصل ئې دادې کچرته الله تعالى ؤغواړی چه عيسى عليه السلام بلکه تمام جهان په يو ان کښې هلاک کړی نوڅوک ئې منع کولې شي.داخبره خوعيسايان هم مني.نوهرکله چه عيسى عليه السلام سره دتمام جهان نه خپل ځان نشی بچ کولې دهلاکت نه نوهغه څرنګه اله جوړيدې شی.

(**فائده**) بعضې اهلِ علمودا آيت دليل ګرځولې دې په حيوة دعيسى عليه السلام باندې،ځکه حه د ﴿إِنۡ أَرَادَ أَن يُهۡلِكَ﴾ نه معلومه شوه چه عيسى عليه السلام نه دې مړ،ځکه چه دمړ دمړ کولو اراده هيڅ معنى نه لری نوپه دې باندې قاديانانواعتراض کړيدې چه بياپکارده چه دموردعيسى عليه السلام دې هم نه وی هلاکه (مړه) شوې ځکه چه (**وامه**) عطف دې په (**المسيح**) نواهلِ سنتوجواب کړيدې چه وامه په حذف دمعطوف سره دې (اى **وقداهلک امه**) يعنى که الله تعالى اراده اوکړی دهلاک دعيسى عليه السلام ،اونمونه ئې موجوده وه چه مورئې هلاکه شوې مړه شوې ده.ليکن حضرت شاه انورشاه صاحب رحمه الله فرمائی چه (**وامه**) کښې واوپه معنى دمع سره دې يعنى که الله تعالى اراده اوکړی دهلاک دعيسى عليه السلام اودمورډده سره دتمام جهان نه نوڅوک به ئې منع کړی.نودلته مقصود داثبات دعجزدعيسى عليه السلام اودتمام مخلوق دې،اوقانون دادې چه په مفعول معه کښې تعلق دفعل دمجموعی سره وی او دا جزاؤسره نه وی،اوظاهره ده چه مجموعه خونده هلاکه.ليکن تعلق دفعل دجزءسره مقصود نه دې نودادليل نه دې په حياة دعيسى عليه السلام باندې. ﴿وَلِلَّهِ مُلۡكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ دا دويمه وجه ده چه متصرف اوچلوونکې دنظام دزمکې او آسمان او د مابينهما صرف الله تعالى دې نه عيسى عليه السلام ،اونه مورډده.نوعيسى عليه السلام څرنګه اله کيدې شی.

﴿يَخۡلُقُ مَا يَشَآءُ﴾ دادريمه وجه ده اودلته دحصرمعنى ده په قرينه داول دکلام نه يعنى

خالق صرف الله تعالى دې نه عیسٰی علیه السلام ،نو هغه اله نه دې،

﴿وَاللّٰهُ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ قَدِیۡرٌ﴾ داخلورمه وجه ده اودلته هم دحصرمعنی ده یعنی قدرت کامله په هرخیزباندې صرف دالله تعالی دې نه دعیسٰی علیه السلام ،اونه دمورد ده،نو هغه اله نشي کیدې

وَقَالَتِ الۡيَهُوۡدُ وَالنَّصٰرٰی نَحۡنُ اَبۡنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ ؕ قُلۡ فَلِمَ

اووائی (۱) یهودیان اونصاری مونږ خامن (نازولي) دالله یو اودوستان دهغه یو، ته ورته اووایه نوولې

يُعَذِّبُكُمۡ بِذُنُوۡبِكُمۡ ؕ بَلۡ اَنۡتُمۡ بَشَرٌ مِّمَّنۡ خَلَقَ ؕ

عذاب درکوي تاسوته په گناهونو ستاسو، بلکه تاسو بنیادم یئ دجنس دهغه چانه چې پیداکړیدې الله

يَغۡفِرُ لِمَنۡ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنۡ يَّشَآءُ ؕ وَلِلّٰهِ

بخښنه کوی هغه چاته چې ئې خوښه شي اوعذاب ورکوی هغه چاته چې ئې خوښه شي، اوخاص الله لره

مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ وَمَا بَيۡنَهُمَا ۫ وَاِلَيۡهِ الۡمَصِيۡرُ ۞

بادشاهی ده دآسمانونو اودزمکې اودهغه څه چې په مینځ ددواړو کښې دی، اوخاص هغه ته ورگرځيدل دی

﴿وَقَالَتِ الۡيَهُوۡدُ وَالنَّصٰرٰی﴾ داشکوه ده چه احبار اورهبان پخپله هم ارتکاب دشرک کوی اونورخلق هم په شرک کښې مبتلاکوی په عواموباندې دخپل تقدس اوبزرگئ منلو دپاره دوه کارونه کوی یوداچه عیسٰی علیه السلام اوعزیر علیه السلام ته ابن الله وائی اودویم داچه خپل ځان ته ابناءالله احباءالله وائی،لکه په موجوده دورکښې بعض خلق داولیاءالله په باره کښې دومره افراط اوکړی چه حد دالوهیة ته ئې اورسوی اومقصودئې خپله بزرگی اوتقدس قائمول وی،نو بیادهغوئ سره دمحبت دعوی،اودمریدئ دعوه اوکړی،دغه شان یهودیانو اونصاراؤ

وئيل چه ﴿نَحۡنُ اَبۡنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ﴾ په دې کښې متعددتوجیهات دی،(۱) کلام په تشبیه باندې مبنی دې یعنی الله تعالی په مونږباندې دپلارپشان شفقت کوونکې دې اومونږ یې خواص او مقربین یو.پشان دځامنو،(**واحباءه**) عطف تفسیردې،یعنی الله تعالی زمونږپه گناه کولودومره نه ناراض کیږی څومره چه دنوروخلقوپه گناه کولوناراض کیږی.(۲) دتورات

---

۱ شکوي

انجیل په اصطلاح کښې ابن،تابعدارا ومقرب اودوست ته وئیلې کیدلو ،(۳) په دې کښې حذف دمضاف دې (ای نحن ابناء، انبیاءالله): (وهوخلاف الظاهر،روح) ، (۴) علامه سمعانی رحمه الله وائی چه یهودوپه تورات کښې لیدلی ؤو ،(یا ابنآء احباری) (اې ځامنودعلماؤزما) نودوئ تحریف اوکړو (یا ابناء ابکاری) سره،(اې ځامنودجینکوزما) نوځکه ئې ځان ته ابناءالله اووئیل

﴿قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُم﴾ دارد دې ددغه مذکورې عقیدې چه پلارخوخپلوځامنوته عذاب نه ورکوی اودوست ته څوک عذاب نه ورکوی اوتاسوته خوالله تعالی عذاب په دنیاکښې هم درکړیدې په مسخ سره،قرده،خنازیر،اوپه آخرت کښې به هم درکوی،لکه دوئ وئیل ﴿لَن تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَةً﴾ اوپلارخپل اولادته تادیب ورکوی لیکن تعذیب نه ورکوی اوآخرت محل دتادیب نه دې اوپه دنیاکښې چه کوم عذابونه په دوئ واقع شوی ؤونوهغه هم دقبیلې د تادیب نه نه ؤولکه داظاهره ده،

اوپه مؤمنانوباندې په دنیاکښې چه کوم تکالیف مصیبتونه راځی نوهغه ذقبیلې دعذاب نه نه دی بلکه ابتلاء وی،چه په هغې سره عفوه دګناه راځی اورفع ددرجاتوکیږی.لکه په صحابؤرضی الله عنهم باندې په احداونوروموقعوکښې،اوپه حضرت حسین رضی الله عنه باندې اودارنګه په نوروصحابه کرامورضی الله عنهم چه څومره مصائب راغلی دی نوداعذابونه نه دی بلکه ابتلاءګانې دی چه په هغې باندې دصبرپه وجه دهغوئ د درجاتورفع شویده ﴿بَلْ أَنتُم بَشَرٌ﴾ دادویمه وجه دردده، یعنی تاسوبشر،مخلوق یئ،اوالله تعالی ذات واجب الوجوددې،نوستاسودالله تعالی سره مماثلت نشته دې او ولددوالدسره مماثل وی ﴿مِّمَّنْ خَلَقَ﴾ داصفت دبشرٌ دې،په اعتباردمتعلق مقدرسره (ای بشرکائن من جنس من خلقة الله تعالی من غیرمزیة لکم علیهم) ﴿وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ﴾ دادویمه وجه د دردده،﴿وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ﴾ داتخویف دې. او څلورمه وجه درد ده،

| يَا أَهْلَ الْكِتَابِ قَدْ جَاءَكُمْ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ عَلَىٰ فَتْرَةٍ |
| --- |
| اې اهل کتابو! [۱] په تحقیق سره راغلېدې تاسوته رسول زمونږ واضح بیان کوی تاسوته په وخت د بندیدلو |

۱ اعاده بعد عهد

مِّنَ الرُّسُلِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا جَآءَنَا مِنْۢ بَشِيْرٍ وَّ لَا نَذِيْرٍ

درسولانو کښې چې بيا دا اونه وائی چې نه وو راغلې مونږ ته څوک زيرې راکوؤنکی. اونه ويرونکې

فَقَدْ جَآءَكُمْ بَشِيْرٌ وَّنَذِيْرٌ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ

نو پس نه تحقيق سرد راغلې دې تاسوته زيرې درکونکې او يرونکې. اوالله په هرڅيز قدرت لرونکې دې

﴿ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ ﴾ داد بعدعهد دوجه نه ده ﴿قَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولُنَا ﴾ اعاده ده.﴿يُبَيِّنُ لَكُمۡ ﴾ مفعول به ئې مقدردې (ای الشرائع والاحکام) يا (کثيرًا مماتخفون)

﴿عَلَىٰ فَتۡرَةٖ مِّنَ ٱلرُّسُلِ ﴾ (فترت) په اصل کښې د (فتور) نه ماخوذدې.سست والې اوانقطاع ته وائی. په عرف کښې زمانه دفترت دې ته وائی چه يونبی د دنيانه لاړشی اوعمل کوونکی په شرائعود هغه باندې څوک باقی نه وی اوآثارئې منقطع شی اوبل نبی لانه وی راغلې.نوپه داسې وخت کښې شديداحتياج وی معلم اورهبرته،نوالله تعالی رحمة للعالمين دداسې سخت احتياج په وخت کښې مبعوث کړونودا داسې لوئې احسان اوانعام دې چه ددې نظيرنشته دې نوددې انعام قدراوشکريه اداکول ډيرضروری خبره ده،اوشکريه اوقدرکول ئې دادی چه په ده ايمان راوړئ اونصرت مددئې اوکړئ، دعيسی عليه السلام اودحضرت محمدصلی الله عليه وسلم په درميان کښې په زمانه دفترت کښې روايات مختلف دی په روايت دبخاری کښې (۶۰۰) شپږسوه کاله دی او په بل روايت کښې (کماقال السيوطی) (۵۲۰) پنځه سوه شپيته کاله دی اوپه بل روايت کښې (۵۴۰) پنځه سوه څلويښت کاله دی،اوپه يوروايت دبخاری کښې دی چه (ليس بينی وبينه نبی) چه د عيسی عليه السلام اودنبی عليه السلام په مينځ کښې نبی نه دې تيرشوې ﴿أَن تَقُولُواْ ﴾ دامفعول له دې.د (**جاءکم**) دپاره په اصل کښې (**لئلاتقولوا**) يا(**کراهة ان تقولوا**) دې.

﴿فَقَدۡ جَآءَكُم ﴾ داعلت دې د محذوف دپاره چه (فلاتعتذرو).

﴿بَشِيرٞ وَنَذِيرٞ ﴾ يعنی دلوئې هادی حاجت ؤچه هغه دبشارت اوانذارپه ذريعه غافلان بيدارکړی جاهلان خبردارکړی نوهغه بشيرنذيرراغې اواتمام حجت اوشواوعذر پاتې نشو.نو که بياهم څوک نه منی نوقادرذات به ورله سزاورکوی.

وَ اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ

وكله [1] چې اووئيل موسی قوم خپل ته اې ځما قومه ياد کړئ نعمت دالله په تاسوباندې کله

جَعَلَ فِيْكُمْ اَنْۢبِيَآءَ وَجَعَلَكُمْ مُّلُوْكًا ۖ وَّ اٰتٰىكُمْ مَّا

چې پيدا ئې کړه په تاسو کښې پيغمبران اوجوړ يې کړئ تاسو بادشاهان . او درکړې ئې دي تاسوته هغه نعمتونه

لَمْ يُؤْتِ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ۝ يٰقَوْمِ ادْخُلُوا الْاَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ الَّتِيْ كَتَبَ اللّٰهُ

چې نه ئې دي ورکړې هيچاته د خلقونه اې قومه ځما داخل شئ زمکې پاکې ته هغه چې مقرر کړې ده الله

لَكُمْ وَلَا تَرْتَدُّوْا عَلٰۤى اَدْبَارِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ ۝

تاسودپاره اومه واپس کيږئ په شاګانو خپلو(مه تختئ)کښې شئ به تاوان والا

﴿ وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ ﴾ حضرت الشيخ رحمه الله فر مائی يعنی دمسئلې بيانولونه بعدخاموش مه کيښنئ بلکه جهاد کوئ اوحدودجاری کوئ اودترک جهاد په وجه به ذلت راځی لکه په بنی اسرائيلوباندې چه دجهادنه کولوپه وجه ذلت راغې.بعض حضرات داد(**اوفوابالعقود**) سره متعلق وائی چه بنی اسرائيلوعده داطاعت دخپل نبی پوره نکړه نوذليل شو.

دلته چه کومه واقعه ذکرده،دهغې مختصربيان دادې چه هرکله فرعون سره دلښکرنه غرق شواوبنی اسرائيل دغلامئ نه خلاص شو،نوالله تعالی دمزيدانعام ورکولودپاره ورته حکم اوکړوچه خپل اصلی آبائی وطن شام چه په هغې باندې عمالقه قابض ؤو،جهاداوکړئ او دجهادپه ذريعه هغه حاصل کړئ،اودابشارت ئې ورته ورکړوچه الله تعالی به تاسوته فتح درکوی.ليکن دوئ دجهادکولونه اعراض اوکړونوالله تعالی ورله سزاورکړه چه دڅلويښت کلونوپورې ئې په ميدان تيه کښې (صحرائې سينا) کښې قيدکړل،اوقيد داسې نه ؤوچه په لاسونوخپوکښې ئې ورله زنځيرونه اچولی ؤو،بلکه په کهلاؤميدان کښې ؤو،خومصرته په راتلوقادرنه ؤو.دصبانه دماښام پورې به ئې سفراوکړو مصرته دراتلودپاره ليکن ماښام به

[1] - دمسئلې بيانولو نه بعد په ترک جهاد باندې دذلت اوله نمونه.

بیاهم په هغه ځائې کښې ؤوچه دکوم ځائې نه به ئې سفرشروع کړې ؤو،په دې دوران دڅلوېښت کالو کښې حضرت موسی علیه السلام اوهارون علیه السلام وفات شو،اوبنی اسرائیل دغه شان په میدان تیه کښې حیران پریشان ګرځیدل بیاالله تعالی بل نبی پیداکړو،اودهغه په قیادت کښې نوی نسل جهاداوکړو،اوملکِ شام ئې فتح کړو،په موضع القرآن کښې شاه عبدالقادررحمه الله وائی چه حضرت ابراهیم علیه السلام خپل آبائی وطن ملک عراق پرېښودلواودالله تعالی په لاره کښې ملک شام ته لاړو،هلته ئې دډیرې زمانې پورې اولادنه ؤو،بیاورته الله تعالی بشارت ورکړوچه ستا اولادبه زه په زمکه کښې خورکړم ملکِ شام به ورته ورکړم اوسلطنت اونبوت،اودین اوکتاب به په دوئ کښې اولرم،بیادموسی علیه السلام په زمانه کښې وعده پوره شوه،بنی اسرائیل دفرعون دغلامئ نه آزادشو،اودوئ ته ئې اوفرمائیل:چه جهاداوکړئ دعمالقؤسره ملک شام فتح کړئ نودابه همیشه ستاسووی الخ،حضرت موسی علیه السلام خپل قوم ته دجهادحکم نه قبل دترغیب ورکولودپاره دهغه انعاماتوتذکره کوی کوم چه الله تعالی په بنی اسرائیلوباندې کړی ؤو،

اول انعام دادې ﴿إِذْ جَعَلَ فِيكُمْ أَنْبِيَاءَ﴾ داروحانی دینی انعام دې په یوقوم کښې نبی پیداکیدل دهغه قوم دپاره لوئې اعزازدې،اوهم دارنګه په یوخاندان کښې عالم اومتقی وارث الانبیاءپیداکیدل دخاندان دپاره اعزازاودینی انعام دې،په بنی اسرائیلوکښې انبیاءپه دومره کثرت سره راغلیدی چه په بل قوم کښې دومره نه دی راغلی،صاحب جلالین په یوځائې دڅلور زرونه زیات لیکلی دی،امام حدیث ابن ابی حاتم په روایت داعمش سره نقل کړیدی چه صرف دموسی علیه السلام اوعیسی علیه السلام په درمیانه دورکښې (۱۰۰۰) زرانبیاء دبنی اسرائیلو تیر شویدی اودویم انعام دادې چه ﴿وَجَعَلَكُمْ مُلُوكًا﴾ تاسوئې بادشاهان ګرځولی یئ،ظاهره ده چه هرسړې اوهرفرد دقوم خوبادشاه نه وی،بادشاه یوکس وی نوددې جملې دوه مطلبه بیان شویدی،یوداچه تاسوئې مالکان ګرځولی یئ یعنی دغلامئ نه ئې خلاص کړئ دخپل مکان جائیداد،نوکرانو،خاوندان ئې ګرځولی یئ،دویمه داچه کله بادشاه دیوقوم نه وی نو بادشاهی اوحکومت ټول قوم ته (یاپارټئ ته) منسوب کیږی،لکه وئیلې شی خلافت عباسیه، حکومت دبنوامیه،حکومتِ عزنوی،حکومتِ مغلیه،نوددې محاورې په بنابانډې ټولوبنی اسرائیلوته ملوکیت منسوب شو،اوپه دې کښې اشاره ده دې ته چه حکومتِ اسلامیه درحقیقت عوامی حکومت وی،

اودريم انعام دادي ﴿وَءَاتَىٰكُم مَّا لَمْ يُؤْتِ أَحَدًا مِّنَ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ ددې نه مرادهغه معجزات دي چه دوئ ته ښکاره شوی ؤ ولکه دګټې نه اوبوراوتل ﴿فَٱنفَجَرَتْ مِنْهُ ٱثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا﴾ **من، سلوی، غمام،** وغیره اودارنګه ددوئ معنوی شرافت عزت.چه دتوحیداودین دعلمبرداریٔ په وجه دوئ ته حاصل شوې ؤ.د (عالمین) نه مراد ددغې زمانې قومونه.نسلونه مراد دی چه په شرک وهم پرستئ کښې مبتلاؤو.دامتِ محمدی صلی الله علیه وسلم سره تقابل مقصودنه دې.

﴿يَٰقَوْمِ ٱدْخُلُوا۟ ٱلْأَرْضَ ٱلْمُقَدَّسَةَ﴾ ددې نه قبل آیت کښې تمهیداوترغیب ؤ.اوپه دې آیت کښې داصلِ حکم بیان دې یعنی حکم دجهاد.

(**ارض مقدسه**) پاکیزه اومبارکې زمکې په باره کښې دحضرت قتاده قول زیات راجح دې. هغه دادې چه ددې نه مرادزمکه دشام ده چه په هغې کښې بیت المقدس اودمشق فلسطین اوبعض حصه دأردن داخله ده.اودې ته ارضِ مقدسه ځکه وئیلې شویده چه دامسکن.مدفن دانبیاؤ دې.اودینی دنیوی برکتونه په کښې ډیردی،ملکِ شام اصل وطن ؤودیعقوب علیه السلام اواولاد دده (بنی اسرائیلو)، په زمانه دیوسف علیه السلام کښې دوئ مصرته منتقل شو. دیوسف علیه السلام دوفات نه بعد دبنی اسرائیلود بدو اعمالوپه وجه فرعون په دوئ مسلط شواوډیره زمانه دوئ دفرعون په غلامئ کښې په سخت عذاب کښې تیره کړه اوپه ملکِ شام باندې عمالقه قوم مسلط شوې ؤو.نوبیاچه الله تعالی فرعون هلاک کړواوبنی اسرائیل دغلامئ نه آزادشونودوئ ته حکم اوشوچه ارض مقدس یعنی ملکِ شام دجهادپه ذریعه آزادکړئ.﴿ٱلَّتِي كَتَبَ ٱللَّهُ لَكُمْ﴾ (کتب) په معنی دتقدیرسره دې،یعنی مقدره کړیده الله تعالی ستاسودپاره یاپه معنی دوعدې سره دې یعنی الله تعالی ستاسوسره وعده کړیده چه دازمکه به تاسوته درکوی،

اوکه څوک دا **سوال** اوکړی چه بیائې ورنه ولې ورنکړه اوپه میدان تیه کښې ئې څلویښت کاله ئې قید کړل •

نو**جواب** دادې چه وعده ئې ورسره کړې وه په جهادسره اودوئ جهاداونکړو.یادمطلق بنی اسرائیلوسره ئې وعده شوې وه،دمخصوص افرادوسره نه وه.اود دوئ نه روستوبنی اسرائیلوته ئې ورکړه. یا (**کتب الله**) نه مراد دادې چه فرض کړې دې الله تعالی په تاسوجهاد، نو(**کتب**) په معنی د (**فرض**) سره دې.دابن عباس رضی الله عنه وغیره نه روایت دې چه په ملک شام اوبیت المقدس باندې په دغه وخت کښې دعمالقؤقبضه وه چه ډیرطاقتورقوم ؤو.نوالله

تعالی بنی اسرائیلوته په واسطه دموسی علیه السلام د دوئ سره دجهادحکم اوکړو او دا خوشخبری ئې ورته هم ورکړه چه دشام زمکه ستاسودپاره لیکلې شویده اوفتح یقینی ده.نوموسی علیه السلام دحکم دتعمیل دپاره بنی اسرائیل دځان سره کړل اوملکِ شام طرفته روان شو.اوبیت المقدس ته نلل.کله چه نهراردن نه پورې شول اوښارد (اریحا) چه ډیرقدیم ښارؤو.ته اورسیدل نوهلته ئې قیام اوکړو.اودبنی اسرائیلو دانتظام دپاره ئې (۱۲) دولس نقیبان مقررکړل.لکه مخکښې آیت کښې ذکرشو.اوداسرداران،نقیبان ئې مخکښې اولیږل.چه دهغه قوم معلومات حاصل کړی کوم چه په بیت المقدس باندې قابض ؤو.دوئ چه لاړل نوبیت المقدس ته داخل شوی نه ؤوچه بهر ددوئ سره یوسړې ملاؤشو،اوهغه یواځې دوئ ټول گرفتارکړل اودبادشاه مخې له ئې بوتلل. چه داخلق مونږسره دجنگ په غرض جاسوسان راغلی دی.نوبادشاه مشوره اوکړه چه دوئ ته سزاورکړوبیافیصله دا اوشوه چه دوئ آزادکړئ چه واپس لاړشی اودبنی اسرائیلواودموسی علیه السلام په مخکښې زمونږدقوت اوطاقت ذکراوکړی چه مرعوب شی اوزمونږسره دجنگ کولو اراده ترک کړی،چنانچه هغوئ دوئ لره آزادکړل واپس راغلل اوموسی علیه السلام ته ئې حال بیان کړو،هغه ورته اووئیل چه دچادقوت اوطاقت نه مه متاثرکیږئ زمونږدپاره فتح یقینی ده.الله تعالی زمونږسره وعده کړیده،اوددغه قوم عمالقۇ حالات دبنی اسرائیلو په مخکښې مه بیانوئ یعنی دهغوئ دظاهری قوت اوطاقت تذکره بنی اسرائیلوته مه کوئ بلکه کمزوری ئې بیان کړئ،نوپه دوئ کښې دؤو کسانو په خبره عمل اوکړواوباقی لس کسانوعمل اونکړواوبنی اسرائیلو ته ئې دهغوئ دظاهری قوت اوطاقت تذکره اوکړه نوپه بنی اسرائیلوخوف راغې اوجهادته دتلونه ئې منع اوکړه.

**فائده** ابن کثیروائی چه بعضوئیلی دی هغه کس چه دادولس کسان ئې نیولی ؤو.دهغه نوم عوج بن عنق ؤو.اوهغه ولدالزناؤو.دبنتِ آدم علیه السلام اوپه طوفان نوح علیه السلام کښې بچ شوې ؤو.څکه چه دهغه طول (۳۳۳۳) درې زره درې سوه درې دیرش گزه ؤو.نوپه طوفان کښې اوبه دهغه گیټو پورې کو، ته رسیدلې وې اوپه بل روایت کښې دی چه قتل کړې ؤوده لره موسی علیه السلام. (۱۰) لس گزه موسی علیه السلام ؤو،(۱۰) لس گزه ئې همساوه.(۱۰) لس گزه ئې ټوپ اوکړونو دعوج پړکې ته اورسیدلوهغه ئې په توره اووهلو او مړ شواوپُل ترینه جوړشوچه دریوکال پورې پرخلق تیریدل.ابن کثیروائی داکذب افتراء ده.(یستحیی من ذکره) البته عمالقه قوم بقایه دعادؤو.نو کیدې شی چه یوکس طاقتوردولس کسان نیولی وی.په یوروایت کښې

ابن کثیر وئیلی دی چه هغه په خپل باغ کښې دبیت المقدس نه بهرؤونوچه دادولس کسان ئې اولیدل نو وې نیول اوپه لستونړی کښې ئې واچول اوبادشاه ته ئې پیش کړل. والله اعلم.

﴿وَلَا تَرْتَدُّوا عَلَىٰٓ أَدْبَارِكُمْ﴾ اومه واپس کیږئ دجهادنه دبزدلئ دوجه نه په خپلو شاګانو.

﴿فَتَنقَلِبُوا خَـٰسِرِينَ﴾ جهادچه فرض شی نوترک ئې سبب دخسران دې بلکه دهرفرض ترک سبب دخسران دې

قَالُوا يَـٰمُوسَىٰٓ إِنَّ فِيهَا قَوْمًا جَبَّارِينَ وَإِنَّا لَن نَّدْخُلَهَا

اوونیل دوئ اې موسی بېشکه پدې کښې قوم زورآور دی . اوبېشکه مونږ چرې نه داخلیږو هغې ته تردې

حَتَّىٰ يَخْرُجُوا مِنْهَا ۖ فَإِن يَخْرُجُوا مِنْهَا فَإِنَّا دَٰخِلُونَ ﴿٢٢﴾ قَالَ رَجُلَانِ

چې اوځي دوئ دهغې نه. نوکه اووتل دوئ دهغې نه نو بېشکه مونږ به ورته داخل شو اووئیل دوو سړو

مِنَ ٱلَّذِينَ يَخَافُونَ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمَا ٱدْخُلُوا عَلَيْهِمُ

دهغه کسانونه چې دالله نه ئې يره کوله انعام کړې وو الله په هغوئ دواړوباندې رانوځئ پدوې باندې

ٱلْبَابَ ۖ فَإِذَا دَخَلْتُمُوهُ فَإِنَّكُمْ غَـٰلِبُونَ ۚ وَعَلَى ٱللَّهِ

دطرفه د دروازې نه، نوکله چې تاسو ننوځئ په دروازه نو بېشکه تاسوبه غالب يئ . اوخاص په الله باندې

فَتَوَكَّلُوٓا إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٢٣﴾ قَالُوا يَـٰمُوسَىٰٓ إِنَّا لَن نَّدْخُلَهَآ أَبَدًا

توکل کوئ که تاسو مومنان يئ اوئیل دوئ اې موسې مونږ چرې نه داخلیږو دې زمکې ته هیڅ کله ترڅوپورې

مَّا دَامُوا فِيهَا ۖ فَٱذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَـٰتِلَآ إِنَّا هَـٰهُنَا قَـٰعِدُونَ ﴿٢٤﴾

چې دوئ په هغې کښې وی. پس لاړشه ته اورب ستا، نوجنګ اوکړئ دواړه دهغوئ سره بېشکه مونږبه دلته ناست يو

﴿قَالُوا يَـٰمُوسَىٰٓ﴾ دابیان دخباثت دیهودو دې چه حضرت موسی علیه السلام ورته دومره تسلی او اطمینان ورکړواودوئ بیاهم سرکشی اوکړه اوجهادته دتلونه ئې انکاراوکړو ﴿جَبَّارِينَ﴾ جبارین هغه ته وائی چه دخلقونه خپل کارپه زورسره اخلی. هرکله چه په هغه دولسو کسانو کښې لسو کسانو دموسی علیه السلام په خبره عمل اونکړو، اودعمالقۇ ظاهری قوت

اوطاقت تذکره يې دبنی اسرائيلوپه مخکښې اوکړه نودوئ بزدل او بې همته شواودجهاد نه ئې انکاراوکړو.اوپه موسی علیه السلام ئې طعن اوکړوچه ته مونږدقتلولودپاره بيائې.﴿وَإِنَّا لَن نَّدْخُلَهَا﴾ دامسبب دې او﴿إِنَّ فِيهَا قَوْمًا جَبَّارِينَ﴾ ورله سبب دې،نودوئ عذراوکړودقتال نه انکارئې نه دې کړې ﴿قَالَ رَجُلَانِ﴾ دا يوشع بن نون اوقالب بن يوقنادی، (رجلان) موصوف دې ﴿أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمَا﴾ داصفت ثانی دې د (رجلان) دپاره.اود انعام نه مراد دادې چه الله تعالی دوئ ته يقين اوتوفيق دصبرورکړې ؤو . ﴿ادْخُلُوا عَلَيْهِمُ الْبَابَ﴾ يعنی ددوئ سره قتال ګران نه دې تاسوصرف دروازې دښارته داخل شئ نوچه دوئ تاسواووينی نورعب به پرې راشی نودوئ به مغلوب شی اوتاسوبه غالب شئ، اوسبب دغلبې توکل دې.نوتاسوصرف په الله تعالی توکل اوکړئ.که چرته تاسومؤمنان يئ.

﴿فَاذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا﴾ په دې کلام کښې دوه احتماله دی،يوداچه په دې کښې تاويل نه وی اوداقول په طوردتوهين سره وی ياپشان دقول دمشبهؤوی نوداکفردې.اودوئ په سبب ددې قول سره کافران شوی دی،دويم احتمال دادې چه په دې کښې تاويل اوشی او مقصود داوی چه تاسوجهادته لاړشئ اوستاسورب به ستاسومددکوی ستاسوسره به وی. (وليعنک ربک). يا (ربک معک)،يادرب نه مشر رورمراددې،نوبياداقول کفرنه دې،البته د مخالفت دامردوجه نه دوئ فاسقان شو،امام بخاری رحمه الله اونورومحدثينوپه قصه دجنګ بدرکښې:دحضرت مقدادرضی الله عنه قول ذکرکړې دې چه هرکله نبی علیه السلام دوئ ته دجهادترغيب ورکړونومقدادرضی الله عنه اووئيل (ترجمانی کوونکې دټولوصحابؤ) يارسول الله صلی الله عليه وسلم مونږتاته هغه خبره نه وايوکومه چه بنی اسرائيلوموسی عليه السلام ته کړې وه،(**فاذهب انت وربک فقاتلااناههناقاعدون**) ليکن مونږوايو چه ته لاړشه هرخواته چه ستاخوښه وی اومونږستاسوسره يو،(نقاتل عن يمينک ويسارک) وفی رواية عن امامک وخلفک ويمينک اويسارک) نونبی صلی الله عليه وسلم ډيرخوشحاله شو،اوپه صحابؤکښې د جهادجوش پيداشو،حضرت عبدالله بن مسعودرضی الله عنه فرمائی چه مادحضرت مقدادرضی الله عنه داسې کارنامه ليدلې ده که چرته دغه سعادت ماته ملاؤشوې وې نودابه ماته دهرڅه نه زيات محبوب اوپسندوه،

قَالَ رَبِّ إِنِّي لَآ أَمْلِكُ إِلَّا نَفْسِي وَأَخِي فَافْرُقْ بَيْنَنَا

اوونیل موسي یاربه بېشکه څه واک اختیار نه لرم مګر دَ ځان خپل او درور خپل، پس فیصله اوکړه په مینځ زمونږ

وَبَيْنَ الْقَوْمِ الْفَسِقِينَ ﴿٢٥﴾ قَالَ فَإِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ

اوپه مینځ دقوم نافرمان کښې ، اوفرمائیل الله چې بېشکه دا زمکه حرامه کړې شوېده په دوئ باندې

أَرْبَعِينَ سَنَةً يَتِيهُونَ فِي الْأَرْضِ فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفَسِقِينَ ﴿٢٦﴾

څلوېښت کاله ، حیران سرګردان به ګرځي په زمکه کښې ، پس مه خفه کیږه په قوم نافرمان باندې

﴿ قَالَ رَبِّ إِنِّي لَآ أَمْلِكُ ﴾ موسی علیه السلام ډیر تنګ اوپریشان شونو وې وئیل چه یاالله زه خو مالک نه یم.مګردخپل ځان اودخپل رور،یعنی ځما وس طاقت په خپل ځان او روررباندې دې په بل چانشته دې.دخپل ځان ملکیت نه مرادظاهری تصرف دې اود روردملکیت نه مراددهغه اطاعت دې.

اوکه څوک **سوال** اوکړی چه اطاعت خوهغه دوه کسانو(یوشع اوکالب) هم کولونوبیادا حصرڅه رنګه صحیح دې، نو **جواب** ئې دادې چه موسی علیه السلام اوهارون علیه السلام نبیان ؤ،نو معصوم ؤودمعصیت اونافرمانئ نه، اوکالب بن یوقنانبی نه ؤواویوشع علیه السلام هم په دغه وخت کښې نبی نه ؤ.نودهغوئ معصومیت یقینی نه ؤونوځکه ئې حصراوکړو.اوبعض وائی چه د ((اخی)) نه مراد(من یواخینی من الاتباع) دې،نوټولوته شامل دې.﴿ فَافْرُقْ ﴾ فرق په معنی دفیصلې دې یعنی مناسب دحال فیصله اوکړه،نوداسوال واردنشوچه موسی علیه السلام دجدائې سوال کړې ؤواوالله تعالی اوفرمائیل ﴿فَإِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ﴾ نوسوال خوقبول نشو.نوجواب ئې دادې چه «**فافرق**» په معنی د«**فاحکم**» دې لکه دامروی ده دابن عباس رضی الله عنه نه اوبعض وائی چه مراد جدائی ده په آخرت کښې.اوبعض وائی چه مرادجدائی دجماعت ده. نوهرکله چه موسی علیه السلام سوال اوکړوچه یاالله.ته هغه فیصله اوکړه چه مناسب وی دحال زمونږسره نوالله تعالی هغه فیصله اوکړه چه دازمکه مقدسه به په دوئ باندې (٤٠) څلویښت کاله حرامه اوممنوعه وی.د «**محرمة**» نه مرادلغوی تحریم دې یعنی منع دخول نه ﴿ أَرْبَعِينَ سَنَةً ﴾ دامتعلق دې د (محرمة) سره یا د (یتیهون) سره.یعنی څلویښت کاله دوئ منع کړې شوی وود داخلیدلونه

يا څلويښت کاله دوئ حيران سرګردانه ګرځيدل په ميدانِ تيه کښې، دا فيصله د دوئ د حال سره مناسب وه ځکه چه دوئ وئيلی وُو ﴿إِنَّا هَٰهُنَا قَٰعِدُونَ﴾ نو الله تعالى دغه ځائې کښې قيد (نظربند) کړل. چه نه مخکښې ملکِ شام ته تللې شو او نه واپس مصر ته راتلې شو، او داخرقِ عادت ؤو، ځکه ميدانِ تيه محدود ميدان ؤو، او بنی اسرائيل تول عقلاء او اصحابِ د حواسو سليمو او په کثير تعداد کښې وو، او دومره ډير خلق په دومره ډيره مُدة کښې په يو داسې محدود ميدان کښې چه علامات سفلی غرونه کندې وغيره او علامات علوی، شمس قمر ستوری. چه په دې سره جهات معلومول ډير آسان دی، دا خلاف عقل او خرق عادت دې. او ابن کثير وائی چه هر کله موسى عليه السلام دوئ ته بد دعا اوکړه کله چه دوئ جهاد ته د تللو نه انکار اوکړو. نو الله تعالى حکم اوکړو چه دا زمکه په دوئ باندې حرامه ده څلويښت کاله نو دوئ په ميدانِ تيه کښې پاتې شو. هميشه به دوئ تلل خو بهر د و تلو لار به ئې نه موندله، او په دې کښې امور عجيبه او خوارق کثيره ؤو (تظليل بالغمام) (دوريځې سورې) (من)، (سلوٰی) نازليدل. او ډګټې نه اوبه راوتل دولس چينې وغيره معجزات او وفات د موسى عليه السلام او د هارون عليه السلام هم په ميدانِ تيه کښې شويدې، او څه زمانه بعد بيا حضرت يوشع عليه السلام نبی شو او د بنی اسرائيلونو نسل راپيدا شو، هغوئ جهاد اوکړو، شام ئې فتح کړو،

**سوال** وارديږی چه بنی اسرائيلو ته خو د نافرمانئ په وجه سزا ملاؤ شوه نو موسى عليه السلام او هارون عليه السلام ولې قيد کړې شو؟ **جواب** ئې دادې چه د موسى عليه السلام او د هارون عليه السلام په ميدانِ تيه کښې اوسيدل په طور د سزا سره نه وو بلکه په طور د نګرانئ او فريضه تبليغ تعليم کولو قوم ته ؤو. لکه په جيل کښې قيديان قيدوی، او د جيل افسر د هغوئ نګرانی کوی نو هغه خپله فريضه (ډيوټی) پوره کوی داسې نه چه هغه هم قيدوی،

په ميدان تيه کښې د بنی اسرائيلو د پاره داوبو، خوراک، من سلوٰی، او د نُوَرْ د ګرمئ نه د بچ کيدلو د پاره غمام. ذکر په قرآن کښې شته دې ليکن د لباس ذکر په قرآن او صحيح حديث کښې نشته دې. بعض مفسرين وائی چه نقل دې د بعض اهلِ کتابونه چه بنی اسرائيل چه مصر نه تلل نو ځان سره ئې ډيرې کپړې وړې وې او بعض مفسرين وائی چه د دوئ کپړې به نه خيرنې کيدلې او نه به زړې کيدلې، او بچی به چه غټيدل نو کپړې به ورسره اوګدې کيدلې، بچې به چه پيدا کيدلو نو کپړې به ورسره وې، ليکن د دې څه صحيح سند نشته دې صاحب د روح المعانی ليکی (وذکر غير واحد من القصاص انهم كانوا اذا وُلِدَ لهم مولود كان عليه ثوب كالظفر يطول بطوله

ولایبلی ، الی غیرذالک مما ذکروه، والعادة تبعد کثیرامنه فلایقبل الاماصح عن الله ورسوله صلی الله علیه وسلم) ﴿یَتِیهُونَ﴾ دتیه نه ماخوذدي.حیرانتیااوپریشانئ ته وئیلې شي.په ترک جهادسره ددوئ ژوند پریشانه ؤو.نوددې وجه نه دغه مقام ته میدانِ تیه وئیلې شي.

﴿فَلَا تَأْسَ﴾ حضرت موسی علیه السلام چه دافیصله واؤریده نوطبعًاغمژن شوځکه چه دده ګمان داؤوچه دوئ ته به معمولي غوندې تنبیه ورکړې شي،نو الله تعالی ورته تسلي ورکړه او وې فرمائیل چه سرکشوته داسې فیصله مناسب ده

| |
|---|
| وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ ابْنَيْ آدَمَ بِالْحَقِّ إِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ |
| اوبیان[۱] کړه دوئ ته خبره ددوؤ ځامنود آدم په رښتیا ، کله چې قرباني اوکړه دواړو جداجدا نوقبوله کړې شوه |
| مِنْ أَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْآخَرِ قَالَ لَأَقْتُلَنَّكَ |
| دیوکس ددې دواړو نه «هابیل نه» اوقبوله نشوه دبل نه «قابیل نه»، اوونیل «قابیل» خه به خامخاقتلوم تالره |
| قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ ۝ لَئِنْ بَسَطْتَ إِلَيَّ |
| اوونیل «هابیل»چې خبره داده بله نده چې الله قبلوي عملونه د اخلاص کوؤنکو نه . که ته راؤګده کړې ماته |
| يَدَكَ لِتَقْتُلَنِي مَا أَنَا بِبَاسِطٍ يَدِيَ إِلَيْكَ لِأَقْتُلَكَ |
| لاسونه خپل ددې دپاره چې ماوژنې نو نه یم خه اوګدوؤنکې دلاس خپل تاته ددې دپاره چې قتل کړم تا |
| إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ ۝ إِنِّي أُرِيدُ |
| بیشکه خه یریږم دالله نه چې پالوؤنکې دخلقو دې، بیشکه خه اراده لرم «چې ځان بچ کړم دګناه نه» |
| أَنْ تَبُوءَ بِإِثْمِي وَإِثْمِكَ فَتَكُونَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ وَذَٰلِكَ جَزَاءُ الظَّالِمِينَ ۝ |
| نوته به اخته شې په ګناه «دقتل» خما اوپه «زور»ګناه ستا نوشې به ته د اور والو نه، اودا «اور» سزا دظالمانوده |

﴿وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ ابْنَيْ آدَمَ﴾ داد دښمن په مقابله کښې دخاموش کیښناستلو.اودغه

---

۱- دویمه نمونه

دحملې د دفاع نه کولو نتیجه،اونقصان دپاره دويمه نمونه ده،

مراد د ((ابنی آدم)) نه صلبي اولاد دي چه ديونوم قابيل ووهغه مشروواودبل نوم هابيل ؤوچه کشرؤو،اوبعضوئيلي دی چه دادواړه په بنی اسرائيلوکښې ؤواود ((ابنی آدم)) نه صلبي نه دی مرادليکن مفسرينودي قول ته ضعيف وئيلي دي،﴿بِٱلْحَقِّ﴾ معنی د (بالصدق) يعنی داسې نبا اوقصه چه پکښې کمې زياتي،تغيرتبديل دحقيقت نه.نه وي،اوپه دې کښې اشاره ده ديته چه په رواياتواوقصوکښې چه تغيرتبديل راشی نوپه ځائې دمصلحت ترنه مفسده جوړيږي.نو ددې وجه نه اکثرپه قرآن کښې دقصې ذکرکولوسره (بالحق) ذکرکوی،سورة کهف کښې دی ﴿ نَّحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَأَهُم بِٱلْحَقِّ ﴾ سورة مريم کښې دی ﴿ذَٰلِكَ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ قَوْلَ ٱلْحَقِّ ٱلَّذِى فِيهِ يَمْتَرُونَ﴾

﴿إِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا﴾ قربان اوقرباني،هغه څيزته وئيلې شي چه دهغې په ذريعې سره تقرب الی الله حاصليږي ذبيحه وي اوکه غيرذبيحه وي،

**ددې قربانۍ دپيش کولوسبب څه ؤو؟** په دې کښې مشهورقول دمفسرينوچه ابن کثير وغيره دابن عباس رضی الله عنه اوعبدالله بن مسعودرضی الله عنه نه نقل کړيدې په متعددوسندونوسره اوپه بعضوکښې ئې تصريح کړيده اسنادجيدسره،هغه داده چه هرکله حضرت آدم عليه السلام اوحواء دنيا ته راغلل اودتوالد،تناسل سلسله شروع شوه نودهرحمل نه به په يوځل دوه بچی پيداکيدل يو هلک يوه جينۍ نودادواړه به خپل منځ کښې خور اورووواود دوئ نکاح به ديوبل سره حرامه وه،اوچه بل ځل دبل حمل نه به هلک جينۍ پيداشونوهغوئ به په يوبل حرام ؤو.ليکن په شريعت دآدم عليه السلام کښې به دضرورت دوجه نه داخصوصی حکم ؤوچه داول حمل هلک اود دويم حمل جينۍ اودارنګه ددويم حمل هلک اوداول حمل جينۍ دابه محرم نه ؤواونکاح به ئې جائزوه،نوقابيل چه پيداشونودهغه سره دهغه خورچه نوم ئې اقليماؤوپيداشوه اوهغه ښائيسته وه بياچه هابيل پيداشونودهغه سره دهغه خورچه پيداشوه نوهغه بيکاره بدشکله وه نوهرکله چه دنکاح وخت راغې نوقابيل اووئيل چه زه خپله خورپخپله نکاح کوم ځکه چه دا ښائيسته ده،اودهابيل خورنه کوم دابدشکله ده،اوهابيل اووئيل چه تاسره پيداشوې خورسره به زه نکاح کوم اوځماسره پيداشوې خورسره به ته نکاح کوې.نوددوئ دجګړې ختمولودپاره آدم عليه السلام داسې فيصله اوکړه چه تاسودواړه خپله خپله

قربانی پیش کړئ نو دچاقربانی چه قبوله شوه نوهغه به په حقه وی،نوهابیل چه قربانی پیش کړه نو په خپل مال کښې ئې بهترین ګډصدقه کړواوقابیل زمیندارو و،نو ردی اوکمزورې غنم بیزه،یې په صدقه کښې پیش کړل نودهابیل صدقه قبوله شوه، اوپه دغه وخت کښې دقبولیت علامه داوه چه دغیب نه به اور راغې او صدقه به ئې اوسیزله،دابن کثیر رحمه الله وغیره په روایت دابن عباس رضی الله عنه کښې دی چه دغه ګډالله تعالی په جنت کښې محفوظ کړواودحضرت اسماعیل علیه السلام په فدیه کښې بیاراغې،نوهرکله چه د هابیل صدقه قبوله شوه نوقابیل ناکام اورسواشونوضدحسداوغصه ئې زیاته شوه اودروړپه قتل آماده شو،ابن کثیریوبل اثردابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړیدې چه هغه په دې دلالت کوی چه دقربانئ کولوسبب دغه نه ؤوچه مخکښې ئې تفصیل ذکرشو،بلکه په دغه دورکښې مسکین نه وؤچه صدقه به ورته ورکولې شوه بلکه صدقه به په دې طریقه کیدله چه چابه خپله صدقه بهر کیښودله اودغیب نه به اور راغې اوهغه به ئې اوسیزله نودغه به قبوله وه،نوقابیل اوهابیل دواړوصدقې اوکړې بغیردخه سبب نه نودهابیل صدقه قبوله شوه اودقابیل قبوله نشوه،ابن کثیروائی (وهوظاهرالقرآن) یعنی دصدقې دپاره بل څه سبب نه وو.

﴿قَالَ لَأَقْتُلَنَّكَ﴾ داقول دحسدپه وجه دې اهلِ علموئیلی دی چه حسدواله ګناه اول په آسمان کښې ابلیس کړیده،دآدم علیه السلام سره اوپه زمکه کښې اول حسدقابیل کړیدې دخپل رور سره،بیادحسدواله بیماری ډیره پیداشوه په بنی اسرائیلوکښې اودې امت ته آهسته آهسته منتقله شوه،حسداوکبر،دانسان دپاره داسې مهلک روحانی بیماری ده چه ډیرې نورې روحانی بیمارئ ترینه پیداکیږی،ظلم،حق تلفی قطع رحمی،قتل،بلکه په بعضِ اوقاتوکښې کفرته سرې اورسوی اوحفاظت ترینه صرف دالله تعالی په فضل سره کیدې شی،(اللهم احفظنا) دحضرت تهانوی رحمه الله په یوملفوظ کښې دی چه حسدپه نفس کښې غیراختیاری طورسره پیدا کیږی،اوانسان په دې کښې کله معذوروی،کله ماجوروی،اوکله مازوروی،غیراختیاری طور سره چه حسد پیداشی نوانسان په کښې معذوردې،نوکه دحسددمقتضی مطابق ئې عمل اونکړوبلکه خلاف ئې اوکړونوماجورشو،اوکه دحسد دمقتضی مطابق ئې عمل اوکړونو مازور(ګناهګار) شو (اوکماقال) ﴿قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ﴾ هابیل قابیل ته اووئیل چه داستاقربانی چه نه ده قبوله شوې نوپه دې کښې څماڅه نقصان دې داخوستادخپل ذات دنقصان دوجه نه قبوله نشوه،هغه داچه الله تعالی متقینویعنی مخلصینونه عمل قبلوی اوپه

تاکښې اخلاص نه ؤو .نوآیاته دخپل جرم په وجه ماقتلوې.انصاف خودادې چه که ماڅه جرم کړې وې نوماته دهغې سزا راکول مناسب ؤو .لیکن چه جرم ستاخپل دې اوسزائې ماته راکوې نوداعجیبه خبره ده.اوپه دې جمله کښې اشاره ده علاج دحسدته.هغه داچه حاسدچه کله اووینی چه زه دهغه نعمت نه محرومه یم چه فلانی سره دې نوپکارده چه خپل محرومئ سبب خپل ګناه اوعمل کمزوری اوګنړی،نوتوبه دې اوکړی.

﴿ لَئِنْ بَسَطتَ إِلَيَّ يَدَكَ ﴾ لاس اوګدول کنایه ده داظهارداراده دقتل نه.یعنی که ته خماد قتل عملی کاروائی هم شروع کړې نوزه تاته قتلوم.اګرکه په دې صورت کښې ستاقتلول جائز دی لیکن احتیاط ترک قتل دې لکه په حدیث دابوداؤدکښې دی دسعدرضی الله عنه چه په وخت دفتنه کښې که څوک خماکورته داخل شی خمادقتل دپاره.(نوڅه به کوم) نورسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل (کن کخیرابن آدم) دخپل ځان اوعیال اومال دحفاظت اومدافعت دپاره دظالم قتلول جائزدی په حدیث کښې په دې تصریح راغلې ده البته دفتنې په دورکښې ترک اولی دې لکه په حدیث د(کن کخیرابن آدم) کښې.اوعمل دعثمان رضی الله عنه ددې باب نه دې.اوکه دینی مصلحت ؤو. نوقتل دظالم واجب دې په دلیل دحدیث دمسلم وغیره سره اوپه دلیل ددې آیت سره ﴿فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي﴾ اوعمل دعلی رضی الله عنه ددې قبیلې نه دې. ﴿إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ﴾ دا تعلیل دې د ﴿مَا أَنَا بِبَاسِطٍ﴾ دخوف دالله تعالی وجه نه انسان احتیاط کوی.اواشاره ده دیته څوک چه قتل کوی نوهغه دالله تعالی نه خوف نه لری.﴿إِنِّي أُرِيدُ أَن تَبُوأَ﴾ دادویم تعلیل دې د ﴿مَا أَنَا بِبَاسِطٍ﴾ دپاره. **سوال** واردیږی چه اراده کول دچادګناهګارکولوجائزنه ده نوهابیل څه رنګه وائی، (**انی أُرید ان تبوء باثمی**).

**جواب** ئې دادې چه اراده په خپلې حقیقی معنی سره نه ده بلکه داکنایه ده.دانقیاداواستسلام نه یعنی که ته ماقتلوې نوزه دیته تیاریم چه قتل شم اودیته نه یم تیارچه تاقتل کړم.لیکن که ته ماقتل کړې نوخمادقتل ګناه اونورګناهونوبه تاباندې بوج شی اوجهنمی به شې.بعض مفسرین وائی چه مفعول به د (أرید) محذوف دې.(ای اریدان الاعصی الله،یا،ان لااقتلک وان ظلمتنی فتبوء باثمی الخ).

فَطَوَّعَتْ لَهُ نَفْسُهُ قَتْلَ أَخِيهِ فَقَتَلَهُ فَأَصْبَحَ مِنَ الْخَاسِرِينَ ۝ فَبَعَثَ اللَّهُ

ـو خانسته کړوهغه ته نفس دهغه قتلول درور خپل نوقتل یې کړو هغه نو شو د تاوان والو نه نوراولیږوالله

غُرَابًا يَّبْحَثُ فِي الْأَرْضِ لِيُرِيَهٗ كَيْفَ يُوَارِيْ سَوْءَةَ أَخِيْهِ ط

يوكارغه كښتل ئې كول په زمكه كښې ددې دپاره چې اوښائ ده ته چې څرنګه پټ كړي جثه «لاش» د رور خپل

قَالَ يٰوَيْلَتٰٓى أَعَجَزْتُ أَنْ أَكُوْنَ مِثْلَ هٰذَا الْغُرَابِ فَأُوَارِيَ سَوْءَةَ

اووئيل ده هائې ارمان دې! آيا څه عاجزشوم ددېنه چې شم دې په شان د كارغه چې پټ كړم جثه «لاش»

أَخِيْ ۚ فَأَصْبَحَ مِنَ النّٰدِمِيْنَ ۝

د رور خپل ، نوشو دې د حېرانو «پښيمانو» نه

﴿ فَطَوَّعَتْ لَهٗ نَفْسُهٗ ﴾ (طَوَّعَتْ) په معنى د (زَيَّنَتْ، سَهَّلَتْ) سره دې.يعنى نفس اماره ورته دا خبره ښائيسته اوآسانه كړه چه خپل رورقتل كړي اګركه داقبيح اوګران كارؤو.نفس اماره داسې كوي چه دګناه ګران كارسړي ته آسان كړي اوقبيح ورته ښائيسته كړي.

﴿ فَقَتَلَهٗ ﴾ خپل رورئې قتل كړو ،دابن مسعودرضى الله عنه اوبعض نوروصحابؤنه مروى ده چه قابيل هركله چه اووئيل چه زه به تاقتلوم نوهابيل ترينه بيرته شواولاړوغرونوته اوخپلې بيزې وغيره ئې څرولې.نوچه اوده شونوقابيل راغې يوغټ كاڼې ئې ورله په سرباندې راګوذاركړو اوشهيدئې كړو.ابن كثيراونوروهفسرينووئيلى دى چه حضرت آدم عليه السلام په دغه وخت كښې حاضرنه وو. تللې وومكې ته،مكې ته دتللوپه وخت كښې ئې آسمان ته اووئيل «احفظى ولدى بالامانة» څماداولاددحفاظت كوه په امانت سره،نوآسمان ترينه انكاراوكړودغه سې غرونوته ئې اووئيل نوهغوئ انكاراوكړواوزمكې ته ئې هم دغه شان اووئيل نوزمكې هم انكاراوكړو.نو قابيل ته ئې اووئيل نوداووئيل چه (نعم) لاړشه اوواپس به راشې اوخپل اهل به داسې اومومې چه ته به خوشحاله ئې،نوآدم عليه السلام لاړو،اودوئ دواړوچه قربانى وركړه نودهابيل قربانى قبوله شوه اودقابيل قبوله نشوه،نودحسدشروع كړواورورئې قتل كړو.

﴿ فَأَصْبَحَ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴾ يعنى په دنيااوآخرت دواړوكښې نقصان مندشوپه دنياكښې خسران دادې چه مورپلارترينه خفه شواوبې روره پاتې شو،صاحب دروح المعانى په روايت دنعيم بن حمادسره دعبدالرحمان بن فضاله نه نقل كړيدى چه دقابيل عقل اوځيره مسخ شو بدحواس شواوپه دې بدحواسئ اوپريشانئ كښې مړشو.اوپه بل روايت كښې دى چه

(اسودلونه كان ابيض) بعض مفسرين وائی چه قابيل په حالت دكفركښې مړدې (لقوله تعالى فتكون من اصحاب النار) ليكن راجح قول دادې چه كفرقريب زمانی دنوح عليه السلام نه شروع شويدې اوقابيل ګناهګاروو،ليكن كافرنه ؤو،او(اصحاب النار) عاصی ته هم وئيلې شی.اواخروی خسران دادې چه الله تعالى ترينه ناراض شواومستحق دنارشو،په حديث دصحيحينووغيره كښې دی چه په دنياكښې څومره دناحقې قتل كيږی نودقابيل په هرناحق قتل كښې پوره حصه دګناه ده ځكه داول بنياددقتل بغيرحقٍ ده ايښودلې دې

﴿فَبَعَثَ ٱللَّهُ غُرَابًا﴾ هركله چه خپل رورئې قتل كړونوبياد دفن كولوڅه طريقه ورته نه وه معلومه ځكه چه ددې نه مخكښې په انسانانوكښې څوک نه ؤومړشوې.نوڅه زمانه ئې اوګرځولو.نوبياالله تعالى غراب راوليږلواودبل مړغراب دپاره ئې زمكه اوكنستله اوهغه ئې په كښې دفن كړو.نوقابيل طريقه ازده كړه نودغه شان كارئې دخپل رورسره اوكړو.

﴿يَبۡحَثُ فِي ٱلۡأَرۡضِ﴾ (ای يحفر) بحث تفتيش ته وائی مطلقاياتفتيش په خاوروكښې.ابن جريراوعبدبن حميددعطيه نه روايت نقل كړيدې چه الله تعالى دوه غرابه راؤليږل نويوبل لره قتل كړو،اوبعضووئيلی دی چه احدالغرابين مخكښې نه مړؤو،نوبل ورته زمكه اوكنستله او خخ ئې كړويه كښې اوبعضووئيلی دی چه دا دواړه فرښتې وې په شكل دغرابينوكښې (روح) اوپه غراب سره تشاؤم (بدفالی) كيږی نودامناسب ؤوددې قصې سره (روح).

﴿لِيُرِيَهُۥ﴾ لام متعلق دې د (بعث الله) سره،ياد (يَبۡحَثُ) سره.(سَوۡءَةَ) جسد دميت ته وائی.او بعضووئيلی دی چه هغه جسدته وائی چه متغيرشوې وی.اودژوندې دبدن هغه حصه چه دهغې ښكاره كول عيب وی،يعنی عورت. هغې ته سوءت وئيلې شی.

﴿قَالَ يَٰوَيۡلَتَىٰٓ﴾ داپه اصل كښې (وَيْلَتِیْ) دې ياء دمتكلم په حالت دنداءكښې كله په الف سره بدليږی. (ويل) په اصل كښې دهلاكت په معنى سره دې،اواستعمال ئې دافسوس دپاره كيږی. او استفهام په (أَعَجَزۡتُ) كښې تعجبې دې.تعجب كوی دخپل عدم تدبيرنه.

﴿فَأَصۡبَحَ مِنَ ٱلنَّٰدِمِينَ﴾ مدارک وائی چه (نادمين) په معنى د (متحيرين) سره دې.اونور مفسرين وائی چه داپه معنى ښېښمانۍ سره دې ليكن ندامت په ګناه.اوپه خلاف كولودحكم دالله تعالى نه.نوبه وی لكه په حديث كښې دی (الندامة توبة) اودقابيل ندامت په دې خبره ؤو.چه څه تدبيرورته نه ؤومعلوم د دفن كولو.ندامت ئې په ګناه نه ؤو.صاحب دروح المعانی

وائی چه ندامت دده په خپل امر کښې دَ حیرانتیا د وجهې نه وؤ.او ودي نه چه (۴۰) (خلوینبت ورځې یا یوکال یازیات ددې نه ئې په اوګه باندې ګرځولو ،چه دآدم علیه السلام دراتلونه مخکښې ئې زه چرته پټ کړم.

مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ ۚ كَتَبْنَا عَلٰى بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ اَنَّهٗ مَنْ قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ

په وجه ددې واقعې، فرض کړو مونږ په بني اسرائیلو چې بېشکه چاچې قتل کړو یو سړي بغېر دبدل دبل سړی نه

اَوْ فَسَادٍ فِى الْاَرْضِ فَكَاَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيْعًا ؕ وَمَنْ اَحْيَاهَا فَكَاَنَّمَآ اَحْيَا

یابغېردفساد نه په زمکه کښې، نوګویاکه قتل ئې کړل خلق ټول، اوچاچې بچ کړویوتن نوګویاچې بچ ئې کړل

النَّاسَ جَمِيْعًا ؕ وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِالْبَيِّنٰتِ ز ثُمَّ اِنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ

خلق ټول. اوپه تحقیق سره راغلي وو دوئ ته رسولان زمونږ په ښکاره حکمونو سره. بیا بېشکه ډېرددوئ نه

بَعْدَ ذٰلِكَ فِى الْاَرْضِ لَمُسْرِفُوْنَ ﴿۳۲﴾

روستو ددې نه په زمکه کښې زیاتې کونکی دی

﴿مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ كَتَبْنَا﴾ حضرت الشیخ رحمه الله فرمائی (نقلاعن شیخه) چه ددې وجه نه چه په خاموش کیناستلو کښې ذلت دې،نو مونږ فرض کړو قتال اوجهادنو مفعول به د (کتبنا) دپاره. (الجهاد).یا (القتال) دې.اوعام مفسرین وائی چه مفعول به د (کتبنا) دپاره (القصاص) دې او (ذلک) اشاره ده واقعې مذکورې ته یعنی ددغې واقعې نه چه کوم مفاسدمعلوم شو .نو ددې وجه نه مونږ قصاص فرض کړو .یعنی د دفعې د مفاسدو دپاره،اوشاه ولی الله رحمه الله وائی چه (من اجلِ ذلک) په معنی د (علی قیاس ذلک) سره دې یعنی قابیل چه کله قتل اوکړو .نوپه حکم د (من سنّ سنة سیئة فعلیه وزرها) سره دهرناحقه قتل په ګناه کښې دې حصه داردې،نو علی هذا القیاس په هره زمانه کښې چه چاناحقه قتل اوکړو ﴿فَكَاَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيْعًا﴾ دا تشبیه په نفس معصیت کښې ده اګرکه یوشدیداوبل اشددې.یامراد د (الناس جمیعا) نه هغه ناس دی چه ددغه یو نفس قتل ذریعه او سبب اوګرځیدو دَ هغوئ د قتل.یعنی چاچه یونفس قتل کړواوداذریعه شوه دډېروخلقودقتل دپاره نو ددغه ټولودقتل ګناه ددغه یونفس دقاتل

په ذمه دي

﴿وَمَنْ أَحْيَاهَا﴾ (داحياء) نه مراد بچ کول دی دقتل نه اوتخصيص دبنی اسرائيلو په دې وجه شويدې چه اول آسمانی کتاب تورات په دوئ نازل شوې ؤو. اوپه هغې کښې داحکم په کتابی شکل کښې موجودؤو، اود دوئ نه قبل په کتابی شکل کښې نه ؤواګرکه حکم ؤو.

﴿وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ﴾ يعنی دومره ضديان اوحاسدان دی چه دټولورسولانونه چه دوئ ته راليږلی شوی ؤوئې خلاف کړې دي دوئ اسراف کوونکی دی.

| |
|---|
| إِنَّمَا جَزَٰٓؤُاْ ٱلَّذِينَ يُحَارِبُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَسْعَوْنَ فِي ٱلْأَرْضِ |
| بېشکه سزا[1] دهغه کسانوچې جنګ کوی دالله سره اوددرسول دهغه سره اوکوشش کوی په زمکه (ملک) کښې |
| فَسَادًا أَن يُقَتَّلُوٓاْ أَوْ يُصَلَّبُوٓاْ أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم مِّنْ خِلَٰفٍ |
| دفساد. داده چې قتل کړې شی دوئ یاپه سولئ کړېشي یاپرې کړېشی لاسونه ددوئ اوپښې ددوئ ادل بدل |
| أَوْ يُنفَوْاْ مِنَ ٱلْأَرْضِ ذَٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي ٱلدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي ٱلْـَٔاخِرَةِ |
| یادې اوشړلې شی دزمکې نه، دا سزاګانې ددوئ دپاره رسوائی ده په دنیا کښې اودوئ دپاره په آخرت کښې |
| عَذَابٌ عَظِيمٌ ۝ إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُواْ مِن قَبْلِ أَن تَقْدِرُواْ عَلَيْهِمْ |
| عذاب لوئې دې مګر هغه کسان چې توبه ئې اوويستله مخکښې ددېنه چې وس برشي ستاسو په هغوئ باندې |
| فَٱعْلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝ |
| نو پوهه شئ چې بېشکه الله بخښونکې رحم کونکې دې. |

﴿إِنَّمَا جَزَٰٓؤُاْ ٱلَّذِينَ يُحَارِبُونَ ٱللَّهَ﴾ يعنی دمسئلې بيانولونه بعدخاموش مه کينئ بلکه جهادکوئ اوحدودجاری کړئ.

بعض مفسرين وائی چه داآيت په باره دعرنيينو کښې نازل شويدې چه هغوئ يوجماعت وواېمان ئې راوړې وواوبيامرتدشو، او اوښان ئې اوتښتول او راعی ئې قتل کړولکه دا

[1] يعنی خاموش مه کينئ بلکه محاربينو او مفسدينو ته سزا ورکړئ.

معروف حدیث دي.اوبعض وائی چه دا په باره دکفارو کښې نازل شوې دي لکه دامام بخاری رحمه الله د صنیع نه هم داسې معلومیږی. اوابن کثیروائی چه داآیت عام دي مشرکانو وغیره ټولوته اود (یحاربون الله ورسوله) نه مرادمخالفت دي دالله تعالی اورسول صلی الله علیه وسلم نه.برابره خبره ده که په طریقه دکفراوارتدادوی یانه وی، (یحاربون الله) کښې مضاف مقدردې. (ای یحاربون اولیاءالله) ځکه چه محاربه دالله تعالی سره خو نشی کیدې.اودرسول الله صلی الله علیه وسلم سره محاربه پس دوفات نه هم ممکنه نه ده.اوداجمله چه ﴿وَيَسْعَوْنَ فِي ٱلْأَرْضِ فَسَادًا﴾ داعطف تفسیردماقبل دې اوددې نه قطاع الطریق (ډاکوان) مراد دی.

﴿أَن يُقَتَّلُوٓاْ﴾ دلته څلور سزاګانې مذکورې دی اوهر سزا جدا جدا موقعې دپاره ده. نو «او» د تخییر دپاره ندې اګر که بعض سلفو دیته ذهاب کړیدې، لیکن دا قول مرجوح دې بلکه (او) دَ تنویع دپاره دې ، نو دَ هرې موقعې دپاره جدا جدا سزا ده نو ﴿أَن يُقَتَّلُوٓاْ﴾ والا سزا په هغه صورت کښې ده چه صرف قتل ئې کړې وی اومال ئې نه وی اغستې.اود (**یقتلوا**) په تشدیدسره ددې نه معلومیږی چه داقتل دقصاص نه زیات دې ځکه چه قصاص دولی په معافئ سره معاف کیدې شی اودانشی معاف کیدې.ځکه چه په ډاکې سره پوره معاشره خرابیږی نوضررئې ټولې معاشرې ته عائددې نودیوفرد یاخاندان په معافئ سره داسزانشی ختمیدې. ﴿أَوْ يُصَلَّبُوٓاْ﴾ داسزا (قتل اوپهانسی) په هغه صورت کښې وی چه قتل ئې کړې وی او مال ئې هم اغستې وی.په دې صورت کښې اکتفاء صرف په قتل باندې هم جائزده.لکه دا ظاهرالروایة دې داحنافو.اوپه نزد دامام ابویوسف رحمه الله دواړه لازمی دی اودامواقف دې ددې نص سره اوعبرت هم په دې سره کامل حاصلیږی. ﴿أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم مِّنْ خِلَٰفٍ﴾ یعنی خې لاس اوچپه خپه،داسزاپه هغه صورت کښې ده چه صرف مال ئې اغستې وی.﴿أَوْ يُنفَوْاْ مِنَ ٱلْأَرْضِ﴾ داسزاپه هغه صورت کښې ده چه نه ئې قتل کړې وی اونه دمال اغستونوبت راغلې وی صرف تخویف (ویرول) ئې کړې وی.

د (**ینفوا**) نه په نیزدبعضوجلاوطنی مراد ده.اوپه نزد داحنافوترینه مراد دادې چه په جیل کښې دې بند کړې شی ځکه چه دجلاوطنئ په صورت کښې که یومجرم بل اسلامی ملک ته لاړشی نو هلته به فتنه فسادکوی اوکه دارالحرب ته لاړشی نودکفردتقویت سبب شی.اوددې

ځلورو صورتونو نه علاوه پنځم صورت دادې چه ډاکو محض زخم کړې وی،نه ئې قتل کړې وی اونه ئې مال اغستې وی نوددې حکم پشان دعام زخمونودې،

﴿ذٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ﴾ يعنی دامخکښې مذکورسزاګانې دډاکوانودپاره دنيوی رسوائی ده ليکن داکافی نه ده بلکه په آخرت کښې ددوئ دپاره عذاب عظيم دې.

احنافوپه دې آيت سره يعنی په ﴿اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا﴾ سره استدلال کړيدې چه حدود. کفارات نه دی يعنی حدجاری کيدل په چاباندې.دهغه دګناه،معصيت دپاره کفاره نه ده.اودا. قول دمالکيؤهم دې.اوشوافع وائی چه حدودکفارات دی اوداآيت په حق دکفاروکښې دې. ليکن راجح قول لکه مخکې ذکرشودادې چه دا آيت عام دې. ‹الاالذين تابوا› محاربين چه کافر وی نودکفرنه توبه مراد ده اوکه مسلمان وی نوپه توبې سره حقوق الله معاف کيږی اوحقوق العبادورکول يادهغوئ معافی کول جزء دتوبې دې ‹الاالذين تابوا› ډاکوچه توبه اوکړی نودهغه نه حدشرعی ساقطيږی نوحکومت ورته سزانشی ورکولې لکه خپې لاس قطع کول.پهانسی ورکول.قيدکول.البته حقوق العبادئې په ذمه پاتې دی،نوکوم مال ئې چه دچانه اغستې وی نوهغه واپس کول ضروری دی اودارنګه که څوک ئې قتل کړې وی نوکه اولياء دمقتول ترينه قصاص اخلی يائې معاف کوی نوهغوئ لره اختياردې،اوحدشرعی دحقوق الله نه دې نوپه توبې سره معاف کيدې شی اوحقوق العبادنه معاف کيږی او﴿مِنْ قَبْلِ اَنْ تَقْدِرُوْا﴾ نه معلومه شوه چه که سارق.قطاع الطريق.دګرفتارئ نه بعد،توبه اوکړی نوشرعی سزاترينه نه ساقط کيږی اوفقهاء وائی چه صرف زبانی توبه نه کافی کيږی،بلکه داصلاح علامات ظاهريدل هم ضروری دی.

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَابْتَغُوْٓا اِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ وَجَاهِدُوْا فِيْ سَبِيْلِهٖ لَعَلَّكُمْ

اې ايمان والو يره کوئ دالله نه اوطلب کوئ هغه ته نزديکت، اوجهاد کوئ په لار دالله کښې. ددې دپاره

تُفْلِحُوْنَ ۞ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَّا فِي الْاَرْضِ

چې تاسو کامياب شئ بېشکه هغه کسان چې کفرئې کړېدې کچرې شي دوئ لره هرهغه څه چې په زمکه کښې دی

جَمِيْعًا وَّمِثْلَهٗ مَعَهٗ لِيَفْتَدُوْا بِهٖ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ

ټول اوپشان دهغې ورسره نورشی ددې دپاره چې په فديه کښې ئې ورکړی دعذاب د ورځې دقيامت نه.

مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ يُرِيدُونَ أَنْ يَخْرُجُوا مِنَ النَّارِ وَمَا هُمْ

قبول به نه کړېشي ددوئ نه. او دوئ لره عذاب دردناک دي غواړي به دوئ چې اوځی داور نه اونه به وی دوئ

بِخَارِجِينَ مِنْهَا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُقِيمٌ ۝

وتونکی دهغې ،اور، نه. اود دوئ دپاره عذاب دي همېشه

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ ﴾ مخکښې آيتونوکښې دفسادمذمت اودهغې نه منع ذکرشوه دلته دټولومعاصيؤنه منع اودطاعاتودکولوحکم دي اوپه طاعت کښې دجهاد خصوصاذکردي ددي دپاره چه څوک داگمان اونکړي چه داهم فساد دي.(**اتقوالله**) دتمام منهياتونه منع ده ﴿وَٱبْتَغُوٓاْ إِلَيْهِ ٱلْوَسِيلَةَ ﴾ دطاعاتوحکم دي ﴿وَجَٰهِدُواْ ﴾ په طاعاتوکښې دجهادذکردي.اود دواړوغايه اونتيجه فلاح ده. نوپه ﴿لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ کښې دهغې ذکردي.لفظ دوسيله په دريؤمعانيؤکښې مستعمل دي،(١) يوه معنى ئې اعلى منزله دپه جنت کښې. په حديث کښې راغلى دى،(انهامنزلة فى الجنة جعلها الله تعالى لعبدمن عباده وارجوا ان كون انافاسئلوالى الوسيلة).يعنى وسيله يومنزله ده په جنت کښې چه الله تعالى ديوبنده دپاره دخپلوبندگانونه مقررکړيده اوامید دي چه هغه زه يم نوځمادپاره د وسيلې سوال کوئ.دامعنى دلته نه ده مرادلکه داظاهره ده.

(٢) دويم په معنى دحاجت سره راځى لکه په قول دشاعرکښې

ان الرجال لهم اليک وسيلة[1] ان ياخذوک تکحل وتخضب

دابن عباس رضى الله عنه نه منقوله ده چه وسيله په معنى دحاجت سره دي نود(**وابتغواليه الوسيلة**) معنى داده چه(اطلبوامنه الحاجات) نو(**اليه**) په معنى د(**منه**) سره دي ياپه معنى د (متوجهين اليه) سره دي.

(٣) دريمه معنى ئې قرب دي،اوابن کثيردوسيلې معنى داهم ليکلې ده. (مايتوصل به الى تحصيل المقصود) يعنى هغه څيزچه په هغې سره مقصودته رسيدل کيږي.وسيله دوسل نه

١ - اى حاجة

ماخوذ دي. په سين (وسل) اوصاد (وصل) دواړه په يوه معنى سره دى يعنى يوځائې كول (لګول) فرق صرف دومره دي چه وسل په سين سره هغه يوځائې كيدل دى چه په محبت سره وى او وصل عام دي. داقول دامام راغب رحمه الله دي اوبعض وائى چه وسل معنوى اتصال ته وائى اووصل په صاد سره عام دي چه معنوى وى ياجسمانى وى. اودبعضونه دوسيله معنى محبت مروى ده. جمهورومفسرينولكه ابن عباس رضى الله عنه وغيره اكثرصحابه تابعين شو. د (**وابتغوا اليه الوسيلة**) معنى داكړيده (الزلفى، التقرب بفعل الطاعات وترک السيئات) ابن كثير. ابن جرير. مدارک وغيره اكثرو مفسرينو دا معنى ليكلې ده.

علامه آلوسى رحمه الله وائى چه بعض خلقودا آيت دليل ګرځولي دي په دي چه استعانت او استغاثه دبزرګانِ دين اودانبياؤنه جائزدي. علامه دي ته (بعيدعن الحق بمراحل) وئيلى دى اوليكى چه دمړى نه يادغائب نه دعااومددغوښتلودناجائزوالى كښې دهيڅ عالم شک نشته دي. اودا داسې بدعت دي چه ددي ارتكاب په سلفوكښې هيڅ چانه دي كړي. (ولم يروعن احدمن الصحابة وهم احرص الخلق على كل خير، انه طلب من ميت شيئا) يعنى دصحابؤرضى الله عنهم نه. دنيكئ اوثواب په كار كښې څوک زيات حريص نه ؤو. ليكن دهيڅ صحابى نه دانه ده منقوله چه هغوئ دقبرونونه مدد غوښتلې وى. ابن عمررضى الله عنه په اتباع سنت كښې ضرب المثل ؤوهغه به چه كله دحضورپاک صلى الله عليه وسلم روضه ته داخل شو. نوصرف دومره به ئې وئيل چه (السلام عليک يارسول الله صلى الله عليه وسلم السلام عليک ياابابكر، السلام عليک يا ابى) ددي نه به ئې زيات څه نه وئيل، اونه به ئې دنبى صلى الله عليه وسلم نه څه غوښتل اونه به ئې دهغه د دواړوضجيعينومكرمينونه څه غوښتل حالانكه په آسمانونواوزمكه كښې ددوئ نه زيات غوره يادددوئ سره هيڅ څوک برابرنشته دي. اوصحابه كرام رضى الله عنهم به چه روضې مباركې سره دعاكوله نوقبلې ته به ئې مخ ګرځولو. روضه مباركه ته به ئې مخ نه ګرځولو. اوسره ددي نه چه دامقام (روضه مباركه) دعرش نه هم ډيرافضل دي.

اوايمؤاختلاف كړيدي، چه دسلام نه بعد ددعاكولوپه وخت كښې به مخ كوم طرفته ګرځوى نودامام ابوحنيفه رحمه الله فيصله داده چه په دي موقعه كښې به هم قبرشريف ته نه مخ كوى بلكه قبلې ته به مخ كوى. (روح)

(**فائده**) دتوسل دمسئلې تفصيل چه څومره شيخ الاسلام حافظ ابن تيميه رحمه الله

ذكركړيدي. نوغالبًا ددې نه مخکښې بل چانه دې ذکرکړې،اودهغې خلاصه داده چه:
**يوهغه توسل دې** چه ناجائزاوحرام بالاتفاق دې چه هغه درحقيقت توسل نه دې بلکه
تعبددې.اوداتوسل شرکی دې يعنی عبادت دوسيلې لکه مشرکانوچه وئيل ﴿مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَآ إِلَى ٱللَّهِ زُلْفَىٰٓ﴾
**اودويم هغه توسل دې** چه جائزدې بالاتفاق.اوهغه توسل دې په خپلواعمالوصالحؤسره
لکه په حديث الغارکښې دهغې ذکردې،اودارنگه توسل په اسماؤ اوصفاتو دالله تعالی
سره.لکه په اورادو ماثورؤکښې دی.(اللهم انی اسئلک بانک انت الله الواحد الاحد الصمد
الذی لم يلدولم يولد،الخ) ﴿وَلِلَّهِ ٱلْأَسْمَآءُ ٱلْحُسْنَىٰ فَٱدْعُوهُ بِهَا﴾ په يوروايت کښې دی (اللهم انی
اسئلک باسمك الطاهر المطهر) وغيره کثرت سره راغلی دی.
**اودريم قسم توسل دادې** چه داسې اووئيلې شی چه اې الله،په برکت دفلانې ياپه حرمت.
طفيل دنبی صلی الله عليه وسلم ياپه وسيله دنبی صلی الله عليه وسلم.يادفلانی بزرګ
څماحاجت پوره کړې،نوداقسم توسل په نيزدجمهوروجائزدې،اودحافظ ابن تيميه په نزدحرام
اوناجائزدې.البته بالتاويل (په تاويل کولوسره) دده په نزدهم جائزدې.لکه ده په
خپلوتصنيفاتوکښې لکه (اقتضاء الصراط المستقيم) وغيره کښې ددې تصريح کړيده.اوپه
القاعدة الجليله ص٣٨ کښې وائی: (أسألك بنبيك محمد أی: أسئلك بايمانی به وبمحبته) او بل ځای
کښې ليکی (فالتوسل الی الله بالنبيين هوالتوسل بالايمان بهم وبطاعتهم کالصلوة والسلام عليهم و محبتهم
وموالاتهم اوبدعائهم وشفاعتهم وامانفس ذواتهم فليس فيهامايقتضی حصول مطلوب العبدوان کان لهم
عندالله تعالی الجاه العظيم– آه ) **فتاوی ابن تيميه (جلد٢٧ص١٢٣) طبع جديد،** داتصريح ده چه دعاپه
وسيله دمحبت.اودوستئ دانبياؤسره صحيح ده،نوداراجع دې توسل بصالح الاعمال
ته.نونزاع دجمهوروسره په حقيقت کښې نزاع لفظی ده،ځکه جمهورچه د(توسل بالذوات)
قائل دی نودهغوئ مراد،دتوسل بالرسول والنبی نه دانه دې،چه (معاذالله)
انبياء.رسولان.دوصف دنبوت،رسالت نه منفک،اوجداکړې شی،او توسل دې په هغوئ سره
اوکړې شی.يا(معاذالله) په هغوئ ايمان راؤړل اودهغوئ سره محبت، عقيدت،لرلونه بغيردې
په هغوئ سره توسل اوکړې شی،داسې خيال دهيڅ دعاکوونکی په وسيله دهغوئ سره په ذهن
کښې نه راځی چه رسول،نبی دې دوصفِ نبوت،رسالت نه جداکړې شی،يادې شرط دايمان په

هغوئ ورسره نه وی. نفس ذوات د دوئ بغیردوصف درسالت نه او بغیردایمان نه په دوئ. اوبغیردمحبت نه د دوئ سره دي مرادشي. اودغه شان توسل په نورو صلحاؤسره په دې تفصیل سره دي، چه دهغوئ نفس ذوات بغیردکمالاتو اوخوبیانودهغوئ نه، مرادنه دی. بلکه دهغوئ کمالات. اودنیک اعمالودوجه نه چه هغوئ مورد درحمت الهی دی اودالله تعالی خصوصی رحمتونه په هغوئ نازلیږی، اودهغوئ سره محبت، دا امورټول ملحوظ دی. ذکر دذات په دې وجه دې چه هغه موصوف دې اوکمالات اوصاف تابع دی. خلاصه داچه توسل بالذوات راجع دې توسل بصالح الاعمال اوتوسل بصفات الله ته. نوچه دتوسل بالاعمال قول څوک کوی نودتوسل بالذوات اقرارهم پکاردې. حافظ ابن تیمیه رحمه الله وائی چه په توسل بالذوات کښې توهم پیداکیږی چه معاذالله چه ددې ذات، رتبه اوشان دالله تعالی نه هم ارفع اوچته ده. یائې په الله تعالی باندې څه زور. اوجبردې. لکه ده وئیلی دی (لان فیها ایهام ان المتجوه به والمستغاث به اعلی من المتجوه علیه والمستغاث علیه) یعنی ددې الفاظونه. داوهم پیداکیږی چه دچا په جاه اووسیله سره چه سوال کولې شی. دهغه درجه دهغه چانه اعلی ده چه دهغه په دربار کښې سوال، التجاه کولې شی، نورعلماء ددې جواب کوی چه داسې توهم دیومؤمن په ذهن کښې راتلل محال دی، اوکه بالفرض دچاپه ذهن کښې رازی نوبیاداسې توسل حرام اوشرک دې. حضرت تهانوی رحمه الله دتوسل معنی کوی، چه د دعابالتوسل حاصل دادې «اې الله، فلانې بنده ستادرحمت مورد دې اوزه دهغه سره محبت اوعقیدت لرم نوپه ماباندې هم رحمت اوکړه او مطلب مې پوره کړه» (نشرالطیب) په بل ځائې کښې وائی چه «دتوسل حقیقت دادې چه اې الله فلانې سړې ځماپه نیزستامقبول دې اودمقبولینوسره په محبت باندې ستادمحبت وعده ده، (المرءمع من احب) نوزه ستانه رحمت غواړم ـ الخ» او صاحب دروح المعانی وائی. (وبعد هذاکله انا لااری بأسًا فی التوسل الی الله تعالی بجاه النبی صلی الله علیه وسلم عندالله حیًّامیتًاویراد من الجاه معنی یرجع الی صفة من صفاته مثل ان یرادبه المحبة التامة المستدعیة عدم رده وقبول الی شفاعته فیکون معنی قول القائل الهی أتوسل بجاه نبیک صلی الله علیه وسلم ان تقضی لی حاجتی، الهی اجعل محبتک له وسیلةً فی قضاء حاجتی ولافرق بین هذا وبین قولک الهی أتوسل برحمتک ان تفعل کذا اذمعناه ایضااجعل رحمتک وسیلة فی کذا الخ) نوداتصریح ده په دې چه دتوسل بالنبی معنی سوال دې دالله تعالی نه په واسطه درحمت دالله تعالی سره. ددې نه روستوبیاصاحب د روح المعانی لیکی (ان التوسل بجاه غیرالنبی صلی الله علیه وسلم لاباس به

ایضاان کان المتوسل بجاهه علم ان له جاهاعندالله تعالی کالمقطوع بصلاحه وولایته» یعنی دنبی صلی الله علیه وسلم نه علاوه دبل چاپه جاه اوبرکت سره توسل جائزدې، که چرته توسل کوونکی ته داعلم وی چه په چاسره چه توسل کوی دهغه صلاح یقینی دې لکه چه دچاولایت اوتقوی په تواترسره ثابت وی.

«**فائده**» جمهورو علماؤ داقیدنه دې ضروری کړې چه صلاح دې ئې په تواترسره ثابته وی.

جوازدتوسل په نبی صلی الله علیه وسلم اونوروانبیاؤسره اودارنګه په صلحاؤ نیکانو سره دعلماؤد مذاهبواربعؤاودارنګه داکثرواهلِ حدیث په نیزاجماعی مسئله ده، «اوابن تیمیه رحمه الله اګر که ترینه منکردې لیکن بالتاویل هغه هم قائل دې» کمامرّ. حافظ ابن الهمام چه فقهاء احناف هغه ته جامع بین الروایة والدرایة وائی، په خپل مشهورتصنیف کښې، په آدابُ زیارة دروضة مبارکه کښې لیکی، چه روضه مبارکه ته دحاضرئې نه بعدبه صلوة وسلام پیش کړی «ثم یسئل النبی صلی الله علیه وسلم الشفاعة فیقول یارسول الله اسئلک الشفاعة واتوسل بک الی الله فی ان اموت مسلماعلی ملتک وسنتک، الخ فتح القدیر«جلد۲ص۳۳۸» اودې ته قریب عبارت دفتاوی عالمګیری دې چه تقریبا «۵۰۰» پنځوسوؤ علماؤ احنافودهندوستان مرتبه کړې ده، «عالمګیری جلد۱ ، ص۲۸۲ طبع مصر» دغه شان علامه بحرالعلوم په رسائل الارکان «ص۲۸۱» کښې لیکی. «واتوسل بک الی الله، الخ» دغه شان، نورالایضاح «ص۱۹۱» طحطاوی «ص۴۰۲» او مجمع الانهرفی شرح ملتقی الابحر «جلد۱ص۳۱۳» اوشامی «ص۳۵۰جلد۵» په دې ټولو کتابونو کښې داستفشاع اودتوسل ذکردې، علامه آلوسی دتوسل دمسئلې دتفصیل نه بعدلیکی، «هذا الذی ذکرته، انما هو لدفع الحرج عن الناس والفرار من دعوی تضلیلهم کمایزعمه البعض فی التوسل بجاه عریض الجاه صلی الله علیه وسلم لاللعیل الی ان الدعاء کذالک افضل من استعمال الادعیة الماثورة التی جاء بهاالکتاب وصدعت بها السنة، الخ» مسندالهند، حضرت شاه ولی الله رحمه الله په خپل معروف تصنیف حجة الله البالغة «جلد۲ص۲» طبع مصر. کښې لیکی «ومن ادب الدعاء تقدیم الثناء علی الله والتوسل بنبی الله صلی الله علیه وسلم لیستجاب» او شاه محمداسحاق رحمه الله په مائة مسائل «ص۳۵» کښې لیکی، «دعابایں طورکه الهی بحرمت نبی وولی حاجت مرا رواکن جائزاست چنانچه ازشرح فقه اکبرملاعلی قاری رحمه الله مفهوم میشود» شاه اسماعیل شهیدرحمه الله په تقویة الایمان «ص۹۵» لیکی:

ہاں اگر یوں کہے یااللہ کچھ دے شیخ عبدالقادر کے واسطے تو بجا ہے۔

اوعلماء ديوبندمتفقه فتوى په باره دتوسل كنبې په المهند على المفند(ص١٢،١٣) كنبې داسې ده (عندناوعندمشائخنايجوزالتوسل فى الدعوات بالانبياء والصالحين من الانبياء والشهداء والصديقين فى حيوتهم وبعدوفاتهم بان يقول فى دعائه اللهم انى اتوسل اليک بفلان ان تجيب دعوتى وتقضى حاجتى الى غيرذالک كماصرح به شيخنا مولانا الشاه محمد اسحاق الدهلوى ثم المهاجرالمكى ثم بيّنه فى فتاواه شيخنا مولانا رشيداحمد الگنگوهى رحمه الله وهى فى هذا الزمان شائعة مستفيضة بايدى الناس الخ) تاريخ الخطيب (جلد ١ص١٢٣) او شامى (جلد ١ص٣٩) كنبې دى چه ابوبكربن خطيب.على بن ميمون نه روايت كوى چه ماد امام شافعي رحمه الله نه واؤريدل.چه زه دامام ابوحنيفه په وسيله سره بركت حاصلوم اوهره ورځ زه دهغه قبرته دزيارت دپاره حاضرى كوم.اودهغې په قريب كنبې دالله تعالى نه حاجت غوارم، ددې نه بعدځمامراددېيرزرپوره كيږى.امام نووى شافعي رحمه الله په باره دادابودزيارت دروضه مباركه كنبې ليكى،(فيتوسل به فى حق نفسه ويتشفع به الى ربه الخ كتاب الاذكارللنووى طبعٔ مصر(ص١٨٤) دغه شان عبارت،(ويتوسل به فى حق نفسه ويتشفع به الى ربه سبحانه – الخ په، الايضاح فى مناسک الحج للنووى (ص٤٩٨) طبع مصر)،كنبې دې،قاضي عياض مالكى رحمه الله دامام مالک رحمه الله نه په باره دآدابودروضه مباركه كنبې نقل كوى،(بل استقبله واستشفع به اى اطلب شفاعته ووسيلة شرح شفا(جلد٢ص٧١) يعنى دحضورصلى الله عليه وسلم په روضه چه حاضرى اوكړې (اللهم ارزقناها مراراً) نودخپلوحاجتونواومرادونودپوره كيدلودپاره د نبى صلى الله عليه وسلم شفاعت اووسيله طلب كړه،علامه خفاجى په شرح دشفاء (جلد ٣ ص٣٩٨) دقاضى عياض مالكى نه نقل كړيدى چه امام مالک خليفه منصورته اووئيل،(لم تصرف وجهک عن النبى صلى الله عليه وسلم وهو وسيلتک ووسيلة ابيک آدم الى الله الخ) امام احمدبن حنبل رحمه الله چه دمروزى رحمه الله دپاره ئې احكام حج (منسک) ليكلې ؤ،په هغې كنبې ئې ليكلى دى،(ان يتوسل بالنبى صلى الله عليه وسلم فى دعائه،وجزم به فى المستوعب وغيره وفى شواهدالحق ليوسف النبهانى (ص١٦٦) انه توسل الامام احمدبن حنبل بالامام الشافعى رحمه الله حتى تعجب ابنه عبدالله بن احمدبن حنبل من ذالک فقال الامام احمدله ان الشافعى رحمه الله كالشمس للناس) دغيرمقليدينوپيولوئې پيشواعلامه شوكانى په خپل معروف تصنيف نيل الاوطاركنبې

جلد۴ص۷، کښې وائی. (ویستفادمن قصة العباس رضی الله عنه استحباب الاستشفاع باهل الخیروالصلاح واهل بیت النبوة) اوپه جوازدتوسل ئې مستقله رساله «دُرّنضید» لیکلې ده.دغه شان دغیرمقلدینوشیخ الکل مولاناسیدنذیرحسین دهلوی په خپل کتاب معیارالحق (ص۴۱۹) کښې لیکی (بجاه سیدالثقلین) .

## • دجوازدتوسل بعضِ دلائل

(۱) استدلال من القرآن : دسورتِ بقره آیت ﴿وَكَانُوا مِن قَبْلُ يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ په تفسیردسورتِ بقره کښې ددې بیان تیرشویدې،اوداهم تیرشویدی،چه دې ته استدلال من القرآن وئیل صحیح دی،(۲) جدیث دضریرالبصر،(عن عثمان بن حنیف ان رجلاضریرالبصراتی النبی صلی الله علیه وسلم قال اُدع الله لی ان یعافینی، (الی قوله) اللهم انی اسئلک واتوجه الیک بمحمد نبی الرحمة – الخ

(**ترجمه**) په سننِ ابن ماجه باب صلوة الحاجة کښې دعثمان بن حنیف رضی الله عنه نه روایت دې چه نابینا(روند) سړې دنبی صلی الله علیه وسلم په حضورکښې حاضرشواوعرض ئې اوکړوچه دعااوکړه چه الله تعالی ماته عافیت راکړی نو نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل که چرته ته غواړې (نوزه به درته دعااوکړم) اوکه غواړې چه صبراوکړې نوصبربه ستادپاره ډیربهتروی،نوهغه اووئیل چه حضورصلی الله علیه وسلم دعااوکړئ،نوحضورصلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل چه په خکلی طریقې سره اودس اوکړه اودادعااووایه،یاالله زه ستانه سوال کوم اوستاطرف ته توجه کوم په وسیله دمحمدصلی الله علیه وسلم نبی رحمة سره،اې محمدصلی الله علیه وسلم ! زه ستاپه وسیلې سره خپل حاجت خپل رب طرف ته پیش کوم،اوتوجه کوم،چه هغه ځماحاجت پوره کړی،اې الله ! ته دهغه (محمدصلی الله علیه وسلم) شفاعت ځماپه حق کښې قبول کړه،په دې حدیث کښې توسل صراحة ثابت شو،اوداسې منقوله نه ده چه نبی صلی الله علیه وسلم دده دپاره بیادعااوکړه،حتی چه دا توسل بدعاء النبی صلی الله علیه وسلم شی نه په ذات دنبی صلی الله علیه وسلم سره،لکه داسې تاویل بعض خلق کوی. بلکه داسې مذکوردې چه داسې دعااوکړه اللهم الخ،نوددې نه توسل په ذات دنبی صلی الله علیه وسلم سره ثابت شو،دې حدیث ته امام ترمذی حسنٌ صحیح وئیلی دی،اوداحدیث په مسنداحمدرحمه الله کښې (جلد۴ص۱۳۸) اوابن ماجه (ص۱۰۰)

اومستدرک (جلد۱۳۱۳) ترغیب ترهیب (جلد ۱ ص۲۴۱) اونسائی.ابن خزیمه کتابونوکښې موجود دي.په دي استدلال باندې دوه شبهې دی اوله داچه داحدیث ضعیف دې.وجه داده چه په دي کښې یوراوی ابوجعفردې اوامام ترمذی په ترمذی کښې ددې حدیث په بیان کښې وئیلی دی (وهوغیرالخطمی) یعنی دا ابوجعفرخطمی نه دې،ابوجعفرخطمی ثقه راوی دې لیکن ترمذی وائی چه داخطمی نه دې،اوچه خطمی نشونویا به ابوجعفرالرازی وی یابه ابوجعفرالمدائنی وی،اودا دواړه ضعیف دی،

جواب دادې چه داراوی ابوجعفرالخطمی دې،په دلیل ددې سره چه امام ترمذی دې حدیث ته صحیح وئیلی دی نوکه داراوی ابوجعفرخطمی نه وې اوضعیف راوی وې نوبیابه ورته امام ترمذی حسن صحیح نه وئیل،اومحدث ابن السنی،متوفی (ص۳۲۴ هـ) په خپل کتاب (عمل الیوم واللیلة (ص۲۰۲) په سندکښې داسې نقل کړیدی،(المدنی وهوالخطمی)،اودغه شان امام حاکم.علامه ذهبی،هم الخطمی نقل کړیدی،طبرانی په معجم صغیر(ص۱۰۴) کښې الخطمی نقل کړیدی،اودترمذی په مصری مطبوعه نسخوکښې هم (وهوالخطمی) دې. نو معلومیږی چه په هندوستانی نسخوکښې چه (غیرالخطمی) دې داکتابتی غلطی ده.

دویمه شبهه داده چه په حدیث کښې توسل په دعادنبی صلی الله علیه وسلم سره دې.(بنبیک محمد) الخ نه مراد (بدعاء نبیک محمدٍ – الخ) دې په حذف دمضاف سره،ددې په جواب کښې حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی چه ددې حدیث نه توسل په ذات دنبی صلی الله علیه وسلم سره صراحةً معلوم شو.او داسې منقوله نه ده چه بیانبی صلی الله علیه وسلم دده دپاره دعااوکړه حتی چه حذف دمضاف اومنلې شی بلکه دنبی صلی الله علیه وسلم دغه صحابی ته دهغه دعادویلوامرکړیدې چه په هغې کښې توسل بالنبی صلی الله علیه وسلم دې اوکه څوک **سوال** اوکړی چه داتوسل بالنبی صلی الله علیه وسلم دهغه په حیات کښې ؤونوددې نه توسل بعدالممات نه ثابتیږی.

**جواب** دادې چه عثمان بن حنیف رضی الله عنه چه راوی دحدیث دې (وهواعلم بمرـد مارواه) دنبی صلی الله علیه وسلم دوفات نه بعدیوسړی ته دادعاښودلې وه لکه روایت کړې دې طبرانی په معجم صغیر کښې (ان رجلاکان یختلف الی عثمان) یعنی یوسړې ؤوچه عثمان رضی الله عنه نه به دیوضروری کارپه باره کښې بیابیا تللو لیکن هغوئ رضی الله عنه به ورته توجه نه کوله نودغه سړي دعثمان بن حنیف رضی الله عنه سره ملاؤشواوخپل شکایت ورته

اوکړونودوئ ورته حکم اوکړوچه اودس اوکه اومونځ اوکه اوبیاداعامذکوره وایه نوهغه چه داسې اوکړل نوعثمان رضی الله عنه دهغه تعظیم اوتکریم اوکړواوکارئې پوره شونومعلومه شوه چه دراوی دحدیث دعثمان بن حنیف په نزدهم توسل بعدالممات جائز وو.

**دریمه شبهه** په جوازدتوسل داده چه فقهاؤعموماواحنافوخصوصاداسې وئیلی دی (یکره ان یقول الرجل اسئلک بحق فلان) نوددې نه معلومه شوه چه دچاپه وسیلې سره سوال مکروه دې

**جواب** دادې چه حضرت گنگوهی رحمه الله اوفقهاؤلیکلی دی چه بحق فلان وئیل درست دی اومعنی ئې داده چه اې الله تاچه په خپل احسان سره وعده کړې ده، دهغې په ذریعه سوال کوم، په شرح دفقه اکبرکښې وائی، (فالمرادبالحق الحق الذی وعده بمقتضی الرحمة) مگرمعتزله اوشیعه وائی چه په الله تعالی باندې، حق په معنی دوجوب اولزوم سره دې نوددې وجه نه فقهاؤ لفظ دحق وئیلو ته مکروه وائی چه دهغوئ سره مشابهت رانه شی، اودامطلب نه دې چه دعادچاپه وسیله سره جائزنه ده.

حافظ ابن تیمیه رحمه الله وائی چه «توسل دچاپه ذات سره» دا لفظ مجمل دې نوپه عرف دصحابؤکښې ددې معنی داوه چه دچادذات نه دعااوشفاعت طلب کړې شی، دامعنی ئې نه ده چه دچانوم واغستې شی اودهغه په وسیله، حرمت، طفیل سره سوال اوکړې شی اوددې تائید ددې نه معلومیږی چه صحابه کرامؤبعد دوفات دنبی صلی الله علیه وسلم نه توسل اوکړوپه عباس رضی الله عنه سره لکه په حدیث دبخاری کښې دی: اللهم اناکنانتوسل الیک بنبیناصلی الله علیه وسلم فتسقیناوانانتوسل الیک بعم نبینافاسقنا فیسقون (بخاری، جلد۱ص۱۳۷) نوبیابه حضرت عباس رضی الله عنه دعاکوله اوصحابؤبه آمین وئیل: ان العباس یدعو، وهم یؤمنون لدعائه حتی سقوا) (روح) دغه شان په فتح الباری شرح البخاری کښې دی: ان عمر استسقی بالمصلی فقال للعباس رضی الله عنه قم فاستسق، نومعلومه شوه چه په عرف دصحابؤرضی الله عنهم کښې توسل په ذات دنبی صلی الله علیه وسلم یاپه ذات دبل چاسره، داؤچه دهغه نه به ئې دعاطلب کوله. اوکه چرته داقسم توسل چه دچانوم واغستې شی او دهغه په وسیله اوبرکت سره دعا وکړې شی، جائزوې نوصحابه کراموبه توسل دنبی صلی الله علیه وسلم په ذات اونوم سره کړې وې، ځکه چه دوئ زمونږ نه زیات پوهه ؤو، اوپه حقوقودالله تعالی اودرسول الله صلی الله علیه وسلم باندې زیات خبردار وو.

جمهور علماء د دې استدلال نه جواب کوی چه په حدیث د عباس رضی الله تعالی عنه

کښې بیشکه توسل په دعا دعباس رضی الله عنه سره ذکردي.لیکن داچه توسل دچاپه برکت اوحرمت وغیره سره جائزنه دې.نوددې نه داحدیث ساکت دې،اوحدیث دضریرالبصر(چه مخکښې تیرشو) هغه په جوازباندې ناطق دې.اوناطق حجت وی په ساکت باندې.

حضرت شاه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه دحدیث دتوسل بالعباس رضی الله عنه نه توسل فعلی ثابتیږی،لکه حضرت عمررضی الله عنه.حضرت عباس رضی الله عنه ته وئیل چه : قم یاعباس رضی الله عنه فاستسق فکان یستسقی لهم .اوتوسل قولی یعنی توسل په اسماؤدصالحؤسره ترینه نه ثابتیږی.لیکن دحدیث دترمذی نه توسل قولی هم ثابتیږی.حضرت شاه صاحب په حدیث د(انانتوسل الیک بعم نبینا) کښې داسې لیکی قلت وهذا توسل فعلی لانه کان یقول له بعد ذلك قم یا عباس ! فاستسق فکان یستسقی هم فلم یثبت منه التوسل القولی ای الاستسقاءباسماء الصالحین فقط بدون شرکتهم، اقول : وعندالترمذی ان النبی صلی الله علیه وسلم عَلَّمَ اعرابیا هده لکلمات وکان اعمی،اللهم انی اتوجه الیک بنبیک محمد نبی الرحمة،الی قوله فشفعه فِیَّ فثبت منه التوسل القولی ایضا وحینئذِ انکارالحافظ ابن تیمیه تطاولُ،فیض الباری (جلد٤ص٦٨)،

بعض علماؤ د توسل بذات النبی صلی الله علیه وسلم دپاره استدلال په روایت دبخاری شریف سره کړیدي هغه دادي چه عبدالله بن دیناروائی : سمعت ابن عمریتمثل بشعر ابی طالب. یعنی عبدالله بن دینار وائی چه ماواؤریدل دعبدالله بن عمررضی الله عنه نه چه دابوطالب دا شعر به ئې وئیلو

وابیضّ یستسقی الغمام بوجهه ثمال الیتمی عصمة للارامل

(ابیض) منصوب دي عطف دې،په سیداًباندې چه ماقبل شعرکښې دې هغه دادي

وَ ما ترک قوم لا ابالک سیدا یحوط الذماربین بکربن وائل

(سیدا) منصوب دي مفعول دې دترکِ مصدردپاره او ماترک –الخ استفهام دتعجب دپاره دي.یعنی تعجب دي چه څنګه پریښودله، داسې سردار لره چه دقبیله بکربن وائل په مینځ کښې دذمه وارئ حفاظت کوی، (وابیض الخ) اوتعجب دي چه څنګه دې پریښودلو قوم داسې سپین چمکدارمخ والاسړې چه دهغه دمخ په برکت سره باران طلب کولې شی چه دیتیمانوغم خوار.اوبیچ کوونکې دکونډوښځودې،اوکه (ابیض) مرفوع شی نوبیاخبردمبتداء محذوف دی

(ى هوابيض) د (بوجهه) نه توسل په ذات دنبى صلى الله عليه وسلم سره ثابت شو ، او داشعر اګر که جوړکړې ابوطالب دې اوهغه مشرک ؤو،ليکن دا استدلال په قول ديو مشرک سره نه دې.(کمايدعيه البعض) ځکه استدلال په دې سره دې چه صحابؤ،لکه عبدالله بن عمررضى الله عنه اوحضرت على رضى الله عنه وغيره به داشعروئيلو،لکه دبخارى په دې روايت کښې تصريح ده : سمعت ابن عمررضى الله عنه يتمثل بشعرابى طالب ، اوفتح البارى اوقسطلانى ددې حديث په شرح کښې ليکلى دى چه يواعرابى دحضورصلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضرشواوعرض ئې اوکړوچه مونږ په قحط سالئ کښې مبتلايو ، نونبى صلى الله عليه وسلم په منبر باندې تشريف فرما شو ، او دعاء ئې وکړه او باران شروع شو ، نو نبى اکريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل : لوکان ابوطالب حيًّا لقرّتْ عيناه، من ينشدناقوله،فقام علىّ فقال يارسول الله صلى الله عليه وسلم کانک اردت قوله :

وابيضّ يستسقى الغُمام بوجهه    ثمال اليتامى عصمة للارامل

نوداشعرصحابؤ وئيلې دې اونبى صلى الله عليه وسلم ددې په وئيلوخوشحاله شويدې، نو دا استدلال په قول دمشرک سره نه دې،اودبخارى شريف دويم روايت چه په هغې کښې داسې دى : ربما ذکرتُ قول الشاعر – الخ ، ابن عمررضى الله عنه وائى چه په وخت د دعاءاستسقاء کښې مې داقول دشاعر راياد شو،نوداداول روايت سره څه منافات نه لرى دابن عمررضى الله عنه دې داشعررايادشوې هم ئې اووئيلې دې ئې هم وى،

ددې نه علاوه نور دلائل په جوازدتوسل هم موجود دى اوپه ماذکرناکښې اکتفاء ده،اواکثر محقيقن محدثين اواواصحاب دمذاهبؤاربعؤددې قائل دى اوهغوئ ته داسې نسبت کول، جاهلان،متجاهلان،په عواموتلبيس حق کوونکى،بناسپتى ديوبندى.وغيره قبيح الفاظ دهغوئ په باره کښې ډيرقبيح حرکت دې،(والله الهادى الى سواء السبيل)،

﴿ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ داتخويف اخروى دې هغه چا ته چه په هغوئ کښې دغه مخکښنى اوصاف.نه وى موجود،تقوى،فعل الطاعات،ترک السئيات،(لو) په فرضيات کښې مستعمليږى،يعنى که بالفرض داسې اوشى چه دمشرک سره دقيامت په ورځ دټولې دنياټول دولتونه شى،اوددې مثل ورسره شى اودې هغه په فديه اوجرمانه کښې ورکول غواړى نودابه نشى قبلولې،په حديث دبخارى کښې دى چه دقيامت په ورځ به الله تعالى دادنى جهنمى نه تپوس اوکړى که تاله ټوله زمکه دسروزروډکه درکړې شى نوآياته به ئې دعذاب نه دبچ

کيدو دپاره فديه کښي ورکړي، هغه به اووائی چه (هو! يا ربه!) نو الله تعالى به ورته اوفرمائی چه ما ستاسو نه په دنيا کښي ددي نه دآسان څيزمطالبه کړي وه چه ايمان راوړه شرک مه کوه مګرتا ددي نه منع کړي وه.

(فائده) ددي حديث نه دامعلومه شوه چه دايمان دولت ددنيا دتمامو دولتونو نه ډيرغوره دي، (اللهم ارزقنا ايمانا كاملا ويقينا صادقا).

﴿يُرِيدُونَ﴾ اراده په معنى دتمنى اوحسرت سره دي، اوداخوښکاره خبره ده چه په عذاب اليم دائمى کښي به د دوزخيانو خومره تړپ اوارمان وى دجهنم نه دخلاصيدلو، ليکن الله تعالى فرمائی ﴿وَمَا هُم بِخَٰرِجِينَ مِنْهَا﴾ نه به شي وتلي، نومعلومه شوه چه مؤمن به څه ناڅه وخت کښي دجهنم نه وتلي شي اوهميشه به پکښي نه وى ﴿مُّقِيمٌ﴾ په معنى د دائم ثابت سره دي.

| |
|---|
| وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوٓا أَيْدِيَهُمَا جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا نَكَٰلًا |
| اوغلا کونکي سړي اوغلاکونکي ښځه نو پرېکړئ لاسونه ددوئ داسزادهغه څه ده چه کړي دی دوئ عبرتناکه سزا |
| مِّنَ ٱللَّهِ ۗ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۝ فَمَن تَابَ مِنۢ بَعْدِ ظُلْمِهِۦ |
| دطرفه دالله نه، اوالله زورآور اوحکمتونو والا دي . نوچاچي توبه اوکړه روستو دظلم خپل نه |
| وَأَصْلَحَ فَإِنَّ ٱللَّهَ يَتُوبُ عَلَيْهِ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝ |
| او نيک ئی کړو عمل خپل نو بېشکه الله قبلوی توبه دده ، بېشکه الله بخښنه کونکي رحم کونکي دي |
| أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ ٱللَّهَ لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۗ يُعَذِّبُ مَن يَشَآءُ |
| آيا نه پوهيږې ته چي بېشکه الله لره ده بادشاهی دآسمانونو اودزمکي ، عذاب ورکوی هغه چاته چي اوغواړی |
| وَيَغْفِرُ لِمَن يَشَآءُ ۗ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ۝ |
| او بخښنه کوی هغه چاته چه اوغواړی، اوالله په هرڅه قدرت لرونکي دي |

﴿وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ﴾ داهم دماقبل سره متعلق دي چه دمسئلي دبيانولو نه بعد خاموش مه کښينئ بلکه جهاد کوئ اوحدود جاری کوئ، نو دلته دحدِسرقه ذکردي، سرقه په لغت کښي مطلق غلاته وائی اوپه اصطلاح کښي (اخذمالِ محرزخفية) دلته دمذکر(والسارق) اودمؤنث

(والسارقة) دواړوذکردي.نوپه دي کښې اشاره ده چه په حدِسرقه کښې مذکراومؤنث يوشان دی اود دواړوپه سزاکښې څه فرق نشته دې اودمؤنث دضعف دوجه نه په سزاکښې څه تخفيف نشته دې.

اوتقديم دمذکراوشوپه مؤنث باندې اوپه سورةِ نورکښې دحدِزناپه باره کښې تقديم دمؤنث شويدې ﴿ ٱلزَّانِيَةُ وَٱلزَّانِي فَٱجۡلِدُواْ ﴾ څکه زنادښځودپاره زيات قبيح او شرم اوعاردې څکه چه زنانه مستوره وی نوتقديم د اقبح شويدې دپاره دتنفير، اوسرقه دنارينه نه زياته قبيحه ده څکه چه دوئ قدرت دکسب لری اوکسب نه کوی بلکه غلاکوی نودلته هم تقديم دا قبح شوې دې، ياتقديم دمذکرداصالت دوجه نه شويدې څکه مذکراصل دې حتّی چه په اکثرواحکاماتو کښې اکتفاء شوٓيده په خطاب دمذکرينوسره اودمؤنث ذکربالاستقلال چه کيږی نودابه دځه نکتې دپاره وی (کماذکرناههنا) اوهم دارنگه سرقه دنارينه نه کثيرالوقوع ده نوځکه ئې تقديم اوشو اودسارق اوسارقه نه مرادهرسارق اوسارقه نه دی بلکه هغه مراد دی چه بالغ وی عاقل وی نوپه نابالغ اومجنون باندې حدِسرقه نشته دې،اومالِ مسروقه به دچامملوک وی نوپه سرقه دکفن سره هم حدنشته دې عندالاحناف،اومال به محفوظ وی اومشترک به نه وی اود (١٠) لس شرعی درهموياديودينارنه به کم نه وی عندالاحناف،اوپه نزددنوروائموبه دربع دينارنه به کم نه وی اودنوروجزئياتوتفصيل فقهاؤکړيدې اود﴿ فَٱقۡطَعُوٓاْ ﴾ نه مرادمعنی حقيقی دقطع ده، يعنی داسې پريکول چه لاس دباقی بدن نه جداشی اومعنی مجازی دقطع زخمی کول دی لکه په سورت يوسف کښې ﴿ وَقَطَّعۡنَ أَيۡدِيَهُنَّ ﴾ دامعنی مجازی مراد ده،اودلته معنی حقيقی مرادده اوپه سلفوکښې هيچادلته معنی مجازی نه ده کړې او﴿ أَيۡدِيَهُمَا ﴾ نه ښی لاسونه مراد دی په وجه دحديث سره اودعمل دخلفاء راشدينوسره، اوپه قرات دحضرت عبدالله بن مسعودرضی الله عنه کښې (ايمانهما) دې، (ايدی) جمع ده ليکن مرادترينه تثنيه ده،يعنی يمين دسارق اويمين دسارقه،اونحويان وائی چه چونکه اضافت دځيزخپل نفس ته لکه اضافت دتثنيه،تثنيه ته ثقيل اوشنيع دې نودې وجه نه په وخت داضافت کښې به دتثنيه په ځائې جمع ذکرکيږی لکه ﴿ فَقَدۡ صَغَتۡ قُلُوبُكُمَا ﴾ ای قلباکما،﴿ جَزَآءَۢ بِمَا كَسَبَا ﴾ جزاء پوره اومناسب بدلې ته وئيلې شی نوپه دې کښې اشاره ده چه قطع دید،مناسبه سزاده څکه چه سرقه په يد سره کيږی،

اوکه څوک **سوال** اوکړی چه بیاخوزناپه ذکرسره کیږی نوپه حدِزناکښې دې قطع دذکر او شی هغه مناسبه سزاده،

**جواب** ئې دادې چه دلاس دقطع کولوپه وجه انسان دمنفعت نه بالکلیه نه محروم کیږی او ددې وجه نه فقهاء وائی چه که دسارق دښی لاس پریکولونه بعدئې غلااوکړه نوچپ لاس به ئې نشی پریکولې ددې دپاره چه دمنفعت نه بالکلیه محروم نشی بلکه چپه خپه به ئې پریکولې شي اوکه بیائې هم غلااوکړه نوبیاقطع نشته دې بلکه قیدکول دی.اوپه خلاف دقطع دذکرنه څکه چه په دې سره قوتِ رجلی (مردانه) بالکل ختم شی نوهغه مناسبه سزانه ده،

اوکه څوک داسې **سوال** اوکړی چه دیت دلاس (**۵۰۰**) پنځه سوه دیناره یا(**۵۰۰۰**) پنځه زره درهمه دی.(نصف دیت) نوپه سرقه دیودینار(عندالاحناف) یاربع دینار(عندالجمهور) یا لس درهموسره لاس قطع کول څنګه مناسبه سزاده،(کمافی روح المعانی،اعترض الملحدالمعری علی وجوب قطع الیدبسرقة القلیل فقال)

شعر: **یدء بخمس مئین عسجدودیت** **ما بالها قطعت فی ربع دینار**

یوعالم داسې جواب اوکړو: (اذاکانت الید امینة کانت ثمینةً واذاخانت هانت)، یعنی لاس چه امانت داروونه قیمتی وواوچه خیانت ئې اوکړونو بې قیمته شو(عثمانی) اوعلامه علم الدین سخاوی ئې جواب په دې شعرسره ورکړو

شعر: **عِزُّالامانة اغلاها، و ارخصها** **ذُلُّ الخیانة فافهم حکمة الباری**

روح المعانی په حواله دابن عربی سره لیکلی دی چه سزادسارق په مخکنوشریعتونو کښې استرقاق یعنی غلام ګرځول وو،چه سارق به دچانه سرقه اوکړه نوسزائې داوه چه دې به دهغه غلام وی.اوداسې هم وئیلې شویدی چه داحکم دزمانې دموسی علیه السلام پورې ووبیا منسوخ شو.نوبِناپه اول داحکم ناسخ دماقبل دې اوبِناپه ثانی داحکم مؤکِدِ دنسخ دې،

﴿وَاللّٰهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ په ذکرد(**عزیز**) (زوره ور) کښې اشاره ده چه الله تعالی حاکم مطلق دې. د یوجرم چه کومه سزامقررکړی نوهیچالره په هغې حق داعتراض نشته دې اوپه (**حکیم**) کښې اشاره ده چه دالله تعالی هرحکم دحکمتونونه ډک وی نودسرقه چه کومه سزائې مقررکړیده نوهغه عین د حکمت مطابق ده.

امام رازی رحمه الله دلته په حواله داصمعی رحمه الله حکایت نقل کړیدې،اصمعی رحمه الله وائی چه مادا آیت دیوبَدَوی عربی په مخکښې تلاوت کړواوپه غلطئ سره مې دلته (**والله**

**غفور رحيم**) اووئيل نو اعرابي اووئيل چه دايعني (**والله غفوررحيم**) دچاكلام دي نوماووئيل چه داالله تعالى كلام دې نوهغه اووئيل چه داسې كلام دالله تعالى نشي كيدې نوزه يخپله غلطۍ پوهه شوم نو (**عزيزحكيم**) مې اولستلو.نوهغه اووئيل چه داالله تعالى كلام دې ځکه چه دسزاسره مناسب صفت (**عزيزحكيم**) دې.﴿ فَمَن تَابَ ﴾ په دې آيت كښې ترغيب دې توبې ته دجرم نه،اومرادصحيح شرعۍ توبه ده چه مال مسروقه مالك ته واپس كړي ياترينه معافي حاصله كړي.﴿وَأَصْلَحَ ﴾ يعني په آئنده كښې دغه سې حركت نه كوي نود(**تاب**) تعلق دماضي سره دې اود(**اصلح**) تعلق دمستقبل سره دې ﴿ فَإِنَّ اللَّهَ يَتُوبُ عَلَيْهِ ﴾ په توبه گناه معاف شي،اوحدنه ساقطيږي،اودا قول دامام ابوحنيفه رحمه الله امام مالك اويوروايت دامام شافعي رحمه الله نه دې ﴿ أَلَمْ تَعْلَمْ ﴾ ددې تعلق (**لقدكفرالذين قالوا ان الله هوالمسيح ابن مريم**) سره دې.او(**الم تعلم**) تعبيرسره ياد دهاني ده اصلِ مضمون ته يعني مضمون دنفي دشرك في التصرف ته ﴿وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ په دې كښې دحصرمعنى ده (اى لاعيسى ولاغيره)

يَٰٓأَيُّهَا الرَّسُولُ لَا يَحْزُنكَ الَّذِينَ يُسَارِعُونَ فِي الْكُفْرِ مِنَ الَّذِينَ قَالُوٓا

اې رسوله ! ندې غمژن كوي تا لره هغه كسان چې تادي كوي په كارونو دكفر كښې دهغه كسانو نه چې وائي

ءَامَنَّا بِأَفْوَٰهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِن قُلُوبُهُمْ ۛ وَمِنَ الَّذِينَ هَادُوا ۛ سَمَّٰعُونَ

پخپلوخلو،ايمان راوړې دې مونږ او ايمان نه وي راوړې زړونو ددوئ. او ديهوديانونه. غوږ ايږدي دپاره

لِلْكَذِبِ سَمَّٰعُونَ لِقَوْمٍ ءَاخَرِينَ لَمْ يَأْتُوكَ ۖ يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ

ددروغوجوړولو په تاباندې، غوږ ايږدي (جاسوسي كوي) دپاره دقوم نورچې نه وي راغلي تاته، تحريف اوتغيركوي په كلماتودتورات كښې

مِنۢ بَعْدِ مَوَاضِعِهِۦ ۖ يَقُولُونَ إِنْ أُوتِيتُمْ هَٰذَا فَخُذُوهُ

روستو د ثبات دهغې نه پخپل ځايونو كښې. وائي دوئ كه دركړې شي تاسوته داحكم نوقبول نې كړئ

وَإِن لَّمْ تُؤْتَوْهُ فَاحْذَرُوا ۚ وَمَن يُرِدِ اللَّهُ فِتْنَتَهُۥ فَلَن تَمْلِكَ

اوكه درنكړې شي دا حكم نوځان بچ اوساتئ، اوڅوك چې اوغواړي الله گمراهي د هغه نوهيچرې اختيار نه لرې ته

لَهُ مِنَ اللهِ شَيْـًٔا ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَمْ يُرِدِ اللهُ اَنْ يُّطَهِّرَ قُلُوْبَهُمْ ؕ

دهغه دپاره په نيزد دالله هيڅ څيز(هدايت)، داهغه کسان دي چې نده ارده کړې الله چې پاک کړی زړونه ددوی

لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ ۖۚ وَّلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۝ سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ

دوئ دپاره په دنيا کښې رسوائي ده او دوئ دپاره آخرت کښې عذاب لوئې دې . ښه آوريدونکی دی دوئ دروغو له

اَكّٰلُوْنَ لِلسُّحْتِ ؕ فَاِنْ جَآءُوْكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ اَوْ اَعْرِضْ عَنْهُمْ ۚ وَاِنْ تُعْرِضْ

ډيرخوړونکي دی دوئ حرامو لره، پس که راشي دوئ تاته نو فيصله اوکړه په مينځ ددوئ کښې يا مخ واړوه ددوئ نه، اوکه ته مخ واړوې

عَنْهُمْ فَلَنْ يَّضُرُّوْكَ شَيْـًٔا ؕ وَاِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ ؕ

ددوئ نه نو هرگز ضرر نشی رسولې تاته هيڅ څه ، او که فيصله کوله تا نو فيصله اوکړه په مينځ ددوئ کښې په انصاف سره.

اِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ۝

بيشکه الله محبت کوی د انصاف کونکو سره .

﴿يٰٓاَيُّهَا الرَّسُوْلُ﴾ په اوله حصه دسورت کښې دنفي دشرک فعلي اونفي دشرک اعتقادی تفصيلي بيان نه بعد ،الله تعالى تسلي ورکوی رسول پاک صلى الله عليه وسلم ته،يعنی هرکله چه تادشرک فعلي اوشرک اعتقادی تفصيلارداوکړونواوس چه څوک په شرک فعلي اواعتقادی کښې مبتلادی اوډيرپه رغبت اومينه سره دشرک کارونه کوی نوهغوئ دې تاپه غم کښې وانه چوی اوتادې پريشان نه کړی دوئ تاته هيڅ ضرراونقصان نشی رسولې،

﴿لَا يَحْزُنْكَ﴾ نه مراد دادې چه ته مه پريشانه کيږه،دوئ ته تاته ضررنقصان نشی رسولې،نومقصودتسلي ورکول دی رسول الله صلى الله عليه وسلم ته،اومنع مقصودنه ده ځکه حزن طبعي غيراختياری امردې اونهي داختياری څيزنه کيږی،بل داچه په کفراومعصيت باندې خفگان کول ضروری دی،نوددې وجه نه داظاهری مطلب مرادنه دې بلکه تسلي مراد ده

﴿مِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا﴾ دابيان د(**الذين يسارعون فى الكفر**) دې،چه دادوه فرقې دی اوله فرقه هغه ده چه په ژبه دايمان اقرارکوی اودشرک فعلي اواعتقادی نه دبيزاری اظهارکوی ليکن په زړه کښې ئې ايمان نشته دې بلکه دکفراوشرک پليتی پکښې پرته ده، اودويمه فرقه هغه ده

چه دواړه قسمه شرک علانیه کوی چه یهودیان دی چه عزیر علیه السلام ته اِله وائی، اوهغه متصرف فی الامورگڼړی، اودهغه په نوم نذر و نیازورکوی،

﴿سَمّٰعُونَ لِلْكَذِبِ﴾ داصفت دیهودیانودې، «سمّٰعون» خبردمبتداء محذوف دې (ای هم سمّٰعون) اودکذب نه مرادهغه شرکیه اعمال اوعقائید دی چه احبارواورهبانوبه بیانول کشرانو(مریدانو، شاگردانو) به قبول، بلاتحقیقه اوداتقلید مذموم ؤوچه په مقابله دحکم دالله تعالی کښې ؤو، اوتقلید دائمومجتهدینو داسې نه دې، (والله الهادی) (سَمّٰعُوْنَ) کښې سمع په معنی دقبلولوسره دې لکه (سمع الله لمن حمده). مطلب دادې چه دوئ شرکی عقائد، شرکی اعمال دیرزیات قبلوی اوحق نه قبلوی، ﴿سَمّٰعُونَ لِقَوْمٍ ءَاخَرِينَ﴾ دادویم صفت ددوئ دې یعنی دوئ جاسوسان دی. «لقوم» موصوف دې «اخرین» ئې صفت اول دې، ﴿لَمْ يَأْتُوكَ﴾ ئې صفت ثانی دې ﴿يُحَرِّفُونَ﴾ ئې صفت ثالث دې ﴿يَقُولُونَ﴾ ئې صفت رابع دې،

ددې آیت په شانِ نزول کښې دوه واقعې مذکورې دی، (۱) یودقتل او (۲) دویمه دزِنا.

داولې واقعې تفصیل دادې چه بنی قریظه اوبنی نضیرچه دیهودودوه قبیلې وې اود مدینې منورې نه گیرچاپیره آبادې وې، بنوقریظه مغلوب اوکمزوری ؤواوبنونضیرغالب او زوره ورؤو، نوددې وجه نه بنوقریظه په دې مجبورشوی ؤوچه دوئ دبنونضیروسره داسې معاهدې کړې وه چه که چرته بنی نضیرودبنوقریظؤنه څوک قتل کړونوقصاص به نه وی بلکه صرف دیت به وی چه (۷۰) وسق (ستې) کجوری دی اوکه چرته معامله برعکس اوشوه، یعنی بنو قریظؤدبنی نضیرونه قتل اوکړونوقاتل به هم قتلولې شی (قصاص) اودیت به هم وی اودوچند دیت به وی، اودارنگه دمؤنث به بدل کښې به مذکرقتلولې شی اودیوپه بدله کښې به دوه قتولې شی، اودغلام به بدله کښې به حُرقتلولې شی، اودارنگه په قصاص بالاطراف کښې به دیوعضولکه یولاس په بدله کښې به دوه لاسونه پرې کولې شی، اوهرکله چه نبی صلی الله علیه وسلم مدینې ته تشریف راؤړو، نوداسلام عدل اوانصاف ټولوخلقواولیدو، اوپه دې وخت کښې داسې واقعې پیښه شوه چه بنی قریظؤدبنی نضیرونه قتل اوکړونوبنو نضیرو دبنو قریظؤنه دخپلې معاهدې مطابق د ذوچنددیت اوقصاص مطالبه اوکړه نوبنوقریظؤنه انکاراوکړواو وې وئیل چه مونږاوتاسودیوخاندان، یوملک، اویومذهب خلق یونومونږدا غیر منصفانه معامله نه برداشت کوؤ، نوبنونضیروچه داواوریدل نودیرپه غصه کښې راغلل او

اشتعال پکښې پیدا شواوقریبه وه چه جنګ شروع شي.لیکن بیاهم دبعضِ مشرانوپه وینااومشورې سره داسې مقرره شوه چه دامعامله دنبی صلی الله علیه وسلم حضورته یوسی اوهغوئ صلی الله علیه وسلم به فیصله اوکړي.فریقین په دې متفق شو.بنوقریظه خوپه دې راضی ؤوچه فیصله دحضورصلی الله علیه وسلم دربارته لاړه شي او دوئ دظلم دبنونضیرونه خلاص شي.لیکن بنونضیروخیل مخکنی قانون پرېښودلوته تیار نه ؤو.اونبی صلی الله علیه وسلم ته فیصلې اوړلوباندې متفق شوی هم ؤو.نوددې وجه نه دوئ داسې سازش اوکړوچه نبی صلی الله علیه وسلم ته دمقدمې پیش کولونه مخکې ئې څه کسان دنبی صلی الله علیه وسلم حضور ته اولیږل.اودغه کسان په ظاهرکښې کلمه ګومسلمانان ؤواوپه حقیقت کښې کافران او منافقین ؤو.اومقصوددې نه داؤوچه دنبی صلی الله علیه وسلم نظریه معلومه کړي.اودوئ ته ئې ددې خبرې تاکیداوکړوچه که نبی صلی الله علیه وسلم زمونږدقانون مطابق فیصله کوی نوقبوله ئې کړئ اوکه زمونږدقانون مطابق فیصله نه کوی نودمنلووعده ورسره مه کوئ.

اود دویمې واقعې تفصیل دادې چه دخیبرپه یهودیانوکښې واقعه دزناپیښنه شوې وه. اودتورات دحکم مطابق هغوئ رجم کول ؤومګردادواړه (زانی مزنیه) دیولوئې خاندان خلق ؤو.نودیهودیانواراده وه چه دوئ ته آسانه سزاورکړې شی.رجم سخته سزاوه.نودوئ داخیال اوکړوچه دنبی صلی الله علیه وسلم په ملت کښې آسانی اوتخفیف دې.نوددې معلوماتودپاره بنونضیرود خپل قوم څه کسان دحضورصلی الله علیه وسلم خدمت ته اولیږل.چه تاسودنبی صلی الله علیه وسلم نه حکم دزنامعلوم کړئ.که دده په ملت کښې آسانه سزاوی نوقبوله ئې کړئ اوکه سخته سزاوی نومه ئې قبلوئ. نودغه کسان (وفد) چه په هغوئ کښې کعب بن اشرف (دیهودیانوسردار) هم ؤو.دنبی صلی الله علیه وسلم په حضورکښې حاضرشو.اوسوال ئې اوکړوچه که محصن اومحصنه زنااوکړی نود دوئ څه سزا ده.نونبی صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل چه آیاتاسوبه زمافیصله اومنئ.دوئ اقراراوکړو.په دغه وخت کښې جبرائیل علیه السلام تشریف راؤړواوداحکم نازل شوچه د دوئ سزاقتل دې په رجم کولو سره.نودوئ چه دافیصله واؤریدله نودمنلونه ئې انکاراوکړو.نوجبرائیل علیه السلام نبی صلی الله علیه وسلم ته داسې مشوره ورکړه چه زمادفیصلې منلواونه منلودپاره ابنِ صوریاحَکَم جوړکړئ. نو نبی صلی الله علیه وسلم دوئ ته اووئیل چه ابن صوریاپه تاسوکښې څنګه سړې دې نودوئ

وونيل چه به يهوديانو كښې په مخ دزمكه دهغه په شان عالم نشته دې نونبي صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه هغه راؤغواړئ.نوچه هغه راغې نونبي صلى الله عليه وسلم هغه ته قسم وركړوسوس ئې نرينه اوكړوچه په دې باره كښې دتورات حكم څه دې؟ هغه اووئيل چه كه حرنه تاسوماته قسم نه وې.راكړې اوماته داخطره نه وې چه كه چرته زه غلطه خبره اوكړم نوسورات به ماا وسيزوى نومابه هرګزحقيقت نه وې ظاهركړې.حقيقت دادې چه دتورات حكم رجم دې سه شان داسلام.نونبي صلى الله عليه وسلم هغه ته اوفرمائيل چه بياولې تاسودهغې خلاف كوئ نوده وونيل چه وجه داده چه په مونږكښې يو شهزاده په دې جرم كښې مبتلاشوې ؤونومونږدهغه رعايت اوكړواوهغه مورجم نكړونوبياديو غريب سړى نه داجرم اوشونوهغه مورجم كول اوغوښتل نودهغه خاندان احتجاج اوكړو.چه كه رجم شرعي سزاوى نوشهزاده ته دې هم وركړې شى ګنى په مونږدې داسزاهم جارى نه شى نو يهوديانواصل حكم دتورات پرېښودو.اوآسانه سزائې تجويزكړه چه مخ تورول اوپه خر(حمار) باندې شاه په شاه دزانى اومزنيه سورول دى په دې باره كښې داآياتونه نازل شويدى. ﴿لَمْ يَأْتُوكَ﴾ يعنى دغه قوم دتكبردوجه نه تاته نه دى راغلى ﴿يُحَرِّفُونَ ٱلْكَلِمَ﴾ تحريف كوى په احكاماتودتورات كښې.

﴿مِنۢ بَعْدِ مَوَاضِعِهِۦ﴾ يعنى روستوددې نه چه هغه كلم په خپل اصلى مواضعوباندې قائم اوثابت ؤو.﴿يَقُولُونَ﴾ داصفت دقوم دې يعنى خيبروالايهوديانو نوركسان بنى نضير راليږلى ؤواوهغوئ ته ئې وصيت اوتاكيدكړې ؤوچه ﴿إِنْ أُوتِيتُمْ هَٰذَا﴾ په (هذا) كښې اشاره ده محرف حكم ته يعنى كه نبي صلى الله عليه وسلم تاسو ته دا آسانه سزا بيان كړه نو قبوله ئې كړئ اوكه سخته سزا وى نو مه ئې قبلوئ ﴿وَمَن يُرِدِ ٱللَّهُ فِتْنَتَهُۥ﴾ فتنه په معنى دګمراه كولواو رسواكولوياعذاب وركولوسره دې.دالله تعالى عادت تكويني دادې چه بنده ديوفعل عزم كوى نوالله تعالى دهغې تخليق كوى.نودوئ دخپل اصلاح عزم نه كوى بلكه په كفراو ګمراهئ باندې مصروى نوالله تعالى ددوئ دګمراه كولواراده كړې ده نوداقانون اوعادت الهى هيڅ څوك نشى ماتولې.نواراده دالله تعالى د دوئ دګمراهئ مرتبه ده د دوئ دګمراهئ په عزم باندې ﴿فَلَن تَمْلِكَ﴾ (اى لن تستطيع،لن تقدر)

﴿لَمْ يُرِدِ ٱللَّهُ أَن يُطَهِّرَ﴾ پاكوالې دكفراومنافقت نه په مشيت دالله تعالى سره دې اوددې نه رديه معتزلؤمعلوم شوچه هغوئ قائل دى په دې چه افعال دعبادو مخلوق دعبادودى.

﴿ سَمّٰعُونَ لِلْكَذِبِ ﴾ دادتاكيدديپاره دوباره ذكرشو.دسمع نه مراداوريدل اوقبلول دواړه دی اوداصفت په يهودوعوامواوخواصودواړوكښې دې ﴿أَكّٰلُونَ لِلسُّحْتِ ﴾ داصفت ديهودو دخواصو اواكابرودې چه رشوت،نذرانې،شكرانې به ئې اغستلې.اوددې دحصول دپاره ئې غلط احكامات،مسائل بيانول اوحقه خبره به ئې بالكل مسخ كوله. (اكال) صيغه د مبالغې ده.په كثرت اواصراربانديې دلالت كوی.او(سحت) هرهغه څيزدې چه حلال نه وی د هغې كسب. قرطبی دهغې ډيراقسام ليكلی دی اودارنګه روح المعانی په روايت دبهيقی دابن مسعودرضی الله عنه نه ذكركړيدې چه (۱) رشوة الامام.(۲) ثمن الكلب.(۳) عسب الفحل.(۴) مهرالبغی. (۵) كسب الحجام.(۶) حلوان الكاهن.اودلته ترينه مرادرشوت دې.حضرت الشيخ رحمه الله فرمائی چه ددې نه مرادنذرانې،يعنی نذرلغيرالله دې.لكه صاحب دشامی دنذرلغيرالله په باره كښې ليكی.(و لانه حرام بل سحت) (ص۱۲۸جلد۲) مطبوعه مجتبائی قبيل باب الاعتكاف) ﴿ فَإِن جَآءُوكَ ﴾ يعنی كه دامسارعين فی الكفرتاته راشی نوستااختياردې چه كه ته فيصله كوې د دوئ په مينځ كښې ياترينه اعراض كوې يعنی فيصله نه كوې

ددې آيت په باره كښې دمفسرينودوه اقوال دی اول داچه داآيت منسوخ دې په روستو آيت سره چه (وان احكم بينهم بماانزل الله) سره.اوذمی چه اسلامی حاكم ته فيصله يوسی نوپه حاكم باندې فيصله كول واجب دی تخيرنشته دې،

اودويم قول دادې چه دامنسوخ نه دې ځكه چه كافرپه دوه قسمه دې.يوذمی دې.نود حاكم دپاره ضروری ده چه داهلِ ذمؤفيصله به كوی.اوبل هغه دې چه ذمی نه وی بلكه معاهد وی.لكه يهود دمدينې.هغوئ ذميان نه ؤوبلكه معاهدين ؤو.دنبی صلی الله عليه وسلم سره ئې معاهده كړې وه چه مونږبه تاته نقصان نه رسوؤ.اوستاخلاف به ستاد دښمن مددنه كوؤ.نوكوم كافر چه ذمی نه وی نودهغه په باره كښې حاكم ته اختياردې چه دهغوئ فيصله كوی اوكه نه ئې كوی.نوداآيت ددې قسم كافرانوپه باره كښې دې لكه قرطبی وائی. (هذا تخيير من الله تعالى ولايجب علينا الحكم بين الكفاراذالم يكونوااهل ذمةٍ بل يجوزالحكم ان اردنا) .امام رازی ليكی.(هذا التخييربالمعاهدين الذين لاذمة لهم) (كبير)،اوروستوتنې آيت په باره داهلِ ذمؤكښې دې. امام جصاص په احكام القرآن كښې د دواړوآيتونويه مينځ كښې

دغه شان تطبيق کړي دي.

﴿وَإِن تُعْرِضْ﴾ مخکښې دوه شقونه ذکرشو.يعنی فيصله کول.اعراض کول.نو اوس په هريو باندې تفريع ده.په دويم شق باندې تفريع اولاً کيږی.چه په صورت داعراض کښې احتمال ؤو.چه دوئ مزيد عداوت شروع کړی اوضرراورسوی نو ددې توهم ازاله اوشوه چه تاته هيڅ ضررنشی رسولې.او ددې توهم دازالې دتعجيل دپاره په شقِ ثانی کښې تفريع مقدمه شوه.

﴿وَإِنْ حَكَمْتَ﴾ داتفريع په اول شق ده يعنی که ته فيصله کوې نو دشرعی قانون مطابق ئې کوه اودهغوئ دقانون مطابق ئې مه کوه ددې مضمون بيان په څلوروعنواناتوسره دلته شويدې عنوان.(۱) اول دادې (فان جاءوک فاحکم بينهم اواعرض) (۲) دويم عنوان دادې (وان حکمت فاحکم بينهم بالقسط) (۳) دريم عنوان (وانزلنااليک الکتاب بالحق مصدقالمابن يديه من الکتاب ومهيمناعليه فاحکم بينهم بماانزال الله ولاتتبع اهواهم عماجاءک من الحق،ايت نمبر ۴۸) (۴) څلورم عنوان (وان احکم بينهم بماانزل الله الخ آيت نمبر ۴۹)،مقصود ددې مضمون تاکيددې چه فيصله ضرور بالضرروپه شرعی قانون سره کوه،څکه چه صرف دا انصاف دې اودادالله تعالی دطرف نه منزل دې اودشرعی قانون برخلاف فيصله کول دخواهشاتو اتباع ده،دحق اوانصاف اتباع نه ده.

| وَكَيْفَ | يُحَكِّمُونَكَ | وَعِندَهُمُ | التَّوْرَاةُ | فِيهَا | حُكْمُ | اللَّهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوڅرنګ به | دوئ تاله حکَم اومنصف اوګرځوی | حالانکه دوئ سره | تورات دې | په هغې کښې | فيصله | دالله ده |

| ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ ۚ وَمَا أُولَٰئِكَ بِالْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٣﴾ |
|---|
| بيا مخ اړوی دوئ روستو ددېنه ، اوندی دوئ مومنان |

﴿وَكَيْفَ يُحَكِّمُونَكَ﴾ داهم زجردې يهوديانوته چه دوئ تاله حکم نه منی اوکوم کسان چه دحُکم دقتل يادحکم دزناپه باره کښې معلومات کوی نومقصودئې امتحان دې عمل کول ئې مقصودنه دی څکه که چرته دوئ دالله تعالی په حکم باندې عمل کولې نودالله تعالی حکم په باره دقصاص اودرجم کښې په تورات کښې موجود دې ﴿فِيهَا حُكْمُ اللَّهِ﴾ ددې نه مرادرجم دې نومعلومه شوه چه رجم حکم دالله تعالی دې اوداهم معلومه شوه چه حکم درجم په قرآن پاک کښې په دې آيت کښې مذکوردې ﴿ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ﴾ (ثم) داستعباداودتعجب دپاره دې.

﴿وَمَآ أُولَٰٓئِكَ بِالْمُؤْمِنِينَ﴾ يعنى ددوئ نه په تاباندې اونه ستاپه كتاب ايمان شته اونه ئې په تورات ايمان شته،نودوئ بالكل مؤمنان نه دى

إِنَّآ أَنزَلْنَا التَّوْرَىٰةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ ۚ يَحْكُمُ بِهَا

بيشكه موږ نازل كړېدې تورات پدې كښې هدايت وو،دعقيدې،اورڼا وه،دعمل، فېصلې كولې په هغې سره

النَّبِيُّونَ الَّذِينَ أَسْلَمُوا لِلَّذِينَ هَادُوا وَالرَّبَّٰنِيُّونَ وَالْأَحْبَارُ

پيغمبرانوهغه كسان چې تابع وو حكم دالله. هغه كسانو لره چې يهوديان وو اوفيصلې كولې په هغې سره، خدائى خلقو اوعلماء

بِمَا اسْتُحْفِظُوا مِن كِتَٰبِ اللَّهِ وَكَانُوا عَلَيْهِ

په سبب ددې چې دوئ نگهبانان نگران مقرر كړې شوى وو په كتاب دالله باندې، او وو دوئ په هغې باندې

شُهَدَآءَ ۚ فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوا بِـَٔايَٰتِى ثَمَنًا قَلِيلًا ۚ

خبردار، پس مه يريږئ دخلقونه اويره كوئ خمانه اومه اخلئ په آياتونو خما پيسې،بدله،لږې ددنيا

وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْكَٰفِرُونَ ۝ وَكَتَبْنَا

اوچاچې فېصله اونكړه په هغې حكم چې نازل كړېدې الله نو دغه كسان دوئ كافران دى. او لازم كړې وو موږ

عَلَيْهِمْ فِيهَآ أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ

پدوئ باندې پدې تورات كښې چې بېشكه نفس ،تن، به قصاص كيږي په بدله د نفس كښې اوسترگه به

بِالْعَيْنِ وَالْأَنفَ بِالْأَنفِ وَالْأُذُنَ بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ

په بدله دسترگه كښې اوپوزه په بدله دپوزه كښې اوغوږ په بدله دغوږ كښې اوغاښ په بدله دغاښ كښې

وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ ۚ فَمَن تَصَدَّقَ بِهِۦ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهُۥ ۚ

اوزخمونه بدله ددوئ برابر ده، پس چاچې معافي اوكړه پدې قصاص سره نو دا كفاره ده دگناهونو دده .

وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الظَّٰلِمُونَ ۝

او چاچې فېصله اونكړه په هغه حكم چې نازل كړېدې الله نودغه كسان هم دوئ ظالمان دى

﴿ إِنَّآ أَنزَلۡنَا ٱلتَّوۡرَىٰةَ ﴾ په دې کښې زجردې يهوديانوته اوترغيب دې اتباع دتورات ته

﴿ فِيهَا هُدٗى وَنُورٞۚ ﴾ د(هدیٰ) او(نورٌ) فرق دادې چه نوربيان دعقيدې دې اوهدی بيان داحکامو اوشرائعودې اويا بالکعس د دې، او ياهدیً بيان دعقائدواواحکاماتودې اونور دفع دشبهاتوده

﴿ يَحۡكُمُ بِهَا ٱلنَّبِيُّونَ ٱلَّذِينَ ﴾ دادتورات داهميت اوشرافت اظهاردې.چه داهغه کتاب الهی دې چه دمخکنو.صدو.پيرونه معياردحق اودعدل راغليدې اوانبياء دبنی اسرائيلو اوحقانی علماؤ.اوربانی پيرانوددې مطابق فيصلې کړيدی.﴿ٱلَّذِينَ أَسۡلَمُواْ ﴾ داصفت کاشفه د (**نبيون**) دې ذکرشوېدې دپاره دمدح اوتعريض دې په يهودوچه دوئ تابعداری نه کوئ،

﴿بِمَا ٱسۡتُحۡفِظُواْ مِن كِتَٰبِ ٱللَّهِ ﴾ باء سببيه ده اوداسبب دې (**يحكم بهاالخ**) (**استحفاظ**) دې ته وائی چه دچانه داطلب اوسوال اوکړې شی چه ته دفلانې څيزحفاظت کوه،(**من کتاب الله**) کښې (**من**) بيانيه دې يعنی ددوئ نه ددې خبرې طلب کړې شوې ؤوچه دکتاب الله حفاظت کوی.او دوئ نګرانان نګهبانان مقررکړې شوی ؤوپه کتاب الله،

﴿وَكَانُواْ عَلَيۡهِ شُهَدَآءَ ﴾ دادويم سبب دې اوشهادت په معنی دعلم سره دې،

(**فائده**) دتورات انجيل حفاظت الله تعالی اجبارو رُهبانوته حواله کړې ؤواودقرآن د حفاظت ذمه الله تعالی پخپله اغستې ده.﴿فَلَا تَخۡشَوُاْ ٱلنَّاسَ ﴾ کتمانِ حق د دوو وجهو نه کيږی (۱) يره (۲) اوطمعه په ﴿فَلَا تَخۡشَوُاْ ٱلنَّاسَ ﴾ کښې داول رد دې اوپه ﴿وَلَا تَشۡتَرُواْ ﴾ کښې د دويمې طريقې منع ده.

﴿وَمَن لَّمۡ يَحۡكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡكَٰفِرُونَ ﴾ چاچه په قرآن فيصله اونکړه نوهغوئ کافردی په دې سره خوارج استدلال کوی چه مرتکب دکبيره کافردې ځکه چه په قرآن فيصله نه کول ګناه کبيره دی.اهلِ سنت والجماعت وائی چه کفرپه انکارکولوسره راځی.اوددې آيت متعددتوجهيات کوی.

(۱) داحکم خاص دې په يهودوپورې نولفظ د(**من**) په معنی دالذی سره دې (ای واليهود الذين لم يحکموابماانزل الله)، اودآيت مطلب دادې چه څوک چه شرعی حکم اوسزاپته کړی اوخود ساخته سزاته حکم شرعی وائی لکه يهودوچه داسې اوکړل،نودداسې خلقوپه کفرکښې هيڅ

شک نشته دې داتوجيه مروی ده.دعکرمه.ضحاک.اوابن عباس رضی الله عنه.اوحذيفه رضی الله عنه.موقوفًامرفوعًا(ابن جرير). (۲) دويم داچه ددې آيت تعلق داعتقادسره دې نه دعمل سره.د حکم نه مرادحکم قلبی اعتقادی دې نود(لم يحکم) معنی داده چه (لم يعتقد) دې.دحضرت عکرمه رضی الله عنه نه مروی ده (من لم يحکم بماانزالله جاحدًا له فقدكفر). (۳)دکفرنه مرادکفرحقیقی نه دې بلکه (کفردون کفرٍ) اوپه قرآن اوسنت کښې دااستعمال ډيرشائع کثيردې. ﴿ وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ ﴾ ضميرد(عليهم) راجع دې يهودیانوته اوداقرينه ده په دې،چه ماقبل حکم. هم ديهودودپاره دې. په شانِ نزول کښې چه اوله واقعه مخکښې ذکرشوه نوپه دې آيت کښې دهغې دحکم تفصيل دې چه يهودوبنی نضيرودهغې کتمان کړې ؤو.اوقرآن دهغې اظهاراوکړوچه په تورات کښې دقتل حکم قصاص دې،(خون کابدله خون) اوفرق نشته دې دشريف غيرشريف.مطلق نفس په بدله دمطلق نفس کښې دې هرڅوک چه وی،دهرخاندان نه چه وی.نارينه وی يازنانه وی،حُروی ياغلام،البته په قصاص فی الاطراف کښې دحُر،عبد. فرق نشته دې،نود﴿ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ ﴾ معنی داده چه (عين الحربعين الحر،وعين العبد بعين العبد) دغه شان﴿ وَالْأَنفَ بِالْأَنفِ ﴾ الخ. کښې هم دغه معنی ده په قرينه دآيت دسورتِ بقره سره هلته (الحربالحر) دې نوداآيتِ دهغې تفصيل دې چه هلته مرادقصاص بالاطراف دې،اودا رنګه دلته چه (ان النفس بالنفس) دې اوپه سورتِ بقره کښې (کتب عليکم القصاص فی القتلی) دې نو د دواړومطلب يودې چه قصاص فی النفس دې نوپه قصاص فی النفس کښې دحراوعبد، مذکر.مؤنث.فرق نشته دې اوپه قصاص فی الاطراف کښې ئې فرق شته دې، (وفی الهداية ولاقصاص بين الرجل والمراة فيمادون النفس،ولابين الحروالعبد،الخ ص۵٦۹جلد٤)،

﴿ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ ﴾ ماقبل کښې دځلوروحواسوذکرراغې،(۱) باصره، (العين بالعين)،(۲) شامه.(والانف بالانف)،(۳) سامعة، (الاذن بالاذن)،(۴) ذائقه ته اشاره ده په (والسن بالسن) کښې.اوپه (والجروح) کښې دباقی زخمونوذکردې،نوداتعميم بعدالتخصص دې،چه په دې کښې هم قصاص دې،(قصاص) (ای ذو قصاص،ای يقتص فيها)،په دې کښې به هم قصاص اغستې شی ليکن په شرط ددې سره چه په هغې کښې مساواة ممکن وی اوکه ممکن نه ؤونوبياپه کښې (حکومة عدلٍ) دې،يعنی يوعادل دې فيصله اوکړی چه ددې زخم دومره ديت دې

هغه به ورکولې شی. ﴿فَمَن تَصَدَّقَ بِهِۦ﴾ ضمیرد (بِهٖ) قصاص ته راجع دې اودا ترغیب دې معافی کولو ته یعنی چا چه معافی اوکړه اوقصاص ئې معاف کړوجانی ته،(جنایت کوونکی ته) نو الله تعالی به هم دده جرم معاف کړی،(ولی روایة رواه الدیلمی عن ابن عمرفیحط عنه من خطایاه بقدرماعفی عنه من جسده ان کان نصف الدیة فنصف خطایاه وان کان الدیة کلهافخطایاه کلها مختصرًا)، اوبعض مفسرین داسې مطلب بیانوی چه د (**فمن**) نه مراد جانی،مجرم دې اود (**تصدق به**) نه مراد دادې چه مجرم خپل ځان قصاص ته په خوشحالئ سره حواله کړی نوپه دې سره به الله تعالی دده جرم معاف کړی اوپه آخرت کښې به ورته سزانه ورکوی،﴿وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ﴾ (ای فی القصاص وغیره)، ﴿فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾ قصاص عدل دې نوچه څوک عدل ترک کړی نوګمراه شی اود هغه چاپه شان شی چه په (ظلمة) کښې روان وی،نوکه ترک عدل ئې عقیده اودین ګرځولې وی نودا اعلی قسم ظالم دې یعنی کافر،اوکه ترک دعدل ئې عقیده اودین نه وی نودا عاصی دې، نولفظ دظالم دواړوته شامل دې

| وَقَفَّيْنَا عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِم بِعِيسَى ٱبْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِّمَا |
|---|
| او رالیږلې وومونږ په نقش قدم ددوئ باندې عیسیٰ ځوئ دمریم تصدیق کوؤنکئ وو دهغه کتاب |
| بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ ٱلتَّوْرَىٰةِ ۖ وَءَاتَيْنَٰهُ ٱلْإِنجِيلَ فِيهِ هُدًى وَنُورٌ |
| چې مخکښې دده نه وؤ چې تورات دې. او ورکړې وؤ مونږ ده ته انجیل په دې کښې هدایت وؤد عقیدې او رڼا دَ عمل |
| وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ ٱلتَّوْرَىٰةِ وَهُدًى وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ ﴿٤٦﴾ |
| او تصدیق کوؤنکې وؤ دهغه کتاب چې مخکښې دده نه وؤ چې تورات دې اوهدایت اووعظ وؤ دپاره د متقیانو |

﴿وَقَفَّيْنَا عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِم﴾ په دې کښې دبنی اسرائیلود دویم کتاب انجیل ذکردې چه نازل ؤوپه حضرت عیسی علیه السلام باندې،﴿مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ (ای قبله) عیسی علیه السلام دنزول دانجیل نه مخکښې دتورات تابع ؤو .دهغې بیان ئې کولو .﴿وَءَاتَيْنَٰهُ ٱلْإِنجِيلَ﴾ بیا انجیل نازل شو اوبعض احکام دتورات منسوخ شو .﴿فِيهِ هُدًى﴾ په انجیل کښې احکامات ؤو .﴿وَنُورٌ﴾ دعقائدوبیان ؤو.یاد(**نور**) نه مراد بیان داحکاماتودې اود(**هدی**) نه مراددعقائدو دې. ﴿وَمُصَدِّقًا﴾یعنی انجیل تصدیق کوونکې ؤودتورات دپاره.توعیسی علیه السلام هم تصدیق دتورات کړیدې. او

انجيل هم تصديق دتورات کړيدي چه احکام دتورات حق اومن جانب الله دی.اوبعض ددغه احکاماتونه حکم دقصاص هم دي اوحکم درجم دزانی محصن هم دي.او تصديق کول منافی نه دي دنسخ دبعض احکاماتوسره.﴿وَمَوْعِظَةً﴾ زجراومنع کول دناحق نه

وَلْيَحْكُمْ أَهْلُ الْإِنْجِيلِ بِمَا أَنْزَلَ اللّٰهُ فِيهِ ط

او وئيل مونږ چې فيصله دې کوی انجيل والا په هغه حکم چې نازل کړيدې الله په انجيل کښې

وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللّٰهُ فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُونَ ﴿٤٧﴾

او چاچې فيصله اونکړه په هغه حکم چې نازل کړيدې الله نودغه کسان هم دوئ نافرمان دی

وَأَنْزَلْنَآ إِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتٰبِ

اونازل کړيدې مونږ تاته کتاب (قرآن) په حقه سره تصديق کوونکې دې دهغې چې مخکښې دده نه دی کتابونه

وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ أَنْزَلَ اللّٰهُ

اونګرانی کونکې دهغې. نو فيصله کوه په مينځ ددوئ کښې په هغې سره چې نازل کړيدې الله

وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَهُمْ عَمَّا جَآءَكَ مِنَ الْحَقِّ ط لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنْكُمْ

اوتابعداری مکوه دخواهشاتو ددوئ مخ اړونکې دهغې نه چې راغلېدې تاته حق. دهرچاد پاره مقرر کړيدې مونږ ستاسو نه

شِرْعَةً وَّمِنْهَاجًا ط وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ لِّيَبْلُوَكُمْ

شريعت اولويه لار. اوکه الله غوښتلې نوخامخابه ئې ګرزولې وئ تاسو يو امت ليکن الله غواړي چه آزمېښت اوکړي په تاسو

فِي مَآ اٰتٰكُمْ فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ط إِلَى اللّٰهِ

په هغه څه کښې چې درکړی دی تاسوته. نومخکښې کيږئ ديوبل نه په نېک کارونو کښې. خاص الله ته

مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٤٨﴾ لا

ورګرځېدل ستاسو دې ټولو. نوخبربه درکړی تاسوته په هغه څه باندې چې تاسو په هغې کښې اختلاف کوئ

﴿وَلْيَحْكُمْ أَهْلُ الْإِنْجِيلِ﴾ دلته (قلنا) مقدردې.يعنی اتباع دعيسى عليه السلام دې په احکامو

دانجيل حكم اوكړي،اوچه كوم احكامات دتورات منسوخ شويدي دهغې نه دې منع شي

﴿وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُوْلَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَـٰسِقُونَ﴾ داجمله درې ځله ذكرشوه اول.وار.

﴿هُمُ ٱلْكَـٰفِرُونَ﴾ دې،اوكافرون،كافرِحقيقي اوكفرِدون كفردواړوته شامل دې اودويم ځل

﴿هُمُ ٱلظَّـٰلِمُونَ﴾ دې داهم شامل دې كافراوفاسق ته،اودريم وار. ﴿هُمُ ٱلْفَـٰسِقُونَ﴾ دې اوداهم دواړوته شامل دې.اوددې نه معلومه شوه چه پرېښودل دحكمِ الهي سبب دكفراوظلم اودفسق دې،اوپه دې خاص ترتيب سره چه اول د(هم الكافرون)اوبياد (هم الظالمون) اوبياد (هم الفاسقون) ذكردې. ددې دپاره بعض حضرات دانكته وائي چه په اول كښې دايمانياتوذكرؤواومقابل دايمان كفر دې،نوددې وجه نه اول وارد (كافرون) ذكراوشو.اوپه دويم واركښې ذقصاص ذكردې او قصاص قانون دعدل دې اومقابل دعدل ظلم دې.نودلته ذكرد (الظالمون) مناسب شواوپه دريم ځائې كښې صفت دتقوى ذكردې، ﴿وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ﴾ اودتقوى مقابل فسق دې،نودلته د (الفاسقون) ذكرمناسب شو،اوبعضِ حضرات داسې نكته وائي چه كفر وصفِ مشترك ؤو،په مابين ديهوديانواونصاراؤكښې نوهغه اول ذكرشو.اوصفت دظلم په يهودوكښې غالب ؤو، حتى چه دوئ په خپلومخالفينوباندې هرقسم ظلم جائزګڼړي،نودهغوئ سره (الظالمون) مناسب ؤو،اوپه نصاراؤكښې عقيده دجواز،دظلم نه وه البته وصف دفسق،شراب نوشي،زنا،وغيره غالب ؤو،نودهغوئ سره ذكرد (الفاسقون) مناسب ؤو ﴿وَأَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ٱلْكِتَـٰبَ﴾ دتورات انجيل دذكرنه بعدقرآن كريم ذكردې چه دامونږپه حقه سره نازل كړې دې چه كذب اوشک په كښې نشته دې اوتصديق كوي دمخكنوكتابونو.

﴿مِنَ ٱلْكِتَـٰبِ﴾ نه مرادجنس دې.

﴿وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ﴾ قرآن نګران،نګهبان دې،دمخكنوكتابونواوپه هغې كښې چه چا تحريف كړې دې نوقرآن دمحرف حكم تصديق نكوي بلكه دغلطئ اودخباثت اظهاركوي.

﴿فَٱحْكُم بَيْنَهُم﴾ هركله چه قرآن داسې صفاتووالاكتاب دې نوپه دې سره حكم او فيصله كوه په مابين داهلِ كتابوكښې كله چه دوئ مرافعه اوكړي تاته،اود دوئ دخواهشاتو اتباع مه كوه.اود دوئ دمحرف حكم موافق فيصله مه كوه ﴿عَمَّا جَآءَكَ﴾ داحال دې اى معرضً

عادلاً ﴿عَمَّا جَآءَكَ مِنَ ٱلْحَقِّ ﴾ بيان د (**ماجاءک**) دې اوخطاب رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اوشو.اوحال داچه دنبی صلی الله علیه وسلم نه داخبره متصوره نه ده چه اتباع دخواهشاتو داهلِ کتابوبه اوکړی یابه اعراض د (**ماانزل الله**) نه اوکړی،نوپه دې کښې اشاره ده کمالِ اجتناب ته داتباع دخواهشاتودهغوئ نه،چه معصوم ته داسې حکم دې نوغیرمعصوم ته په طریقِ اولی سره دې،لکه، (**ولاتدع من دون الله مالاینفعک ولایضرک**) وغیره من الایات، ﴿لِكُلٍّ﴾ تنوین عوض دې دمضاف الیه نه په اصل کښې (لکلِ امۃٍ) ذې او﴿مِنكُمْ ﴾ خطاب، حاضرینو ته دې.چه مؤمنان اویهود،نصاری دې یا ټولوخلقوته دې،موجودخلق اوتیرشوی خلق.

﴿شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا ﴾ (**شرعة**) په کسره دشین سره اوفتح سره هم راغلې دې،په اصل کښې هغه لارې ته وائی چه په هغې باندې تللوسره سړې اوبوته اورسی.اوشارع لوئې لارې اوسړک ته وائی (قرطبی) اومرادپه دې سره دین دې چه په دې باندې تللوسره حیاتِ ابدی ته سړې رسی لکه چه اوبه سبب دحیاة دنیوی دې،اودلته د دواړونه مراد،یوځیزدې یعنی دین،خو(**شرعة**) ورته په اعتباردظهورسره وائی،یاورته په دې اعتبارسره وائی چه الله تعالی مشروع کړې دې.او (**منهاج**) ورته دتللوپه اعتبارسره وائی،اودابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه (**شرعة**) نه مرادسبیل دې یعنی دنبی تعلیمات اوکتاب،او(**منهاج**) نه مراددنبی تعامل اوسنت مراد دې او بعضو وئیلی دی چه د(**شرعة**)نه مطلقِ شریعت مراد دې اود(**منهاج**) نه کمالات دشریعت مراد دی او بعضوئیلی دی چه د(**شرعة**) نه فروع مراد دی اود(**منهاج**) نه اصول اواعتقادیات مراد دی.

اوددې آیت په تشریح کښې دمفسرینودوه قوله دی **اول** داچه داجمله مستانفه ده،اوپه دې کښې اهلِ کتابوته ترغیب ورکولې شی داتباع درسول الله صلی الله علیه وسلم په دې شانِ چه امة هغه خلقوته وئیلې شی چه دیونبی په زمانه کښې وی نوپه دغه خلقوباندې ددغه وخت دنبی اتباع ضروری وی، اوبیاچه روستو بل نبی راشی نودابل امت وی اوپه دوئ باندې ددغه بل نبی اتباع ضروری وی.وهکذا،نودحضرت موسی علیه السلام په زمانه کښې دهغه اتباع ضروری وه اود حضرت عیسی علیه السلام په زمانه کښې دحضرت موسی علیه السلام دشریعت احکامات منسوخ شواود حضرت عیسی علیه السلام اتباع ضروی شوه اوپه انجیل عمل کول ضروری شو، او دحضورصلی الله علیه وسلم په بعثت سره توارت انجیل منسوخ شواودحضورصلی الله علیه

وسلم اودقرآن اتباع ضروری شوه نودحضرت مجاهدرحمه الله نه داسې روایت دې.(لکل امة جعلناالقرآن شرعة ومنهاجاً)،

**اودویم قول** دادې چه داجواب دسوال دې هغه دادې چه که اهلِ کتاب اووائی چه زمونږ په تورات انجیل کښې خودقرآن نه خلاف احکام موجود دی لکه طریقې دمونځ،روژې وغیره نودې څنګه مصدق اومهمین دې نوپه دې آیت کښې جواب اوشوچه دغه اختلاف دفروعو دې.نوپه اصولوکښې اختلاف نشی راتلې،اوپه فروعوکښې راتلې شی دهرامت دپاره جداجدا فروع وی دیوامت احکام فرعیه په بل شریعت کښې منسوخ کیدې شی،لکه په حدیث کښې دی.(الانبیاء اِخوة لعلاتٍ، امهاتهم شتی ودینهم واحد)،یعنی انبیاء علاتی رونړه دی میندې (فروع) ئې جداجدادی اصول ئې یودی،لیکن داتکذیب نه دې، یعنی روستنې کتاب اوشرع دانه وائی چه دغه مخکنی حکم غلط ؤو،بلکه داسې وائی چه هغه حکم صحیح ؤو،خودخپل وخت دپاره ؤو. اودموجوده وخت دپاره حکم بدل شو.

﴿وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ لَجَعَلَكُمْ﴾ یعنی که چرته دالله تعالی اراده وې نوتاسوبه ئې په ټولوزمانو کښې په یوملت ګرځولې وې اونسخ اوتبدیل به نه وې لیکن دالله تعالی دغسې اراده نه وه او حکمت په کښې دادې چه په تاسوامتحان اوکړی،انسان چه دیوحکم سره عادت شوې وی نو هغه پریښودل اوبل اختیارول داکمال امتحان دې،خپله مرضی،پسند،عادت دالله تعالی دحکم دوجه نه پریښودل،دکمالِ اطاعت کمال ایمان علامه ده،یادامطلب دې چه روستودنزول دقرآن نه بیاهم خلق مختلف شویدی چاایمان راوړې دې اوچاکفرکړې دې نوداهم په اراده او مشیت دالله تعالی سره دې اوپه دې کښې حکمتِ الهی ابتلاءاوامتحان دې،

﴿فَٱسْتَبِقُوا۟ ٱلْخَيْرَٰتِ﴾ یعنی داختلاف دشرائعودوجه نه،تعصب مه کوئ بلکه دفائدې کارونوطرفته چه صحیح عقائد،اعمال احکام دی،سبقیت اوکړئ. (استباق) دبل چاپه مقابله کښې منډې وهلوته وائی یعنی دیوبل سره دنیکې په کارونوکښې سیالی کوئ،اوتعصب، ضد مه کوی.اوددې خبرې استحضاراوکړئ چه دقیامت په ورځ دټولوحاضری دالله تعالی په حضورکښې ده.نوچاچه باوجوددحق واضح کیدلونه صرف دضداوتعصب دوجه نه اختلاف کړیدې،نوالله تعالی دهغه ضداوتعصب ښکاره کړې اودهغې مطابق به ورته بدله ورکوی

﴿إِلَى ٱللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُم﴾ دداسې اخبارنه مقصودجزاء وسزاورکول وی،

وَاَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ

وحکم کبه بشی تاته ئجي فيصله کوه په مينځ ددوئ کښې په هغه کتاب سره چي نازل کړېدې الله اوتابعداری مکوه دخواهشاتو ددوئ

وَاحْذَرْهُمْ اَنْ يَّفْتِنُوْكَ عَنْۢ بَعْضِ مَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ اِلَيْكَ ؕ فَاِنْ تَوَلَّوْا

اوخان ساته ددوئ نه (هسي نه)چي واړوی تالره دبعضي هغه نه چي نازل کړېدې الله تاته. نوکه مخ اوګرځولو دوئ

فَاعْلَمْ اَنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّصِيْبَهُمْ بِبَعْضِ ذُنُوْبِهِمْ ؕ وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ

نوپوهه شه چي بېشکه دالله اراده ده چي اورسوی دوئ ته عذاب په سبب د بعضي ګناهونو ددوئ سره. اوبېشکه ډېر دخلقو نه

لَفٰسِقُوْنَ ۝ اَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُوْنَ ؕ وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ حُكْمًا

خامخا نافرمانه دی آيا نو فيصلې دجاهليت غواړی دوئ. اوڅوک زيات ښائسته دې دالله نه په فيصله کولو کښې

لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ۝

هغه قوم دپاره چي يقين کوی.

﴿ وَاَنِ احْكُمْ ﴾ دلته **(وامرك)** مقدردې،يعنی تاته داامرکوم.اوکشاف وغيره وائی چه دا عطف دې په (الکتاب) باندې په (**وانزلناالیک الکتاب**) کښې،(ای وانزلناالیک ان احکم- الخ) او دا تاکيد دې دماقبل حکم دپاره،چه اهلِ کتاب که چرته ستاحضورته راشی نوته د دوئ په مابين کښې فيصله دقرآن په حکم باندې اوکړه اود دوئ دخواهشاتو اومحرف احکاماتواتباع مه کوه اوپه آئنده کښې هم ددې پشان احتياط کوه چه چرته دا مکاران.چالاکان تالره د(**ماانزل الله**) نه وانه ړوی.د(**ماانزل الله**) اړول.دنبی صلی الله علیه وسلم په حق کښې احتمال نه ؤ.نوبيادې حکم کولو فائده داده چه داقصدکول،هم موجب داجراوثواب دې په حق دنبی صلی الله علیه وسلم کښې اوامتيانوته تنبيه ده،چه ديهودواونصاراؤدتلبيس نه ځان بچ اوساتی﴿ عَنْۢ بَعْضِ مَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ اِلَيْكَ ﴾ يعنی دبعضونه اوړيدل ګناه دې نوډيرونه اوړيدل خوډيرګناه دې. ﴿فَاِنْ تَوَلَّوْا﴾ که چرته دوئ باوجود دوضوح دحق نه اعراض اوکړی ستادفيصلې منلونه. نو بيا پوهه شه چه دالله تعالی دا اراده ده چه دوئ ته په دنياکښې سزادقتل.اودغلامئ ورکړی. لکه چه ديهودديانوسره داسې کاراوشو.اوداسزادبعضِ ذنوبُ (جرمونو) ده.اوپوره سزادکفربه ورته په آخرت کښې ورکولې شی.اوپه دوئ کښې ډيرفاسقان دی نوددوئ دفسق په

وجه ورته سزا په دنيا آخرت كښې وركولې شي،نو دوئ ته په سزا ملاو يدلو باندې مه خفه كيږه.

﴿ أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ﴾ او په دې آيت كښې تصريح ده،چه اعراض دتحكيم دقرآن نه سبب دعذاب دې،مدخول دهمزه چه معطوف عليه دې مقدر دې (اى،ايتولون عن حكم الله فيبغون حكم الجاهلية) يعنى دا اهلِ كتاب ستا دفيصلې نه چه د دوئ دكتاب سره موافق ده.اعراض كوى. اوداسمانى شرائعو خلاف،اختراعى دجاهليت فيصله ستانه غواړى.داڅومره قبيح څومره جرم دې.اوجهل اودتعجب خبره ده،اودالله تعالى دفيصلې سره برابره،يادې نه غوره فيصله دهيچانشى كيدې ليكن دادهغه چاپه نيزچه يقين اوايمان لرى.(لِقَوْمٍ) په معنى د(عندقوم) دې.

(فائده) داسلامى فيصلې نه خلاف فيصله حق ګڼل كفر دې،اوداسلامى قانون نه خلاف قانون باندې فيصله كول،چه حق ئې نه ګڼړى ګناهِ كبيره اوفسق اوظلم دې.برابره خبره ده چه صرف يهوديت،نصرانيت وى.اوكه مخلوط وى داسلام اويهوديت،نصرانيت نه.(لكه پاكستانى قانون).اودې ته،د(عدالت) نوم وئيل خطرناك لفظ دې.داخوضلالت (كفرى قانون) ته عدالت وئيل دى.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَمَن

اې ايمان والو[1] مه نيسئ يهوديان اوعيسايان دوستان، ځينې ددوئ نه دوستان دبعضودى. اوچاچې

يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٥١﴾

دوستى اوكړه ددوئ سره ستاسونه نو بېشكه هغه به ددوئ نه وى. بېشكه الله هدايت نه كوى قوم ظالمانوته

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ديهودو اونصاراؤدخباثتونو اوبداعمالوذكركولونه روستو. مسلمانانو ته دترك موالات حكم دې،چه د دوئ سره دوستى تعاون مه كوئ،بلكه ديوبل سره دوستى محبت كوئ،دوئ ستاسو په مقابله كښې ديوبل سره تعاون،محبت كوى،نوتاسود دوئ نه دخيرتوقع اوامید مه لرئ.

﴿ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ﴾يهودى ديهودى دوست وى،نصرانى دنصرانى دوست وى.نوپكار ده چه مسلمان دې دمسلمان دوست وى، يادامطلب دې چه يهودنصارى اګركه په خپل مېنځ

1 - ديهودونصارې سره ترک موالات اوكړئ اوديوبل سره محبت كوئ.

کښې مخالف او دښمنان دی لیکن ستاسو په مقابله کښې بیا دیوبل دوستان دی نو ددې وجه نه د دوئ نه دخیر طمع توقع مه لرئ، نو په دې کښې بیان دعلت دې، دنهی دپاره،

﴿وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ﴾ دا زجر او وعید دې په موالات د دوئ، یعنی څوک چه ددوئ سره دوستی اوکړی په څه طریقه سره نو دې به په دغه اعتبارسره دهغوئ نه وی، نو که عقیدةً دوستی اومحبت ؤو، نو هغه به حقیقةً یهودی نصرانی وی لکه منافقین . اوکه په عقیده کښې نه وی بلکه په رسم رواج، لباس وغیره کښې وی نو په دغه اعتبارسره یهودی دې نصرانی دې، لکه په حدیث کښې دی، (من تشبه بقوم فهومنهم)، مرادتشبه ده، په امورودین دهغوئ کښې لکه د هغوئ په عید کښې شرکت کول، دهغوئ پشان لباس، دصلیب شکل استعمالول.

﴿لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ﴾ دظالمینونه مرادهغه دی چه ظلم کوی په خپل ځان په سبب د دوستئ ددوئ (ظلموا انفسهم بموالات الکفار، (شربینی)، د(**لایهدی**) معنی داده چه داسې خلقوته ددین پوهه نه نصیب کیږی.

| |
|---|
| فَتَرَى الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يُسَارِعُونَ فِيهِمْ يَقُولُونَ |
| پس وینې (١) به ته هغه کسان چې په زړه کښې ئې مرض دې تیزی به کوی دوئ په دوستانه د دوئ کښې، وائی دوئ |
| نَخْشَىٰ أَن تُصِيبَنَا دَائِرَةٌ ۚ فَعَسَى اللَّهُ أَن يَأْتِيَ بِالْفَتْحِ أَوْ أَمْرٍ مِّنْ عِندِهِ |
| چې یریږومونږ چې اوبه رسی مونږ ته څه حادثه، نونزدې ده چې الله به راولی فتح یا بل څیز(٢) دخپل طرفه |
| فَيُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا أَسَرُّوا فِي أَنفُسِهِمْ نَادِمِينَ ۞ وَيَقُولُ الَّذِينَ آمَنُوا أَهَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ |
| نوشی به دوئ په هغه څه چې پټ ساتلې وی په زړونوخپلو کښې پښیمانه، اوابه وائې مومنان آیا داهغه کسان دی |
| أَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ ۙ إِنَّهُمْ لَمَعَكُمْ ۚ |
| چې قسمونه ئې کړی وؤ په الله باندې کلک قسمونه ددوئ، چې بېشکه دوئ خامخا ستاسوملګری دی |

١ - شکوه . دمنافقانو نه.
٢ - شرمندګی په ظهور دنفاق سره.

حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فَأَصْبَحُوا خَاسِرِينَ ﴿٥٣﴾

برباد دی عملونه د دوئ نو شول دوئ تاوانيان

﴿ فَتَرَى الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ ﴾ دا زجراو شکوه ده د منافقينو نه. د مرض نه مراد نفاق او محبت د کفارو دي، منافقينو د کفارو، يهودو سره دوستی کوله او عذرئې دا کولو چه دا دوستی مونږ ځکه کوؤ، چه که په مونږ څه حادثه راشی نو دوئ زمونږ تعاون کوی، (لکه موجوده دورېی ايمان حاکمان چه دامريکه سره دوستانه تعلقات لری)، روايت دې چه دحضرت عباده بن صامت رضی الله عنه اورئيس المنافقين عبدالله بن ابی ابن سلول په مابين کښې گفتگو اوشوه نو حضرت عباده بن صامت اووئيل چه په يهودو کښې ځما دوستان دی چه عددئې ډيردې او قوت ئې سخت دې ليکن زه براءت کوم الله اورسول الله صلی الله عليه وسلم ته دهغوئ د دوستئ نه اوعبدالله بن ابی ابن سلول اووئيل چه زه خو براءت نه کوم دهغوئ د دوستئ نه، ماته خطره ده دحوادثو، اومالره ځوک دوست معاون پکاردې، نو دا آيت نازل شو،

﴿يُسَارِعُونَ فِيهِمْ ﴾ (ای فی موالاتهم)، مسارعه ئې ورته ځکه وئيلې ده چه دوئ بې فکرئ سره د دوئ دوستی کوی او سوچ فکر نه کوی په ضرر دې کښې ﴿يَقُولُونَ ﴾ دا د منافقينو عذر بيانول دی، ﴿ دَآئِرَةٌ ﴾ هغه مصيبت چه احاطه کوی او په گردش د زمانې کښې پيدا کيږی لکه قحط اوغلبه د کافرانو او کمزوری د مؤمنانو، نو که داسې حوادث راشی نو مونږ به د يهودو يانو نه قرض اخلو، اسلحه به ترينه اخلو، (لکه د موجوده دور حاکمان بعينه داسې وائی) منافقانو به دا بهانه عذر ظاهراً کوؤ او د زړه ئې عقيده ئې داوه چه مؤمنان به مغلوب کيږی او کفار به غالب کيږی نو مونږ به ورته محتاج يو نو ځکه ورسره دوستی پکار ده، ﴿فَعَسَى اللَّهُ ﴾ (عسی) په کلام الهی کښې دوعدې د پاره مستعمليږی، يعنې د الله تعالی د طرفه وعده ده چه مؤمنانو ته به فتح ورکوی په مقابله د کفارو کښې.

﴿أَوْ أَمْرٍ مِّنْ عِندِهِ ﴾ يا يو بل امر د خپل طرفه يعنی داسې امر چه د مسلمانو د کوشش او محنت نتيجه نه وی، مراد ددې نه فراخی د رزق، او ظهور د نفاق د منافقينو په ذريعه د وحی سره.

﴿ فَيُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا أَسَرُّوا ﴾ يعنی دوئ به پيښمانه شی په هغه کار چه دوئ پټ ساتلې ؤ په خپلو زړونو کښې، چه يو هغه چه دَد دوئ دَ توقع خلاف کار اوشو او په خلاف توقع باندې ندامت رازی، بل ظهور د نفاق د دوئ اوشو، او بل د کفارو سره په دوستئ کولو څه فائده حاصله

نشوه او دمؤمنانو سره دښمني راغله،﴿ وَيَقُولُ الَّذِينَ اٰمَنُوٓا ﴾ داقول دمؤمنانو په طريقه دتعجب سره دي،روستود ښکاره کيدلو دحال دمنافقانو نه،﴿ فَاَصۡبَحُوۡا خٰسِرِيۡنَ ﴾ دادندامت نه ترقي ده.په ندامت کښې خوفوات دمطلوب وي او خسران په نقصان ددنيااو آخرت د دواړوسره دي،چه سره دشرم نه په دنيا کښې عملونه ئې هم بربادشول،

| |
|---|
| يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا مَنۡ يَّرۡتَدَّ مِنۡكُمۡ عَنۡ دِيۡنِهٖ فَسَوۡفَ يَاۡتِى اللّٰهُ بِقَوۡمٍ |
| اې ايمان [۱] والو! څوک چې مرتدشوتاسونه ددين خپل نه، نوزردې چې رابه ولی الله داسې قوم |
| يُّحِبُّهُمۡ وَ يُحِبُّوۡنَهٗۤ ۙ اَذِلَّةٍ عَلَى الۡمُؤۡمِنِيۡنَ |
| چې محبت به کوی الله دهغوئ سره اوهغوئ به هم محبت کوی الله سره نرمې کوونکی به وی په مومنانوباندې |
| اَعِزَّةٍ عَلَى الۡكٰفِرِيۡنَ يُجَاهِدُوۡنَ فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَلَا يَخَافُوۡنَ لَوۡمَةَ لَاۤئِمٍ ؕ ذٰلِكَ فَضۡلُ |
| سختی کوونکی به وی په کافرانو، جهاد به کوی په لار دالله کښې اونه يريږی دملامتيا دملامت گر نه، دافضل |
| اللّٰهِ يُؤۡتِيۡهِ مَنۡ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيۡمٌ ۝ |
| دالله دې ورکوی ئې هغه چاته چې اوغواړی، اوالله فراخ فضل والادې پوهه دې په هرڅه. |

﴿ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا ﴾ دازجردې په موالات داهلِ کتابوباندې،يعنی څوک چه مرتدشی په سبب دموالاتوداهلِ کتابو،نودې دين اسلام ته څه نقصان نشی رسولې،بلکه الله تعالی به ددين دحفاظت اوخدمت دپاره نورخلق پيداکړی،د﴿ مَنۡ يَّرۡتَدَّ ﴾ جزاء مقدره ده چه فَلَايَضُرُّ اِلَّا نَفۡسَهٗ او﴿ فَسَوۡفَ يَاۡتِى اللّٰهُ ﴾ ددغه محذوفِ جزاء علت دې،اومراد د﴿ بِقَوۡمٍ ﴾ نه صحابه کرام دی لکه چه حضرت ابوبکررضی الله عنه اونوروصحابؤدمرتدينوسره قتال کړې ؤو ،اومضارع په معنی دماضی سره ده،حکايت دحال ماضيه دې،اوپه يوروايت کښې دی چه ددې نه مراداهلِ يمن دی،ليکن مقصودترينه حصرنه دې،مزيدتفصيل شربينی،آلوسی،اونورومفسرينولکيلې دې،﴿ يُحِبُّهُمۡ ﴾ محبت دالله تعالی کمايليق بشانه دې دمخلوقاتودمحبت پشان دکيفياتونه نه

۱ - يعنی چا چه د يهودو نصاری وسره دوستی اوکړه او دَ دوئ سره يی جهاد اوکړو نو هغه مرتد دې.

دي. **ليس كمثله شئ** ﴿أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ﴾ نرمی کونکی په مؤمنانو(**على**) په صله د(**اذلة**) كښې ځكه راغليدې چه دامتضمن دې معنى د(**عطف**) او(حنو) لره عاطفين على المؤمنين.قاموس وغيره وائى چه (**اذلة**) لفظ د ذليل (عاجزكونكې) او(ذلول) سهل الانقياد(جوتى غوايه) دواړونه ماخوذكيدې شى.اوكشاف وائى چه داجمع دذليل ده اوذلول نه ده،ځكه چه دذلول جمع (ذُلل) راځى، (**اذلة**) نه راځى.

﴿أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ﴾ (**اعزة**) جمع دعزيزده په معنى دسخت،مستقل،په مقابله دكافرانو كښې.دلته دمؤمنانوچه كوم صفات ذكرشوچه داپه صحابؤرضى الله عنهم كښې په اعلى درجه كښې ؤو،په هغې كښې اول داذكرشو﴿وَيُحِبُّونَهُ﴾ دالله تعالى سره محبت علامه اطاعت اومنل داحكامودهغه دى،اودويم داچه ﴿أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ﴾ مؤمن به دبل مؤمن په حق كښې نرم وى لكه په سورة فتح كښې دى،(**رحماء بينهم**) يعنى مسلمان به دمسلمان دپاره نرم وى كه چرته په څه معامله كښې اختلاف راشى نوبيابه هم نرمى كوى يابه جهګړه ترک کړى،په حديث كښې دى چه نبى صلى الله عليه وسلم فرمائى انازعيم ببيت فى ربض الجنة لمن ترک المراء وهومحق زه دهغه چادپاره ضامن يم دكور په مينځ دجنت كښې چه جهګړه ترک کړى اوحالانكه دې په حقه وى اودريم داچه ﴿أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ﴾ دكفاروپه مقابله كښې سخت،كلک،مستقل په سورة فتح كښې دى (**اشداء على الكفار**) مؤمن به سختى په مقابله دكفاروكښې كوى،اوڅلورم صفت داچه ﴿يُجَاهِدُونَ﴾ صرف سخت اوكلک به نه وى بلكه ددين داشاعت دپاره به جهادهم كوى،اوپنځم صفت داچه﴿وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَائِمٍ﴾ (**لائم**) نكره ده يعنى ددين په باره كښې دهيچادملامت كولونه خوف نه كوى،دانسان دپاره دوه څيزونه لوئې ركاوټ كيدې شى يودمقابل زوراوقوت،اوبل دخپلوانو اوتعلق دارانو ملامت،اودادويم،داول په نسبت سره زيات مؤثروى نوددې وجه نه دلته نكره (**لائم**) ذكرشوه،چه مؤمن به دحق په ميدان كښې دهيچادملامتياپروانه كوى نه دمشرنه دكشر،نه د دوست،نه دحكومت،نه داستاذ وغيره، ليكن ددې دامطلب نه دې چه څوک به خامخاپه استاذانواومشرانواعتمادنه كوى اودهغوئ ګستاخى به كوى،اوخپل كم فهم اورائې به ورته دوحى قطعى په شان ښكاريږى،لكه داعادت دبعضِ سفيهانودې په دې دوركښې (والله الهادى الى سواء السبيل)،﴿ذَٰلِكَ فَضْلُ اللَّهِ﴾ دا اشاره

ده، مخکښنو صفاتو ته، يعني ايمان اود ايمان صفات.

| إِنَّمَا | وَلِيُّكُمُ | اللّٰهُ | وَرَسُولُهُ | وَالَّذِينَ | اٰمَنُوا | الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

نده مګرداده چې ستاسودوست الله دي اودهغه رسول دي اوهغه کسان چې ايمان ئې راوړي دي هغه مومنان

يُقِيمُونَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ رٰكِعُونَ ۞ وَ مَنْ يَّتَوَلَّ اللّٰهَ

چې پابندي کوی دمانځه او ورکوی زکوة اودوئ رکوع کوونکی وی، اوڅوک چې دوستی کوی دالله سره

وَرَسُولَهُ وَالَّذِينَ اٰمَنُوا فَإِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُونَ ۞

او رسول د هغه سره او دهغه کسانو سره چې ايمان والادی نوبيشکه ډله دالله هم دوئ غالب دی.

﴿إِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللّٰهُ﴾ يعني ديهوديانو ،نصاراؤسره دوستی مه کوئ،د دوستئ لائق دالله تعالی ذات دي.دهغه سره خپله دوستی کوئ اوپه مخلوق کښې مؤمنان دی اودمؤمنانو صفات.علامات دادی چه مونځ به کوی،زکوة به ورکوی،عاجزی به کوی ﴿وَهُمْ رٰكِعُونَ﴾ نه مرادعاجزی انکساری ده،بعضوئیلی دی چه درکوع نه اصطلاحی رکوع مراد ده،او(وهم راكعون) جمله.حال دي دضميرد﴿وَيُؤْتُونَ الزَّكٰوةَ﴾ نه،او وائی چه داآيت په حق دحضرت علی رضی الله عنه کښې نازل دي،دوئ مونځ کولواوچه رکوع ته لاړونويوسائل راغې سوال ئې ترینه اوکړواو دوئ په حالت درکوع کښې،دخپلې ګوتي نه ګتمه اوښکله اوسائل ته ئې ورکړه.دفقيردحاجت پوره کولودپاره ئې دومره انتظارهم اونکړوچه دمونځ نه فارغ شی.دامسابقت فی الخير.الله تعالی پسنداوخوښ شونوداآيت نازل شو.ليکن ددې روايت په سندباندې هم دعلماء محدثينوکلام دي اوابن کثيروئيلی دی چه هيچادعلماؤنه دانه دی وئيلی چه زکوة ورکول په حالت درکوع کښې افضل دي،نوصحيح خبره داده چه درکوع نه مرادلغوی معنی ده،نه اصطلاحی،مزيدتفصيل په روح المعانی کښې دي،

﴿وَمَن يَتَوَلَّ اللّٰهَ﴾ داترغيب دي موالات دمؤمنانوته،چه په دې سره سرې دالله تعالی دحزب اوډلې نه ګرځی.اوبيشکه چه دالله حزب هردور اوهرميدان کښې غالب وی.

يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَكُمْ هُزُوًا وَّلَعِبًا مِّنَ الَّذِينَ أُوتُوا

اې ايمان والو !مه نيسئ هغه کسان چې ګنړی دين ستاسو توقې اولوبې دهغې کسانو نه چې ورکړې شوې دي

| الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَالْكُفَّارَ اَوْلِيَآءَ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝ وَاِذَا نَادَيْتُمْ |
|---|
| ورته کتاب مخکښې ستاسونه اونورکافرانولره دوستان، او یریږئ الله نه که یئ تاسو مومنان اوکله چې تاسورابلئ خلق |
| اِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ۝ |
| مانځه ته «اذان» اونېسي دوئ هغې لره مسخرې اولوبې، دا پدې وجه چې دوئ داسې قوم دي چې عقل نه لري |

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ﴾ مخکښې داهلِ کتابو «یهودونصاراؤ» دموالاتونه منع اوشوه، اودلته دمنافقینواوکافرانودموالاتونه منع ذکرکیږی، نود﴿ مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ ﴾ نه مراد منافقین داهلِ کتابودی، اود﴿ وَالْكُفَّارَ ﴾ نه مرادباقی کفاردی،

﴿ هُزُوًا وَّلَعِبًا ﴾ «هزء» په اصل کښې خفت او سپکوالی ته وائی، یعنی ستاسودین سپکوالې کوی اومسخرې خنداورپورې کوی اود «لعب» معنی داده چه بې فائده مشغله ئې ګنړی پشان دلوبو، لکه په لوبو کښې څه ثواب اوفائده نه وی، نودوئ دینِ اسلام دهغې پشان ګنړی،

﴿ وَاِذَا نَادَيْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ ﴾ نداء «آوازکول» الی الصلوة نه مراددعوت الی الصلوة دې په کلماتوداذان سره، اوددې نه معلوم شوثبوت داذان په کتاب الله سره، ﴿ اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا ﴾ ضمیر صلوة ته راجع دې یامناداة ته راجع دې (کماهوالظاهر)، بیهقی دابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړیدی چه اذان به اوشونو مسلمانان به دمونځ دپاره پورته شو، نویهودیانوبل وئیل، (قدقاموا لاقاموا) «یعنی دوئ مونځ ته پورته شو، پورته دې نشی» بددعائې کوله، اوکله به چه مؤمنان په مونځ کښې، رکوع، سجدې ته لاړل، نودوئ ورپورې خنداکوله، اومسخرې به ئې ورپورې کولې، او ابن جریروغیره دسدی رحمه الله نه نقل کړیدی چه یونصرانی په مدینه کښې ؤچه کله به ئې په اذان کښې واؤریدل، (اشهدان محمدارسول الله) نووئیل به ئې، (حرق الکاذب، وفی روایة، احرق الله الکاذب) «دروغژن دې الله تعالی اوسیزوی» نودده خادم یوشپه اور، دده کورته داخل کړواودې اوده ؤو، نودهغې نه یوبخرې «سکروټه» ارتاؤشو، اودده کورئې اوسوزولو. اودې سره داهلِ وعیال نه پکښې ستی شو، کاذب پخپله ؤنودده بددعادده په حق کښې قبوله شوه، اودارنګه چه کله به اذان کیدلو، نوکفارواواهلِ کتابوبه وئیل (صاح کصیاح العیر) «داوښانو، اوحیواناتوپشان چغې وهی»،

بعض حضرات وائی چه څوک اذان واوري اوجماعت ته حاضري نه كوي نودهم اذان لعب اوګرځولو .صاحب دجلالين د ﴿ وَلَا تَتَّخِذُوٓا ءَايٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا ﴾ (بقره) ترجمه كوي(بترک العمل بها) .

﴿ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُونَ ﴾ يعنی دا اتخاذ اواستهزاء د اذان په سبب ددې سره ده چه دوئ نه پوهيږي،اوجهل سبب داستهزاء بالدين دې،(الناس اعداء لما جهلوا) اذان داسلام دخصوصی امتيازاتو نه دې اودشعائرالله نه دې،په نورومذاهبوكښې دعبادت دپاره روزانه دعوت نشته،اوپه اسلام كښې روزانه پنځه وارې دې،بياپه نورومذاهبوكښې چه په هفته كښې يو وارې دعوت دعبادت وركولې كيږي،نوهغه الفاظ قومی نغمه ياترانه وی يادګهنټی ټالئ، ټنګ ټنګ وی،اواذان صرف دعوت نه دې بلكه پخپله يومستقل عبادت دې،كلمات داذان مشتمل دی په كبرياء دالله تعالى،څلوروارې،(الله اكبر) څلوراطرافتوته دعوت وركول دی دالله تعالى دكبرياء،اودڅلوروعناصرو اودهغوئ نه دتولوجوړشوؤ څيزونو،خواه كه ماكولات. مشروبات،ملبوسات،اسلحه،وغيره (لاتعدولاتحصی) اشياء دی ددې ټولودكبرياء نفی ده،بيا شهادت دتوحيد دې،اوبياشهادت درسالت دسيدالكونين صلى الله عليه وسلم (فداه روحی) دې اودشهادت دپاره دوه كسان پكاردی نودوه كرته شهادت اداء كيږي،بيادعوت الى الصلوة دې چه داتوحيد عملی دې اوپه دې سره دانسان دتماموااعمالواصلاح كيږي،(فان صلحت صلح سائرعلمه) (الحديث) بياترغيب الى الصلوة دې په ذكردوصف دفلاح سره،بيادوه وارې ذكردكبرياء دالله تعالى دې دپاره دترک دشرک اودهغه مشاغلوچه غفلت راولی دتوحيدنه،بياپه آخركښې ذكر دنتيجې اوخلاصه ده چه (لااله الاالله) نوڅوک چه په دې مقصدنه پوهيږي،نوهغوئ استهزاء كوي،

| قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ هَلْ تَنْقِمُوْنَ مِنَّآ اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ |
|---|
| ورته اووايه چې اې اهل كتابو! آيا څه عيب وينئ په مونږ كښې سواددېنه چې مونږ ايمان لرو په الله اوپه هغه كتاب |
| اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلُ ۙ وَاَنَّ اَكْثَرَكُمْ فٰسِقُوْنَ ۝ |
| چې نازل كړې شوې دې مونږ ته اوپه هغه كتاب چې نازل كړې شوې دې مخكې ددېنه اوبېشكه زيات ستاسونه نافرمان دی. |

﴿ قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ هَلْ تَنْقِمُوْنَ ﴾ يعنی اهلِ كتاب چه ستاسوپه دين پورې مسخرې كوی نو تاسوترينه تپوس خواوكړئ چه زمونږپه دين كښې كومه خبره تاسوته ناخوښه اوعيب ده؟

آیا.داخبره ناخوښه اودعیب ده چه مونږایمان راوړي دي په الله تعالی باندې اوپه هغه کتاب باندې چه مونږته نازل شویدي اوپه هغه کتابونوچه مخکښې نازل شویدی،نوداخودعیب اونفرت خبره نه ده لیکن اصل خبره داده چه ﴿وَأَنَّ أَكْثَرَكُمْ فَاسِقُونَ﴾ حضرت الشیخ فرمائی چه دلته (واعلموا) مقدردې (ای واعلمواان اکثرکم) اوعام مفسرین وائی چه داعطف دې په ﴿أَنْ آمَنَّا﴾ باندې یعنی نفرت ستاسوزمونږنه په دې وجه دې چه مونږایمان راوړي دې،اوستاسونه مخالف یو په عدم قبول دایمان کښې،(**فاسقون**) تعبیردې دعدم قبول دایمان نه اومرادفسق نه اعتقادی فسق کفرشرک دې،اوبعض حضرات وائی چه واؤزائددې اولام مقدردې،یعنی (لان اکثرکم فاسقون) کشاف وغیره وائی چه واوپه معنی د (مع) سره دې،

| |
|---|
| قُلْ هَلْ أُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذَٰلِكَ مَثُوبَةً عِنْدَ اللَّهِ ۚ مَنْ |
| ته ورته اووایه آیا خبردرکړم تاسوته په ډیربدسره ددېنه په اعتبار دبدلې سره په نیزدالله ، داهغه څوک دې |
| لَعَنَهُ اللَّهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيرَ |
| چې لعنت کړیدې الله په هغه باندې اوغصه ئې کړیده او ګرځولې ئې دی دهغوئ نه شادوګان اوخنزران |
| وَعَبَدَ الطَّاغُوتَ ۚ أُولَٰئِكَ شَرٌّ مَكَانًا وَأَضَلُّ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ ۝ |
| اوبندګي ئې کړې وی دطاغوت، دغه کسان ډیربد دی په اعتبار دمرتبې سره اوډیر ګمراه دی دبرابرې لارې نه . |

﴿قُلْ هَلْ أُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذَٰلِكَ﴾ داجواب دې دقول داهلِ کتابونه چه دوئ وئیل،(لانعلم دینا شرامن دینکم) ستاسود دین نه زیات بد ،دین مونږته بل نه دې معلوم،نوځکه مونږتاسونه نفرت کوؤاو عیب لګوؤ،جواب راغې چه زیات شروالادین هغه خلق دی چه لعنت اوغضب پرې شویدې او مسخ شویدی،اوپه دې کښې بیان ددې خبرې دې چه لائق دمسخرې اواستهزاء ستاسودین دې (**ذالک**) اشاره ده دین اسلام ته،نو **سوال** واردیږی،چه (شر) صیغه اسم تفضیل ده،مفضل علیه غواړی نومعنی ئې داده چه زیات بد،زیات شر،ستاسوهغه محرف دین دې،نومعلومه شوه چه نفس بدوالې په دین اسلام کښې هم شته دې نو **جواب** دادې چه داکلام ذکرشویدې په مقتضی دقول د دوئ اوداعتقاد د دوئ ځکه دوئ وئیلی ؤ،ستاسودین شردې (لانعلم دیناشرامن دینکم) نو دوئ ته اووئیلې شوچه که بالفرض،ستاسودقول

اواعتقادموافق زمونږدين شروی نوپه چاچه لعنت اوغضب شويدې اومسخ شويدی هغه زيات شردې،دهغه چانه چه غضب اولعنت پرې نه دې شوي،﴿ مَثُوبَةً ﴾ منصوب بنابرتميزدې،يعنی ډيربد،دثواب اوبدلې په لحاظ سره،(مثوبة) ثواب،جزاء دخيرکښې استعماليږی اودلته دشرسره ذکرشويدې په طريقه د(تهکم) سره،لکه (فبشرهم بعذاب)،

﴿مَن لَّعَنَهُ اللَّهُ﴾ دابدل دې د(من ذالک) نه،(ذالک) اشاره ده دين ته،او(من) ذات دې،نودابدل نشی کيدې مګرپه تقديرسره په اول کښې،(ای بشرمن اهلِ ذالک من لعنه الله – الخ)،ياپه دويم کښې،(ای دين من لعنه الله) يعنی هغه دين چه سبب دلعنت اوغضب دې،نواضافت ددين (من) ته تسبيبًا دې،اوددې نه مرادهغه کارونه دی چه دهغې په وجه په دوئ لعنت شوې ؤو،او مسخ شوی ؤولکه په سورتِ بقره،اعراف،وغيره کښې ذکرشويدی،

﴿وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيرَ﴾ يعنی هغه دين چه سبب دمسخ ؤو،مسخ په شکل د(قردة) سره اصحاب السبت ؤو،اومسخ په شکل دخنزيرانوسره په اصحاب المائده کښې ؤو، ((هم کفار اهلِ مائدة عيسی عليه السلام)) اوچاوئيلی دی چه دواړه مسخين په اصحاب السبت کښې ؤو.د ځوانانونه (قودة) (شادوګان،بيزوګان) جوړشو،اودمشرانونه خنزيران جوړشو،روايت چه ددې آيت دنزول نه بعدبه مسلمانانويهوديانوته پيغور ورکولو،چه (يااخوة القردة والخنازير) نودوئ به سرونه ښکته کړل، (السراج المنيرالشربينی).

﴿وَعَبَدَ الطَّاغُوتَ﴾ داعطف دې،په (لعنه الله) باندې،نومعنی داشوه چه (من عبدالطاغوت) اولفظ ددين مقدردې،اودطاغوت ډيرې معنې شويدی،شيطان،عبادة العجل،کُهان، احبار، خازن وائی چه (وجملة ان کل من اطاع احدافی معصية الله فقدعبده وهوالطاغوت) اوداتولې خبرې په يهودو کښې موجودې وې نومعلومه شوه چه د دوئ دين ډيربددين دې،﴿أُولَٰئِكَ﴾ اشاره ده دغه ممسوخين،مغضوبين،ملعونين،اودشيطان عبادت کوونکوته،

﴿شَرٌّ مَّكَانًا﴾ (مکاناً) تميزدفاعل نه دې نوپه معنی کښې فاعل دې،(ای شرمکانهم) ډيربد دې مکان ددوئ اومکان د دوئ په آخرت کښې جهنم دې،اونسبت د شر مکان ته اوشو.په دې کښې مبالغه ده چه هغه په (اولئک شر) يا ((هم شر)) کښې نشته دې،﴿وَأَضَلُّ﴾ يعنی (اولئک اضل) او(شر) او (اضل) اسم تفضيل په اعتباردزعم ديهوديانوسره دې يااسم تفضيل په معنی د

اصلِ فعل سره، یا اسم تفضیل دمبالغې دپاره دې معنی تفضیل ترینه نه ده مراد

| وَإِذَا | جَآءُوكُمْ | قَالُوٓا | اٰمَنَّا | وَقَدْ | دَّخَلُوا |
|---|---|---|---|---|---|

اوکله چې راشي دوئ تاسوته وائي دوئ چې مونږ ایمان راوړې دې اوحال دادې چې دوئ داخل شوي وي

بِالْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوا بِهٖ ۚ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا كَانُوا يَكْتُمُوْنَ ۞ وَتَرٰى كَثِيْرًا مِّنْهُمْ

په کفر سره اودوئ وتلي دي په کفر سره، اوالله ښه خبر دې په هغه څه چه دوئ یې پټوي اووینې به ته ډېرولره دوئ نه

| يُسَارِعُوْنَ | فِي | الْاِثْمِ | وَالْعُدْوَانِ | وَاَكْلِهِمُ | السُّحْتَ ۚ | لَبِئْسَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

چې جلتي به کوي په ګناه کولو کښې اوپه ظلم کولو کښې اوپه خوړلو ددوئ کښې حرامو لره، خامخاډېربددی

مَا كَانُوا يَعْمَلُوْنَ ۞ لَوْلَا يَنْهٰىهُمُ الرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ عَنْ قَوْلِهِمُ الْاِثْمَ وَاَكْلِهِمُ

هغه عملونه چې دوئ ئې کوي ولې نه منع کول دوئ لره پیرانو اوعلماء دوئیلو ددوئ نه ګناه «دروغولره» اودخوړلو

السُّحْتَ ۚ لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَصْنَعُوْنَ ۞

دحرامو نه، خامخا ډېربد دې هغه کار چې دوئ ئې کوي.

﴿ وَإِذَا جَآءُوكُمْ ﴾ دااهلِ کتابودنفاق اوخبث باطن بیان دې چه ستاحضورته راشي نو د ایمان اظهاراودایمان دعوی کوی ﴿ وَقَد دَّخَلُوا ﴾ داجمله دضمیرد «قالوا» نه حال دې.

﴿ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوا ﴾ داهم د «قالوا» دضمیرنه حال دې، یعنی ستاحضورته سره دنفاق نه راغلی دی اوچونکه داصلاح په نیت نه دی راغلی نواصلاح ئې نه ده شوې، پلیت راغلی دی اوپلیت تللی دی، ﴿ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا كَانُوا يَكْتُمُوْنَ ﴾ اشاره ده چه په زړونود دوئ کښې دومره ډېرشراوضلال دې چه ستاسوداحاطې دعلم نه بهردې، ﴿ وَتَرٰى كَثِيْرًا مِّنْهُمْ ﴾ په دې کښې اشاره ده چه د دوئ ضلال ښکاره دې هرچاته، او «کثیراً» ځکه ذکرشوچه قلیلوپه دوئ کښې ایمان راوړې ؤو، ﴿ فِي الْاِثْمِ ﴾ ددې نه کلمات شریکه مراد دی لکه «عزیرابن الله» «وقالوااتخذالله ولداً» یامرادعام ګناه دې.

﴿ وَالْعُدْوَانِ ﴾ تجاوزدحدودالله نه، ظلم، قتل دانبیاؤاوداهلِ حق اوتحریف ﴿ وَاَكْلِهِمُ السُّحْتَ ﴾ رشوت خوړل، نذرلغیرالله دعوامونه اغستل،

﴿ لَوۡلَا يَنۡهٰىهُمُ ﴾ دازجراوشکوی ده،داحبارواورهبانونه،په علماؤاوپیرانوباندې دعوامو اصلاح ضروری ده،نوهرکله چه په دوئ کښې باطنی امراض موجودوُو،چه (اثم) (عدوان) (اکل السحت) وُؤاوله بیماری دقوةِ نطقیه نه پیدا کیږی،اودویمه بیماری دقوتِ غضبیه نه صادریږی ، اودریمه بیماری دقوة شهوانیه نه پیدا کیږی نوهرکله چه خواصودعوامودا صلاح څه غم فکر اونکړونودوئ هم مجرمان دی . شعر :

جوانان بیهوده گرغرلوش؟ گناه پیر باشد مانند غموش

﴿ لَبِئۡسَ مَا كَانُوۡا يَصۡنَعُوۡنَ ﴾ دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه په قرآن مجید کښې داآیت دډیروسختوآیتونونه دې (عن ابن عباس رضی الله عنه هی اشدآیةٍ فی القرآن (کشاف)،عن الضحاک مافی القرآن آیة اخوف عندی منها(کشاف)،کان العلماء یقولون مافی القرآن آیة اشدتوبیخاللعلماء من هذهِ لایة ولااخوف علیهم منها(ابن جریر) په دې آیت کښې (یصنعون) ذکردې اوپه ماقبل آیت کښې (یعملون) ذکردې،عمل مطلقِ کارته وائی،اوصنع، صناعت،هغه کارته وائی چه. همیشه کولې شی اوتجربه په کښې اوشی،نود امربالمعروف اونهی عن المنکرفریضه احبارورهبانوبالکلیه ترک کړې وه اوودائې جائزگنړله، نوددې وجه نه دلته (یصنعون) ذکرشو چه دافریضه دوئ مستقله ترک کړې وه.

| وَقَالَتِ الۡيَهُوۡدُ يَدُ اللّٰهِ مَغۡلُوۡلَةٌ ؕ غُلَّتۡ اَيۡدِيۡهِمۡ وَلُعِنُوۡا |
|---|
| او وائی یهودیان لاس دالله بندکړې شوېدې، (بلکه) بندې کړې شی لاسونه ددوئ اولعنت کړې شوېدې په دوئ باندې |
| بِمَا قَالُوۡا ۘ بَلۡ يَدٰهُ مَبۡسُوۡطَتٰنِ ۙ يُنۡفِقُ كَيۡفَ يَشَآءُ ؕ وَلَيَزِيۡدَنَّ |
| په سبب دهغې چې دوئ وائی، بلکه دواړه لاسونه دده فراخ دی، خرچ کوی څرنګه چې اوغواړی، اوخامخا زیاتوی |
| كَثِيۡرًا مِّنۡهُمۡ مَّاۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡكَ مِنۡ رَّبِّكَ طُغۡيَانًا وَّكُفۡرًا ؕ وَاَلۡقَيۡنَا بَيۡنَهُمُ |
| ډېرولره ددوئ نه هغه کتاب چې نازل کړې شوېدې تاته ستادرب طرف نه سرکشی اوکفر،اواچولې دې مونږ په مینځ ددوئ کښې |
| الۡعَدَاوَةَ وَالۡبَغۡضَآءَ اِلٰى يَوۡمِ الۡقِيٰمَةِ ؕ كُلَّمَاۤ اَوۡقَدُوۡا نَارًا لِّلۡحَرۡبِ اَطۡفَاَهَا اللّٰهُ ۙ |
| دښمنی او کینه دورخې دقیامت پورې، هروخت چې بل کړی دوئ اور دپاره دجنګ مرکړی هغې لره الله |

وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا ۚ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ ﴿۶۴﴾

او كوشش كوي دوئ په زمكه كښې دفساد، اوالله نه خوښوي فسادكوونكي

﴿وَقَالَتِ الْيَهُودُ يَدُ اللَّهِ مَغْلُولَةٌ﴾ داهم شكوى ده ديهودونه، دابن عباس رضى الله عنه، ضحاك، عكرمه نه روايت دې چه الله تعالى په يهودوباندې فراخي كړې وه، نوهركله چه دوئ عصيان او نافرماني اوكړه درسول الله صلى الله عليه وسلم نه نو الله تعالى په دوئ هغه فراخي بنده كړه چه كومه ئې پرې كړې وه، نوديهودوقينقاع يومشر فخاص بن عازوراء، اوپه بل روايت كښې، نباش بن قيس اووئيل چه (يدالله مغلولة) د (مغلولة) لفظ معنىٰ داده چه لاس ئې دختې سره تړلي شويدې، ليكن په محاوره كښې ترينه دامعنى نه مرادكيږي، بلكه په عامه محاوره كښې دادبخل دپاره استعماليږي، نودلته مرادنسبت دبخل دې الله تعالى ته، اوشكايت كول دى دالله تعالى نه، لكه دامحاوره اواسلوبِ بيان دې، او (يد) ثابتول، او (غل) ثابتول مقصودنه دى، د، يد، يدين، يمين، اثبات، الله تعالى لره په قرآن اوحديث كښې په كثرت سره راغلې دې، اوداهلِ سنت والجماعت سلفواوخلفواجماع ده په دې چه ددې نه مراداعضاء اوجوارح نه دى اوذات دالله تعالى دپاره، اجزاء، ابعاض نشته دې، (واليدفى كلام العرب تكون للجارحة، هذامحال على الله (قرطبي) نود موجوده زمانې بعض غيرمقلدين چه د، يد، ساق، وغيره نه اجزاء اوابعاض مرادكوى، اوسلفو ته ددې عقيدې نسبت كوى نودا ډيره غلطه عقيده ده اوپه سلفو باندې افتراء ده، صاحب دروح المعانى وائي، سلفودامت وئيلى دى، چه دا ﴿بَلْ يَدَاهُ﴾ د متشابهاتو نه دې، اوددې دتاويل تفويض الله تعالى ته اسلم دې، اونبى صلى الله عليه وسلم يدين، يمين، الله تعالى لره ثابت كړيدى، (وكلتايديه يمين) اومروى نه ده دهيچادصحابؤنه، چه تاويل ئې په نعمت، ياقدرت سره كړيدې، بلكه چه څنگه واردشويدې، نودغه شان ئې پريښې دې، اوسكوت ئې كړيدې، اوكه چرته كلام، (يعنى تاويل د يد په قدرت اونعمت سره) سپين نزوى، نوسكوت تفويض سره زردى، قرطبى اوروح المعانى وغيره وئيلى دى چه (يداه) په معنى دنعمت سره دې، اودحسن بصرى رحمه الله نه مروى ده چه داپه معنى دقدرت سره دې (روح)، ددې نه معلومه شوه چه د، يد، وغيره تاويل نه كول افضل او احسن دى لكه روح المعانى ورته وائي چه داذهب دې ليكن تاويل كول بدعت نه دې اوتاويل كوونكوته مبتدعه وئيل يادتماموا سلافوخلاف وئيل صحيح نه دى، صاحب دروح المعانى ورته (فضه)

وائي.البته د.يد.وغيره نه اعضاء،اجزاء اراده کول دتماموسلفونه خلاف ده،او بيادي ته دسلفومذهب وئيل،(غضب على غضب) دي،اوپه کلام دسلفوکښې چه (اجراء على الظاهر) راغلي دي،نودهغې معنى دانه ده چه ابعاض،اجزاء به ترينه مرادکولې شي،بلکه مرادئې دا دي چه دا(يد ، ساق وغيره) يوصفت دي چه لائق دي دَجلال دذات سره مونږته ئې علم نشته دي نوالله تعالى لره به ئې ثابتئو،اوتعين به ئې نه کوؤ،اوتفسيربه ئې قدرت وغيره نه کوؤ،اودا معنى دکلام دامام مالک رحمه الله ده (الاستواء معلوم،اى معلوم انه صفة لله،معلوم اثباته الله)،

﴿بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ﴾ دارد دي دقول ديهودوچه (يدالله مغلولة)،الله تعالى (معاذالله) بخيل شويدي.نوالله تعالى فرمائى چه دغه خبره غلطه ده بلکه الله تعالى ډيرکريم.رزاق دي.(يداه مبسوطتان) هم په محاوره کښې دډيرکرم فياضى ده اظهاردپاره استعماليږي،ډيرسخى ته وئيلې شى چه دي په دواړولاسونوورکوى،﴿غُلَّتْ أَيْدِيهِمْ﴾ تړلې شويدى لاسونه د دوئ،ددې نه مرادبد دعاده.نواخبارپه معنى دانشاء سره دي،لکه (تبت يدا ابى لهب) يادا اخباراوپيشينګوئى ده.چه يهودبه په دنياکښې لاس تړلى قيدشى،لکه دغه شان اوشوه،اوپه آخرت کښې به په زنځيرونوتړلى شوى جهنم ته واچولې شى،﴿وَلَيَزِيدَنَّ﴾﴿مَّا أُنزِلَ﴾ فاعل دي،او﴿كَثِيرًا﴾ مفعول اول دي،او﴿طُغْيَانًا وَكُفْرًا﴾ مفعول ثانى دي،يعنى په دوئ کښې خوسرکشى اوکفر د مخکې نه موجود ؤو،ليکن دقرآن دنزول نه بعدنورزيات شو،په وجه دبغض اوحسدسره.

﴿وَأَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ﴾ يعنى د دوئ په مينځ کښې دښمنى موجوده ده،که څرته تاسوپه خپل دين کلک اومحکم شئ نود دوئ په عداوت اودښمنئ کښې به نوره اضافه اوشى،نوپه خپل مابين کښې به نوربې اتفاقه شى اوکمزورى به شى،

﴿كُلَّمَا أَوْقَدُوا نَارًا لِّلْحَرْبِ﴾ اوربلول دجنګ دپاره کنايه داسبابودجنګ نه،دعربوعادت داؤو چه دچاخلاف به ئې اعلانِ جنګ کولونوپه اوچته غونډئ به ئې اوربل کړو،يعنى هرکله چه دوئ مکراومنصوبه جوړه کړى ده دمسلمانانودجنګ دپاره نوالله تعالى د دوئ دباهمى بغض اوعداوت په وجه دوئ مرعوب اومغلوب کړى اود دوئ داختلاف دوجه نه دوئ متحدنشى مقابلې دمؤمنانونه. ﴿وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا﴾ نو دجنګ نوبت رانشى اودجنګ وس ئې اونه رسى نوبيا نورفسادکوى.دخلقوپه زړونوکښې شکوک شبهات اچوى دتوحيدنه. او دحضور صلى الله عليه وسلم درسالت نه خلق متنفرکوى،

وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْكِتٰبِ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ

اوکچېرې اهل کتابو ایمان راوړو اوخان ئې بچ کړو دگناهونو نه خامخا به لرې کړو مونږ ددوئ نه گناهونه ددوئ

وَلَاَدْخَلْنٰهُمْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿٦٥﴾ وَلَوْ اَنَّهُمْ اَقَامُوا التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ وَمَآ

اوخامخا به داخل کړو مونږ دوئ لره جنتونو دنعمتونو ته. اوکچېرې دوئ عمل اوکړو په تورات اوپه انجيل اوپه هغه

اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ مِّنْ رَّبِّهِمْ لَاَكَلُوْا مِنْ فَوْقِهِمْ

کتاب چې نازل کړې شوېدې دوئ ته دطرفه درب ددوئ نه خامخا خوراک به کړې وې دوئ دپورته ددوئ نه

وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ ۭ مِنْهُمْ اُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ ۭ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ سَاۗءَ مَا يَعْمَلُوْنَ ﴿٦٦﴾

اولاندې دپښو ددوئ نه، بعضې د دوئ نه ډله ده په نيغه لار، اوډېر ددوئ نه بددې هغه عملونه چې دوئ ئې کوی

﴿ وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْكِتٰبِ اٰمَنُوْا ﴾ داترغيب دې اهلِ کتابوته دايمان،د﴿امنوا﴾ نه مراد، صحيح اومعتبرعندالشرع ايمان دې،﴿وَاتَّقَوْا﴾ بچ کيدل دشرکياتو اوگناه نه مراد دی.

﴿لَكَفَّرْنَا﴾ يعنی په ايمان اوتقوی سره به د دوئ گناهونه معاف شی.اودابه سبب شی د دخول جنت النعيم ته.

﴿وَلَوْ اَنَّهُمْ اَقَامُوا التَّوْرٰىةَ﴾ يعنی دارنگه ايمان اوتقوی چه حاصلیږی په عمل کولوسره په آسمانی کتابونو.سبب دې دنزول اودحصول د دنيوی برکاتو.حاصل داچه دايمان اوتقوی په ذريعه سره.اخروی نعمتونه دجنت اونجات دعذاب دجهنم نه حاصليږی اودارنگه په دې سره دنيوی برکات اوخير ملاويږی،نودوئ له ايمان اوتقوی مناسب ؤو.ليکن دوئ په کفرباندې اصراراوکړو.اودالله جل جلاله په شان کښې ئې گستاخی اوکړه اودبخل نسبت ئې ورته اوکړونود دنيااودآخرت دخيرنه محروم شواوپه لعنت اوعذاب کښې مبتلاشو.﴿اقامواالتورة والانجيل﴾ ددې نه مرادعمل کول دی په هغه خبروچه منسوخ نه دی اومحرف نه دی.لکه توحيد.تصديق رسالت دحضورصلی الله عليه وسلم.

﴿لَاَكَلُوْا مِنْ فَوْقِهِمْ﴾ د﴿اكل﴾ نه مرادانتفاع ﴿نفع اغستل﴾ ده،او﴿فوق تحت﴾ دوسعت رزق نه کنايه ده،يادا﴿مِنْ فَوْقِهِمْ﴾ نه باران مراد دې،اود﴿تحت﴾ نه دزمکې پيداوار غله.ميوه.مراد دی.
او داآيت دليل دې په دې چه طاعت اوعمل صالح دخوشحالئ اودوسعتِ رزق داسبابونه دي

(مدارک)،صاحب دروح المعاني دمحبت اوعظمت نه دکوالفاظوکنبي،دبعضِ اکابرينونه نقل کړيدی چه د(**فوقهم**) نه مرادعلومِ فيضانيه،غيرکسبيه دی،چه هغې ته علم لدنی وئيلې شی. او هغه حاصليږی په عمل اوتقوی سره،لکه په حديث کښې دی ( من عمِل بماعلِم ورثه الله عِلم مالم يعلم) اود ﴿وَمِن تَحۡتِ أَرۡجُلِهِمۡ﴾ نه مرادعلومِ کسبيه دی،په دې کښې ترقی اوبرکت په تقوی سره راځی.اوپه ذکرد(**ارجلهم**) کښې اشاره ده حصول دثُبات دقدم اورسوخ دعلم ته،دتقوی په ذريعه سره په علم کښې برکت،اورسوخ فی العلم،اوثُبات فی العلم،اوترقی په فيوضاتوکښې راځی،دتقوی اهتمام ډيرضروری دې دعالم اوطالب علم دپاره،(الله تعالی دې په خپل فضل اورحمت سره زمونږاوزمونږداولاداودټولو اهلِ علمو اوملګرو متعلقينو نصيب کړی،آمين).

﴿مِّنۡهُمۡ أُمَّةٞ مُّقۡتَصِدَةٞ﴾ اهلِ کتاب ټول،سرکش اومعاندين نه دی،بلکه په دوئ کښې بعضِ (ملغلري) انصاف پسند اعتدال پسندموجود دی ليکن اکثرفاسقان دی،

(**فائده**) حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه په قرآن کښې چه چرته ديهودو نصاراؤ داحبارو رهبانوحالات ذکرشی نوهغه دموجوده وخت په علماءِ سوء،پيران سياه کاربانديِ منطبق کيږی،اوچرته چه دمنافقينوحالات ذکرشی نوهغه دموجوده وخت په سرمايه دارانو،او برسرِاقتدار،طبقه باندې،چسپان کيږی.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ بَلِّغۡ مَآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ مِن رَّبِّكَۖ وَإِن لَّمۡ تَفۡعَلۡ

اې رسوله (١)اورسوه ټول هغه څه چې نازل کړې شوی دی تاته دطرفه درب ستانه، اوکه تا داسې اونکړه

فَمَا بَلَّغۡتَ رِسَالَتَهُۥۚ وَٱللَّهُ يَعۡصِمُكَ مِنَ ٱلنَّاسِۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡكَٰفِرِينَ ۝

نوندې رسولې تاهيڅ پيغام دالله، اوالله بچ کوی تا دخلقو نه، بېشکه الله هدايت نه کوی قوم کافرانو ته.

قُلۡ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لَسۡتُمۡ عَلَىٰ شَيۡءٍ حَتَّىٰ تُقِيمُواْ ٱلتَّوۡرَىٰةَ وَٱلۡإِنجِيلَ

ته ورته اووايه اې اهل کتابو!(٢) نه يئ تاسو په هيڅ دين باندې ترڅو چې عمل اونکړئ په توراويه انجيل

---

١ - دسورت دويمه حصه اعاده د نفی دشرک اعتقادی لف نشر غير مرتب.

٢ - دا د بلّغ ماتحت اول حکم دې يعني صفاصفا داوايه چې تاسوکافر يئ ستاسوهيڅ دين نشته ترڅو چې توحيد اونه منی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَآ | اُنْزِلَ | اِلَيْكُمْ | مِّنْ | رَّبِّكُمْ | وَلَيَزِيْدَنَّ | كَثِيْرًا مِّنْهُمْ |

اوپه هغه کتاب چې نازل کړې شوېدې تاسوته دطرفه درب ستاسونه، او خامخا زیاتوی ډېرولره ددوئ نه

مَّآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ۚ فَلَا تَاْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ۝

هغه کتاب چې نازل کړې شوېدې تاته دطرفه درب ستانه سرکشي او کفر، پس مه غمژن کیږه په قوم دکافرانو باندې

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالصّٰبِـُٔوْنَ وَالنَّصٰرٰى مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ

بېشکه هغه کسان[1] چې مومنان دي اوهغه کسان چې یهودیان دي اوصابئین دي، اونصارٰی دي چاچې ایمان راوړو په الله

وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝

او په ورځ د آخرت اوعمل ئې کولو صالح نونۀ به وي هیڅ یره په دوئ باندې اونه به دوئ غمژن کیږي

﴿يٰٓاَيُّهَا الرَّسُوْلُ وَاٰلِهٖ﴾ دادسورت دویمه حصه شروع شوه په دې حصه کښې، داولې حصې برعکس دشرکِ اعتقادی رد اول کیږي، اودشرکِ فعلی رد ثانیاً کیږي،

﴿مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ﴾ ددې نه مراد تمام «ماانزل» دې خواه که وحی جلی ده یعنی قرآن اوکه وحی خفی ده یعنی حدیث، خواه که دچادمزاج اورواج موافق وی یامخالف، نوداکلام په معنی دقضیه موجبه کلیه کښې دې چه نقیض ئې سالبه جزئیه راځی چه هغه دادې، ﴿وَاِنْ لَّمْ تَفْعَلْ﴾ یعنی تبلیغ د (کل ما انزل) دې اونکړو، نواګرکه دبعضِ دې اوکړو،

﴿فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهٗ﴾ نوحق درسالت ادانشو، دبعضوترک داسې دې لکه ترک دکل، که څوک **سوال** اوکړی چه دلته خوشرط اوجزاء یوشئ شو، ځکه چه د «ان لم تفعل» معنی داده ((اِنْ لَّمْ تُبَلِّغْ ای ان لم تبلّغ فلم تبلغ))، **جواب** دادې چه د شرط سره قیودات دی ځکه چه د بَلِّغ معنی داده (بلغ ماانزل الیک غیرمراقب فی تبلیغه احداًولاخائفا ان ینالک مکروه (کشاف،روح) یعنی دټول «ماانزل» تبلیغ اوکړه دچالحاظ اوپرواه مه کوه چه خفه به شی یابه خوشحاله شی اودچانه یره مه کوه، نو د «فان لم تفعل» «شرط» معنی داده چه د «جمیع ماانزل» تبلیغ دې اونکړو، په دغه

[1]. دشرک نه بچ کېدونوکو دپاره بشارت.

طريقه مذكوره سره نواګر که دبعض دې اوکړو،﴿فمابلغت﴾ نودغه تبليغ نه دې،نفی اوعدم دخاص شرعاً نفی اوعدم دعام شرعاً ده،دلته حکم د﴿بلغ﴾ راغلې دې اوددې نه روستودرې جملې ذکردی،(۱) ﴿وَإِن لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ﴾ ،(۲) ﴿وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾ ،(۳) ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ﴾ وجه داده چه په فريضه تبليغ کښې اودارنګه په هرعمل کښې چه قصوراخی نويادد دې (۱) وجه نه راځی چه سړی سره دخپل فرضی منصبی،اهميت،احساس اوشغف نه وی نوبعض حصه اداکړی اوبعض ترک کړی،نوپه اوله جمله کښې ددې فرض منصبی اهميت بيان شو،اواحساس ورکړې شو،چه دادومره اهم او ضروری کاردې چه لږپريښودل ئې داسې جرم دې لکه دکل پريښودل،يادد دې (۲) وجه نه راځی چه دچا نه يريږی،نودخوف دجه نه پوره مسئله نشی بيانولې نوپه دريمه جمله کښې وعده دعصمت اوشوه، يادد دې (۳) وجه نه راځی چه څوک خبره نه منی،په حق نه پوهيږی لکه مثلا (شاګردان چه ناقابل نااهل وی،نوداستاذنه هم په درس کښې قصور راځی،نوپه دريمه جمله کښې ددې ذکردې چه هدايت ورکول يانه ورکول دالله تعالی کاردې،اوستافرض منصبی تبليغ دې،هغه جاری لره،په ﴿وان لم تفعل﴾ کښې خطاب نبی صلی الله عليه وسلم ته دې،اودکوم فعل صدورچه دنبی دشان نه مستبعد اومحال عادةً وی نو ددغه فعل نسبت چه نبی صلی الله عليه وسلم ته په طريقه دفرض محال سره اوشی لکه ﴿لئن اشرکت﴾ ﴿ولئن اتبعت اهوائهم﴾ وغيره ذالک،نوپه دې کښې يونکته اشاره وی عظمت دجرم ته،مثلاشرک دومره جرم عظيم دې چه که چرته بالفرض د معصوم،محبوب نه صادرشونوقابلِ معافی نه دې، دويمه نکته تنبيه وی امت ته اوهغوئ ته اورول مقصودوی،نودلته په دې خطاب کښې اشاره شوه چه ترک دتبليغ په حق دنبی کښې سخت جرم دې،اوبل دې ته اشاره شوه چه دادامت فريضه اوذمه واری ده،اوددې وجه نه بعض تفاسيرولیکلی دی چه ددې آيت نه دامستنبط کيږی چه علماء حق دی داخپله ذمه واری ګنړی،اودتبليغ په وجه به دوئ عصمت اوحفاظت کيږی،قرطبی دابن عباس رضی الله عنه نه نقل کوی چه ددې آيت معنی داده چه اورسوه جميع هغه چه نازل کړې شويدی تاته دطرف درب ستانه،که تاپه دې کښې څه پټ کړل نوتارسالت اونه رسوؤ،اوداتاديب دې نبی صلی الله عليه وسلم ته اوتاديب دې حاملانودعلم ته دامت نه،چه دوئ به نه پټوی هيڅ څيزدامردشريعت نه، اوالله تعالی عالم ؤوپه امردنبی چه دې نه پټوی څه څيزدوحی نه،اوپه مسلم کښې،مسروق د حضرت عائشه رضي الله عنهانه روايت کوی که چااووئيل چه محمد صلی الله عليه وسلم څه پټ

کړی دی دوحی نه نودغه کس دروغ اووئیل،اوالله تعالی فرمائی. «**یاایهاالرسول بلغ** الخ. اودارد دې په روافضو ،الله تعالی دې دوئ رسوا کړی چه دوئ وائی چه نبی صلی الله علیه وسلم بعض وحی پټه ساتلې ده.«تقیه» اوکله وائی چه بعض عملونه ئې حضرت علی رضی الله عنه ته خاص ښودلی دی «ددې ردپه بخاری کښې صراحةً موجود دې» اوکله وائی چه دقرآن لس پارې په باره دخلافت دحضرت علی رضی الله عنه کښې وې هغه ئې پټې کړیدی «**لعنة الله علی الکافنین**» اوحضرت عائشه رضی الله عنهافرمائی.«لوکان محمد کاتِمًا شیئًامن القرآن لکتم هذه الایة» که چرته نبی صلی الله علیه وسلم دقرآن څه حکم پټولې نودا آیت به ئې پټ کړې وې.

﴿وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾ په دې کښې ددویمې خبرې بیان دې یعنی دحفاظت وعده. دترمذی په روایت کښې دی حضرت عائیشه رضی الله عنهافرمائی چه دنبی صلی الله علیه وسلم څوکیداره به کیدله، تردې پورې چه الله تعالی داآیت نازل کړو،نونبی صلی الله علیه وسلم دخیمې نه بهرسرمبارک راوښکلواو وې فرمائیل اې خلقوواپس لاړشئ،الله تعالی زماحفاظت اوکړو،اوپه حدیث کښې دی چه دا آیت «لیلیِ،فراشی،دې،یعنی دشپې چه نبی صلی الله علیه وسلم په خپل فِراش ؤنوداانازل شو،دبخاری شریف په یوروایت کښې دحضرت عائشه عنهانه مروی دی چه یوشپه نبی صلی الله علیه وسلم اووئیل. «لیت رجلاصالحایحرسنی» چه څوک وې اوزماڅوکیداری ئې کړې وې،نوموږآوازداسلحې واؤریدل. نونبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه څوک ئې؟ نوسعدبن ابی وقاص رضی الله عنهٔ اووئیل چه زه یم څوکیداریٔ له راغلې یم،نونبی صلی الله علیه وسلم آرام اوکړو.که څوک **سوال** اوکړی چه الله تعالی دحفاظت وعده اوکړه نوپه جنګ احدکښې اونوروااوقاتوکښې تکلیفونه زخمونه ولې اورسیدل،بعض مفسرینودا **جواب** کړې دې چه داآیت ددغه تکلیفونواوزخمونونه روستونازل شویدې،اوبعض وائی چه په دې آیت کښې وعده دحفاظت دقتل نه «یعصمک من القتل فلایصلون الی قتلک» حضرت تهانوی رحمه الله وائی چه په دې کښې وعده د محفوظیة ده په تبلیغ کښې یعنی داسې اُمور اوحوادث به تاته نه راځی چه تامنع کړی دتبلیغ نه،باقی تکلیفونه زخمونه، درفع د درجاتو،اودترقې دمراتبودپاره سبب دې اوضروری دی.﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ﴾ داد دریمې خبرې بیان دې. ﴿قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ﴾ دادبلغ ماتحت داخل دې اواول حکم دې چه اهلِ کتابوته صاف صاف اوایه چه تاسوکافریئ ، اوپه هیڅ صحیح لارباندې نه یئ روان ترڅوچه تاسوپه تورات انجیل کښې هغه حکمونه نه وی منلی

چه منسوخ اومحرف نه دی اوترځوچه تاسوقرآن او حديث نه وی منلی.﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ﴾ دابشارت دي،﴿وَٱلصَّٰبِـُٔونَ ﴾په رفع سره عطف دي په محل د اسم د(ان) باندې.

| |
|---|
| لَقَدْ أَخَذْنَا مِيثَٰقَ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ وَأَرْسَلْنَآ إِلَيْهِمْ رُسُلًا ۖ كُلَّمَا |
| په تحقيق سره اخېستې وه مونږ پخه وعده د بني اسرائيلو نه اوليږلي وو مونږ دوئ ته رسولان، هرکله |
| جَآءَهُمْ رَسُولٌۢ بِمَا لَا تَهْوَىٰٓ أَنفُسُهُمْ فَرِيقًا كَذَّبُوا |
| چې به راغلو دوئ ته رسول په هغه حکمونوسره چې نه به خوښول نفسونو ددوئ، نود يوډلې به نې تکذيب اوکړو |
| وَفَرِيقًا يَقْتُلُونَ ۝ وَحَسِبُوٓا أَلَّا تَكُونَ فِتْنَةٌ فَعَمُوا وَصَمُّوا |
| اويو ډله به نې قتل کړه اوگمان اوکړو دوئ چې نه به وی هيڅ عذاب پدې عمل نوړانده شول اوکاڼه شول دوئ |
| ثُمَّ تَابَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ ثُمَّ عَمُوا وَصَمُّوا كَثِيرٌ مِّنْهُمْ |
| بيا مهرباني او کړه الله په دوئ باندې بياړانده شول اوکاڼه شول ډېر ددوئ نه |
| وَٱللَّهُ بَصِيرٌۢ بِمَا يَعْمَلُونَ ۝ |
| اوالله ليدونکي دې هغه عملونو لره چې کوم دوئ کوی. |

﴿ لَقَدْ أَخَذْنَا مِيثَٰقَ ﴾ دازجراوتخويف اخروی دې﴿وَحَسِبُوٓا أَلَّا تَكُونَ فِتْنَةٌ ﴾ اشاره ده استمراردتکذيب اودقتل درسولانوته،او(تکون) تامه دې فقط فاعل غواړی اودفتنه نه مرادمبتلاکيدل دی په عذاب سره،﴿ثُمَّ تَابَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ ﴾يعنی الله تعالی دتجديد ددين اود دوئ داصلاح دپاره نور رسولان راؤليږل،

| |
|---|
| لَقَدْ كَفَرَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓا إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْمَسِيحُ ٱبْنُ مَرْيَمَ ۖ وَقَالَ |
| خامخا [1] په تحقيق سره کافردی هغه خلق چې داسې وائی چې بېشکه الله، هم دې مسيح خوئي دمريم دې. او وئيلی دی |

[1] ـ داهم دبلغ ماتحت دې او دويم حکم دې.

| |
|---|
| الْمَسِيحُ يٰبَنِىٓ إِسْرَآءِيلَ اعْبُدُوا اللّٰهَ رَبِّى وَ رَبَّكُمْ ۖ إِنَّهُ مَنْ يُّشْرِكْ |
| مسیح اې بني اسرائیلو عبادت کوئ دالله چې رب ځما دې اورب ستاسو دې، بېشکه چاچې شرک اوکړو |
| بِاللّٰهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوٰىهُ النَّارُ ۖ وَمَا لِلظّٰلِمِينَ |
| دالله سره پس په تحقیق سره حرام کړېدې الله په هغه جنت اوځائې د ده اور دې . اونشته دې ظالمانو لره |
| مِنْ أَنْصَارٍ ۝ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوٓا إِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ ۘ وَمَا |
| هیڅ مددګار خامخاپه[1] تحقیق سره کافردی هغه خلق چې داسې وائی چه بیشکه الله دریم دې د دریو نه، حالانکه چې نشته دې |
| مِنْ إِلٰهٍ إِلَّآ إِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ وَ إِنْ لَّمْ يَنْتَهُوا عَمَّا يَقُولُونَ لَيَمَسَّنَّ الَّذِينَ |
| هیڅوک لائق دبندګئ مګریوذات (الله) دې، اوکه منع نشو دوئ دهغه خبرونه چې دوئ وائی نو خامخا به اورسی |
| كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ أَفَلَا يَتُوبُونَ إِلَى اللّٰهِ |
| کافرانوته ددوئ نه عذاب دردناک . آیا نوتوبه نه اوباسی دوئ (په زړونوسره) الله ته |
| وَ يَسْتَغْفِرُونَهُ ۚ وَاللّٰهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝ |
| اوبخښنه نه غواړی (په ژبوسره) دالله نه اوالله بخښوونکئ رحم کوونکئ دې |

﴿ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ ﴾ دادویم حکم دې د بَلَغ ماتحت دې. یعنی داحکم اورسوه چه خامخایقیناپه تحقیق سره کافردی هغه خلق چه داوائی چه الله تعالی مسیح بن مریم دې.داد عیسایانو یوه فرقه ده چه حلولیه ورته وئیلې شی یاد (اِنَّ اللّٰهَ) نه مراد ((المتصرف فی الامور)) دې.

﴿وَقَالَ الْمَسِيحُ ﴾ یعنی عیسی علیه السلام دخپل اُلوهیة دعوی نده کړې،(مدعی سست، ګواه چست) بلکه نفی ئې کړیده، ﴿لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوٓا ﴾ دادریم حکم دې د بَلَغ ماتحت دې اودادعیسایانوبله ډله ده، (نسطوریه)یا ،(ملکانیه).

۱ - دا هم د بلغ ماتحت دې اودریم حکم دې .

مَا الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ؕ وَ اُمُّهٗ

نه دي مسيح ځوئي د مريم مګر رسول دي، په تحقيق سره تير شوي دي مخکښې دده نه ډير رسولان . اومور ددة

صِدِّيْقَةٌ ؕ كَانَا يَاْكُلٰنِ الطَّعَامَ ؕ اُنْظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ انْظُرْ

ولي وه، وۀ دواړه چې خوړلو به ئې خوراک ، اوګوره څه رنګ بيانوۀ مونږ دوئ ته دليلونه دتوحيد بياوګوره

اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ۝ قُلْ اَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا

څه رنګ اوړيدلې شي دوئ دتوحيدنه، ته ورته اووايه آيا بندګى (١) کوئ تاسو ماسوا دالله نه دهغه چاچې

لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّ لَا نَفْعًا ؕ وَاللّٰهُ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝

اختيارنه لري تاسو لره دضرر اونه د نفعې، الله (خاص) هرڅه آوري اوپه هرڅه پوهه دي

﴿ مَا الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ اِلَّا رَسُوْلٌ ﴾ عيسايانو حضرت عيسى عليه السلام ته اله وئيلو،او حضرت مريم ته ئې هم اِله ويلو،اودحضرت عيسى عليه السلام معجزات ئې دهغه دالُوهية دليل ګرځولواودمريم کرامات ئې دهغې دالُوهية دليل ګرځولو،نوالله تعالى فرمائى چه حضرت عيسى عليه السلام رسول دي معجزات درسالت دليل دي اوکرامات دولايت علامه اودليل دي.

﴿قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِ الرُّسُلُ﴾ دده نه مخکښې هم رسولان تيرشوي دي دهغوئ هم معجزات ؤونوکه دمعجزاتوپه وجه تاسوحضرت.عيسى عليه السلام ته اِله وائى نوبياهررسول ته اله وايئ .صرف دري اِله ولې منئ، اوکه دکراماتوپه وجه حضرت مريم ته اِله وايئى نوهرولى ته اله وايئى.صرف مريم ته ولې اِله وايئ . ﴿ وَاُمُّهٗ صِدِّيقَةٌ ﴾ (**صديقة**) په معنى دوليه سره دي اومرتبه دصديقيت دنبوت نه غيرده،په دليل دعطف سره،(**مع النبيين والصديقين**) نومعلومه شوه چه حضرت مريم نبى نه وه. اوپه دي باندې دعلماؤاتفاق دي چه په ښځوکښې څوک نبي نشته دي. ﴿كَانَا يَاْكُلَانِ الطَّعَامَ ﴾ دادليل دي په نفى دالوهية دعيسى عليه السلام اودمريم چه دوئ دواړه طعام ته محتاج دى اومحتاج اِله نشى کيدې، ﴿ قُلْ اَتَعْبُدُوْنَ ﴾ داخلورم حکم دي دبلَغ ماتحت دي يعنى داحکم اورسوه چه عيسى عليه السلام اومريم اودارنګه تمام مخلوقات

١ داخلورم حکم دي دبلَغ ماتحت دي

مالک دنفع اوضررنه دي نوهغوئ معبود او اله هم نشي کيدي

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ غَيْرَ الْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعُوْٓا

نه ورته اووايه اې اهل کتاب ! (۱) تجاوز مه کوئ دحدنه پخپل دين کښې بغېردحق نه. اوتابعداری مه کوئ

اَهْوَآءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوْا مِنْ قَبْلُ وَاَضَلُّوْا كَثِيْرًا وَّضَلُّوْا

دخواهشاتودهغه قوم چې ګمراه شوی دی مخکښې ستاسونه اوګمراه کړي يې وو ډېروخلقولره اوګمراه شوی وو

عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ ۝

د برابرې لارې نه .

﴿ قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ ﴾ داپنځم حکم دي دبَلِّغ ماتحت داخل دې.يعنی داحکم اورسوه اهلِ کتابوته چه افراط تفريط مه کوئ،عيسى عليه السلام دخپل مقام نه مه اوچتوئ چه اله ورته اووايئى،لکه عيسايان چه وائى،اومه ئې دخپلې مرتبې درسالت نه ښکته کوئ.لکه يهوديانوچه دعيسى عليه السلام دنبوت نه انکارکړيدې،﴿ غَيْرَ الْحَقِّ ﴾ داپه محل دحال کښې دې، (اى اخذين غيرالحق) .

﴿ وَلَا تَتَّبِعُوْٓا اَهْوَآءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوْا ﴾ يعنی په اصلِ انجيل وغيره کښې آسمانی کتابونوکښې دعقيدې دشرک هيڅ نوم نشان نه ؤو،روستوبياديونانی بت پرستانوپه تقليد کښې بعضِ عيسايانو(پولوس) دعقيدې دشرک ايجاداوکړواونوروعيسايانودهغه تقليد اوکړو،نوپه دې آيت کښې الله تعالى فرمائى چه دداسې قوم تقليدمه کوئ چه پخپله هم ګمراه ؤواونورخلق ئې هم ګمراه کړيدي،حالانکه ستاسوپه اصلِ ملت کښې دغه شرکې عقائدنه ؤو.

لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْۢ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَلٰى لِسَانِ دَاوٗدَ وَ عِيْسَى ابْنِ

لعنت کړې شوېدې په هغه کسانو چې کفرئې کړېدې دبنی اسرائيلونه په ژبه د داود اودعيسى خونې

مَرْيَمَ ؕ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ۝ كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَنْ مُّنْكَرٍ

دمريم. داپه سبب ددې چې دوئ نافرمانی کوله اوحدنه ئې تجاوز کولو . ؤ دوئ يو بل ئې نه منع کول دبدکارنه

(۱) . زجر اهل کتابو ته .

فَعَلُوْهُ ۭ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ۝

چې کوؤبه ئې، خامخا ډېربددي هغه کار چې دوئ به کوؤ.

﴿ لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ﴾ دا اهلِ کتابوته تخويف دنيوی بيانيږی، چه هغوئ افراط تفريط کولو.د داؤد عليه السلام په ژبه چه ملعون شوی ؤو،نوهغه اصحاب السبت دی چه دهفتې په ورځ ئې دمهيانو(کبانو) ښکارکولو،اونه منع کيدل نوداؤد عليه السلام ورته بد دعااوکړه (اللهم العنهم واجعلهم اية) ياالله په دوئ لعنت اوکړه اودآئينده نسلونودپاره ئې عبرت اوګرځوه.نودوئ مسخ شواوشادوګان (بيزوګان) ترينه جوړشواوکوم خلق چه دعيسی عليه السلام په زبان ملعون شويدی نوهغه اصاب المائده دی،چه دوئ دنزول دمائده مطالبه کړې وه اومائده نازله شوه اودوئ ترينه خوراک اوکړوليکن بيائې هم ايمان نه راوړو،نوعيسی عليه السلام ورته بد دعااوکړه (اللهم العنهم کمالعنت اصحاب السبت) نودوئ مسخ شواوخنزيران ترينه جوړ شو،چه تعدادئې (٥٠٠٠) پنځه زره ؤو،زنانه بچی په کښې نه ؤو،يامراد دلعنت نه په ژبه د داؤد عليه السلام او دعيسی عليه السلام دادې چه دَ دوئ په کتابونوکښې زبور،انجيل کښې په دغه خلقو لعنت موجودؤو،داقول دابن عباس رضی الله عنه نه مروی دې اواوله توجيه دحسن،مجاهداو قتاده نه مروی ده.﴿ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا ﴾ دابيان دسببِ لعنت دې چه عصيان اوتعدی ده يعنی کفرِشديد.

﴿ كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ ﴾(يتناهون) دتناهی نه مشتق دې اودافعل متعدی دې په معنی دفعل لازمی سره چه انتهاء ده (ای کانوالاينتهون) دوئ دکفرنه نه منع کيدل يعنی د دوئ کفر شديدهم ؤو.اومديدهم ؤو،يافعل متعدی په خپله معنی سره دې يعنی دوئ يوبل نه منع کول نهی عن المنکرئې نه کولونوداسبب دلعنت شو،اوددې تائيددهغه حديث نه کيږی چه روايت ئې کړيدې ابوداؤد،ترمذی اواصحاب المسانيد دحضرت عبدالله بن مسعودرضی الله عنه نه (ان اول مادخل النقص علی بنی اسرائيل – آه ) يعنی په بنی اسرائيلوباندې تنزل اول ددينه شروع شوچه يوکس به دبل سره ملاؤشواوپه ناجائزکارکولوباندې به ئې اوليدونومنع به ئې کړو،چه ګوره دالله تعالی نه ويريږه،داسې مه کوه،داتالره نه دی حلال،نوچه بيابه ورسره ملاؤشو اوهغه په خپل حال ؤو،(په ګناه کښې به مبتلاؤو) نودنه منلوباوجودبه ورسره دخپل تعلقات دخوراک ځکاک، کيناستل، پاسيدل،قائم لرل،هرکله چه عام طورسره داسې اوشوه نوالله تعالی دبعضوقلوب دنوروبعضوسره خلط کړل،يعنی دنافرمانوزړونه چه څنګه ؤو،دهغوئ

دنحوست دوجه نه دفرمانبرداروزړونه هم دغه شان تورشو .بیانبی صلی الله علیه وسلم په تاٸید کښې دا آیت د(**فاسقون**) پورې تلاوت کړو،اوبیائې اوفرمائیل.(کلاوالله لتامرن بالمعروف ولتنهون عن المنکرولتاخذن علی ید الظالم ولتاطرُنّه) (ای لتردنه)،علی الحق ولتقصرنه علی الحق قصرا"ولیضربن الله بقلوب بعضکم علی بعض لیلعنتکم کمالعنهم) نبی صلی الله علیه وسلم په ډیرتاکیدسره (کلاوالله) اوفرمائیل چه تاسوامربالمعروف نهی عن المنکرکوئ،دظالم لاس نیسئ،دظلم نه ئې منع کوئ اوحق طرف ته ئې واپس کوئ ګنی ستاسوزړونه به هم هغه شان خلط ملط (تور) شی لکه چه دهغوئ زړونه ؤو،اوپه تاسوبه لعنت اوشی لکه چه په هغوئ باندې شوې ؤو،داحدیث چه ددې آیت په تفسیرکښې وارد دې،ددې نه واضح طورسره معلومه شوه څوک چه دګناه په ماحول کښې وی اود دعوت الی الله عمل نه کوی نوزړه ئې دګناه دنحوست دوجه نه تورشی اودنیکئ توفیق ترینه سلب شی اودلعنت مستحق شی، (اللهم احفظنابفضلک) نود دعوت الی الله عمل دخپل ایمان اواعمالو حفاظت دې،بل چاته نفع رسیدل علاوه خبره ده.

| تَرٰی كَثِيْرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۭ لَبِئْسَ مَا قَدَّمَتْ |
|---|
| وینې ته ډیرولره ددوئ نه چې دوستانه کوی دکافرانوسره ، خامخابد دې هغه عمل چې مخکې لیږلې دې |
| لَهُمْ اَنْفُسُهُمْ اَنْ سَخِطَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَفِي الْعَذَابِ هُمْ خٰلِدُوْنَ ۝ |
| دوئ لره نفسونو ددوئ هغه داچې غضب کړېدې الله پدوئ باندې اوپه عذاب کښې به دوئ همیشه وی |
| وَلَوْ كَانُوْا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالنَّبِيِّ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوْهُمْ |
| اوکچرې دوئ ایمان لرلې په الله اوپه نبی باندې اوپه هغه کتاب چې نازل کړې شوېدې ده ته نه به ئې نیولې دوئ لره |
| اَوْلِيَاۗءَ وَلٰكِنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ۝ |
| دوستان لیکن ډیر ددوئ نه نافرمان دی. |

﴿ تَرٰى كَثِيْرًا ﴾ په اهلِ کتابوکښې ډیرخلق لکه کعب بن اشرف وغیره شو ، دوستی کوی دکفارودمکې سره،دنبی صلی الله علیه وسلم اودمؤمنانوخلاف متحده محاذجوړول غواړی، لیکن داسې منصوبې جوړول اوعملونه کول د دوئ دپاره مفیدنه دی بلکه ډیربد دی

﴿أَن سَخِطَ اللَّهُ﴾ دامخصوص بالذم د (بئس) دپاره دي په حذف دمضاف سره.(اى موجب ان سخط الله) يامخصوص بالذم محذوف دي اى فعلهم هذا ان سخط الله ورله علت دي.

﴿وَفِي الْعَذَابِ هُمْ خَالِدُونَ﴾ په دې عطف دې نومعلومه شوه چه په موالات دكفارو سره دادوه كارونه كيږي،(۱) سخط دالله تعالى،دسخط په معنى كښې زيات دې د(غضب) نه دسخط معنى دغصه سره دخفگان نه،او(۲) بل خلودفى النار ﴿وَلَوْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ﴾ دايمان علامه ترك موالات دې دكفاروسره،اوموالات دكفاروسره علامه دكفر،موجب دسخط اودخلودفى الناردې،

(**فائده**) د(موالات) (مدارات) (مواساتو)،فرق اوحكم مخكښې ذكرشويدې په سورت آل عمران كښې.

لَتَجِدَنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الْيَهُودَ وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا ۖ وَلَتَجِدَنَّ

خامخا به ته اوموې سخت دخلقونه په دښمنئ كښې دمومنانوسره يهوديان اومشركان ، اوخامخا به اوموې ته

أَقْرَبَهُم مَّوَدَّةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الَّذِينَ قَالُوا إِنَّا نَصَارَىٰ ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّ

زيات نزدې ددوئ نه په دوستانه كښې دمومنانوسره هغه كسان چې وائى بېشكه مونږ نصارى يو، دا په سبب ددې چې

مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ وَرُهْبَانًا وَأَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ۝

بعضې ددوئ نه دحق طلب گار عالمان دى، او يره كوونكى دالله نه پيران، او په سبب ددې چې بېشكه دوئ تكبر نه كوى

﴿لَتَجِدَنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً﴾ مخكې منع دموالات دكفارونه ذكرشوه اووعيدپه موالات ذكرشواودنزول دقرآن په وخت كښې كفاراومخالفين داسلام درې فرقې وې،يهود، نصارى،مشركين،په دې آيت كښې دعداوت په اعتبارسره دهغوئ تجزيه اودرجه بندى ذكر كيږي،دانسان دپاره داخلى دښمن خونفسِ اماره بالسوء دې،اوخارجى دښمن دټولو انسانانو دپاره ابليس دې،ليكن دمسلمانانودپاره په انسانانوكښې سخت ترين دښمن يهود دى.

﴿لَتَجِدَنَّ﴾ دوه مفعوله غواړى ﴿أَشَدَّ النَّاسِ﴾ مفعول اول دې،او ﴿الْيَهُودَ﴾ مفعول ثانى دې يابرعكس . (**عدواة**) تميزدې د(**اشدالناس**) دپاره،يعنى په انسانانوكښې سخت ترين دښمن دمؤمنانودپاره يهود دى،اوپه دويم نمبركښې ﴿وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا﴾ مشركان دى:

دوجماعتونو ذکر صراحة اوشونود دریم جماعت (نصاراؤ) حال معلوم شوچه دوئ په دریمه درجه کښې د ښمنان دی اودروستوجملې نه هم معلومیږی

﴿وَلَتَجِدَنَّ أَقْرَبَهُم مَّوَدَّةً﴾ دقرب معنی داده چه دوستان خونه دی لیکن دنورویه نسبت سره غنیمت دي.(تهانوی) دلته هم ﴿أَقْرَبَهُم﴾ مفعول اول دې او ﴿الَّذِينَ قَالُوا إِنَّا نَصَارَىٰ﴾ مفعول ثانی دې.﴿ذَٰلِكَ﴾ یعنی کیدل د دوئ اقرب مودة په دې وجه دی ﴿بِأَنَّ مِنْهُمْ﴾ په دې وجه دی چه په دوئ کښې عالمان اوپیران دی.حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی چه داپه منزله دعلت فاعلی دې.لکه زرگر د زرو، نه زیورجوړوی.نودغه شان صحیح اهلِ حق علماء اوپیران دی.

﴿وَأَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ﴾ نوداپه منزله دعلت مادی دې.تکبراوتعصب چه په چاکښې نه وی نوپه هغه کښې صلاحیت دقبول دحق وی اوپه تکبراوتعصب سره دغه صلاحیت سلب کیږی.اومتکبرسړې دعالم اودپیرپه جهداومحنت سره نه جوړیږی.

(**فائده**) دانگریزخلاف چه کله اهلِ حقُ (علماؤ د دیوبند) جدوجهدشروع کړو.نواهلِ بدعت، دبریلیانومشرانوئې خلاف شروع کړواوفتوی ئې جاری کړه چه نصارای دمؤمنانو دپاره دوستان دی لکه ددې آیت نه صراحة معلومیږی د دوئ سره جهادکول جائزنه دی.داخبره د دوئ په فتاؤکښې موجوده ده،چونکه دوئ دا آیت په استدلال پیش کولونوددې وجه نه حضرت تهانوی رحمه الله ددې آیت مکمل تحقیق په بیان القرآن کښې لیکلې دې.چه دلیدلوقابل دې.بلکه ضروری دې.چه دهغې حاصل دادې چه دشانِ نزول اودنورو دلائلو اوشواهدواو قرائنونه دامعلومه ده چه په دې آیت کښې دټولونصاراؤذکرنه دې بلکه مخصوص نصاری مراد دی.چنانچه حضرت تهانوی رحمه الله لیکی:

*پس بعض اہلِ تملق کادنیوی غرض سے اس میں عموم مطلق کا دعوی کرنا محض ہوا پرستی ہے۔*

دآیت نه که چرته ټول نصارای دهرې زمانې دهرځائې،مرادشی نوپه کلام الهی کښې به کذب راشی.ځکه چه داخو مشاهده ده چه دموجوده زمانې نصاری خودمسلمانانو دوستان نه دی.اوقرآن ورته دوستان وائی، دارنګه په موجوده زمانه کښې په نصاراؤکښې داصفات نشته دې.(**قسیسین، رهبان، لایستکبرون**) اودا رنګه د(**واذاسمعو**) نه د(**مع القوم الصالحین**) پورې اوصاف په ټولونصاراؤ کښې چرته موجود دی؟ نودا آیت په حق دخاصونصاراؤکښې نازل دې

چه نصاراى دحبشه دى،يعنى نجاشى چه ايمان ئې راوړې ؤو،اوبعض مفسرين وائى چه دا آيت په حق دعامونصاراؤكښې دې اګركه كافران وى ليكن مطلب ئې دانه دې چه ټول نصارى دهرې زمانې دهرځائې،دمسلمانانودوستان دى، بلكه مطلب ئې دادې چه په نصاراؤكښې دقبول حق صلاحيت زيات دې په نسبت سره يهوديانوته،ځكه چه په يهودوكښې ضد ، حسد ډيرزيات دې اوپه نصاراؤكښې دهغوئ په نسبت سره كم دې،اوانابت په كښې زيات دې، نود ﴿أَقْرَبَهُمْ مَّوَدَّةً﴾ نه مرادانابت كول دى حق طرف ته،يعنى يهوداونصارى اګركه دواړه دښمنان دى ليكن فرق ئې دومره دې چه يهودډير بدبخت بدترين دښمنان دى اودقبولِ حق استعدادپه كښې ډيركم دې،اوحسد ،ضد په كښې ډيرزيات دې،اونصارى هم اګركه دښمنان دى ليكن د يهودوپه نسبت په دوئ كښې ضد ، تعصب اوحسدكم دې،اودقبولِ حق استعدادپه كښې زيات دې اوددې وجه نه چه كومو نصاراؤحاكمانوته دنبى صلى الله عليه وسلم دعوت نامې رسيدلى دى نويائې ايمان راوړې دې يائې كم ازكم د دعوت نامې احترام ساتلې دې لكه هرقل، بهرحال راجح قول دادې چه دا آيت په حق دخاصونصاراؤكښې دې،چنانچه مفسرين حضراتوددې آيت شانِ نزول مفصل ذكركړيدې دهغې اختصاردادې چه دهجرت نه قبل په مكه كښې مسلمانان دكفارودا ذيت نه ډيرتنګ شواودنبى صلى الله عليه وسلم نه ئې دهجرت كولواجازت طلب كړو،نويو وفد د(١١) يولس كسانوچه په دې كښې حضرت عثمان رضى الله عنه اود دوئ زوجه محترمه حضرت رقيه ﷺ دنبى صلى الله عليه وسلم لورهم وه دوئ حبشې ته هجرت اوكړو،ددې نه بعدبيادحضرت جعفربن ابى طالب رضى الله عنه په قيادت كښې يوه لويه قافله بعض نارينه بعض زنانه،چه دوه اتياكسان (٨٢) ؤوهجرت ئې اوكړوحبشې ته، اودحبشې بادشاه اوخلقودوئ ډيرښائيسته استقبال اوكړواودوئ په امن وعافيت سره هلته ديره شو،كفارودمكې ته په دې باندې ډيره غصه ورغله چه دامؤمنان په امن اوعافيت سره زندګى تيروى،نودوئ يو وفداوليږلوچه دحبشې بادشاه اودهغه حاكمانوته ئې دځان سره ډيرې تحفې يوړې،اوبادشاه ته ئې عرض اوكړوچه مونږدمكې شرفاؤ،ددې مهاجرينو پلارانواومشرانوراليږلى يوچه دوئ مكې ته واپس كړه،بادشاه اووئيل چه زه دوئ بلا تحقيقه نه شم واپس كولې،اودتحقيق دپاره ئې حضرت جعفررضى الله عنه او دده ملګرى راؤغوښتل ، نوحضرت جعفررضى الله عنه دبادشاه اودحاكمانوپه مخكښې دحضورصلى الله عليه وسلم مختصرجامع سيرت اود اسلام مختصرجامع خاكه پيش كړه، او د سورت مريم

تلاوت ئې اوکړو ،نوبادشاه اوټولې مجمع اوژړل،اودبادشاه اودحاکمانو اودعوامو په زړونو کښې داسلام اودحضورصلی الله علیه وسلم محبت اوعظمت پیدا شو ، او دصحابؤ مهاجرینو قدرمنزلت نورهم زيات شو ،اوبیاهرکله چه نبی صلی الله علیه وسلم مدینې ته هجرت اوکړو.
نو مهاجرینودحبشې مدینې منورې ته دراتللوعزم اوکړواودحبشې بادشاه نجاشی (اصحمه) یولوئې وفد دنصاراؤچه اویاکسان (۷۰) ؤ،اوپه دې کښې د دوئ علماؤاوراهبان ؤو .مدینې ته راؤلیږل،په دې کښې (۲۲) کسان دحبشې او(۸) کسان دشام نصارای ؤو،دا وفد په درویشانه لباس کښې دنبی صلی الله علیه وسلم حضورته حاضرشو ،اونبی صلی الله علیه وسلم دوئ ته سورتِ یاسین تلاوت کړونودوئ ټولوډیراوژړل،او وې وئیل چه داکلام ډیر مشابه دې دهغه کلام سره چه په حضرت عیسی علیه السلام نازل شوې ؤو ، اودا ټول وفد مسلمانان شو ،نوپه دې آیت کښې د دوئ ذکردې،اودوئ چه حبشې ته واپس شونو بادشاه نجاشی هم داسلام راؤړلو اعلان اوکړو ،اویوخط ئې دنبی صلی الله علیه وسلم په نوم اولیکلو اوخپل زوې ئې دیوبل وفدقائدجوړ کړواومدینې منورې ته ئې اولیږلو ،لیکن د دوئ کشتې په دریاب کښې غرقه شوه،دوئ مدینې ته راؤنه رسیدل،اودحبشې بادشاه اوعوام مسلمانان شو ،بیاچه بادشاه کلاوفات شو نونبی صلی الله علیه وسلم ئې غائبانه جنازه اداکړه،

﴿قِسِّيسِينَ وَرُهْبَانًا﴾ قسیس عالم دنصاراؤته وئیلې شی، دادمبالغې صیغه ده، ((قس تتبع بالليل)) دشپې دځه ځیزتلاش کولوته وائی،دوئ ته ((قسیس)) وائی دوجه دډیرطلب دعلم نه،قطرب وئیلی دی چه دا لغتِ رومی بیاعربی شویدې،او (رهبان) جمع د (راهب) ده،د (رهبة) نه ماخوذدې په معنی د (مخافة) سره،او (ترهب) (تعبدفی الصومعة) ته وائی،راهب په معنی دعابدفی الصومعة لمخافة الله سره دې،دوئ چه په خپل ځان باندې دخپل طرفه کوم مشقت اچولې ؤو ،لکه ترک ددنیوی اشغالو ،لذاتو ،عزلت،ګوشه نشینی، حتی چه بعض به خپل ځان خصی کولودې ممانعت په اسلام کښې راغلې دې،(لارهبانية في الاسلام) دغه معنی ده .

شپږمه پاره ختمه شوه ولله الحمد اولاً واخراً

وَاِذَا سَمِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَى الرَّسُوْلِ تَرٰٓى اَعْيُنَهُمْ تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ

اوکله[۱] چې واورې دوئ هغه کتاب چې نازل کړې شوېدې رسول ته وينې به ته سترګې ددوئ بهيږي به داوښکو نه

مِمَّا عَرَفُوْا مِنَ الْحَقِّ ۚ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اٰمَنَّا فَاكْتُبْنَا

دوجې ددې نه چې دوئ اوپيژندلو حق لره، وائي دوئ اې ربه زمونږ ايمان راوړې دې مونږ نو اوليکه مونږ

مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۸۳﴾ وَمَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَا جَآءَنَا

دشهادت کوؤنکو سره اوڅه عذر دې مونږ لره چې ايمان به راوړو په الله اوپه هغه څه چې راغلېدی مونږ ته

مِنَ الْحَقِّ ۙ وَنَطْمَعُ اَنْ يُّدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۸۴﴾ فَاَثَابَهُمُ اللّٰهُ

دحق نه (حالانکه) مونږ طمع لروچې داخل به کړې مونږ رب زمونږ دقوم نېکانوسره . پس بدله ورکړه دوئ ته الله

بِمَا قَالُوْا جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَ ذٰلِكَ جَزَآءُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۸۵﴾

په وينا ددوئ جنتونه چې بهيږي به لاندې دهغې نه نهرونه همېشه به وي دوئ په هغې کښې، اودا بدله دنېکي کونکو ده

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ﴿۸۶﴾

اوهغه کسان چې کفرنې کړېدې او نسبت د دروغو ئې کړيدې آيتونوزمونږ ته دغه کسان دوزخ والا دي

﴿وَاِذَا سَمِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَى الرَّسُوْلِ﴾ ددې نه مرادهغه وفددې چه مدينې ته راغلي ؤواونبی صلی الله عليه وسلم دوئ ته سورة ياسين تلاوت کړې ؤو،اودوئ دا اعلان کړې ؤو.﴿رَبَّنَآ اٰمَنَّا﴾،

﴿فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ﴾ د(**شاهدين**) نه مرادامتِ محمدصلی الله عليه وسلم دې چه دقيامت په ورځ به په نوروخلقودانبياؤدپاره ګواهي کوي،يا(**شاهدين**) په معنی دګواهي کوونکی په حقيت د نبی صلی الله عليه وسلم اودقرآن،اوپه﴿تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ﴾ کښې مبالغه ده څکه چه سترګې خونه بهيږي، بلکه ډکې شی داوخکونه اواوخکې بهيږی اودلنه نسبت دبهيدلو سترګو ته اوشو .چه بهيږی داوخکونه

---

۱ بشارت

﴿ وَمَا لَنَا ﴾ او څه باعث او عذر دي مونږ لره چه ایمان به نه راوړو .داجواب دي د اعتراض وملامتیادخلقونه چه تاسوولي خپل مخکنی دین پرېښودلواوبل دین موغوره کړونودوئ اووئیل چه هیڅ عذرنشته دي مونږلره په ترک دایمان بالله.اودایمان بالقرآن کښې.

﴿ وَنَطْمَعُ ﴾ داجمله حالیه ده په تقدیر د (نحن) سره (ای والحال انه نحن نطمع) یاداعطف دي په «نؤمن» باندې حاصل دادي چه سبب اوباعث دایمان موجود دي چه طمع دجنت ده.او مانع دایمان نشته اوپه وخت دوجود دسبب اوانتفاء دمانع کښې وجوب راځی.

﴿ مَعَ الْقَوْمِ الصَّالِحِينَ ﴾ د «صالحین» نه مرادامتِ محمدی دې او «مع» په معنی د «فی» سره دې یاپه عبارت کښې تقدیردې (ای یدخلنافی الجنة مع الصالحین)،

﴿ فَأَثَابَهُمُ اللَّهُ ﴾ دابشارت دې،﴿ بماقالوا﴾ صرف قول نه دې مراد ،لکه کرامیه چه وائی چه ایمان صرف اقرارِلسانی دې،بلکه قول مع الاعتقادمراد دې،لکه دماقبل صفاتونه معلومه شوه،یاقول په معنی داعتقاداومذهب سره دې لکه چه وئیلې شی هذاقول ابی حنیفه.

﴿ وَالَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ داتخویف اخروی دې،

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُحَرِّمُوا۟ طَيِّبَٰتِ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوٓا۟ ۚ

اې ایمان والو[1] حرام مه ګڼړئ پاک هغه څیزونه چې حلال کړی دی الله تاسولره اوزیاتې مه کوئ [2] دحدنه

إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْمُعْتَدِينَ ۝ وَكُلُوا۟ مِمَّا رَزَقَكُمُ ٱللَّهُ حَلَٰلًا

بېشکه الله محبت نه کوی دحدنه تېرېدونکو سره . اوخورئ [3] دهغې نه چې درکړې دي تاسوته الله حلال .

طَيِّبًا ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ٱلَّذِىٓ أَنتُم بِهِۦ مُؤْمِنُونَ ۝

پاک او یره کوئ دالله نه هغه الله چې تاسوپه هغه باندې ایمان لرئ.

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُحَرِّمُوا۟ ﴾ داپه حصه ثانی دسورت کښې دویم مضمون دې،یعنی نفی

1- اعاده دمضمون دنفي دشرک فعلي [ ما احل الله ] داضافت بیان دي
2 دمعبو دانو باطله دوجې نه تحریمات مه کوئ.
3 په حالت د شرك کښې چې کوم تحریمات کړی وؤ هغه حلال اوګڼړئ او خورئ ئې

دشرك فعلي، اودلته هم څلورمسائل ذکرکيږي، (۱) تحريمات غير الله، ياتحريمات العباد يا تحريمات مشركين، (۲) نذرلغيرالله، (۳) تحريمات الله، (۴) نذرلله، داول قسم يعنى تحريمات غيرالله ياتحريمات مشركين ياتحريمات العبادحكم دادې چه ددې حرمة ختم كړئ، اوحلال ئې ګنړئ، اوعملاً ئې حرمت ختم كړئ خورئ ئې، د دويم قسم حكم دادې چه نذرلغيرالله حرام دې بلكه دمرداري اوخنزيرنه زيات حرام دې هغه مه خورئ، د دريم قسم حكم دادې چه كوم اشياء الله تعالى حرام كړيدى نودهغې حرمت قائم اولرئ اوعملاً په وجه دحرمة سره دهغې خوړل ترك كړئ، اوعقيده دحرام پرې اولرئ، دڅلورم قسم حكم دادې چه داصحيح دې بلكه سبب دقيام دعالم دې داقائم اوجارى اولرئ.

﴿لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَٰتِ مَآ﴾ اضافت د (**طيبات**) (**ما**) ته اضافت بيانى دې اودااولې مسئلې ذكردې، كوم چه طيبات، يعنى كوم اشياء چه الله تعالى حلال كړيدى نوهغه حرام مه ګنړئ، او دحرام ګنړلودوجه نه ئې خوړل مه ترك كوئ ځكه چه داالله تعالى دحدودونه تجاوزكول دى. اوالله تعالى محبت نه كوى دتجاوزكوونكوسره، (**لاتحرموا طيبات ما**) معنى داده چه حرام مه ګنړئ هغه پاك حلال څيزونه چه الله تعالى حلال كړيدى، اودتحريم دحلالودرې درجې دى:

(۱) **اول** اعتقاد دحرمة دهغې اوترك اكل داعتقاد دحرمة دوجه نه، داقسم تحريم كول دحلال قطعى كفردې، اوشرك فعلى دې دلته داقسم مراد دې، روستو (**ماجعل الله من بحيرة ولاسائبة**) آيت نمبر ۱۰۲، ددې تفصيل دې.

(۲) **دويمه** داچه سرې په حلالوباندې عقيده دحرامونه لرى، خوپه خپل ځان باندې ئې په طريقه دقسم سره حرام كړى مثلاداوائى چه په ماباندې فلانې څيزخوړل حرام وى يادفلانې سړى سره دې خبرې كول په ماحرام وى نودايمين منعقده دې داسې قسم ختمول ضرورى دى اوكفاره وركول دى اوددې آيت په عموم كښې داهم داخليږى لكه په مابعدآيت كښې ئې تفصيل دې.

(۳) **دريمه** داچه قولاً عقيدةً ئې حرام نه كړى خوعملاً ئې ترك كړى اوثواب ئې ګنړى په طور د رهبانيت سره، نوداقسم تحريم بدعت او رهبانيت دې، داقسم تحريم ختمول هم ضرورى دى اودآيت په عموم كښې داهم داخل دې اودرواياتودشان نزول نه معلوميږى، البته كه چاحلال څيزترك كړودجسمانى بيمارئ ياروحانى بيمارئ دوجه نه نوداممنوع نه دې، اوپه دې آيت كښې نه دې داخل.

﴿ وَكُلُوا ﴾ یعنی کوم څیزونه چه تاسودخپل طرفه حرام کړیدي نودهغې حرمت عملاً هم ختم کړئ، اوخورئ ئې، اود (کلوا) نه مرادنفع اغستل دي برابره خبره ده چه په خوړولوسره وي یاپه رکوب اولباس سره وي.

﴿ حَلَٰلًا طَيِّبًا ﴾ دامفعول به د (کلوا) دي او﴿ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ ﴾ ترینه حال دي اودا په اصل کښې صفت ؤو دحلالاً دپاره خومقدم شونوحال شوځکه صفت دنکرې چه مقدم شي نوحال ګرځي، اوددې نه معلومه شوه چه حرام هم رزق دي ځکه که هغه رزق نه وې لکه معتزله وائی نودحلالاً ذکرکول بعد د (مما رزقکم الله) نه بې فائدې ؤو، اوحلال خوهغه دې چه دلیلِ شرعی دهغې دحرمت دپاره نه وی او (طیباً) نه مراد (۱) مستلذات دی. (روی ان رسول الله صلی الله علیه وسلم یاکل الدجاج والفالوذوکان یعجب الحلواء والعسل، (مدارک) (وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم المؤمن حلويحب الحلاوة ( رواه الدیلمی عن علي والحديث ضعيف) (۲) یاد (طیبا) نه مرادهغه دی چه دشبهې نه هم پاک وی او (۳) دعبدالله بن مبارک نه نقل دې چه حلال هغه دی چه په طریقه شرعی سره حاصل شی او (طیبا) هغه دی چه په هغې کښې غذائیت وی او مضرنه وی صحت ته نوپه کوم څیزسره چه غذایت نه راځی اومضروی صحت ته لکه خاوره. کانړې، سکاره، نودامکروه (تحریمی) دی، ددې نه دهرهغه اشیاؤحکم معلومیږی چه په دې موجوده زمانه کښې ئې ایجاداورواج راغلې دې.

| |
|---|
| لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ بِاللَّغْوِ فِيٓ أَيْمَٰنِكُمْ وَلَٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا عَقَّدتُّمُ |
| نه نیسی الله تاسولره په لغو قسمونو ستاسو سره لیکن نیسی تاسولره په هغې چې تاسومضبوط کړی وی |
| الْأَيْمَٰنَ ۖ فَكَفَّٰرَتُهُۥٓ إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَٰكِينَ مِنْ أَوْسَطِ |
| قسمونه (په قصدسره)پس کفاره ددې یعنې دماتولودقسم خوراک ورکول دي لس مسکینانوته د درمیانه |
| مَا تُطْعِمُونَ أَهْلِيكُمْ أَوْ كِسْوَتُهُمْ أَوْ تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ ۖ فَمَن |
| هغه خوراک نه چې تاسو ئې خوروئ پخپل کوروالوباندې یاجامې دهغوئ یا آزادول دمرئ دی، پس څوک چې |
| لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَٰثَةِ أَيَّامٍ ۚ ذَٰلِكَ كَفَّٰرَةُ أَيْمَٰنِكُمْ |
| اونه مومی (دغه مذکور) نوپه ده باندې روژې دی درې ورځې (پرله پسې)، داکفاره دقسمونو (ماتولو) ستاسو ده |

إِذَا حَلَفْتُمْ ۚ وَاحْفَظُوٓا أَيْمَانَكُمْ ۚ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ

كله چې تاسو قسمونه اوكړئ اوساتئ اوحفاظت كوئ د قسمونو خپلو. دغسې بيانوي الله تاسونه

ءَايَٰتِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٨٩﴾

آياتو نه خپل ددې دپاره چې شكر اوكړئ

﴿ لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ ﴾ هركله چه تحريم دحلال يمين ؤو.نوددې وجه نه ديمين ذكركيږي.

﴿بِاللَّغْوِ فِيٓ أَيْمَٰنِكُمْ ﴾ الله جل جلاله مواخذه نه كوي ستاسوپه لغوه قسمونوستاسوسره مؤاخذه دنيوي وجوب دكفارې دې اومؤاخذه اخروي اثم اوګناه دې نوپه يمين لغوه كښې دواړه نشته دې،دامام شافعي رحمه الله په نيزيمين لغوه هغه دې چه بلاقصده په بې پروائي سره قسم اوكړي لكه دبعضوخلقوعادت وي،چه په خبروكولوكښې والله.بالله وائي.اوپه نيزدامام ابوحنيفه رحمه الله اواحمدرحمه الله باندې،يمين لغوه هغه دې،چه په تيرشوي كارباندې دخپل ظن او اعتقادموافق قسم اوكړي چه دا داسې دې،اوپه حقيقت كښې دغه شان نه وي،اويمين غموس په تيرشوي كارباندې قصداًپه ناحقه قسم ته وائي.اوداګناه كبيره ده.تلافى ئې صرف توبه ده، داحنافوپه نزدپه كښې كفاره نشته دې.اوپه نزد دشوافعوپه كښې شته.او اويمين منعقده هغه دې چه آئنده كارباندې قسم اوكړي،نوپه دې كښې كفاره ده.اودامذكور دى په دې آيت كښې:

﴿وَلَٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا عَقَّدتُّمُ الْأَيْمَٰنَ ﴾ (ما) په (بماعقدتم) كښې مصدريه دې (اى بتعقيدكم الايمان) عقد،تعقيد.په اصل كښې غوټه كولواوتړلوته وائي،مرادترينه توثيق اومحكم كول دى په نيت سره.معنى ئې داده چه الله تعالى ستاسومؤاخذه كوي په محكم كولوستاسو قسمونو لره په نيت سره، (اذاحنثتم) كله چه تاسوحانثان شئ،مقدردې يا (بنكث ماعقدتم) مضاف مقدردې،څكه صرف په قسم كولوسره مؤاخذه كفاره نشته دې.يا(ما) موصوله دې اوعائد د موصول مقدردې (اى بماعقدتم الايمان عليه وحنثتم).

﴿ فَكَفَّٰرَتُهُۥٓ ﴾ داتفصيل دمؤاخذې دينوى دې،اوضميرراجع دې حنث ته چه فهميږي دسياق دكلام نه،ياراجع دې يمين ياعقدته،چه په ضمن ده (ايمان) او(عقدتم) كښې مذكور دې په حذف دمضاف سره (اى كفارة نقضه ونكثه) څكه كفاره دحنث نه قبل نشته دې په نزد د

احنافو.اوپه نزد دشوافعوكفاره قبل الحنث جائزده اوبعدالحنث واجبه ده.دوئ په دې آيت سره استدلال كوي ځكه دلته كفاره روستوديمين نه ذكرشويده بغيرذكردحنث نه نومعلومه شوه چه كه حنث نه وي راغلې نوهم كفاره وركولې شي.اوپه روايت دبخاري اومسلم وغيرهماكښې راغلي دي.(من حلف على يمين فراى غيرهاخيراًمنهاًفليكفر عن يمينه وليات الذى هوخير) دلته دكفارې ذكر.قبل دحنث نه شويدې اودارنګه دوئ قياس كړيدې دَ قبل الحنث كفارې وركولو.په تقديم دزكوة په حولان دحول باندې.اواحناف وائي چه دآيت مراد ايجاب دكفارې عندالحنث دې،يعني دآيت مطلب دادې چه كفاره واجبيږي.په وخت دحنث كښې.اوقبل الحنث خو وجوب نشته دې بالاتفاق،نومعلومه شوه چه مراد دآيت دادې چه (بماعقدتم الايمان وحنثتم، فكفارته اطعام)الخ.اوددې نظيرآيت دصوم دې چه (ومن كان مريضاً اوعلى سفرفعدة من ايام اخر) دلته بالاتفاق مراد دادې چه (فافطرفعدة) نودغه شان ددې آيت مراد دادې چه (وحنثتم فكفارته) اوجواب دحديث نه دادې چه په حديث كښې (وليات الذى) الخ،په واؤسره ذكرذې نودا په ترتيب دلالت نه كوي،لكه په دې قول دالله تعالى،(فاسعوا الى ذكرالله وذروالبيع) تقديم د(سعى) په (ذروالبيع) باندې بالاتفاق نشته دې.اوقياس په تقديم دزكوة هم نه دې صحيح ځكه سبب دوجوب دزكوة دپاره ملك دنصاب دې اوهغه راغلې دې اوسبب دكفارې دپاره حنث دې هغه نه دې موجود.(والتفصيل فى اصول الفقه).

﴿إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَٰكِينَ﴾ دلته دكفارې دپاره درې صورتونه ذكرشويدي.نوپه دې كښې ترتيب واجب نه دې بلكه (او) دتخيردپاره دې يعني دكفاره وركوونكي خوښه ده چه په دې دريؤكارونوكښې هريوچه كوي،اول (طعام) دې لس مسكينانوته صبح اوماښام (صبح وشام) اولس فطرانې هم كافي كيږي،يوه فطرانه دوه كلوغنم دی تقريبايادې قيمت.ليكن شرط دادې چه لسومسكينانوته وركړې شي،يايومسكين ته لس ورځې روزانه يوه فطرانه وركړې شي،اوكه لس واره فطرانې ئې په يوځل يومسكين ته وركړې نوداصرف ديومسكين دطعام قائمقام ګرځي د(۱۰) لسوقائمقام نه دې.

﴿مِنْ أَوْسَطِ مَا تُطْعِمُونَ﴾ يعني نه ډيراعلى طعام واجب دې نه ډيرادنى بلكه درميانه هغه طعام چه عاموا وقاتوكښې ئې په خپله خوري اواهل اوعيال ته ئې وركوي.

اودويم ﴿كِسْوَتُهُمْ﴾ يوه جوړه جامه مراد ده قميص پرتګ.اودريم ﴿تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ﴾ ددې نه مرادپه نزد داحنافو مطلق رقبه (غلام) ده.مؤمن وي اوكه كافروي،اوپه نزد دنورو ائيمورقبه

مؤمنه ده. ﴿فَمَن لَّمْ يَجِدْ﴾ يعني څوک چه ددغه درې وارو کارونو طاقت نه لري، نوبيادې درې روژې اونيسي. نوکه طاقت ئې ؤوددغه امورو نو روژې کافي نه دی حتی که په درميان دروژو کښې ئې په اطعام وغيره قدرت راغې لکه دوه روژې ئې نيولی دی اوقدرت ئې راغې نود دريمې روژې په ځائې به اصلِ کفاره ورکوی. اوتتابع. يعني پې درپې ولې په روژه کښې شرط دې په نزد داحنافواوبعض نوروائيموباندې په دليل دقرات دابن مسعودرضی الله عنه او أُبی بن کعب رضی الله عنه سره. ﴿ذَٰلِكَ كَفَّارَةُ أَيْمَانِكُمْ﴾ دلته مضاف مقدردې (ای کفارة نقض ايمانکم) څکه چه سبب دکفارې دپاره يمين نه دې بلکه يمين سبب د (بِر) دې، اوسبب دکفارې ماتول دقسم دی. کفاره دکَفرنه ماخوذدې کَفرستر اومحوکولوډګناه ته وائی، اويمين ګناه نه دې بلکه ګناه دقسم ماتول اودقسم خلاف کول دی. ﴿إِذَا حَلَفْتُمْ﴾ (ای وحنثم) څکه صرف په حلف کولوسره کفاره نه واجبيږي، ترڅوچه حنث نه وی راغلې،

﴿وَاحْفَظُوا أَيْمَانَكُمْ﴾ ددې مطلب دادې چه کله تاسوقسم اوکړئ نوبغيردشرعی يا طبعی ضرورت نه قسم مه ماتوئ. بله معنی ئې داده چه حفاظت کوئ دخپلوقسمونوچه روستودحنث نه جلدی کوئ په کفاره ورکولوکښې (قرطبی)، بله معنی داده چه څان بچ کوئ دقسم کولونه. (واحفظوا انفسکم ايمانکم)(خازن)، (لاتحنثوا اذالم يکن الحنث خيراً اولاتحلفوااصلاً) (مدارک).

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّمَا ٱلۡخَمۡرُ وَٱلۡمَيۡسِرُ وَٱلۡأَنصَابُ وَٱلۡأَزۡلَٰمُ

اې ايمان والو[1] بېشکه شراب اوجواری اوبتان (يعني عبادت ددوئ) او غشی (يعني پدې سره قسمت معلومول

رِجۡسٞ مِّنۡ عَمَلِ ٱلشَّيۡطَٰنِ فَٱجۡتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ۝

پليتې او ګندګي ده دادعمل دشيطان نه دی نوځان اوساتئ ددبنه ددې دپاره چې کامياب شئ

إِنَّمَا يُرِيدُ ٱلشَّيۡطَٰنُ أَن يُوقِعَ بَيۡنَكُمُ ٱلۡعَدَٰوَةَ وَٱلۡبَغۡضَآءَ فِي ٱلۡخَمۡرِ وَٱلۡمَيۡسِرِ

بېشکه (۲) اراده لري شيطان چې واچوی په مينځ ستاسو کښې دښمنی اوکينه په څکلو دشرابو سره اوکولو دجوارئ سره

---

۱ د دريمې مسئلې ذکر يعني نذر لغير الله ګندګی ده څان ترې نه اوساتئ

۲ . داعلت دې دحرمت دخمر او ميسر دپاره اودانصاف او ازلام دحرمت دپاره علت شرک اعتقادی اوفعلی دې

﴿وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ﴾

اومنع کړي تاسو د ذکر دالله نه او دمانځه نه. نو آيا تاسو منع کېدونکي نه يئ

﴿يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْخَمْرُ﴾ داد دويمې مسئلې بيان دې يعنې نذرلغيرالله حرام دې اوپليت دې.اوتحريم د«خمرو» په ډيرحکيمانه اندازسره بالتدريج راغلي دې ځکه چه په عربو کښې دشرابوڅکلوډيررواج ؤونوپه يوځل ئې پريښول ډيرمشکل ؤ.اول واردسورة بقره آيت «وانهمااکبرمن نفعهما» نازل شو.په دې کښې د«اثم» ذکرصراحة ؤ.خومنع دشرابوڅکلونه صراحة نه وه نوددې وجه نه حضرت عمررضی الله عنه اووئيل چه «اللهم بين لنابياناشافيا» بيادسورة نساء آيت نازل شو.په هغې کښې هم دحرمت تصريح نه وه بلکه دنشې په حالت کښې دمونځ کولو ممانعت ؤونوحضرت عمررضی الله عنه بيااووئيل «اللهم بين لنابياناشافيا»

نوبيادا آيت نازل شو.اوحضرت عمررضی الله عنه چه داواؤريدل.﴿فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ﴾ نووې وئيل «انتهينا،انتهينا» او«ميسر» هرقسم جوارى ده. «والانصاب» نه مرادعبادة الانصاب يعنې نذردبتانودپاره اودهغوئ په درګاهونودهغوئ په نوم ذبح کول.لکه دسورت په ابتداء کښې «ومااذبح على النصب» دې،او تحقيق د«انصاب» او«ازلام» مخکښې تيرشويدې.

﴿رِجْسٌ﴾ هرهغه پليت څيزدې چه صحيح فطرتِ انسانی ترينه نفرت کوی.اوبعضِ وائی چه «رجس» هغه څيزدې چه پليت والي ئې پټ وى هرڅوک پرې نه پوهيږى.اوددې وجه نه منافقينوته رجس وئيلې شويدې لکه په سورتِ توبه آيت نمبر ٩٠ کښې.او«نجس» هغه څيز دې چه ظاهراًباطناًپليت وى اوپليتى ئې ظاهره وى هرچاته.اوددې وجه نه مشرکانوته نجس وئيلې شويدى «انماالمشرکون نجس».توبه نمبر٢٨».

﴿مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ﴾ يعنې شيطان انسى جنى داکارونه کوى،اوخلقوته ئې ښائيسته کوى په وسوسوسره.حضرت الشيخ به فرمائيل.چه نذرلغيرالله داعمل دشيطان دې اود شيطان ګندګى «غائط» ده.ګندګى د هرچه پليت وى خوتفاوت په کښې شته دې لکه غائط دانسان. دسپى .دخنزير.اودهرڅه نه زيات پليت اوقبيح دشيطان غائط دى نونذرلغير الله هم هغه شان

پليت اوقبيح اوحرام دې.نوددې وجه نه اجتناب ترينه ضرورى دې.اوضميرد ﴿فَاجْتَنِبُوْهُ﴾ ټولو ته راجع دې په تاويل دمذکورسره يا «رجس» ته راجع دې.

﴿ إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ ﴾ داعلت دې.دپاره داجتناب دخمراودمسیرنه.اوهرچه دې حرمت دانصابواوازلامونوحرمت دعلت ئې شرک فی التصرف اوشرك فعلی دې اودشرك قباحت اوحرمت خوواضح دې نوهغه ذكرنه شو.یعنی شیطان دشرابوڅکلواوجوارئ كولوپه ذريعه سره ستاسوپه مینځ کښې عداوت دښمنی پيداكول غواړی.دشرابوڅکلوپه وجه سره په بدن کښې مستی پیداشی اوعقل مغلوب اوکمزورې شی نوکنځل.وهل.قتلول شروع شی نوعداوت پیداشی اومحبت.اوتعلق ختم شی.اوپه جوارئ كښې كله مال بیللې شی حتی چه بعض خلق په جوارئ کښې کله خپل اهل او اولادګانړه کړی (قرطبی).اوچه مال ترینه بل څوك واخلی نوغصه اودښمنی پیداشی نوهرکله چه په شرابواوجوارئ کښې دانقصانات ؤو.نوځکه حرام کړې شو.اودادنیوی نقصانات دی اودارنګه په شرابواوجوارئ کښې دینی نقصانات دی هغه دادی چه په دې سره دالله تعالی دذکرنه اودمونځ نه سرې منع شيء.ځکه چه خمروسره سرور راځی اواستغراق په جسمانی لذاتوکښې راځی نودذکرالهی نه غفلت پیدا شی.اودارنګه په جوارئ کولوکښې دومره غفلت راځی چه جوارګرته کله خپل خوراك څکاك په یادنه وی نومونځ خودرکنار﴿ فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ ﴾ دادې نه مقصودمنع ده په طريقه دمبالغې سره

وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَاحْذَرُوا ۚ فَإِن تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا

اوتابعداری (١) كوئ دالله اوتابعداری كوئ درسول اوبچ شئ دخلاف نه، پس كه تاسومخ اوګرځوونوپوهه شئ

أَنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ۝

چې بېشکه په رسول زمونږ باندې صرف رسول دی ښکاره

﴿ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ ﴾ داتعمیم دې چه په هرکارکښې دالله تعالی اودرسول صلی الله عليه وسلم اطاعت كوئ.اګرکه دیوځيزمنفعت اومضرت ستاسوپه پوهه کښې نه راځی.

﴿وَاحْذَرُوا﴾ اودقانون الهی خلاف ورزی کولونه بچ اوسیږئ. ﴿ فَإِن تَوَلَّيْتُمْ ﴾ داشرط دې اوجزائې مقدره ده.چه (انتهت الاعذاروانقطعت العلل) یعنی ستاسو عذرونه اوبهانې ختمې دی.اوتاسومستحق دعذاب یئ ځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم تاسوته احکام په

١ - يعني نذر لغيرالله پريږدئ اوذالله ﷻ اودرسول ﷺ اطاعت كوئ.

وضاحت سره رسولي دی، ﴿فَاعْلَمُوٓا﴾ دا مخذوف جزاء قائمقام اوعلت دي،

| لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ اٰمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوٓا |
|---|
| نشته دي په هغه کسانو چې ايمان ئې راوړي دي اوعملونه کوي نېک څه ګناه په هغې کښې چې دوئ خوړلی دی |
| إِذَا مَا اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ثُمَّ اتَّقَوْا |
| کله چې خان بچ کوي دشرک نه اوايمان ئې راوړي دي اوعملونه کوي نېک بيا خان بچ بساتی دحراموںه |
| وَّاٰمَنُوا ثُمَّ اتَّقَوْا وَّأَحْسَنُوا وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴿٩٣﴾ |
| اوايمان همېشه لري بيا ځان ساتي دشبهاتو نه اوښائسته عمل کوی، اوالله محبت کوي دنېکی کونکوسره |

﴿لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّٰلِحَٰتِ جُنَاحٌ﴾ داجواب دي دسوال دصحابؤنه لکه په صحيح اوقوی رواياتودبخاری اوترمذی وغيرهماکښې دی چه هرکله حرمت دخمرو،نازل شو،نوصحابؤسوال اوکړوچه يارسول الله؟ دهغه مسلمانانوبه څه حال وی چه هغوئ دتحريم نه قبل شراب څکلی ؤو اووفات شويدی،لکه بعض صحابؤچه په جنګ احد کښې شراب څکلی ؤو،اوپه دغه حالت کښې شهيدان شوی ؤو،نوجواب راغې چه په دوئ باندې په دې کښې هيڅ ګناه نشته دې ځکه چه تحريم نه قبل شراب څکل اوابه څکل يوشان حکم لری.

**«فائده ۱»** ديراموررداسې ؤوچه مخکښې حرام نه ؤو،اوبيازوستوحرام شو.اوصحابؤ دحرمت نه قبل هغه کارونه کړی ؤو،ليکن دهغې متعلق تپوس اوسوال ئې نه دې کړې،صرف په دوؤ موقعوکښې دوئ سوال کړې دې يودتحريم دخمرپه موقعه کښې اوبل دتحويل دقبله په موقعه کښې چه بيان ئې په سورت بقره کښې **«وماكان الله ليضيع ايمانكم»** کښې شويدې،ددې وجه داده چه ددې دواړومسئلوپه باره کښې دصاف اوواضح حکم دنزول نه قبل څه قرائن او آثارداسې موجودؤو،چه داسې حکم اوفيصله به راځی،لکه دخمروپه باره کښې چه کله اشاره راغله حرمت ته نوحضرت عمررضی الله عنه اووئيل **«اللهم بين لنابياناشافيا»** نوددې بعد دحرمت دخمرو. واضحه اوقطعی حکم راغې،اودتحويل قبله په وخت کښې نبی صلی الله عليه وسلم منتظرؤو.چه کله به حکم دتحويل قبله راځی،**«قدنری تقلب وجهک فی السماء»** کښې ذکرشويدی.نوداقرينه وه چه حکم دتحويل قبله راځی،اوددې وجه نه بعض صحابؤپه خبرِواحدباندې عمل اوکړو.په مقابله دنص قطعی کښې،په باره دتحويل قبله کښې ځکه چه

داخبرواحد محتف بالقرائن ؤو. نوهركله چه په دې دوارو حكمونو كښې قرينه اواشاره ده چه داحكم ختميرې يعنې دشرابو حل به ختميږي او حرمت به راځي اودارنګه تحويل قبله به راځي نوګوياكښې چه صحابوٌنه دنزول دحكم نه مخكې يوقسم اطلاع راغله چه دالله تعالى مرضي داده چه حرمت اوممانعت دخمروبه راځي اوقبله به بدليږي،نودنزول دحكم قبل هركله چه دوئ حمرحكلي ؤو.اوبيتِ المقدس ته ئې مونځ كړې ؤو.نودنزول دحكم نه دمخكنى حالت تپوس دلته مناسب ؤو.او محل داستبعادنه ؤو.په خلاف دنورواحكاماتونه.

(فائده ۲) دلته دايمان (امنوا) ذكردرې وارې شويدې،اودارنګه دتقوى (اتقوا) ذكردرې وارې شويدې،ددې متعددې نكتې ذكركړې شويدى،ظاهره نكته داده چه په دې كښې اشاره ده چه صحابه كرامورضى الله عنهم په مدارجودايمان اودتقوى كښې.مخ په ترقئ دى حتى چه مرتبې داحسان ته (ان تعبدالله كانك تراه) رسيدلى دى،نوپه دې كښې دصحابؤدتوهم ازاله اودوئ ته تسلى ده چه يومباح خوړل په وخت داباحت كښې قبل دحرمت نه په دې كښې څه مضائقه نشته دې، دهرمؤمن دپاره اوخصوصادهغه خلقودپاره چه متصف وى په خصلت دايمان او عمل صالح سره اوپه مدارجودايمان اوتقوى كښې په ترقئ كښې وى حتى چه مرتبې داحسان ته رسيدلى وى.اوبعضوونيلى دى چه اول تقوى نه مرادبچ كيدل دى دكفراوشرك نه اود دويمې تقوى نه مرادبچ كيدل دى دكبائرونه اود دريمې تقوى نه مرادتقوى.اوبچ كيدل دى د صغائرونه.اوداول ايمان نه مراداصولِ ايمان دى اود دويم نه مرادزيادت دايمان دې اود دريم نه مراددوام على الايمان دې،ددې نه علاوه نورې نكتې دى خواصل توجيه اولنئ توجيه ده.

يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللَّهُ بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ تَنَالُهُ أَيْدِيكُمْ

اې ايمان والو![1] خامخا آزمېښت كوي الله په تاسو په څه ښكار سره دښكارنه چې رسى هغې ته لاسونه ستاسو

وَرِمَاحُكُمْ لِيَعْلَمَ اللَّهُ مَن يَخَافُهُ بِالْغَيْبِ فَمَنِ اعْتَدَىٰ

اونېزې ستاسو دپاره ددې چې ښكاره كړي الله هغه څوك چې ويرېږي دَ الله نه په غيبه، نوچاچې زياتي اوكړو

---

[1] د دريمې مسئلې بيان.

بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ۝

پس ددېنه نوهغه لره عذاب دردناک دی

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللّٰهُ ﴾ داد دريمي مسئلې بيان دې يعنى تحريمات الله قائم اولرئ حلال ئې مه ګڼرئ، دلته دښکارنه په حالت داحرام کښې منع کړې شويده ښکاراګرکه حلال دې،ليکن الله تعالى دتحريم اوتحليل مالک دې اوښکارئې په حالت داحرام کښې حرام کړيدې نوتعميل دحکم ئې ضروری دې اوحرام ګنړل ئې ضروری دی،اولام په «ليبلونکم» کښې موطئه للقسم دې،دالله تعالى احکامات ټول ابتلاء اوازمايش دې.ليکن کله چه حکم پوره کول ګران وی اوترک ئې آسان وی نوابتلاء سخته وی نودلته ﴿تَنَالُهٗٓ اَيْدِيْكُمْ وَرِمَاحُكُمْ﴾ ذکرشو چه ښکارکول آسان دی ليکن الله تعالى حرام کړيدی،اودا ابتلاء دښکارپه شان دابتلاء دبنی اسرائيلو اصحاب السبت ده چه په هغوئ باندې الله تعالى دهفتې په ورځ ښکار کول منع کړې ؤو.ليکن هغوئ په مکارئ اوحيلوسره دحکم مخالفت اوکړونوالله تعالى په هغوئ باندې رسواکُن عذاب نازل کړواودغه شان الله تعالى دامتِ محمديه صلى الله عليه وسلم امتحان اوکړوچه په حالت داحرام کښې به ښکارنه کوی اودعمره حديبيه (۶هـ) په موقعه کښې ښکار دومره ډيراوقريب ؤو.چه په لاسونوسره نيول اوپه نيزوسره ويشتل ئې بالکل آسان ؤو. ليکن اصحابوداثابته کړه عملی طورسره چه دالله تعالى په امتحان کښې د دوئ سره برابرپه :نياکښې هيڅ قوم نه دې کامياب شوې،

﴿بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ﴾ په دې کښې اشاره ده چه دا ابتلاء لګه اوآسانه ده په نسبت دنوروفتنو و امتحاناتو .﴿تَنَالُهٗٓ اَيْدِيْكُمْ﴾ ددې نه مرادهغه دی چه قدرت نه لرى په تختيدلو کښې واره بچى يانورهغه خيزونه چه نشى تختيدلې ﴿وَرِمَاحُكُمْ﴾ ددې نه مرادهغه دی چه قدرت لرى په تختيدلو ،دکبروغيره دوجه نه،نوپه نيزوسره په قابوکښې راتلې شى، ﴿لِيَعْلَمَ اللّٰهُ﴾ داعلت دې دمنع دپاره دښکارنه په حالت داحرام کښې،چه ددې ممانعت نه الله تعالى داظاهرول غواړی چه څوک الله تعالى غيب دان حاضروناظرګڼړی،اود هغه نه په غيبه ويريږی،اومراد د«يعلم» نه اظهاراوتميزدې.يعنى الله تعالى دابتلاء اوامتحان په ذريعه سره،ظاهروی اوخارجوی دعالم غيب نه عالم شهودته،هغه چه افعال دعبادو،دی، نوتعلق دعلم دالله تعالى په افعال

العبادپورې اولانعلق غیبي ؤو.اودخروج اوظهورنه بعد تعلق شهودی شواوپه دې سره قیام حجت اواتمام حجت.په عمل کوونکی باندې راځی.د عادت مطابق

﴿مَن يَخَافُهُ بِالْغَيْبِ﴾ داخوف ایمانی دې (بالغیب) په محل دحال کښې.یعنی بغیرد لیدلو ده الله تعالی لره.نوکه بالفرض څوک الله تعالی اووینی او ویره ترینه کوی نوهغه کمال نه دې . حیوانات هم دمشاهدې نه متاثره کیږي،میخه.غواچه ډانګ اووینی نوویریږی.کمال ایمان بالغیب دې. یاد (بالغیب) نه مرادبالقلب دې اوپه دې کښې اخلاص ته اشاره ده ﴿فَمَنِ اعْتَدَىٰ﴾ ددې نه مرادښکارکول دی﴿عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾دنیاکښې عذاب.جزاء.دصید ده نومراد دنیوی عذاب دې.یااخروی عذاب دې که چرته ښکارپه حالت داحرام کښې حلال ګنړي،یا توبه اونکړي

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنتُمْ حُرُمٌ ۚ وَمَن قَتَلَهُ |
| اې ایمان والو . مه قتلوئ ښکار (یعني مکوئ) اوحال داچې تاسوئه احرام کښې یئ، اوچاچې قتل کړو ښکار |
| مِنكُم مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهِ |
| په تاسوکښې په قصدسره نوبدله باندې بدله ده مثل دهغې چې ده قتل کړې وی دخاروونه حکم به کوي په هغې(مثلیت) |
| ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ أَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَاكِينَ أَوْ عَدْلُ ذَٰلِكَ صِيَامًا |
| دوه تنه عادلان ستاسونه به وی دغه هدیه رسیدونکی کعبې ته یاکفاره دطعام دخوفقیرانو یابرابر ددې روژې |
| لِّيَذُوقَ وَبَالَ أَمْرِهِ ۗ عَفَا اللَّهُ عَمَّا سَلَفَ ۚ وَمَنْ |
| ددې دپاره چې اوڅکي سزا دخپل عمل، معافي کړېده الله دهغې نه چې مخکې څه تېرشوي دی، څوک |
| عَادَ فَيَنتَقِمُ اللَّهُ مِنْهُ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ ذُو انتِقَامٍ ۝ |
| چې دوباره اوکړی نو بدله به اخلي الله دهغه نه ، اوالله زورآور دې بدله اخبستونکې دې |

﴿لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ﴾ دانهی دماقبل نه معلومه شویده نودلته ئې بیاذکرد تاکید دپاره دې، اوامرادقتل نه عام دې چه په ذبح سره وی اوکه بغیردذبح نه وی اومحرم اهل ذبح نه دې نود هغه ذبیحه نه ده حلاله.اودصیدنه مرادعام دې عندالاحناف چه ماکول اللحم وی اوکه نه وی. او ددې حکم نه مستثنی دی پنځه څیزونه چه په حدیث کښې ذکر دی .کارغه. ټپوس. لړم.

مره. حمله کونکې سپې، اوحیه (مار) په روایت دمسلم کښې هم راغلې دې.

﴿وَأَنتُمْ حُرُمٌ﴾ داجمله حالیه ده، اوداعام دې چه په حرم کښې وی اوکه دحرم نه بهروی خوچه په احرام کښې وی نوښکارکول ئې حرام دی، اوپه حکم ددې کښې هغه څوک دې چه په حدود دحرم کښې وی نوښکارپه حرم کښې حرام دې اګرکه په احرام کښې نه وی.

﴿مُّتَعَمِّدًا﴾ چه احرام ئې یادوی اودقتل کولواراده اوکړی نودا (متعمداً) دې. اوهرچه دې ناسی اوخاطی نودجمهوروپه نزدهغه هم په دې کښې داخل دې یعنی جزاء پرې واجبه ده. اوقید د (متعمداً) یاذکرشویدې، د﴿وَمَنْ عَادَ فَيَنتَقِمُ اللَّهُ﴾ دوجه نه څکه په دې کښې اشاره ده عذاب د دنیااوآخرت ته، یعنی ګناه اوعذاب اخروی فقط په (متعمد) باندې دې، یادوجه د شان نزول نه دې څکه چه روایت دې چه نزول دآیت په حق د (متعمد) کښې دې. ابو الیسرعمداً حمله کړې وه په حماروحشی باندې، اوامام زهری رحمه الله وئیلی دی چه دکتاب الله نه معلومیږی وجوب دجزاء په متعمدباندې، اودسنت نه معلومیږی وجوب دجزاء په خاطی اوناسی باندې.

﴿مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ﴾ (من النعم) بیان دې نوپه نزد دامام شافعی رحمه الله بیان دمثل دې یعنی مثل به د نَعَم نه وی نومثل صوری مراد دې اوپه نزد دامام ابوحنیفه رحمه الله دابیان د مَاقَتَل دې یعنی مقتول به دنعم نه وی اومراد دمثل نه مثل معنوی دې یعنی قیمت، لکه د

﴿يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ﴾ نه معلومیږی څکه چه مثل صوری خوظاهروی نوحکم د دؤوعادلانوته ضرورت نشته دې، څکه چه هرڅوک دمثلیت فیصله کولې شی، والتفصیل فی اصول الفقه

﴿بَالِغَ الْكَعْبَةِ﴾ داحال دې دضمیرد (بِه) نه په (یحکم به) کښې یاد (جزاءُ) نه (ای فوجب علیه جزاءٌ حال کون ذالک الجزاء) ﴿هَدْيًا﴾ یاداصفت دمفعول مطلق دپاره دې (ای یهدیه هدیاًبالغ الکعبة) او مطلب دادې چه دکوم مثل (قیمت) چه فیصله اوکړی نوکه هغه قیمت زیات وی نو هدی دې پرې واخلی حرم ته دې ئې اورسوی یادې ئې مساکینوته صدقه کړی اوکه دهغه قیمت کم وی هدی پرې نه کیږی نوطعام دې پرې واخلی اودحرم په مساکینودې ئې صدقه کړی ﴿أَوْ كَفَّارَةٌ﴾ داعطف دې په محل د (من النعم) باندې یاعطف دې په (جزاءُ) باندې

﴿طَعَامُ مَسَاكِينَ﴾ عطف بیان د (کفارة) دې یاخبردمبتداء محذوف دې (ای هی طعام مساکین)

﴿أَوْ عَدْلُ ذَٰلِكَ صِيَامًا﴾ داعطف دی په (طعام) باندې، دهر نصف صاع په بدله کښې به روژه

وی،دلته دري صورته ذکرشو(هدی) طعام مساکین، صیام (او) دتخیردپاره دي او اختیارد جانی (جنایت کوونکی) دپاره دي په نزددامام ابوحنیفه رحمه الله باندي،نوحاصل داشو چه چابنکار قتل کړو نوپه ده باندي جزاء واجبه ده چه مماثل وی دمقتول سره چه هغه به هدی وی یابه طعام وی یابه صیام وی ﴿ لِيَذُوقَ ﴾ دامتعلق دي د(جزاء) سره یادفعل مقدرسره (ای جوزی اوشرعاذلک)،اود (وَبَالَ) نه مرادسزا،اوپه اصل کښ (وبال) ثقل ته وائی،وابل،مطرکثیرته وائی،وبیل،هغه طعام ثقیل ته وائی چه زرنه هزمیږی،اود(أَمْرِهِ) ضمیر یا راجع دي (من ته،اودامرنه مراد فعل دي یعنی مخالفت کول دحکم دالله تعالی،یاضمیرراجع دي الله تعالی ته اومضاف مقدردي (ای لیذوق وبل مخالفة امرالله)،

﴿عَفَا اللَّهُ عَمَّا سَلَفَ ﴾ یعنی دآیت دنزول نه قبل،یادااسلام نه قبل چه چاقتل دصید کړي دي نو دهغي کفاره نشته دي،﴿وَمَنْ عَادَ فَيَنتَقِمُ اللَّهُ مِنْهُ ﴾ (من عاد) شرط دي (فینتقم الله) ورله جزاء ده په تقدیردمبتداء سره (ای فهوینتقم الله) ځکه مضارع مثبت چه جزاء واقع شی نودخول دفاء جزائیه پري نه کیږی،اومراد دعودنه دوباره جنایت کول دی اودانتقام نه مرادسزاء دآخرت ده، او دجمهوروپه نزدباندي ترینه کفاره نه ساقطیږی،اودابن عباس رضی الله عنه اوشریح په نزدپه تکراردجنایت سره کفاره نشته دي صرف عذاب اخروی دي،دوئ استدلال کړیدي په ظاهرد آیت سره اوجمهوروائی چه وعیدپه عائدمنافی نه دي دجوب دجزاء سره،اودجزاء ذکراونه شوځکه چه مخکي ذکرشویده اوبعض وائی چه د(فینتقم الله منه) نه مرادوجوب د کفاري دي، اوبعض وائی چه دعودنه مرادعود دي تحلیل ته اودانتقام نه مراداخروی سزاء ده.

أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهُ مَتَاعًا لَّكُمْ

حلال کړي شوي دي ستاسودپاره ښکارددریاب اوطعام دهغي دپاره ددي چي نفع شي ستاسودپاره

وَلِلسَّيَّارَةِ ۖ وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا ۗ وَاتَّقُوا اللَّهَ

اودتولو مسافرینودپاره، اوحرام کړي شویدي په تاسوښکاردوچي ځوپوري چي احرام کښي یئ، اوویریږئ دالله نه

الَّذِي إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٩٦﴾

هغه ذات چي تاسویئ هغه ته جمع کیدئ شئ.

﴿أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهُ﴾ دا د محللاتو بيان دي، او د (**صيد**) نه مراد يامعنى مصدري ده يعنى اصطياد (ښکارکول په درياب کښې) او ضمير په طعام کښې راجع دې صيد ته په معنى دمصيد سره او طعام په معنى دا کل سره دې معنى داده چه حلال دې تاسو دپاره ښکارکول په درياب کښې اوخوړل ددغه ښکار. يا (**صيد**) په معنى دمصيد سره دې او صيد البحرهغه دې چه داوبونه بغيرژوندون نشى کولې برابره خبره ده چه په درياب کښې وى او که په نهريا حوض کښې وى. اوپه نزد دبعض ائيموا ضافت په صيد البحر کښې داستغراق دپاره دې نوتمام مافى البحرحلال دى اوبعض ائيموترينه کلب اوخنزيرمستثنى کړيدى. اوبعضو ترينه ضفدع (چندښه) مستثنى کړيده اوپه نزد داحنافوصرف سمک (مهې) حلال دې او اضافت داستغراق دپاره نه دې په قرينه دحديث سره (احل لناالميتتان،السمک والجراد) ياصيدپه معنى اصطياد سره دې نه په معنى دمصيدسره. لکه په (**حرم عليکم صيدالبر**) کښې مراد اصطياد دې. نه مصيد. اود (**طعامه**) نه مرادپه دې تقديرباندې هغه دې چه درياب بهرته راغورځولې وى په چپې وهلوسره. اودصيدنه مرادهغه دې چه چاپه څه آله (جال وغيره) سره نيولې وى. ياترينه مرادهغه مهې دې چه مالګه ورباندې واچوى نودپروخت پاتې کيږى او يا ترينه مرادهغه دې چه تازه وى. اوهرچه دې سمک طافيه يعنى هغه مهې چه په اوبوکښې دننه په خپله مرشى. او اوپرسيږى. نوداوبوپه سر راشى، نوداپه نزد داحنافومکروه تحريمى دې، په دليل دحديث دابوداؤدسره (عن جابربن عبدالله قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ماالقى البحر اوجزرعنه فکلوه ومامات فيه وطفى فلاتاکلوا) **اعتراض** کړيدې امام بهيقى چه په دې حديث کښې راوى يحيى بن سُليم دې هغه ضعيف دې. علامه عينى **جواب** کړيدې چه يحيى بن سليم دشيخينوراوى دې نوثقه دې ابن جوزى **اعتراض** کړيدې چه په دې حديث کښې يوراوى اسماعيلْ بن اميه دې، (عن ابى الزبير) اوهغه متروک دې، عينى **جواب** کړيدې چه متروک اسماعيل بن اميه ابو الصلت دې اوداهغه نه دې بلکه د اسماعيل بن اميه القرشى الاموى دې اوداقوى دې، ابو داؤدوئيلى دى چه دابوالزبيرنه داحديث، سفيان ثورى، ايوب، حماد، روايت موقوفاًعلى جابررضى الله عنه کړيدې، اواسناد ددې حديث هم دارنګه شويدې، په وجه ضعيفه سره دابن ابى ذئب نه هغه دابوالزبيرنه هغه دجابررضى الله عنه نه مرفوعاًعن النبى صلى الله عليه وسلم، امام ترمذى رحمه الله وائى چه امام بخارى رحمه الله وئيلى دى چه داحديث محفوظ نه دې، دابن ابى ذئب روايت دابوالزبيرنه معلوم نه دې، علامه عينى رحمه الله وائى چه قول دامام

بخاری رحمه الله مبنی دي په مذهب دده په حدیث معنعن کښې چه هغه ثبوت دسماع دې اودجمهوروپه نزدسماع شرط نه ده صرف معاصرت کافي دي، اودابن ابی ذئب معاصرت دابوالزبیرسره ثابت دې،حاصل دادي چه داحدیث په روایت داسماعیل بن امیه عن ابی الزبیرعن جابررضی الله عنه سره مرفوعاً عن النبی صلی الله علیه وسلم سره صحیح دې کمافی روایة ابی داؤد.اوپه روایت دسفیان ثوری،ایوب،حماد سره موقوفاًعلی جابررضی الله عنه صحیح دې اوپه روایت دابن ابی ذئب عن ابی الزبیرسره مرفوعاًضعیف دې په نزد دامام بخاری رحمه الله اوعلامه عینی ورته صحیح وائی.

﴿مَتَاعًا لَّكُمْ﴾ دامفعول له د (أحلّ) دې،یعنی ضید البحرحلال کړې شویدې ستاسودنفع دپاره چه تاسوئې تازه تازه خورئ،اودمسافرینودنفع دپاره چه دهغوئ دپاره په سفرکښې ضرورت راځی لکه موسی علیه السلام چه دخضر علیه السلام ملاقات له تللو،نوزاد راه، ئې مهې ؤو.

﴿وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ﴾ (صید) په معنی دښکارکولوسره دې نوښکارکول اوښکارذبح کول دمحرم دپاره حرام دی اودارنګه خوړل دښکار،دمحرم دپاره حرام دی که چرته دده په امریااشارې سره ؤو،نوامریااشاره،تعاون،په حکم داصطیادکښې دی،اوکه چرته محرم امر، یااشاره نه وی کړې نوبیاحرام نه دی،ځکه (صیدالبر) په معنی داصطیادسره دې اودااصطیاد نه دې، دښکارحرمت په حالت داحرام کښې یو وارې په ﴿لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنتُمْ حُرُمٌ﴾ کښې ذکرشو، اوبیاپه ﴿وَمَنْ عَادَ فَيَنتَقِمُ اللَّهُ مِنْهُ﴾ کښې ذکرشو،بیادلته دریم وارذکرشو،اوبیائې مزیدتاکید اوشوپه دې قول سره ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ الی آخر الایة.

| جَعَلَ اللَّهُ | الْكَعْبَةَ | الْبَيْتَ الْحَرَامَ | قِيَامًا |
|---|---|---|---|
| ګرزولې(١) ده الله | کعبه | چې کور عزت مند دې | سبب دبقا او د انتظام د امورو ددین او ددنیا |
| لِّلنَّاسِ | وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ | وَالْهَدْيَ | وَالْقَلَائِدَ |
| دخلقو دپاره | اومیاشت محرمه | اوهدیه | او قلاند (امیلونوالاخاروي) |

١ - خلورمه مسئله نذرونیاز دالله ﷻ دپاره صحیح دې.

| ذٰلِكَ | لِتَعْلَمُوْٓا | اَنَّ اللّٰهَ | يَعْلَمُ مَا |
|---|---|---|---|
| دابیان[1] ، ددي دپاره دي | چي تاسو پوهه شئ (یقین اوکړئ) | چي بېشکه الله | عالم دی پۀ هغه څه |

| فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَا فِي الْاَرْضِ | وَاَنَّ اللّٰهَ | بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۹۷﴾ |
|---|---|---|---|
| چي پۀ آسمانونو کښي | او پۀ هغه څه چي پۀ زمکه کښي دی | او بېشکه الله | پۀ هر څه باندي عالم دي |

| اِعْلَمُوْٓا | اَنَّ اللّٰهَ | شَدِيْدُ الْعِقَابِ | وَ اَنَّ اللّٰهَ | غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۹۸﴾ |
|---|---|---|---|---|
| پوهه شئ | چي بېشکه الله[2] | سخت عذاب ورکونکي دي | او بېشکه الله | بخښونکي اورحم کوونکي دي |

﴿جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ﴾ داد دریمي مسئلي بیان دي چه نذرلله (هدی وغیره) (**قیاماً الناس**) دي نودا قائم اولړئ. (**الكعبة**) مفعول اول دي د(**جعل**) دپاره، او ((البیت الحرام)) ترینه بدل دي. دپاره دَ مدح، او((قیاماً)) مفعول ثاني دي، دَ جعَلَ دپاره، قیاماً په اصل کښي قواماً دي. په معنی د(مایقوم به امره) سره، یعني سبب اوذریعه دبقاء، دلته څلورامورذکرشویدی.

(۱) الکعبة، (۲) الشهرالحرام، (۳) الهدی، (۴) القلائید، د ﴿وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ وَالْهَدْيَ﴾ نه روستو، (قیاماًللناس) مقدردي، په سورة نساء کښي دمال دپاره دالفظ استعمال شویدي. (**ولاتؤتوا السفهاء اموالکم التی جعل الله لکم قیاماً**) نومال ته چه ئې ((قیاماً)) وئیلی دی نو هغه د دنیوی زندګئ او انفرادی زندګئ په اعتباسره، اودې څلوروامورو ته چه ئې قیاماًونیلی دی نو دا داجتماعی او دینی اوسیاسی، قومی زندګئ په اعتبارسره، نولکه څه رنګه چه مال، په معاشره کښي دعزت دزندګئ کفیل دي، نودارنګه دمسلمانانودديني اواجتماعي اوسیاسي زندګئ، دپاره روح، د بیت الله سره تعلق، اوداشهرحرم سره اوهدایاؤسره تعلق دي. کعبه شریفه دخلقوددیني او دنیوی دواړوحیثیتونوسره دقیام اوانتظام باعثه ده، دیني حیثیت سره خو ظاهره ده، چه. افعال دحج وعمره، استقبال فی الصلوة احتیاج لری بیت الله ته. اولویه خبره داده چه ذالله تعالی په علم ازلی کښي دامقدره وه چه دمصلح اعظم هادی عالم، سید الکونین محمد صلی الله علیه وسلم دپیدایش اوسکونت سعادت دحرم دبختوري خاورې په نصیب

---

1. علت دنذرالله دپاره.
2. تخویف بشارت.

کښې دي. اوهر چه دي په دنيوي حيثيت سره نوځکه چه الله تعالى په ملک عرب کښې. دا خطه (حرماً امناً) گرځولې دې، انسانانو اوتمام ساکنينودحرم ته پرندگان. چرندگان. اشجار. ټولو ته امن حاصل دې .د ﴿لِلنَّاسِ﴾ نه مرادناس،دعربودی، کماقال له الرازی. ياتمام ناس دی عموما اوخصوصا اهلِ عرب مراد دی. دجاهليت په زمانه کښې ظلم اوقتل غارت،عام عادت ؤوخوپه حرم کښې به چادخپل پلارقاتل ته هم تعرض نه کوؤ.اودارنگه په دې وادغيرذی ذرع، کښې دخوړلوځکلوعمده عمده ځيزونه اوعمده عمده ميوې اوډيرقسمونه چه اوکتلې شی نودادقياماًللناس واضحه نشانه ده.محققين علماء وائی چه د ﴿قِيَمًا لِلنَّاسِ﴾ مطلب دادې چه دکعبې شريفې مبارک وجود، دکل عالم دقيام اوبقاء باعث دې،ترکوم وخته پورې چه بيت الله موجودوی اودده احترام کوونکی خلق موجودوی نوعالم به موجودوی.اودنيابه آباده وی اوکله چه الله تعالى داسې اراده اوفرمائی چه ددې عالم خاتمه اوشی نودامبارک محل. قصر شاهی به اول پورته کړی نو بيابه دنورعالم خاتمه اوشی لکه چه دزمکې دپيداکولوپه وخت کښې دهرڅه نه مخکښې دا مبارک محل،قصرشاهی.جوړشوې ؤو.(ان اول بيتٍ وضع للناس للذی ببکة مباركاً) امام بخاری رحمه الله ددې آيت په تفسير کښې حديث د ذوالسويقتين روايت کړې دې،چه يوتک توروحشی،ذوالسويقتين. لقب سره يادېږي، د کعبې دعمارت يوه يوه خښته به اوباسی نو دنيا به ختمه شی ليکن ترڅو پورې چه الله تعالى ددې جهان دنظام اوقوام اراده اولری نو هيڅوک زوراور،اوقوی قوم دکعبې دنړولوپه مقصدکښې نشی کامياب کيدلې.لکه واقعه داصحاب الفيل ددې واضح ثبوت دې اوقرب قيامت ته به چه دکفاروډيرحکومتونه اوفوجونه دخانه کعبې دنړولودپاره جمع شی په يوميدان کښې نوالله تعالى به دغه ټول په زمکه کښې خسف کړی،اودادالله تعالى دحفاظت اوداسلام دصداقت يوعظيم نشان دې چه دظاهری اسبابونه بغيرهيڅ چاپه دغه غلط اوشيطانی مقصدکښې کاميابی نه ده موندلې اونه به اوموموی. ﴿وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ﴾ دا اسم جنس دې چه اطلاق ئې په قليل اوکثيردواړوباندې کيږی. اوددې نه مرادڅلورمياشتې دی.ذوالقعده. ذوالحجه. محرم ،رجب، چه مشهوره په رجب مضر سره داهم قياماللناس دی په سبب دحرمت دقتال سره په دی کښې ﴿وَالْهَدْيَ﴾ هدی هغه ځاروې دې چه حرم ته ليږلې شی ﴿وَالْقَلَائِدَ﴾ (ای ذالقلائد) دهغه هدی ده چه حرم ته اوليږلې شی اوپه غاړه کښې ئې اميل

اوبزان کړي وی دعلامې دپاره،اوداذکرالخاص بعدالعام دي، نوهدی ،او قلائد (نیازات الله)سبب دبقاء اودنظام زندګئ دخلقودي څکه چه هدایا ،قلائدوته به غل ډاکوڅه تعرض نه کوژاود هدی په وجه به ئې محرم ته هم څه تعرض نه کوژ،یادامطلب دي چه ترڅوپورې چه خلق صرف دالله تعالی په نوم نذرونه کوی نوالله تعالی به ئې دهرآفت اوبلانه په امن کښې لری. ﴿ذٰلِكَ لِتَعْلَمُوٓا﴾ داعلت تفصیلی دي ددې څلورمې مسئلې دپاره یعنی چونکه تمام (مافی السموات والارض) باندې الله تعالی عالم دي نولهذادهغه په نوم نذرورکول پکاردی اوددې نه معلومه شوه چه انبیاء اوتمام غیرالله،عالم الغیب نه دی نودهغوئ په نوم نذر ورکول مناسب نه دی،نوپه دې کښې د دؤومسئلونذرالله،نذرلغیرالله،علت بیان شو یوصراحة اوبل اشارة، ﴿اعْلَمُوٓا اَنَّ اللّٰهَ﴾ داتخویف اخروی دي دنذرلغیرالله،اوتحریمات لغیرالله کوونکو دپاره ﴿وَاَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ دابشارت دي دنذرالله اوتحریمات الله باقی ساتونکو دپاره.

| |
|---|
| مَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ ۚ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا تَكْتُمُوْنَ ۝ |
| ندي په ذمه درسول مګر رسول دی، اوالله عالم دي پۀ هغه څه چي ښکاره کوئ تاسواوپۀ هغه څۀ چي پټوئ تاسو |
| قُلْ لَّا يَسْتَوِى الْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ وَلَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيْثِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ |
| نه ورته اووایه ندي برابر پلیت[۱] اوپاک اګر که پۀ تعجب کښې اچوي تاله ډېروالي دپلیت، پس ویریږئ دالله نه |
| يٰٓاُولِى الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝ |
| اي خاوندانو دعقل د دي دپاره چي کامیاب شئ |

﴿مَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ﴾ داحصراضافی دي چه درسول الله په ذمه رسول دی،نه هدایت ورکول،یامجبورکول په ایمان باندې،اورسول خپله ذمه واری پوره کړیده نوستاسو څه عذرنه دې پاتې . ﴿قُلْ لَّا يَسْتَوِى الْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ﴾ داتنفیردي دنذرلغیرالله نه اوترغیب دي نذرلله نه،چه خبیث نذرلغیرالله،اوطیب نذرلله،برابرنه دی،مراد دعدم مساوات نه دادي چه خبیث، مبغوض مردود دي،اوطیب،محبوب اومقبول دي نومرادعدم استواء په نزد دالله تعالی،او په

۱ - خبیث بدرسمونه لکه نذر لغیرالله . طیب ښائسته رسمونه لکه نذر دالله ﷻ دپاره .

احکام شرعیۍ کښې دہ، او خبیث او طیب شامل دی ذواتو ته، کافر مؤمن، منافق، مخلص، فاسق صالح ته، او دارنګه عقائد اعمالو اموالو ته، شرک، توحید، بدعت، سنت، حرام حلال، نذر لغیر الله نذر لله، علوم باطله علوم حقه، اخلاق سئیه اخلاق حسنه، کسب حرام کسب حلال، وغیره ته شامل دي.

﴿ وَلَوْ أَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيثِ ﴾ مدار دمحبوبیت او مقبولیت کثرت نه دي، نو نذر لغیر الله اګرکه ډیرزیات او مزې داروی خو مقبول او محبوب عندالله نه دي، بدعت والا عمل اګرکه ډیرزیات وی نو سبب درضاء الهی نه دي او خطاب هر معتبر، او مخاطب ته دي او ددې وجه نه په ﴿ فَاتَّقُوا اللَّهَ ﴾ کښې صیغه دجمع ذکرشوه او په ﴿ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ ﴾ کښې اشاره ده دې ته چه ددې فرق دپاره خالص عقل پکاردې، لُبْ هغه عقل ته وائی چه خالص وی، وهم نه وی غلط کړې. او دارنګه په دې کښې اشاره ده چه دعقل خاوندلره پکاردی چه دیوڅیزپه ظاهری حسن او کثرت باندې دهوکه نشی، دهرڅیزاو دهر عمل حقیقت ته دې نظر کوی.

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ |
| اې ایمان والو! تپوس مه کوئ دداسې څیزونو که ښکاره شي تاسوته حقیقت اوجواب دهغې خفه به کړي تاسو |
| وَإِنْ تَسْأَلُوا عَنْهَا حِينَ يُنَزَّلُ الْقُرْآنُ تُبْدَ لَكُمْ ؕ |
| اوکه تپوس کوئ تاسو ددغه څیزونو په وخت د نزول دقران کښې ښکاره به کړي شي تاسوته جواب اوحقیقت دهغې |
| عَفَا اللَّهُ عَنْهَا ؕ وَاللَّهُ غَفُورٌ حَلِيمٌ ۝ قَدْ سَأَلَهَا |
| معافی کړېده الله دهغې(تپوسونو)، اوالله بخښونکې اوصبرکوونکې دې. په تحقیق سره تپوس کړې وو دداسې څیزونو |
| قَوْمٌ مِنْ قَبْلِكُمْ ثُمَّ أَصْبَحُوا بِهَا كَافِرِينَ ۝ |
| یوقوم مخکښې ستاسونه بیا شول دوئ په وجه دهغې کافران |

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ ﴾ مضمون دنفی دشرک فعلی ذکرشو، په دې کښې څلورمسئلې بیان شوې. په دې آیت کښې ددې مضمون د دعوت دپاره طریقه ذکر کیږی. هغه داچه اولاً دې کلیات بیان شی، نو چه هغه په پوهه کښې راشی اوذهن نشین شی نو په جزئیاتو پوهیدل آسان وی او که اولاً جزئیات بیانول او دهغې بحث اوشی. نو کله ترینه فتنه

نسا: پيداكيږي.نوددې وجه نه تأسواولاجزئيات مه بيانوئ. كنى ﴿تَسُؤْكُمْ﴾ بلكه اولا كليات بيانوئ.مثلاچه داسې اوونيلي شي چه دفلانى باباپه نوم نذر .شكرانه.حرام اوشرک دې.نوپه دې باندې عام خلق په آسانه سره نه پوهيږي.اوچه داسې بيان اوشى چه دالله تعالیٰ نه مسوادبل چاعبادت.مالى.بدنى.قولى.كول شرک اوحرام دې.نوپه دې باندې عام خلق په آسانه پوهيږي نوديو ولى دنامې دنذرمسئله په آسانه سره ذهن ته راشي.حاصل داچه اول كليه اوبياجزئيه بيانول پكاردى.لفظ د(اشياء) غيرمنصرف دې.په دې كښې ډيراقوال دى. مذهب دسيبويه اوخليل اودجمهوروبصرينودادې چه داجمع د(شئ) ده اوداپه اصل كښې (شيئآء) په وزن د(فعلاء) دې.نودالف ممدوده دوجه نه چه قائم دې په مقام دسببينو.غير منصرف دې.اوبياهغه همزه چه لام كلمه ده.مقدمه كړې شوه.ځكه.اجتماع دهمزتينو ((بينهما الف)) مستكره ده. نود(شيئآء) نه اشيآء جوړشو.نود فعلآء وزن نه لفعآء جوړشو.اومذهب دفراء دادې چه ذاجمع د(شئ) ده اواصل ئې (اشيئآء) ؤو.په وزن دافعلآء سره.لكه انبياء.دوه همزتين جمع شونويوترينه تخفيفاحذف شو.نوبناء په دې قول باندې هم عدم انصراف.دالف ممدوده دوجه نه دې.مذهب كسائى دادې چه اشياءٌ په وزن دافعالٌ دې.همزه لام كلمه ده.زائدنه ؛ اوعدم انصراف دوجه نه مشابهت نه دې.دهغه الفاظوسره چه په آخر كښې الف دتانيث و لكه ابن حاجب رحمه الله دلفظ دسراويل دپاره وئيلى دى (وقيل عربى حُمل على موازنه).

**ددې ايت په شانِ نزول** كښې متعددروايات دى.دصحيحينوپه روايت كښې سوال دعبدالله بن حذافه رضى الله عنه مذكوردې چه ده سوال اوكړودنبى صلى الله عليه وسلم نه (من ابى) ،فقال حذافة)، په بل روايت دبخارى كښې دى چه بعضِ خلقوبه درسول الله صلى الله عليه وسلم نه استهزاءًسوال كولوچابه وئيل.(من ابى) چابه وئيل.(اين ناقتى) نودا آيت نازل شو.دارنګه په يوروايت دبخارى كښې داسوال مذكوردې (اين انا،قال فى النار، وقال آخر،من ابى،قال حذافة وكان يدعى لغيره فنزلت هذه الاية) اوپه روايت دمسلم.ترمذى.اواحمدكښې دى. چه هركله فرضيت دحج نازل شونواقرع بن حابس اووئيل چه آيا .هركال حج كول زمونږپه ذمه فرض دې.نورسوالله صلى الله عليه وسلم سكوت اوكړو .نوده دويم ځل سوال اوكړونوبيانبى صلى الله عليه وسلم سكوت اوكړو ،نوهغه دريم ځل سوال اوكړو .نونبى صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل.(عتاباً) چه كه ماوئيلې وې نعم نوهركال به حج فرض وې اوتاسوبه طاقت نه لرلو.اوبيائې اوفرمائيل (دعونى ماتركتكم) ستاسونه مخكښې بعض امتونه په دې هلاک شوى

ؤ ، چه په کثرت سره به ئې سوال دخپلو انبیاؤنه کولوچه د دوئ دسوال په وجه به یوځیزفرض شونوبیابه دوئ خلاف ورزی دحکم نه کوله،الخ،مقصود دادې چه بې ضرورته سوالات مه کوئ.(کماف زواية البخاری نهی عن عقوق الامهات،ومنع وهات،وقیل وقال واضاعة المال،وکثرة السوال،اوکماقال).

﴿إِن تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ﴾ که ظاهرکړې شی تاسوته جواب دهغې یعنی جواب ئې راشی نو دتپوس کوونکی دپاره به سبب دخفه کیدلووی،ځکه دهغه دمرضی اومنشاخلاف به وی. دا جمله صفت مُقیده دې د(**لاتسئلوعن اشياء**) دپاره،یعنی داسې سوال مه کوئ چه سبب د ناګوارئ اوسبب دحرج ګرځی،نومعلومه شوه چه ضروری تپوس خوپکاردې لکه (**فاسئلوا اهل الذکر**) اوددې وجه نه ورسره بعضِ مفسرینوداقیدذکرکړې دې (بمالاتدعوا اليه حاجة).

﴿وَإِن تَسْأَلُوا﴾ داهم صفت مقیده د(**عن اشياء**) دپاره دې اوعطف دې په (**ان تبدلكم**) باندې.یعنی دداسې داشیاؤپه باره کښې سوال مه کوئ چه په وخت دنزول دوحی کښې دهغې جواب تاسوته ظاهرولې شی په وحی سره اوپه دې دواړوجملوکښې،(**ان تبدلكم تسؤكم**)،(**ان تسئلواعنها**) الخ،کښې علت دمنع ته اشاره ده،چه مجموعه دامرینوده،یو(**تسؤكم**) بل (**تبدلكم**) یعنی بې ضرورته تپوس مه کوئ ځکه چه کله تاسودنزول دوحی په وخت کښې یو سوال اوکړئ نوجواب به ئې ضروردرکولې شی،اوپه هغې به تاسوخفه یئی،نوځکه سوال مه کوئ او دا دواړه امرین واقعی دی ، فرضی ندی،(اذسألتم عن اشياء فی زمنه صلی الله عليه وسلم ينزل القرآن بابدائهاومتی ابداهاساءتکم فلاتسالوا عنها) (شربینی) ،اوبعض مفسرین وائی چه (**وان تسالواعنها**)الخ،ترغیب دې سوال ته،یعنی دمعلوماتوحاصلو،اودتپوس کولودپاره دابهترینه موقعه ده چه نزول دوحی کیږی،نو**سوال** واردیږی چه په اول دکلام کښې نهی راغله صراحة دسوال کولونه،اودلته ترغیب ذکرشوسوال کولوته نوداخوتناقض دې په کلام کښې،نو **جواب** دادې چه د(**عنها**) ضمیرهغه اشیاؤته نه دې راجع چه منع دسوال ترینه شویده،(ای مالا تدعواليه حاجة،یامالاخیرلکم فيه) بلکه راجع دې هغه اشیاؤته چه (مست الحاجة اليه) لکه په دې قول دالله تعالی،(**ولقدخلقناالانسان من سللة من طين**) یعنی آدم،ثم **قال تعالی**،(**ثم جعلناه نطفة**) ضمیرد (**جعلنا**) راجع دې نسل دآدم ته،نودآیت مطلب دادې چه بې ضرورته تپوسونه مه کوئ اود ضرورت تپوسونه کوئ اودائې بهترینه موقعه ده ﴿عَفَا اللَّهُ عَنْهَا﴾ دنهی دنزول نه قبل چه

سوالونه ناسو کړيدي هغه معاف دي

﴿ قَدْ سَأَلَهَا قَوْمٌ مِّن قَبْلِكُمْ ﴾ ‹سالها› ضميرمسئلة ته راجع دي چه په ضمن د ‹لاتسئلوا› کبنې دي.اوعبارت په حذف دمضاف سره دي (اى سئل مثلها) ياضميراشياؤته راجع دي.او کلمه د ‹عن› مقدره ده، مخکښنوقومونو چه سوالونه کړي ؤونوپه هغې کښې قوم ثمود دي چه سوال ئې کړې ؤ ،دصالح علیه السلام نه دَ ناقه،اوقوم دعيسى علیه السلام سوال کړې ؤ د مائدې نو دکفر په وجه قوم ثمودتباه شو ،اوقوم دعيسى علیه السلام مسخ شو خنزيران، اويهودو چه دموسى علیه السلام نه په باره دبقره کښې سوالونه اوکړل،نوبلافائده ئې خپل ځان په مشقت کښې واچولو. ﴿ ثُمَّ أَصْبَحُوا بِهَا ﴾ (اى صاروابسببها).

| مَا جَعَلَ اللَّهُ مِن بَحِيرَةٍ وَلَا سَائِبَةٍ وَلَا وَصِيلَةٍ وَلَا حَامٍ وَلَٰكِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يَفْتَرُونَ |
|---|
| نه ده مقرر کړې الله هيڅ بحيره اونه سائبه اونه وصيله اونه حام ليکن هغه کسنان چې کافران دی جوړوی |
| عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَأَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ۝ |
| په الله باندې دروغ ، او اکثر د دوئ نه عقل نه لری. |

﴿ مَا جَعَلَ اللَّهُ مِن بَحِيرَةٍ ﴾ دادتحريمات غيرالله اعاده اوتفصيل دې د ‹جعل› نه مرادحکم کول اوشرع جوړول دی،او ‹من› زائده دتاکيددنفى دپاره دي،يامفعول ثانى دجعل مقدردي (اى محرمة بتحريم الجاهلية) دبحيره وغيره راجح تفسيرهغه دي چه امام بخارى رحمه الله دسعيدبن المسيب نه نقل کړيدې،اګرکه په دې کښې مختلف اقوال دی، ﴿ بَحِيرَةٍ ﴾ هغه اوښه ده چه د هغې ‹پئى› به دبتانودپاره وقف ؤ ،اوهيچاپه دځان دپاره نشوه لوشلې.او ﴿ سَائِبَةٍ ﴾ هغه ځاروې چه دبتانوپه خاطربه ئې په هغه باراورل حرام ګنړل اوآزادبه ئې پرينښودلو.او ﴿ وَصِيلَةٍ ﴾ هغه ځوانه اوښه چه داول نه دوه وارې به ترينه مسلسل مؤنث بچې پيداشو.چه په درميان کښې به ئې مذکرنه ؤ،نودغه شان اوښه به مشرکانودخپلومعبودانودرضاجوئى دپاره آزاده پريښودله ﴿ حَامٍ ﴾ هغه مذکراوښ چه لس اوښانې به ترينه حاملې،(بلاربې) شوې نوهغه به ئې دبتانوپه نوم پريښودو ،اودباراورلونه به منع کړې شو ،اودهيڅ مرعى اوبونه به نشومنع کولې،په حديث دبخارى کښې راغلى دى، نبى صلى الله عليه وسلم فرمائى چه ما عمرو بن لحى په اوردجهنم کښې اوليدوچه خپلې کولمې ئې په ځان پسې په اورکښې

رابنکلي. اودا اول سړي ؤوچه رسوم دبحیره سائبه ئې په عربوکښې رائج کړل اودین دابراهیم علیه السلام ئې بدل کړواوبت پرستی ئې دشام نه عربوته راوړله.

**فائده،** دتحریمات غیرالله حکم دادې چه حلال دې اوګنړلې شی اودې خوړلې شی.لیکن په یو ځائې کښې چه تحریمات غیرالله دنذرلغیرالله سره خلط شوی ؤونونه به شی خوړلې

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَىٰ مَا أَنزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ قَالُوا حَسْبُنَا

اوکله چې اوونیلې شي دوئ ته راشئ هغې ته چې نازل کړېدې الله اوراشئ رسول ته وائ دوئ پوره ده مونږ لره

مَا . وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا ۚ أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ

هغه لار چې موندلی دی مونږ په هغې باندې پلارنیکه خپل، آیا دوئ اتباع کوي اګر که وؤ پلار نیکه ددوئ

لَا يَعْلَمُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ ۝ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ ۖ

نه پوهېدل په هیڅ ددین اونه ئې صحیح لارموندلې ده اې ایمان والو (۱) لازم دې په تاسواصلاح اوفکر دخپلونفسونو

لَا يَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ ۚ إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ

ضرربه نه رسوی تاسوته هغه څوک چې ګمراه وی کله چې تاسو هدایت اوموندلو. خاص الله ته ورګرځېدل دي

جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ۝

ستاسو دټولو نوخبربه درکړي تاسوته په هغه عملونو چې کوي ئې تاسو

﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا ﴾ درمنثورپه روایت دابن ابی حاتم سره نقل کړیدی چه څوک به مسلمان شونوکفارو به ورته پیغورورکولوچه تادخپل پلارنیکه لارپرېښوده.نودا آیت.نازل شو.اودمشرکانولوئې حجت داؤوچه مونږدپلارنیکه لارځرنګه پرېښودلې شو.نودوئ ته اوونیلې شوچه که چرته ستاسواسلاف.پلارنیکه.دبې عقلئ اوګمراهئ په وجه دهلاکت په کنده کښې غورځیدلی وی نوآیاتاسوبه هم خان هلاکت ته غورځوئ؟ په دې آیت کښې الله تعالی نهایت په وضاحت اومعقول اندازکښې داقتداء معیاربیان کړیدې.(۱) یوعلم.(۲) بل

۱ یعني که تاسو امربالمعروف (یعني تحریمات الله. نذرالله (توحید) اونهي عن المنکر (یعني شرک نذرلغیرالله. تحریمات غیرالله) جاري اوساتئ نوکفار تاسوته ضرر نشي رسولې

اهتداء. که دادواړه په چاکښې نه وی نودهغه اقتداء نه ده پکار. اود دغسې چااقتداء کول،
خپل ځان هلاکت ته اچول دی، اوچه دادواړه په چاکښې موجودوی نودهغه اقتداء منزل
مقصودته درسیدلوذریعه ده. انسان لره پکارده چه اول دخپلې زندګۍ مقصداودخپل سفر
روح متعین کړی اوبیاددې مقصد دحصول دپاره داسې څوک رهنمااوګوری چه هغه ته علم
وی دلارې دمقصداوهغه په لارې روان هم وی، که علم ورته نه وی نود ﴿لَا یَعْلَمُونَ﴾ اقتداء
سبب دهلاکت دې اوکه علم ورته وی خودمنزلِ مقصودپه لاره نه وی روان نود ﴿وَلَا یَهْتَدُونَ﴾
اقتداء هم سبب دخسران دې، اوچه دواړه وی نودا اقتداء سبب دفلاح دې. حاصل داچه
داقتداء معیار دوه څیزونه دی (۱) علم، او(۲) اهتداء اومحض پلارنیکه والې. لیډروالې.
قومیت. حکومت. مالداری، معیاد داقتداء نشی کیدې اودائمه مجتهدینوداقتداء حقیقت
هم داهوه امره دی چه هغوئ ((یعلمون)) دی په علم دکتاب اوسنت احاطه کوونکی دی او
((یهتدون)) هم دی دکتاب اوسنت په لارې روان دی څوک چه دا آیت دائمومجتهدینودتقلید په
ردکښې پیش کوی نودا غلط استدلال اومحض ضداوتعصب دې

﴿یَـٰٓأَیُّهَا ٱلَّذِینَ ءَامَنُوا۟ عَلَیۡكُمۡ أَنفُسَكُمۡ﴾ داتسلی ورکول دی مؤمنانوته چه هرکله تاسوپه خپل
دین (توحید) باندې مضبوط شئ اودخپل دین دعوت ورکوئ اودیوبل اصلاح کوئ نو کفاربه
تاسوته هیڅ نقصان نشی رسولې، مسلمانانوته نقصان رسیدل د دوئ دغفلت په وجه اوپه
خپل دین باندې دعمل اود دعوت پریښودلوپه وجه کیږی. (عَلَیۡكُمۡ) اسم فعل دې په معنی
د(الزموا) سره یعنی لازمه اونیسئ اصلاح دخپلونفسونو.

﴿لَا یَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ﴾ دآیت دظاهرنه معلومیږی چه امربالمعروف نهی عن المنکر (دعوت
اوتبلیغ) نه ضرورت نشته بلکه هرسړې دې دخپل ځان فکرکوی، حالانکه دادقرآن او حدیث
دبې شماره تصریحاتونه خلاف ده. دقرآن، حدیث ډیرتصریحات دی چه امربالمعروف نهی عن
المنکرداسلام اهمه فریضه اوددې امت امتیازی خصوصیت دې. مفسرینوددې آیت مختلف
توجهیات ذکرکړیدی. (۱) دا آیت د دعوت دترک اود دعوت دفرضیت دواړنه ساکت دې د
دعوت فرضیت دنورونصوصونه ثابت دې اوددې آیت مقصودتسلی ورکول دی چه څوک
مؤمن، مطیع مهتدی وی نواګرکه دده آباء اواجداد، اقارب ګمراه وی خودچاګمراهی. مطیع
مهتدی ته ضررنه رسوی. (۲) دا آیت ډیراوکداوصریح دې په وجوب دامربالمعروف او نهی

عن المنكركنبي ١ ـ ځكه چه عبدالله بن مبارک رحمه الله وائی،(هذه اوكدآية فی وجوب الامر بالمعروف والنهی عن المنكر،(كمارواه ابن كثيروالقرطبی والرازی رحمهم الله تعالى) ځكه چه د **انفسكم** نه مراد .اهل جنس،اهل دين مراد دی،لكه (**فاقتلوا انفسكم**) بقره آيت نمبر**٥٤**.(ای عليكم اهل دينكم بان يعظ بعضكم بعضاويرغِبُ بعضكم بعضافی الخيرات وينفِّرُهُ عن القبائح والسئيات) ،كبير ٢ ـ او حضرت ابوبكررضی الله عنه فرمائی چه (**لايضركم من ضل اذا اهتديتم**) معنى داده چه تاسوامربالمعروف اونهی عن المنكر كوئ،نودګناهونودوجه نه چه كوم عذابونه راځی نود دعوت په وجه به تاسودعذاب نه محفوظ يئی،ځكه چه بغيردامربالمعروف اونهی عن المنكرنه اهتداء نشی راتلي،(روح) (**لايضركم ضلال من ضل اذا انتم دمتم العمل بطاعة الله واديتم** فيمن ضَلَّ من الناس ماالزمكم الله به فيه من فرض الامربالمعروف والنهی عن المنكر) ، (ابن جرير).ابوداؤد .ترمذی،ابن ماجه،وغيره په واسطه دقيس سره دابوبكررضی الله عنه نه روايت كړيدي (خطبناابوبكررضی الله عنه فقال انكم تقرءون هذه الاية،وتتأولونهاعلى غيرتاويلها:وانی سمعتُ رسول الله صلى الله عليه وسلم، يقول ان الناس اذا راوالظالم فلم ياخذوا على يديه اوشک ان يعمّهم الله بعذاب من عنده)، يعنی ابوبكررضی الله عنه اوفرمائيل چه تاسودا آيت لولئ اوبې ځايه تاويل ئې كوئ،اونه پوهيږئ چه ددې مطلب څه دې،اوبيشكه ماپخپله درسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلی دی چه خلق ظالم (دګناه كولووالا) اووينی او(سره دقدرت نه) منع ئې نه كړی نوقريبه ده چه الله تعالى ئې (دمجرمانو سره) په عام عذاب كنبي اونيسی. ٣ ـ دابن مسعودرضی الله عنه نه ددې آيت تپوس اوشونو هغوئ اوفرمائيل چه دقرآن كريم مختلف آيتونه دی يوقسم هغه دی،چه تاويل ئې تيرشويدي، دويم هغه دی چه تاويل په زمانه دنبی صلى الله عليه وسلم كنبي واقع شويدي، دريم قسم هغه دی چه تاويل ئې دنبی صلى الله عليه وسلم دزمانې لږ روستوواقع دې، څلورم هغه دی چه تاويل ئې په ورځ دحساب كنبي واقع كيږی نوهركله چه دزړونو اوخواهشاتواختلاف راشی اودلې په تاسوكنبي ډيرې شی نوبيادخپل ځان ذمه واريئی اودعاموكار(دعوت) پريږدئ، (۴) روايت كړي دي ابوداؤداو ترمذی دابوثعلبة الخشنی نه، دې وائی چه ماتپوس اوكړودرسول الله صلى الله عليه وسلم نه ددې آيت نووې فرمائيل چه بلكه تاسوامربالمعروف اونهی عن المنكركوئ تردې پورې چه ته اووينې بخل چه اطاعت ئې كيدې شی اودخواهشاتواتباع كيدې شی اودنيالره ترجيح وركولې شی (په دين) اوهرذی رائې ته خپله رائې ښه ښكاريږی،نوبياخاص دخپل ځان فكركوه

اوپرېږده امرد عامو،ستاسوته مخکښې داسې زمانه راتلونکې ده چه صبرپه هغې کښې داسې دې لکه په موټې کښې ځکروټه نیول.دعمل کوونکی دپاره په هغې کښې په مثل داجرد پنځوسو (۵۰) کسانودې چه هریوستاسوپشان عمل کړې وی.چاټپوس اوکړوچه پنځوست زمونږنه (صحابه) يادهغوئ نه نو وې فرمائیل چه دهغوئ نه.اودابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه ددې آيت زمانه نه ده راغلې.دغسې روايت دابن عمررضی الله عنه نه هم راغلې دې ﴿لَا يَضُرُّكُم﴾ مرفوع دې جمله مستانفه ده علت دې دماقبل دپاره يامجزوم دې جواب امردې اوضمه په راء باندې دوجه داتباع دضاد نه ده.﴿إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا﴾ ضال،مهتدی ټول به دالله حضورته پيش کيږی

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ شَهَٰدَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ ٱلْمَوْتُ حِينَ ٱلْوَصِيَّةِ

اې ايمان والو:وصی جوړول په مينځ ستاسوکښې کله چې نزدې شی يوتن ستاسوته مرگ په وخت د وصيت کولو کښې

ٱثْنَانِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ أَوْ ءَاخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ إِنْ أَنتُمْ ضَرَبْتُمْ

دوه تنه مناسب دي چې خاوندان دانصاف وي ستاسونه يا نور دوتنه سوا ستاسونه که تاسو سفر کړې وي

فِى ٱلْأَرْضِ فَأَصَٰبَتْكُم مُّصِيبَةُ ٱلْمَوْتِ ۚ تَحْبِسُونَهُمَا مِنۢ بَعْدِ ٱلصَّلَوٰةِ

په زمکه کښې بيا اورسي تاسوته مصيبت دمرگ، ايساروئ به دې دواړو لره روستو دمانځه (دمازيگر) نه

فَيُقْسِمَانِ بِٱللَّهِ إِنِ ٱرْتَبْتُمْ لَا نَشْتَرِى بِهِۦ ثَمَنًا وَلَوْ كَانَ

نوقسمونه به کوي دواړه په الله که شک کوئ تاسو(وائ به دوئ) نه اخلومونږه پدې قسم سره عوض اگر چې وي

ذَا قُرْبَىٰ ۙ وَلَا نَكْتُمُ شَهَٰدَةَ ٱللَّهِ إِنَّآ إِذًا لَّمِنَ ٱلْءَاثِمِينَ ﴿١٠٦﴾

خپلوان اونه پټوؤشهادت مونږ دالله ، بېشکه دغه وخت به مونږ خامخا دگناهگارانونه يو

فَإِنْ عُثِرَ عَلَىٰٓ أَنَّهُمَا ٱسْتَحَقَّآ إِثْمًا فَـَٔاخَرَانِ

نوپس که خبراوکړې شو پدې خبره چې بېشکه دې دواړوکړيدی گناه(په دروغ قسم کولوسره)نو نوردوه کسان دې

يَقُوْمٰنِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِيْنَ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ

قائه شي په مقام ددې دواړو په باره دقسم کولو کښې، دطرفه دهغه کسانونه(ورثه) چې حق ئې ضائع شوېدې [1]

الْاَوْلَيٰنِ فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ لَشَهَادَتُنَآ اَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا

چې ډېرنزدې وي مړي ته نوقسم به کوي په الله ﷻ چې خامخا قسم زمونږ ريښتني دې د قسم ددغه دواړو نه

وَمَا اعْتَدَيْنَآ ۖ اِنَّآ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۝ ذٰلِكَ اَدْنٰٓى

اوزياتې نه دې کړې مونږ، بېشکه مونږ به ‌پدغه وخت کښې دظالمانو نه يو داطريقه ښه نزدې ده دېته

اَنْ يَّاْتُوْا بِالشَّهَادَةِ عَلٰى وَجْهِهَآ اَوْ يَخَافُوْٓا اَنْ تُرَدَّ اَيْمَانٌۢ

چې راتلل به کوي دوئ په شهادت سره په طريقه دهغې (دوجې دوېرې دالله ﷻ نه)يابه وېرېږي چې واپس به شي قسمونه

بَعْدَ اَيْمَانِهِمْ ۗ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاسْمَعُوْا ۗ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ۝

پس د قسمونود دوئ نه او ويرېږئ دالله نه او واورئ، اوالله توفيق نه ورکوي قوم نافرمان ته

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ ﴾ مفسرين وائي چه دا درې آيتونه په قرآن کريم کښې ډېر مشکل دي قرطبي وائي (هذه الايات الثلث عنداهل المعاني من اشكل ماف القرآن إعراباً ومعنً وحكماً)، امام رازي وغيره وائي (اتفق المفسرون على انها في غاية الصعوبة).دلته ددې آيتونوربط اومناسب دماقبل مضامينوسره دادې چه په ماقبل کښې رد دشرک فعلي اودشرک اعتقادي اوشونودا آيتونه دشرک اعتقادي دنفي سره متعلق دی چه حلف اوقسم په نوم دالله تعالى سره يکاردې په غير الله سره نه دې پکار. ﴿ فَيُقْسِمَانِ بِاللّٰهِ ﴾ ځکه چه په حلف بغيرالله کښې دغيرعالم الغيب متصرف فى الامورتسليم کول راځي اوداصريح شرک دې.(من حلف بغيرالله فقداشرک) (مسند احمد) **ددې آيتونودفهم دپاره شانِ نزول ذکرکول ضروري دی** چه هغه ترمذي اونورو محدثينو ذکر کړي دي.حاصل ئې دادې چه بديل بن ورقاءسهمي چه مسلمان ؤو.دتجارت دپاره دتميم داري اودهغه درورعدي بن بداء سره ((چه دادواړه په دغه وخت

[1] دوېمه ترجمه چه ثابت شويدې حق .يعني قسم په دوئ دواړو باندې دې

کښې نصرانيان ؤو» ،ملک شام ته په سفرلاړل.په واپسئ کښې په بُديل رضی الله عنه باندې
مرضِ موت راغې،نودخپل سامان فهرست ئې اوليکلواوپه خپل سامان کښې ئې پټ
کښودلو.اودغه دواړوته ئې سامان حواله کړواو وصيت ئې ورته اوکړوچه داسامان
زماوارثانوته حواله کړئ.بديل چه مړشو. نودوئ دواړو دهغه سامان راوړواووارثانوته ئې
ورله حواله کړو.مگر دسپينوزرو يو جام چه دسروزرو ميخونه اونقشونه پرې وهلې شوی
ؤو.هغه ئې ترينه پټ کړو.اوپه مکه کښې ئې خرڅ کړو. په يوروايت کښې دی چه تميم وائی
چه داجام مونږپه زر روپئ خرڅ کړې ؤو. اوروپئ مو تقسيم کړې وې.(نصف لی ونصف لک)
وارثانوچه هرکله دسامان فهرست اوکتلو نو په هغې کښې دَيوجام ذکرؤو.اوپه سامان کښې
موجودنه ؤو.نودوئ په دغودواړوباندې دخيانت دعوه اوکړه اوهغوئ انکاراوکړو.نود(البينة
المدعی واليمين علی من انکر) په قانون، وارثانوسره چونکه گواهان نه ؤونوهغوئ ته ئې قسم
د(الله تعالی په نوم ورکړو) بياخه وخت روستومعلومه شوه چه هغه جام دوئ په مکه کښې په
چاخرڅ کړې دې، نو وارثانو بيا دعوه اوکړه چه جام دوئ پټ کړې ؤواوبيائې خرڅ کړې
دې.نوهغوئ دواړواووئيل چه جام مونږدبديل نه په ژوندونې په بيع اغستې ؤو.ليکن
مونږسره گواهان نه ؤو نومونږ ددې وجه نه مخکې دهغې ذکرنه ؤوکړې،نوپه دې صورت
کښې دادواړه مدعيان شواو ورثؤانکار اوکړو نودفيصلې رخ بدل شواوهرکله چه مدعيانو
سره گواهان نه ؤو.نودمنکرينو،يعنی دوارثانونه قسم دالله تعالی په نوم واغستې شو.اود
دوئ په حق کښې فيصله اوشوه اوجام ورته واپس کړې شو.نودا آيت په دې باره کښې نازل
شو ﴿شَهَٰدَةُ بَيۡنِكُمۡ﴾ دامبتداء ده اوخبر ورله (اثنان) دې په حذف دمضاف سره. (ای **شهادة اثنین**)
اوشهادة په معنی دوصی گرځولو اووصی جوړولوسره دې يعنی وصی گرځول دهغه
معاملاتوکښې چه ستاسوپه مابين کښې وی.د دوؤکسانووصی گرځول مناسب دی.د دؤو
ذکردوجه دخصوص مورد نه دې اويوکس وصی گرځول ياد دؤونه زيات هم جائزدی.اوبالکل
وصی نه گرځول هم جائزدی وصی هغه چاته وئيلې شی چه ميت ورته وصيت کړې وی او وکيل
ئې گرځولې وی چه زماپه مال کښې دمرگ نه روستوداسې قسم تصرف اوکړه.صاحب
دقرطبی اوروح المعانی دشهادت دپاره ډيرې معنې ليکلې دی.(١) په معنی دايصاء (وصيت
کول) سره.لکه په دې آيت کښې.(٢) په معنی دحضوراحضارسره لکه (**فمن شهدمنکم الشهر**) (٣)
په معنی دقضی اعلام (خبروركول) سره.لکه (**شهدالله انه لا اله الاهو**).(٤) په معنی داقرار سره

لکه ,**والملائكة يشهدون**,,(۵) په معنی دحکم اوفيصلې سره لکه (**قضى القاضی بکذا**) (**وشهد شاهد من اهلها**,,(۶) په معنی ديمين سره،لکه (**شهادتنا احق من شهادتهما**),(۷) گواهی کول نوبعض مفسرين وائی چه شهادت په معنی دگواهئ سره دي اود ﴿ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ﴾ معنی داده چه من المسلمين، او د ﴿أَوْ ءَاخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ﴾ معنی داده چه من غير المسلمين،نودا آيت منسوخ دي ځکه چه شهادت دغير مسلمينو په مسلم باندې جائزنه دي، اوبعضو وئيلی دی چه د(**من غيركم**) معنی داده چه من الاجانب .اود(**منكم**) معنی داده چه **من الاقارب**،نوبيامنسوخ نه دي، او بهتره خبره داده چه دا آيت منسوخ نه دي اوشهادت په معنی دايصاء،وصی گرځول،سره دي اووصی مسلم اوغيرمسلم دواړه کيدې شی. اوبعض وائی چه داحکم په حالت دسفرکښې دي اوپه حالت دسفرکښې که چرته مسلم،عادل،گواه نه وی نودغيرمسلم گواهی جائزده،اودا قول د ابو موسی اشعری رضی الله عنه اوسعيدبن مسيب،سفيان ثوری رحمه الله اواحمدبن حنبل دي

﴿إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ ٱلْمَوْتُ﴾ اذا ظرفيه دي اوداظرف دي، د ﴿شَهَٰدَةُ بَيْنِكُمْ﴾ دپاره،او (**حضر**) په معنی دقرب سره دې.یاد(**الموت**) نه مراداسباب الموت دي اوداتاويل ځکه پکاردې چه مرگ حاضرشی نوبياخوخبره نشی کولې،﴿حِينَ ٱلْوَصِيَّةِ﴾ دابدل دي د(**اذاحضراحدكم الموت**) نه.معنی ئې داده چه يعنی وخت دوصيت،اومراد دوصيت نه وصی مقررکول دی،

﴿أَنتُمْ ضَرَبْتُمْ فِى ٱلْأَرْضِ﴾ دوصی مقررکولودپاره سفرشرط نه دي،نودلته ذکردسفرياد وجه دخصوص دواقعې نه دي يادې وجه نه دي چه داسې ضرورت په سفرکښې راځی،

﴿تَحْبِسُونَهُمَا﴾ ددې نه معلومه شوه چه دمدعی عليه قيدکول پکاردی

﴿مِنۢ بَعْدِ ٱلصَّلَوٰةِ﴾ دمازيگرمونځ مراد دې يامطلق مونځ اوداتغليظ دقسم دې په وخت سره ځکه چه وخت دصلوة،وخت داجتماع دخلقووی نومنکرته د دروغووئيلونه شرم راځی،او تغليظ فی القسم جائزدي،په قول سره اوپه وخت سره اودارنگه په مکان سره لکه په مسجد کښې اوخصوصاد ممبرمحراب په قرب کښې قسم ورکول،

﴿فَيُقْسِمَانِ بِٱللَّهِ﴾ يعنی اول به دمدعی نه گواه طلب کړې شی نوکه هغه سره گواهان نه وی نوبيابه مدعی عليه ته قسم ورکولې شی،ليکن قسم به صرف په نوم دالله تعالی باندې ورکولې شی.اگرکه منکراهل ذمه کافروی،﴿إِنِ ٱرْتَبْتُمْ﴾ د شک په وجه سره دعوی کولې شی

نو په دې کښې اشاره ده چه قبل د دعوې نه چاته به قسم نشي ورکولې، دغه شان قسم معتبرهم نه دې. ﴿لَا نَشْتَرِي بِهِ ثَمَنًا﴾ يعنی دوئ (منکرين) به دالفاظو د قسم سره داهم وائی چه «لانشتری» اود اتغليظ قولی دې په يمين کښې او اشتراء په معنی د حصول سره دې او د ثمن نه مراد عوض دينوی دې او «به» ضمير راجع دې اسم د الله تعالی ته يا قسم ته راجع دې.

﴿وَلَوْكَانَ ذَاقُرْبَىٰ﴾ ضمير د «كان» راجع دې، محلوف له، (د چا د پاره چه قسم کولې شی. ته. يعنی مونږ په خپل قسم سره نفع د دنيانه اخلو، اګرکه د دې سره د خپلوانو نفع يا رعايت کول ضم شی، او ځوک چه د دۀ وفائد و د حصول (لکه خپله ذاتی نفع او د خپلوانو، نفعې يا رعايت) د پاره د دروغو قسم نه کوی نو د يو ې فائدې د پاره په طريق اولی سره د دروغو قسم نه کوی.

﴿شَهَٰدَةَ ٱللَّهِ﴾ يعنی هغه شهادت چه الله تعالی ئې مونږ ته حکم راکړې دې او دا تغليظ قولی دې، او دا جائز دې واجب نه دې، بلکه مفوض دې، رائې د حاکم ته.

﴿عُثِرَ﴾ په معنی د اطلاع سره دې او نائب فاعل ئې ماده، د فعل ده، يعنی حصلت العثرة، سره ﴿أَنَّهُمَا﴾ ضمير وصيينو ته راجع دې، ﴿ٱسْتَحَقَّآ﴾ په معنی د حاصلولو سره دې يعنی که چرته داسې اطلاع حاصله شوه چه دې دواړو وصيينو ګناه حاصل کړې دې، خيانت ئې کړې دې په مالِ وصيت کښې او په دروغو سره ئې قسم کړې دې، لکه په شانِ نزول کښې داسې ذکر دې، چه هغه جام هرکله په مکه کښې ملاؤ شو، نو ورثؤ د ميت چه د وصيينو نه تپوس اوکړو نو دوئ دواړو دعوه د شراء اوکړه چه مونږ په بيع اغستې دې حالانکه اول ئې د مطلق لاعلمئ اظهار کړې ؤو، نو ګويا کښې دوئ اولاً، د نه اغستلو قول اوکړو او بيائې د اغستلو قول اوکړو، نو د دې نه معلومه شوه چه دوئ خيانت کړې دې.

﴿فَـَٔاخَرَانِ﴾ داصفت د موصوف مقدر دې (ای رجلان اخران) ﴿يَقُومَانِ مَقَامَهُمَا﴾ مراد د قيام نه په مقام د دوئ دا دې چه اوس به قسم دوئ ته ورکولې شی، ځکه چه دوئ منکرين دی او وصيين مدعيان دی او قسم منکر له وی، ﴿مِنَ ٱلَّذِينَ ٱسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ﴾ دابيان د آخران دې او د دې نه مراد ورثه د ميت دی، يعنی د ورثؤ د ميت نه به دوه کسان قسم کوی ځکه چه دوئ منکرين دی د بيع نه او وصيين مدعيان د بيع دی نو چه د مدعی سره ګواهان موجود نه وی نو منکرله به قسم ورکولې شی، او د دې په ترکيب کښې د مفسرينو دوه اقواله دی يو دا چه «استحق» فعل دې او فاعل ئې محذوف دې چه اليمين دې او دا په نزد د هغه چا چه حذف د فاعل جائز وائی

نو تقدیر دارنگه شو (استحق،الیمین،القسم،علیهم) چه ثابت شو قسم کول په دوئ باندې. نورښو ته (**استحق علیهم**) څکه وائی چه قسم په دوئ ثابت شویدې اوبعض وائی چه دلته ماده د فعل فاعل دې،نو (**استحق**) په معنی د ثبت الحق سره دې او ورثوته (**استحق علیهم**) څکه وئیلی دی چه هرکله وصیینو دوئ مال واغستو .نو دورثوپه مقابله کښې دوئ په مال باندې استعلاء اوحق ثابت کړو .نو څکه دوئ ته (استحق علیهم) اووئیل،(کذافی الکبیر).

﴿ٱلْأَوْلَيَٰنِ﴾ داتثنیه د اولی ده په معنی د (الاقربان الی المیت) اودابدل دې د (آخران) نه. یعنی نورداسې دوه کسان چه ډیرقریب وی میت ته نوهغه دې قسم اوکړی په نوم الله تعالی باندې څکه قسم په غیرالله باندې جائزنه دې، ﴿لَشَهَٰدَتُنَآ أَحَقُّ﴾ شهادت په معنی دیمین سره دې یعنې دوئ دې قسم بالله سره داسې هم اووائی چه زمونږقسم (**احق**) دې،احق په معنی دریشتینې اولائق دقبلولوسره دې. دلته تفضیلی معنی مقصودنه ده،اسم تفضیل په معنی داصل فعل سره دې یادمبالغې دپاره دې،اوداهم تغلیظ قولی دې په یمین کښې،﴿إِنَّآ إِذًا لَّمِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ دامزیدتاکیداوتغلیظ دې،په یمین کښې،

﴿ذَٰلِكَ﴾ اشاره ده ماقبل طریقې دَ فیصلې ته،﴿أَدْنَىٰٓ أَن يَأْتُوا۟﴾ ضمیرراجع دې وصیینوته چه په اثنان کښې ذکرؤو،یاراجع دې ټولوهغه خلقوته چه په یومعامله کښې شهادت ورکوی یاقسم کوی ﴿عَلَىٰ وَجْهِهَآ﴾ یعنی په صحیح او اصلی طریقې سره،﴿أَوْ يَخَافُوٓا۟﴾ (او) تنویع دپاره دې نومقابل معطوف علیه ئې مقدردې، (ای لخوف الله او یخافوا) یعنی شهادت دوه نوع دې یودمتقیانودې نوهغوئ په صحیح او اصلی طریقې سره شهادت کوی دوجه دخوف دالله تعالی نه.اوبل دعاموخلقوشهادت دې نوهغوئ به ددې نه یریږی،چه قسمونه به ئې دروغ ثابت شی نوواپس به کړې شی اودخلقوپه مخکښې به رسوا شی

﴿أَن تُرَدَّ أَيْمَٰنٌۢ﴾ ردمقابل دقبول دې نومرادقسمونه دوصیینودی چه خیانت ئې کړې دې. یاردپه معنی دواپس کیدلواوپیش کیدلوسره دې،نود ﴿أَن تُرَدَّ أَيْمَٰنٌۢ﴾ نه مرادقسمونه د ورثو دی اود ﴿بَعْدَ أَيْمَٰنِهِمْ﴾ نه مرادقسمونه دوصیینودی ﴿وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ﴾ یعنی په قسمونو اومالونو کښې تقوی کوئ دخیانت نه خان ساتئ. ﴿وَٱسْمَعُوا۟﴾ سماع قبول مراد ده.﴿وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ

﴿الترجمة﴾ فسق سبب دې د حرمان د هدایت نه

يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ فَيَقُوْلُ مَاذَآ اُجِبْتُمْ ط

په کومه ورځ چې جمع به کړي الله رسولان. پس اوبه وائي ورته څه جواب درکړې شوې وو تاسونه له طرفه د امتـانونه

قَالُوْا لَا عِلْمَ لَنَا ط اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ۝ اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسَى

نو اوبه وائي نشته هيڅ علم مونږ ته، بېشکه ته د هربنه پوهه ني په پټو څېزونو کله چې اوبه وائي الله اې عيسي

ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِيْ عَلَيْكَ وَعَلٰى وَالِدَتِكَ م اِذْ اَيَّدْتُّكَ بِرُوْحِ الْقُدُسِ قف

خوئي د مريم ياد کړه نعمت خما په تاباندې اوپه مورستاباندې. کله چې ماستامدداوکړو په روح پاک سره

تُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا ج وَاِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ

خبرې دې کولې خلقو سره د موږنه غيږ کښې اوپه پوخ عمر کښې. اوکله چې ماتاته علم درکړو د کتاب(قران) او د سنت

وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ج وَاِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ بِاِذْنِيْ فَتَنْفُخُ

او د نورات او انجيل اوکله چې جوړولو به تا ده ختونه پشان دشکل د مرغۍ په حکم خماسره نوپوکې به دې ورکړو

فِيْهَا فَتَكُوْنُ طَيْرًا بِاِذْنِيْ وَتُبْرِئُ الْاَكْمَهَ وَالْاَبْرَصَ بِاِذْنِيْ ج وَاِذْ تُخْرِجُ

په هغې کښې نوشوه به هغه مرغۍ په حکم خما سره او روغوله تا پيدائشي ړوند او برګي والا په حکم خما سره. اوکله چې راوبستل به تا

الْمَوْتٰى بِاِذْنِيْ ج وَاِذْ كَفَفْتُ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَنْكَ اِذْ جِئْتَهُمْ

مړي ژوندي کول په حکم خماسره اوکله چې بندکړل ما بني اسرائيل ستانه(د وژلو ستانه) کله چې راوړل تا دوی ته

بِالْبَيِّنٰتِ فَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝

ښکاره معجزات نو اووئيل کافرانو د دوی نه ندې دا مګر جادو ښکاره دې

﴿يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ﴾ دا تخويف اخروي دې او نفي د شرک فی التصرف او نفي د شرک فی العلم ده. او ظرف د روستو (قالوا) سره متعلق دې، يعنی انبياء به اووائی په هغه ورځ چه الله تعالی د دوئ امتيان جمع کړی او تپوس ترينه اوکړی.

﴿مَاذَآ أُجِبْتُمْ﴾ دا اجابت عام دي اجابت قولي اوعملي دواړوته شامل دي.نوالله تعالى چه دانبياؤنه تپوس اوكړی چه امتيانودطرف نه تاسوته څه جواب (قولاًعملاً) درکړې شوي ؤو .نوانبياء به اووائي

﴿لَا عِلْمَ لَنَآ﴾ ددې سوال اوجواب مقصود .توبيخ دي كفاروته اونفي دعلم غيب ده. دانبياؤ نه. اوكه څوک **سوال** اوکړی چه انبياؤته خوعلم ؤو .چه چاخبره منلې ده اوچانه ده منلې.نوبيا څرنګه وائي.(**لاعلم لنا**) **جواب** كړې دي بعض مفسرينوچه په ظاهري اقوالوسره كوم علم حاصليږي هغه په اصل كښې ظن دي اودزړه رازاوحقيقي ايمان چه دهغې تعلق دزړه سره دي.دهغې علم حقيقي الله تعالى ته دي.اوانبياؤته په ذريعه دوحي سره حاصليږي.اوپه هرامت كښې منافقان هم وی چه په ظاهركښې مؤمنان وی اوپه حقيقت كښې مؤمنان نه وی. نودانبياؤعلم په هغوئ باندې ظني وی علم يقيني نه وی نومراد دادې چه داجابت كوونكوپه حال باندې زمونږعلم يقيني نشته دې بلكه صرف ظن ؤو .(**كبيربحرمحيط وغيره**) بعض مفسرينوداسې جواب كړې دي چه زمونږ علم په باطن باندې نشته دې صرف په ظاهرباندې زمونږ علم ؤو .داوروايت دابن عباس رضي الله عنه دي. امام رازي رحمه الله دې جواب ته ترجيح وركړې ده.بعض مفسرين وائي چه داقول تواضعاًاوادباًدې.ددې مطلب دادې چه زمونږعلم چونكه صرف په ظاهرباندې دې.نوداستادعلم په مقابله كښې هيڅ حيثيت نه لري.(**لاعلم لنا**) اودامطلب ئې نه دې چه انبياؤته دتمامو څيزونوعلم حاصل ؤو .اودالله تعالى په حضوركښې ئې دادب دپاره دروغ اووئيل چه (لاعلم لنا) (معاذالله) اوبعض مفسرين وائي چه (**لاعلم لنا**) ئې دهيبت دقيامت دوجه نه وئيلي دي.صاحب.دروح المعاني اوكبيراوخازن په دې باندې ردكړې دې چه انبياء قيامت دفزع اوهيبت نه محفوظ دی (**لايحزنهم الفزع الاكبر**) (**وهم من فزع يومئذ امنون**) اوبعض مفسرين وائي چه د(**لاعلم لنا**) نه مراد دادې چه **بعد وفاتنا**.لكه عيسى عليه السلام فرمائي (**فلماتوفيتني كنت انت الرقيب عليهم**).﴿إِنَّكَ أَنتَ عَلَّـٰمُ ٱلْغُيُوبِ﴾ (**انت**) ضميرفصل دې دحصردپاره يعني صرف ته په تمامو مغيباتوعالم ئې.

﴿إِذْ قَالَ ٱللَّهُ يَـٰعِيسَى ٱبْنَ مَرْيَمَ﴾ داتخصيص بعدالتعميم دې يعني دعام انبياؤ(عليهم الصلوة والتسليمات) نه بعد .دحضرت عيسى عليه السلام ذكرپه خصوصيت سره كيږی.څكه دنبي صلى الله عليه وسلم په زمانه كښې دانبياؤدالوهيت قائل عيسايان ؤو .عيسايان په علم اوعبادت

اورهبانیت کښې مشهورږو، لیکن حضرت عیسی علیه‌السلام ته ئي ابن الله، یاعین الله، یاثالث ثلاثة، وئیل اوډعیسی علیه‌السلام په نوم ئي نذرونه ورکول حتی چه بعض عیسایانوبه دعیسی علیه‌السلام په نوم خپل خامن ذبح کول، نوددې وجه نه دعیسی علیه‌السلام ذکرپه خصوصیت سره اوشوچه دهغه نه دعلم الغیب نفی اود الوهیت نفی په داسې طریقه اوشی چه حضرت عیسی علیه‌السلام پخپله دخپل ځان نه دعلم غیب اودالوهیت نفی کړیده نودانفی دشرک اعتقادی اودشرک فعلی ده اودادسورت دمضامینو خلاصه ده نوګویاکښې دسورت اختتام په اصل مقصودئې مضامینوسره دې، د﴿ إِذْ قَالَ اللَّهُ ﴾ نه د ﴿لَّا أُعَذِّبُهُ أَحَدًا مِّنَ الْعَالَمِينَ ﴾ آیت نمبر ۱۱۵ پورې تمهید دې سوال ته، یعنې الله تعالی په حضرت عیسی علیه‌السلام اودهغه په والده، حضرت مریم باندې خپل احسانات بیانوی بیا د «اذقال الله» آیت نمبر ۱۱۶ نه اصل سوال شروع کیږی

﴿إِذْ أَيَّدتُّكَ بِرُوحِ الْقُدُسِ ﴾ دا اول انعام اواحسان دې «اذ» ظرف متعلق دې د «نعمتی» سره نعمتی په معنی د (انعامی علیکما) سره دې (ای اذکرانعامی علیکماوقت تائیدی لك بروح القدس) اوانعام په اولادباندې، انعام وی په مورباندې، نوانعامات په عیسی علیه‌السلام انعامات دی په مریم او روح القدس اضافت دموصوف دې صفت ته (ای الروح المقدس) روح القدس نه مرادجبرائیل علیه‌السلام دې اوتائیدئې داؤچه هروخت به ورسره ګرځیدلو، یاترینه مرادهغه کلام دې چه په هغې سره احیاء د دین راځی یاهغه کلام، (اسم اعظم) چه په هغې سره مړې ژوندی کیږی، یاترینه مرادنفس دعیسی علیه السلام دې چه پاک ؤ دګناهونونه،

﴿تُكَلِّمُ النَّاسَ ﴾ داجمله مستانفه ده بیان د «ایدتك» دې یاجمله حالیه ده حال دې دکاف نه په «ایدتك» کښې، اود «مهد» نه مرادمعروفه معنی ده، زانګو، یاترینه مراد، حجرالام، دمور غیږه ده

﴿ وَكَهْلًا ﴾ په دې کښې تنبیه ده په دې خبره چه خبرې دعیسی علیه‌السلام په زمانه د طفولیت کښې داسې عبرت حکمت والاوې لکه کلام دزمانې دکهولت، اوبعض وائی چه په دې کښې اشاره ده، نزول دعیسی علیه‌السلام ته، اوداتوجیه مبنی ده په دې باندې چه دکهولت معنی داده چه بډاوالې ته نزدې شوې وی یاداده چه عمرئې د (۳۴) څلوردیرش کالو، نه زیات شوې وی د (۵۱) یا (۵۵) پورې، اوعیسی علیه‌السلام آسمان ته په عمرد (۳۳) کالوکښې ختلې دې، نو خبرې دخلقوسره په زمانه دکهولت کښې به هله وی چه دآسمانونونه راښکته شی، لیکن بعض وائی چه دکهولت زمانه د (۳۰) کالونه شروع کیږی نوبیاداتوجیه نشی کیدی،

﴿وَاِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتٰبَ﴾ دادبل انعام بيان دې يعنى دكتب سماويو علم. او د كتاب نه مراد يا جنس كتاب آسمانى دې يا علم ظاهرى چه ليكلې شى اود حكمت نه مراد علم باطنى چه علم الاسرار دې اوليكلې نشى. يا د كتاب نه مراد قرآن دې اود حكمة نه مراد حديث دې

﴿وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ﴾ دتورات علم ورته اول وركړې شوې ؤ واومكلف ؤ. په عمل دتورات سره. اوبيا روستو ورته انجيل وركړې شو. علم دتورات اودانجيل مخكښې درفع الى السماء نه ؤ او علم دقرآن اوحديث بعد دنزول نه دې. عيسى عليه السلام چه دآسمان نه راكوز شى نو د قرآن او حديث علم به ورسره وى اوپه دې به فيصله كوى او اختلافى مسئلې دمجتهدينو به ختمې شى. نو علم دقرآن او حديث اګركه ورته روستو وركولې شى ليكن د افضليت دوجه نه اولاً ذكر شو.

﴿وَاِذْ تَخْلُقُ﴾ دا دبل انعام ذكر دې، تخلق په معنى دتصوّر سره دې يعنى تا به صورت جوړوؤ. ﴿كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ﴾ كاف په معنى دمثلٌ يا مماثلةً سره دې مفعول دتَخلُق دې او ضمير د فيها او د فتكون دغه صورةً مماثلةً ته راجع دى. ﴿بِاِذْنِىْ﴾ مكرر ذكر شوې دې. اشاره ده چه صورةً دطير (مرغئ) جوړول هم باذن الله سره ؤ. اودا اذن شرعى دې اوددغه صورة نه طير (مرغئ) جوړيدل هم باذن الله ؤ. اودا اذنِ تكوينى دې، نوددې وجه نه (باذنى) مكرر ذكر شو

﴿الْاَكْمَهَ﴾ هغه انسان چه پيدائيشى ړوندوى اودعلاج قابل نه وى او (ابرص) هم د علاج مرض دې ﴿وَاِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتٰى بِاِذْنِىْ﴾ داخراج نه مراد احياء ده اوداذن نه مراد اذنِ تكوينى دې ﴿وَاِذْ كَفَفْتُ﴾ دادبل انعام ذكر دې، ددې نه قبل انعامات دنفع وركولو ؤ. اودا انعام د دفع دضرر دې. ﴿اِذْ جِئْتَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ﴾ يعنى په تاكښې څه نقصان نه ؤ. اوخبره ستا هم بې دليله نه وه اوددې باوجود، دوئ ستا دقتل دپاره راغلل اوتا ته ئې ساحر جادوګر اووئيلو.

وَاِذْ اَوْحَيْتُ اِلَى الْحَوَارِيّٖنَ اَنْ اٰمِنُوْا بِىْ وَبِرَسُوْلِىْ ۚ

اوكله چې ما الهام اوكړو په زړه كښې واچولو حوارينوته ددې چې ايمان راوړئ په ما اوپه رسول خما

قَالُوْٓا اٰمَنَّا وَاشْهَدْ بِاَنَّنَا مُسْلِمُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ اِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ

اوونيل دوئ ايمان راوړې دې مونږ اوته ګواه شه چې بېشكه مونږ منونكي يو. كله چې اوونيل حوارينو

يٰعِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيعُ رَبُّكَ أَنْ يُنَزِّلَ عَلَيْنَا مَائِدَةً

ځ عيسى خوئي دمريم آيا اوبه مني رب ستاداخبره چې رانازل کړي په مونږ باندې يو دسترخوان

مِّنَ السَّمَاءِ ۖ قَالَ اتَّقُوا اللَّهَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١١٢﴾

دآسمان نه . اوونيل هغه ويريږئ دالله نه که يئ تاسو مومنان

﴿ وَإِذْ أَوْحَيْتُ إِلَى الْحَوَارِيِّينَ ﴾ دادبل انعام ذکردې يعنى تائيدپه مخلصانوملګرو دوستانو سره..**اوحيت** په معنى دالهمت، يادامرتُ سره دې، حوارى دحورنه ماخوذدې سپين والي ته وائي. حوارى هغه دوست اوملګرې چه مخلص رازداروى اوزړه ئې سپين يعنى خالى وى دمنافقت نه. ﴿ إِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ ﴾ دادبل انعام ذکردې،يعنى نزول دمائده.اوذکرد درخواست د «**حوارين**» تمهيد أدې.

﴿ هَلْ يَسْتَطِيعُ رَبُّكَ ﴾ «**يستطيع**» په معنى ديفعل سره دې،اواستفهام دشک دپاره نه دې ځکه حوارين کامل مؤمنان ؤو.نودهغوئ شک نه ؤودالله تعالى په قدرت کښې.بلکه د استفهام مطلب دادې چه داسې سوال کول به دحکمت الهى خلاف خونه وى؟ دحکمت الهى دخلاف څيزسوال کول نامناسب اوتعدى فى السوال ده نودادليل دې په کمال اطاعت او ايمان دهغوئ

﴿ مَائِدَةً مِّنَ السَّمَاءِ ﴾ د «**مائده**» اطلاق په دؤومعانيوباندې کيږي.**اول** هغه.خوان. دسترخوان چه په هغې باندې طعام وى.دا د (مَادَ، يَمِيْدُ) نه ماخوذدې.حرکت ته وائي. او دا رنګه اعطاء (ورکولو) ته وائي.نودافاعل بمعنى المفعول دې لکه (عيشة راضية) يعنى خوزولې شى لاسونه ديته.يافاعل په خپلې معنى سره دې، مائده يعنى ورکوونکى دطعام.لکه ونيلې شى (شجرة مثمره مطعمة) اوچاونيلى دى چه مائده ماخوذدې دمدنه په معنى دغوړولوسره او دسترخوان غوړولې شى په زمکه دپاره دخوراک.**دويم** په معنى دنفس طعام سره.صاحب دروح المعانى وائي چه مائده غيرده.دخوان نه.(لانه اسم لشئ مرتفع يهيأ ليؤكل عليه الطعام (ميز.ټيبل) ولاكل عليه بدعة،لكنه جائزان خلاعن قصدالتكبر(روح) مراد دمائده نه دلته طعام دې.

﴿ قَالَ اتَّقُوا اللَّهَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ عيسى عليه السلام دوئ ته اوونيل چه د «اقتراح الايات» يعنى

دمعجزاتودفرمائيش نه منع شئ،فرمائيشي معجزې ايمان والانه غوارې اوتاسوخو كامل ايمان ولاپئي،نوداسوال ستاسودشان سره مناسب نه دی،

| قَالُوا نُرِيدُ أَن نَّأْكُلَ مِنْهَا وَتَطْمَئِنَّ قُلُوبُنَا وَنَعْلَمَ أَن |
|---|
| اوونيل دوئ غوارو مونږ چې خوراک اوکړو د هغې نه اوکلك شي زړونه خمونږاوبنهٔ پوهه شو چې بېشکه |
| قَدْ صَدَقْتَنَا وَنَكُونَ عَلَيْهَا مِنَ الشَّاهِدِينَ ۝ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ |
| تارښتياونيلي دي مونږتهٔ اوشوبهٔ مونږ په هغې باندې دګواه کوونکونه (غائبينونه) اوونيل عيسى خوئي دمريم |
| اللَّهُمَّ رَبَّنَا أَنزِلْ عَلَيْنَا مَائِدَةً مِّنَ السَّمَاءِ تَكُونُ لَنَا عِيدًا |
| يارېه زمونږ نازل کړې په مونږباندې دسترخوان دآسمان نهٔ ددې دپاره چې شي مونږ دپاره اختر |
| لِّأَوَّلِنَا وَآخِرِنَا وَآيَةً مِّنكَ ۖ وَارْزُقْنَا وَأَنتَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ۝ |
| دړومبنوزمونږ اوروستنوزمونږ دپاره اونخه(معجزه)ستادطرفنه، اوورزق راکړې مونږتهٔ اوتهٔ ئې غوره رزق ورکوونکې |
| قَالَ اللَّهُ إِنِّي مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ ۖ فَمَن يَكْفُرْ بَعْدُ مِنكُمْ |
| اوفرمائيل الله بېشکه څه نازلوونکې دهغې يم په تاسو، نوچاچې کفراوکړو روستو ددېنه په تاسو کښې |
| فَإِنِّي أُعَذِّبُهُ عَذَابًا لَّا أُعَذِّبُهُ أَحَدًا مِّنَ الْعَالَمِينَ ۝ |
| نوبېشکه څه بهٔ هغه ته عذاب ورکړم داسې عذاب چې نهٔ بهٔ وي ورکړې ماداسې عذاب هيچاته دخلقونهٔ |

﴿ قَالُوا نُرِيدُ ﴾ حوارييناوونيل چه مونږفرمائيشي معجزې نه غوارو بلکه زمونږ مقصود دادې چه ﴿ نَّأْكُلَ مِنْهَا ﴾ دتبرک دپاره خوراک اوکړو،﴿ وَتَطْمَئِنَّ قُلُوبُنَا ﴾ اوزمونږ زړونه مطمئن شي په سبب دزيادت ديقين سره چه مشاهده اواستدلال دواړه ضم شي نويقين قوی شي اواطمينان حاصل شي لکه حضرت ابراهيم عليه السلام چه اوفرمائيل (**ولكن ليطمئن قلبي**) نوچه مونږمشاهده دمعجزې اوکړونوستاپه صدق باندې به زمونږيقين زيات شي.

﴿ وَنَكُونَ عَلَيْهَا مِنَ الشَّاهِدِينَ ﴾ چه کوم خلق حاضرنه دی نوهغوئ ته به ئې مونږشهادت ورکوو. نودهغوئ دهدايت دپاره به ذريعه شي،

﴿ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ اللَّهُمَّ رَبَّنَا ﴾ نو حضرت عيسى عليه السلام ته چه معلومه شوه چه د دوئ دا طلب دصحيح غرض دپاره دي نودعائې اوکړه چه یاالله مونږته مائده نازله کړه چه هغه زمونږداولينواواخرينودپاره عيداوخوشحالي شي ﴿ لِأَوَّلِنَا ﴾ .داولينونه مرادحاضرين دي ﴿ وَآخِرِنَا ﴾ داخرينونه مراد. روستو پيداکيدونکي خلق دي. اومائده دحاضرينودپاره خوشحالي ځکه ده چه د دوئ په سوال طلب سره مائده نازله شوه اودوئ ترينه تبرکاًخوراک اوکړو.اوروستودپاره خوشحالي ځکه ده چه دا انعام دې د دوئ په اسلافوباندې.

﴿ وَآيَةً مِّنكَ ﴾ يعنى نزول دمائده به زمادرسالت داثبات دليل شي اوپه منکرينوبه حجت شي.روايت دې چه عيسى عليه السلام غسل اوکړواوزړې جامې ئې واچولې اودوه رکعنه مونځ ئې اوکړواوډيره تضرع عاجزى ئې اوکړه چه سرئې ټيټ کړوسترګې ئې بندې کړې او وې ژړل.دعائې اوکړه چه ﴿ رَبَّنَا أَنزِلْ عَلَيْنَا مَائِدَةً ﴾ نومائده نازله شوه اوداورځ داتواروه اوددې وجه نه دوئ داورځ دعبادت دپاره مقررکړه.ليکن داخبره مخالفه ده.دمشهورحديث نه.چه دهغې مضمون داسې دې چه يهوديانودهفتې ورځ دخپل ځان دپاره مقررکړه اونصاراؤ.د اتوارورځ.اوالله تعالى مونږته هدايت اوکړودپاره دورځې دجُمعې.الخ.نوددې نه معلوميږى چه داتوارورځ عيدګرځول دنصاراؤ، خلاف دې دهدايت دالله تعالى نه.

﴿ قَالَ اللَّهُ إِنِّي مُنَزِّلُهَا ﴾ الله تعالى اوفرمائيل چه زه مائده نازلوم ليکن که چاددې نه بعد هم کفراوکړونوهغه ته به داسې سخت عذاب ورکړم چه بل هيچاته مې نه وى ورکړې.ځکه قانون الهى دادې چه څوک معجزه طلب کړى نودمعجزې دظهورنه بعدچه څوک خبره نه منى نوپه سخت عذاب دنيوى سره هلاک کولې شى،لکه قوم دهود عليه السلام اوقوم دصالح عليه السلام وغيره.دحسن بصرى رحمه الله اومجاهدنه روايت دې چه هرکله دوئ داسخت وعيداؤريدو.نو مطالبه ئې پريښودله اومائده نازله نه شوه اوددې قول تائيدپه دې سره کولې شى چه خبردنزول دمائدې په نصاراؤکښې مشهورنه دې اونه دهغوئ په کتاب کښې شته دې ليکن ددې نه جواب کيدې شى چه داواقعه دوئ پټه کړيده اوپه خپل کتاب کښې ئې نه ده ليکلې،ځکه چه په دې کښې د دوئ دمشرانودمسخ ذکردې اوجمهورعلماء وائى چ مائده نازله شويده،په دليل ددې سره چه الله تعالى ئې وعده کړې وه. ﴿ إِنِّي مُنَزِّلُهَا ﴾ اوالا

تعالى خپله وعده پوره کوي.اوپه روايت دترمذي وغيره کښې دي چه نازله شوې وه مائده دآسمان نه ډوډئ.غوښه، اودوئ ته امرکړې شوې ؤچه خيانت به نه کوئ.اودصبادپاره به ئې ذخيره نه کوئ.نودوئ خيانت اوکړواوذخيره ئې کړه اودصبادپاره ئې کيښنودل شروع کړل نو دوئ شکلونه دشادوګانو(بيزوګانو) خنزيرانوپه شان اوګرځيدل.دنزول دمائدې د تفصيل په باره کښې نور مختلف روايات هم راغلي دي.نوقول دجمهوروپه دې کښې اصح اوقوي دې.امام احمدپه مسنداحمدکښې اوامام حاکم په مستدرک کښې اونوروااهل سيرورايت نقل کړې دې چه مشرکينودمکې.نبي صلى الله عليه وسلم ته اووئيل چه ته دخپل رب نه دعااوغواړه چه دصفا.نه سره زر جوړکړي نوموږبه په تاباندې ايمان راوړونونبي صلى الله عليه وسلم دعااوغوښتله نوجبرائيل عليه السلام راغې. اوعرض ئې اوکړوچه ستارب په تاباندې سلام وائي اوداسې وائي چه که ته غواړې نودصفا نه به سره زرجوړکړم خوکه بياچاکفراوکړو.نوداسې سخت عذاب به ورته ورکړم چه په عالم کښې مې هيچاته نه وي ورکړې اوکه ستاخوښه وي نودوئ له به ددغې په ځائې دتوبې او رحمت دروازه خلاصه کړم نونبي صلى الله عليه وسلم داخوښه کړه چه دتوبې دروازه خلاصه شي.

وَ إِذْ قَالَ اللَّهُ يٰعِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ ءَ أَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَ أُمِّيَ إِلٰهَيْنِ

اوکله چې [1] به اووائي الله اې عيسى خوئې دمريم آياتاونيلي دي خلقوته چې اونيسئ ماا ومورخما په خدائي سره دواړه

مِنْ دُونِ اللَّهِ ۖ قَالَ سُبْحٰنَكَ مَا يَكُونُ لِيْ أَنْ أَقُولَ مَا لَيْسَ لِيْ ۚ بِحَقٍّ ۚ

سواداالله نه . اوبه [2] وائي هغه چې پاکي ده تالره [3] ندي جائز مالره چې اووايم خه هغه خبره چې نده مالره جائز

إِنْ كُنْتُ قُلْتُهُ فَقَدْ عَلِمْتَهُ ۚ تَعْلَمُ مَا فِيْ نَفْسِيْ وَلَآ أَعْلَمُ

کچرې [4] ماونيلي وې داسې نويقينانه عالم ئې په هغې. ته پوهيږې په هغه څه چې خما په زړه کښې دې اونه پوهيږم څه

---

۱ . اصل مقصودي سوال.

۲ . جواب نمبر ۱

۳ . جواب نمبر ۲

۴ . جواب نمبر ۳

مَا فِيْ نَفْسِكَ ۭ اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ﴿۱۱۶﴾

په هغه څه چې ستا په نفس کښې دي، بیشکه ته د ډیرښه پوهیږې په پټو خبرونو

﴿وَإِذْ قَالَ اللَّهُ يٰعِيسَى ﴾ مخکښې رکوع کښې دانعاماتوذکرؤوتمهیداً اواصل سوال دلته ذکرکیږی.نو(اذقال الله)الخ.اعاده بُعدعهد ده،اوداسوال به په محشرکښې کیږی او صیغه دماضی ذکرشویده نوپه دې کښې اشاره ده چه داخبره داسې یقینی ده لکه ماضی.او ددې سوال فائده الزام دې په نصاراؤباندې اود دوئ رسواکول دی.چه دوئ په عیسی علیه السلام باندې دروغ جوړکړی ؤو،اودارنګه په دې کښې نفی دعلم غیب ده دعیسی علیه السلام نه.نوالله تعالی به په محشرکښې دتمامومخلوقاتوپه حضورکښې عموماًاودنصاراوپه حضورکښې خصوصاً دحضرت عیسی علیه السلام نه داتپوس اوکړی چه آیاتاخلقوته وئیلی ؤوچه ماأوزماموړ معبودجوړکړئ،نوحضرت عیسی علیه السلام به جواب ورکړی چه دلته ذکرکیږی.(قال ابوروق اذا سمع عیسی علیه السلام هذا الخطاب ارتعدت فرائصه ومفاصله وانفجرت من اصل کل شعرة من جسده عین دم ثم قال وهویرعدمجیباًلله سبحانک) الخ.

(فائده) حضرت الشیخ رحمه الله به فرمائیل چه لکه څرنګه په قیامت کښې الله تعالی دحضرت عیسی علیه السلام نه تپوس کوی دنصاراؤدملزم کولواورسواکولودپاره نودغه شان به دحضرت علی رضی الله عنه نه تپوس کوی چه آیاتاخلقوته وئیل ؤو.چه ماته اله.مولی. مشکل کشا.وایئی؟ نوحضرت علی رضی الله عنه به هم هغه جواب ورکړی کوم چه عیسی علیه السلام ورکوی.

﴿ قَالَ سُبْحٰنَكَ ﴾ دادعیسی علیه السلام دطرفه جواب دې په پنځوطریقوسره (۱) اول داچه (سبحنک) زه تاته نسبت دپاکئ کوم دشریک نه په ذات اوصفاتوکښې په قول اوعقیده اوعمل سره.(۲) دویم داچه ﴿مَا يَكُوْنُ لِيْٓ اَنْ ﴾ زمادپاره هرګزداخبره جائزه اومناسبه نه ده چه داسې دعوه اوکړم چه زماحق نه وی، معبود کیدل صرف دهغه چاحق دې چه خالق.مالک متصرف عالم الغیب وی.(۳) دریم داچه ﴿اِنْ كُنْتُ قُلْتُهٗ فَقَدْ عَلِمْتَهٗ ﴾ که چرته ماوئیلې وې نوتاته به ئې علم وې لیکن تاته ئې علم نشته نومعلومه شوه چه مانه دی وئیلی نودادلیل برهانی دې.څکه صدورددیوقول دچانه مستلزم دې علم دالله تعالی لره په هغې باندې،نوصدورددقول ملزوم دې اوعلم دالله تعالی په هغې ورسره لازم دې اوانتفاء دلازم مستلزمه وی انتفاء دملزوم لره.

﴿تَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِي﴾ دادليل دماقبل دي (في نفسي) متعلق دي دمقدرسره چه (اخفيه) دي ﴿مَا فِي نَفْسِكَ﴾ (اى مااخفيته عنى) يادنفس نه مرادذات دي،اودابيان دواقع دي اواظهارد خپل قصورعلمى دي.﴿إِنَّكَ أَنتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ﴾ (انت) ضميرفصل دي،اوداكلام مشتمل دي په تاكيد اوپه حصردعلم غيب په ذات دالله تعالى پوري

| مَا قُلْتُ لَهُمْ إِلَّا مَا أَمَرْتَنِي بِهِ أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمْ ¹ |
|---|
| [1] ندي ونيلي مادوئ ته مگرهغه چې تاحكم كړيدې ماته د هغې چې عبادت كوئ صرف دالله چې رب خما اورب ستاسو دې |
| وَكُنتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَّا دُمْتُ فِيهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنتَ أَنتَ |
| او ووم خه [2]: پدوې باندې خبر خوپورې چې موجود وم پدوئ كښې، پس هركله چې تاخه پورته كړم نووې ته خاص نه |
| الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ ۚ وَأَنتَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ۝ إِن تُعَذِّبْهُمْ |
| خبردار په حالاتو ددوئ اوته په هر څيز باندې حاضر ناظرئي كه چرې ته عذاب وركوې دوئ ته |
| فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ ۖ وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ۝ |
| بيشكه دوئ ستا بندگان دي اوكه ته بخښنه كوې دوئ ته نوپس بيشكه ته صرف زورآور حكمتونووالائې |

﴿مَا قُلْتُ لَهُمْ إِلَّا مَا أَمَرْتَنِي﴾ دا جواب دي په څلورمي طريقې سره (**الامامرتنى**) استثناء متصله ده څكه چه، (**ماقلت**) په معنى دماامرتُ سره دي،ليكن دادب دوجه نه، اودمناسبت د (**قلت للناس**) دوجه نه تعبيرپه قلتُ سره شويدي،﴿أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ﴾ بيان د (**ماامرتنى**) دي،اوپه دې كښې معنى دحصر مرعى ده،يعنى صرف ديوالله تعالى عبادت كوئ،چه هغه زماهم رب دي اوستاسوهم دي.

(**۵**) پنځم داچه﴿وَكُنتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا﴾ ترڅوپورې چه زه په دوئ كښې موجودوم نوماد دوئ نگرانى كوله اودتوحيدتعليم مې ورته وركولو،﴿فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي﴾ مراد ددې نه رفع الى السماء ده

---

1 - جواب نمبر ٤

2 - جواب نمبر ٥

یاترینه مرادموت دې بعد دنزول نه.﴿ ٱلرَّقِيبَ ﴾ نگرانی کوونکې. دعالم په احوالو اواعمالو،اوشهید په معنی دحاضرسره دې،دشهود، مشاهده نه ماخوذدې په معنی دعالم سره او دشهادت نه په معنی دعلم سره ماخوذدې،اوپه حدیث دبخاری کښې دی چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائی چه په قیامت کښې به څه خلق زمادامت نه راوستلې شی اوچپ طرف (جهنم) ته به روان کړې شی،نوزه به اووایم أصیحابی،أصیحابی،دوئ خوزماسره لگه ملگرتیاکړې وه، نواوبه وئیلې شی (انک لاتدری ما أحدثوابعدک) تاته پته نشته چه دوئ ستانه روستوڅه بدعات پیداکړی ؤو،ددې نه مرادفرق مبتدعه دی لکه خوارج روافض اونوراهل بدع او صحابه نه دی مراد(قال العینی ص۳٤۸، جلد : ۷ قال ابوعمروکل من احدث فی الدین فهومن المطرودین عن الحوض کالخوارج والروافض وسائراصحاب الاهواء،وکذالک الظلمة المسرفون فی الجوروطمس الحق والمعلنون بالکبائر) .فیض الباری جلد۴ص۳۱. نونبی صلی الله علیه وسلم فرمائی چه زه به وایم لکه چه عبدِصالح وئیلی دی (**وکنت علیهم شهیداما دمت فیهم**) قادیانی لعین استدلال کړې دې په وفات دعیسی علیه السلام باندې چه نبی صلی الله علیه وسلم داخبره چه (**وکنت علیهم شهیداما دمت فیهم فلماتوفیتنی**) دوفات نه روستوذکرکوی او(**توفیتنی**) په معنی دموت سره دې.نوپه قول دعیسی علیه السلام کښې هم په معنی دموت سره دې په مقتضی دتشبیه سره (فاقول کمال قال العبدالصالح) نومعلومه شوه چه عیسی علیه السلام وفات دې، **جواب** ددې نه دادې چه دلته د(**توفیتنی**) نه معنی عامه مراد ده،چه شامله دموت ته،اورفع الی السماء ته نوتشبیه په اعتباردیوې معنې سره ده،اوکه مرادترینه موت شی نوهغه موت مراد دې چه بعد د(نزول من السماء الی الارض) نه دې،

﴿ إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ ﴾ بعض مفسرین.لکه سدی وغیره وائی چه داکلام دعیسی علیه السلام په دنیاکښې دې،اومطلب ئې دادې چه که ته دوئ په کفرباندې باقی پاتې کړې اوبیا ورله په آخرت کښې عذاب ورکوې نوپه تاڅه اعتراض نشته.اوکه ته ورته هدایت اوکړې او په آخرت کښې ئې معفرت اوکړې نوته په دې هم قدرت لرې،لیکن جمهورمفسرین وائی چه داکلام دعیسی علیه السلام په آخرت کښې دې.لیکن نصاراؤکفراوشرک اودروغ ثابت شویدی عیانأنو لهذا ددې آیت نه مقصود دهغوئ دپاره شفاعت کول نه دی ځکه چه دکافرانودپاره شفاعت کول جائزنه دې،بلکه داتفویض دامردې الله تعالی ته اواظهاردبراءت دې دهغوئ نه. چه یاالله

نه ورسره پوهه شه اوزه ترينه برى يم.اگركه دمحبت دعوه كوى دعيسى عليه السلام سره ليكن كوم محبت چه دوئ كوى نودغه موجب دتقرب نه دي.اوحضرت عيسى عليه السلام په دغه شان محبت كولوباندي نه خوشحاليږى اوددغه شان محبينونه به اظهاردبراءت اوكړى.اوكه دجناب سيدالكونين صلى الله عليه وسلم سره كه څوک داسې محبت كوى لكه چه نصاراؤدعيسى عليه السلام سره كړې دي نوداهم موجب دتقرب اودنجات نه دي بلكه موجب دحرمان دي دشفاعت نه. لكه په يوروايت كښې دى.(فاقول،سحقاسحقا) داداهلِ بدعت په حق كښې دى (كماقال العيني رحمه الله. اوصحيح عشق اومحبت هغه دي چه په كښې اتباع دسنتِ رسول صلى الله عليه وسلم وى اوداؤيرلوئ سعادت دي (اللهم ارزقناه).اوچه څوک ارتكاب دبدعاتو كوى اوسنت ترک كوى اوبياهم دمحبت دعوه كوى نوداغلطه دعوه ده.(ان تعذبهم) شرط دي.جزاء ئې مقدره ده چه (فليس عليک اعتراض ) داروستوعلت دي دمحذوف جزاء دپاره نوتقديردعبارت دارنگه دي (ان تعذبهم فليس عليک اعتراض لانهم عبادک وهم عبدواغيرک) يعني كه ته ورته عذاب وركوې نو په تا هيڅ اعتراض نشته دي ځكه چه دوئ بندگان ستا وؤ او عبادت ئې دَ غير كولو. اودارنگه داروستوقول چه ﴿ وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ ﴾ دي شرط دي جزاء مقدره ده چه (لايلحقک عجزفانک انت العزيزالحكيم) يعنى دوئ ته عذاب نه وركول دعجزپه وجه به نه وى.ته عزيز ئې.بلكه دحكمت په وجه به وى ځكه ته حكيم ئې.

قَالَ اللَّهُ هَٰذَا يَوْمُ يَنفَعُ الصَّادِقِينَ صِدْقُهُمْ ۚ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي

اوبه وائى الله داورځ ده نفع به وركوى رښتيا ويوونكو ته رښتيا ونيل دهغوئ، دولره جنتونه دي چې بهيږي

مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۚ رَّضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ ۚ ذَٰلِكَ الْفَوْزُ

لاندې دهغې نه ولې همېشه به وي په هغې كښې همېشه. راضى دي الله ددوئ نه اودوئ راضى دى دالله نه . داكاميابى ده

الْعَظِيمُ ﴿١١٩﴾ لِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا فِيهِنَّ ۚ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٢٠﴾

لويه خاص الله لره ده بادشاهي دآسمانونو او زمكې اودهغه څه چې په دې كښې دى. اودي په هرڅه قدرت لرونكې دې

﴿ قَالَ اللَّهُ ﴾ دابشارت دي.﴿ هَٰذَا يَوْمُ يَنفَعُ الصَّادِقِينَ صِدْقُهُمْ ﴾ مرادصدق دي په دنياكښې څكه داحال دمكلف والى دي.آخرت حالِ دمكلفٌ والى نه دي نوهلته صدق فائده نه وركوى. ابليس عليه اللعنة به په آخرت كښې رشتيااووائى لكه (وقال الشيطان لماقضى الامر) الخ (سورت

ابراهيم ع۲۲ .ليكن هغه په دنياكښې كاذب ؤ.نودآخرت صدق ورته نفع نه وركوى. اوبه صدق كښې توحيداودعوت دتوحيداولأداخل دى نوددې وجه نه د«الصادقين» تفسيرپه «المؤمنين» سره اوپه «النبيين» سره شويدې.اودنفع نه مرادثواب دې چه بيان ئې شوئ دې په دې قول سره ﴿لَهُمْ جَنَّٰتٌ﴾ اودتولونه لوئ نعمت رضاء الهى ده.نو﴿رَّضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُمْ﴾ الله تعالى راضى دې د دوئ نه په سبب دصدق سره اودوئ راضى دى دالله تعالى نه په سبب دثواب موندلوسره.اودالويه كاميابى ده.

﴿لِلَّهِ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ دادسورت دمضامينوخلاصه ده.اوبيان دنفى دشرك فى التصرف دې صراحةً اودنفى د شرك فعلى دې ضمناً.اورد دې په نصاراؤباندې.چه دآسمانونو. زمكو.او د «مافيهن» اختياراوتصرف الله تعالى لره دې نه عيسى عليه السلام اونه موزدعيسى عليه السلام لره. نوهغوئ معبود.الهه نشئ كيدې.نوثابت شو«لااله الاالله» اوبيانونكې ئې حضرت محمد صلى الله عليه وسلم دې،نوثابت شو.

لا اله الا الله محمد رسول الله

اللهم صل عليه وعلى اله وسلم- كما تحب وترضى-

«اللهم صل عليه وعلى اله وسلم،كماتحب وترضى»

سورة مائده ختم شو ولله الحمد اولاً واخراً

۷ ذى قعده سنه ۱۴۲۷ هـ ، ۲۹ نومبر سنه ۲۰۰۶ ع

| ركوع | سورة الانعام مكية | اٰيتونه |
| --- | --- | --- |
| ۲۰ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ۱۶۵ |

خاص په نوم د الله سره چه بيحده مهربان او ډير رحم کوونکي دي (شروع کوم)

## رقمها حسب التسلسل ٦ وحسب النزول ٥٥

## ربط

**ربط اسمی** دادې چه الله تعالى به په تاسو باندې مائده د رحمت نازلوی په شرط ددې چه تاسو په خپل انعامو کښې د غير الله د تقرب دپاره حصه نه مقررکوئ او د غير الله تحريمات نه کوئ، ماخذ آيت نمبر ۱۳۲۔

**ربط معنوی مضمونی** دادې چه دسورت مائده مضمون يعنی نفی دشرک فعلی اونفی دشرک اعتقادی دلته معادکيږی، ليکن دهغې برعکس، يعنی اول مضمون دنفی دشرک اعتقادی دې اوثانيًا مضمون دنفی دشرک فعلی ذکرکيږی، د ابتداء نه دآيت نمبر ۱۱۷ پورې اول مضمون دې يعنی نفی دشرک اعتقادی، اودآيت نمبر ۱۱۸ نه دآخرپورې دويم مضمون دې يعنی نفی دشرک فعلی اوفرق په مابين ددواړوسورتونودمضامينو، دبيان کښې دادې.

**نفی دشرک فی التصرف**:- (۱) په سورت مائده کښې په حاملينودعقيدې دشرک باندې فتوې ډيرې وې. ﴿ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ﴾ او ﴿ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ ﴾ ليکن ددلائلو قلت وودلته فتوی نشته، اودلائلو کثرت دې.

(۲) په سورت مائده کښې نفی دتصرف اودعلم غيب دعيسی اودحضرت مريم عليهما السلام نه وه .اوخطاب نصاری ؤته وؤليکن دلته عام دې (۳) دنفی دشرک فی التصرف په سلسله کښې ددلائلوسره،دمشرکينودشبهاتواوددوئ په زړونوکښې دپيداشوی سوالاتو جوابونه هم ذکرکيږی دسوالاتوتعداداوه (۷) دې بعض صراحةً مذکوردی اوبعض په ضمن دجواب کښې ذکردی .او طريقه تبليغ يعنی داشاعت دتوحيداودتبليغ طريقه کارتعليم هم مذکوردې اوپه سورة مائده کښې داامورنه ؤومذکور (۴) دمشرکينودانکاروجوهات هم ذکرکيږی ددې تعدادهم اوه دې.

**نفی دشرک فعلی**-ده سورت مائده نه فرق دادې (۱) په سورت مائده کښې دتحريمات غيرالله درد په ضمن کښې دبحيره سائبه وغيره ذکرؤو دلته دنورو شقو بيان دی (۲) په سورة

منده کښې دنذرلغیر الله دنفی په ضمن کښې دمَاذُبِح لغیرالله حکم صراحةً اودنوروحکم ضمنًا بیان شویدې اودلته د **ماذبح** نه علاوه دنوروحکم صراحةً مذکوردې(۳)دلته دمشرکینو دلیل اودهغې ردمذکوردې ﴿لَوْ شَآءَ ٱللَّهُ مَآ أَشْرَكْنَا﴾ اوپه مائده کښې نه ؤومذکور
(۴)په سورت مائده کښې دلائل په نفی دشرک فعلی باندې نه ؤو-اودلته دلیل نقلی اووحی دنفی دشرک فعلی دپاره مذکوردی- ﴿ثُمَّ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ﴾ ﴿وَهَٰذَا كِتَٰبٌ أَنزَلْنَٰهُ مُبَارَكٌ فَٱتَّبِعُوهُ﴾ (۵)دلته دنذرلله ذکرنشته دې البته دتحریمات الله باقی شقوق مذکوردی،

**خلاصه دمضامینودسورت**:-ددې سورت دوه حصې دی اوله حصه دابتداء نه ده آیت نمبر۱۱۷پورې ده،دویمه حصه دآیت نمبر ۱۱۸ نه دآخرپورې ده په اوله حصه کښې دشرک اعتقادی نفی ده اوپه دویمه حصه کښې دشرک فعلی نفی ده اوپه آخری دری آیاتونوکښې دواړه مضمونه جمع شوی دی:

**د اولې حصې تفصیل** دادې چه دلته یودعویٰ دسورت ده چه ﴿ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ﴾اوبله سلسله ددلائلوده دعوې د اثبات لپاره درې قسمه دلائل ذکرکیږی- عقلی ،نقلی،وحی، اوبله سلسله درددشُبهاتودمشرکینوده، بله سلسله دطریقه تبلیغ ده اوبله سلسله دوجوهو دانکار دمشرکینوده، دلائل عقلیه ۱۷دی_دلائل نقلیه دوه دی- وحی درې دی، رددشبهاتودمشرکینو اوه دی، طریقې تبلیغ اوه دی، وجوه دانکاردمشرکینوهم اوه دی-

**دلائل عقلیه** - ﴿ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ دعوی ده ﴿ٱلَّذِى﴾ آیت نمر۱دلیل اول دې-﴿هُوَ ٱلَّذِى خَلَقَكُم﴾ آیت نمبر۲دلیل ثانی دې-﴿وَهُوَ ٱللَّهُ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾الخ آیت نمبر ۳ دلیل ثالث دې.
﴿قُل لِّمَن مَّا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾آیت نمبر۱۲دلیل عقلی رابع دې ﴿وَلَهُۥ مَا سَكَنَ فِى ٱلَّيْلِ﴾آیت نمبر۱۳ دلیل خامس دې ﴿وَإِن يَمْسَسْكَ ٱللَّهُ﴾آیت نمبر۱۷ دلیل سادس دې ﴿وَمَا مِن دَآبَّةٍ﴾الخ آیت نمبر۳۷دلیل سابع دې ﴿قُلْ أَرَءَيْتَكُمْ﴾آیت نمبر ۴۰-۴۱دلیل ثامن دې او ﴿قُلْ أَرَءَيْتُمْ﴾ آیت نمبر۴۲دلیل تاسع دې اوآیت ۴۷اعاده دلیل ثامن ده ﴿وَعِندَهُۥ مَفَاتِحُ ٱلْغَيْبِ﴾آیت نمبر۵۹ دلیل عاشردې﴿وَهُوَ ٱلَّذِى يَتَوَفَّىٰكُم﴾الخ آیت نمبر۶۰-۶۱-۶۲یولسم دلیل دې ﴿قُلْ مَن يُنَجِّيكُم﴾آیت نمبر ۶۳ ، دولسم دلیل دې ﴿وَهُوَ ٱلَّذِى خَلَقَ﴾آیت نمبر ۷۳ ،دیارلسم دلیل

﴿إِنَّ اللَّهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوَىٰ﴾ آیت نمبر ۹۵-۹۶ څوارلسم دلیل دی۔ ﴿وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ النُّجُومَ﴾ الخ آیت نمبر ۹۷ پنځلسم دلیل دی اوآیت نمبر ۹۸-شپاړسم دلیل دی اوآیت نمبر ۹۹ اولسم دلیل عقلی دی۔

**دلائل نقلیه** - ﴿وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ لِأَبِيهِ آزَرَ﴾ الخ آیت نمبر ۷۴ تر آیت نمبر ۹۰ پورې دلیل نقلی اول دی دابراهیم علیه السلام نه تفصیلاً اودباقی ۱۷ انبیاؤنه اجمالاً په طوردستخط ﴿وَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ﴾ آیت نمبر ۱۱۴ دلیل نقلی دویم دی دمؤمنین سابقینونه۔

**دلائل وحی** - ﴿وَأُوحِيَ إِلَيَّ هَٰذَا الْقُرْآنُ﴾ الخ آیت نمبر ۱۹ دلیل وحی اول دی ﴿وَهَٰذَا كِتَابٌ أَنزَلْنَاهُ﴾ آیت نمبر ۹۲ دلیل وحی دویم دی ﴿اتَّبِعْ مَا أُوحِيَ إِلَيْكَ﴾ آیت نمبر ۱۰۶ دلیل وحی دریم دی۔

**جوابات دشبهاتود مشرکینو** : په آیت نمبر ۱/۷ ، ۲/۸ ، ۳/۹ ، ۴/۳۷ ، ۵-۶-۷/۵۰ کښې دی

**طریقه تبلیغ**-په آیت نمبر ۱-۲/۱۴ ، ۳/۱۵ ، ۴-۵/۵۶ ، ۶/۵۷ ، ۷/۵۸ کښې ده.

**وجوه دانکاردمشرکینو**:-چه دااوه دی پنځه په اوله حصه کښې دی اودوه په دویمه حصه کښې ذکردی اوهره وجه په کذالک سره ذکرده-آیت نمبر ۱/۵۳ ، ۲/۵۵ ، ۳/۱۰۵

﴿وَكَذَٰلِكَ زَيَّنَّا لِكُلِّ أُمَّةٍ عَمَلَهُمْ﴾ ۴/۱۰۸ ﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا﴾

۵/۱۱۲ ، ۶/۱۲۳ ، ۷/۱۲۹

ددې نه علاوه نورې شکوې،زجرونه،تخویفات، بشارات تسلی حضورصلی الله علیه وسلم ته ذکرکیږی اوپه **حصه ثانی** دسورت کښې،دنفی دشرک فعلی دپاره، ددرې مسئلو ذکر کیږی.(۱) تحریمات غیرالله(۲) تحریمات الله(۳) نذرلغیر الله-دتحریمات غیر الله اونذرلغیر الله .بعض هغه صورتونه ذکرکیږی چه په سورت مائده کښې نه وو ذکرشوی، دامضامین دآیت نمبر ۱۱۷ نه شروع کیږی دآیت نمبر ۱۵۳ پورې .اوبیادلیل نقلی دې دواړو مضامینو یعنی دشرک اعتقادی اونفی دشرک فعلی دپاره ذکرکیږی اوبیادلیل وحی ذکرکیږی- اوبیاد

﴿قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي﴾ الخ آيت نمبر ۱۶۲ نه بعد د دواړو مضامينو اجمالاً اعاده کيږي

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

تمام صفتونه [۱] دخدائي توب، خاص الله تعالى لره دي هغه الله [۲] چه پيدا کړي ني دي آسمانونه او زمکه

وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ ۬ ثُمَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ ۝ هُوَ الَّذِيْ

او پيدا کړې ني دي تيرې [۳] او رڼا. بيا هم کافران د خپل رب سره خپل معبودان برابروی دي هغه [۴] ذات دي

خَلَقَكُمْ مِّنْ طِيْنٍ ثُمَّ قَضٰى اَجَلًا ؕ وَاَجَلٌ مُّسَمًّى عِنْدَهٗ

چه تاسو ئي پيدا کړي يئ دخټې نه بيا ئي مقرر کړيده نيټه د مرګ، اويوه نيټه مقرره ده په نيز د ده (يعنی قيامت)

ثُمَّ اَنْتُمْ تَمْتَرُوْنَ ۝

بيا هم تاسو شك کوئ

﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ ددې ځائې نه دقرآن دويمه حصه شروع کيږي چه دسورت بنی اسرائيل په آخرباندې ختميږي نوددې وجه نه داسورت په «الحمدلله» سره شروع شو. ددې حصې مرکزی مضمون ربوبيت دي. يعنی ده هرې هرې ذرې دکائناتولکه چه خالق صرف الله تعالى دي نودغه شان دهرڅه تربيت کونکې اوخپل حد کمال ته رسونکې صرف الله تعالى دي. «الحمد لله» دعوی ده ﴿الَّذِيْ﴾ موصول سره دصله ئې دليل عقلی آفاقی اول دي چه مشتمل دي په علوی (سموات) سفلی(ارض)جوی (ظلمة نور) باندې «سموات» جمع ذکرشوه او«ارض» مفرد. په دې کښې اشاره ده تفاوت ته په شرافت کښې، ځکه اشرف په صيغه دجمع سره ذکر کيږي. وجه

۱ . د.دې نه د د قرآن دويمه حصه شروع کيږي چه د سورت بنی اسرائيل په آخر باندې ختميږي نو د دې وجه نه دا سورت د (الحمد لله) نه شروع شو. د دې سورت اوله حصه. نفی د شرك في التصرف ده . دی ځای نه تر آيت نمبر (۱۱۸) پورې ده.

۲ . موصول سره د صلې نه دليل اول دې.

۳ . (ظلمات) جمع او (نور) مفرد راوړل محاوره ده. يا د ظلمات يعنې : کفر لارې ډيرې دی او د نجات لار يوه ده. (ثم) د استبعاد لپاره دې

۴ دويم دليل عقلی

داشرفية د آسمان داده چه دامحل دملائکومقربینودې، اوقبلة الدعاء دې اومحل دعروج دارواحوطاهرودې اودقدرت درب العلمين لوئې دليل دې اومحل دعاصيانوندې، اوذزمکې ته اګرکه شرافت حاصل دې ليکن اسمان ته زيات حاصل دې،او«**ظلمات**» جمع او«**نور**» مفردذکرشويادې وجې نه چه محاوره دغه شان ده يادموافقت دسموات والارض دپاره. يادې وجې نه چه ظلمة خاص دې اونورعام دې چه حسي وی اوکه معنوی وی اومعنوی ظلمة ضلالت دې اومعنوی نورهدايت دې اوضلالت اودباطل لارې او طريقې ډيرې دی اودهدايت اودحق لاريوه ده نوځکه نورمفرد ذکرشو﴿ ثُمَّ الَّذِينَ ﴾ ثم داستبعاددپاره دې،يعنی هرکله چه علويات،سفليات،جويات، ټول الله تعالی دوحدانيت دلائل دی نوشرک کول مستبعددې په نيزدعقل سليم، ﴿ بِرَبِّهِمْ ﴾جارمجرور، دمابعدسره متعلق دی چه﴿ يَعْدِلُونَ ﴾دې اودامشتق دې دعدل نه په معنې دبرابرګڼرلوسره يعنی شريک ګرزول-يادعدول نه مشتق دې،په معنی داعراض مخ اړولوسره نوجارمجروردکفروا سره متعلق دې-ای﴿الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ ﴾ يعنی هغه خلق چه په خپل رب ئې کفرکړيدې دوئ مخ اړوی دحق نه.

﴿ هُوَ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن طِينٍ ﴾دادويم دليل عقلی انفسی دې اوپه دې کښې دحصرمعنی ده- اوپيداکول دطين نه په دې اعتبارسره دی چه طين اوله ماده اواصل ماده، دانسانانوده اوبعض وائی چه په عبارت کښې حذف دمضاف دې ای خلقَ آباءکم،﴿ ثُمَّ قَضَىٰ أَجَلًا ﴾ثم دتراخی ذکری دپاره دې(پهريه بهی سنو) اودتراخی اوترتيب زمانې دپاره نه دې، ﴿قَضَىٰ ﴾په معنی دمقررکولوسره دې اوداجل نه مرادنيته دمرګ ده، اود﴿ وَأَجَلٌ مُّسَمًّى ﴾ نه مرادورځ دقيامت ده چه تعين ئې صرف الله تعالی ته معلوم دې﴿ ثُمَّ أَنتُمْ ﴾ داهم داستبعاد دپاره دې ﴿تَمْتَرُونَ ﴾ دمرِيَةٌ نه مشتق دې په معنی دشک سره يا د مِرآء نه مشتق دې په معنی دجګړې سره يعنی تاسوجګړه اواختلاف کوئ په توحيد کښې.

| وَهُوَ | اللَّهُ | فِي | السَّمَاوَاتِ | وَفِي | الْأَرْضِ ۖ | يَعْلَمُ | سِرَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

او صرف دې الله دې [1] (معبود برحق اومتصرف) په آسمانونو کښې او په زمکه کښ، پوهيږی په پټو حالاتو ستاسو

---

١ - دريم دليل عقلی

وَجَهْرَكُمْ وَيَعْلَمُ مَا تَكْسِبُونَ ۝ وَمَا تَأْتِيهِمْ مِّنْ آيَةٍ

او په ښکاره حالاتو ستاسو او عالم دي په هغه عملونو چه تاسو ئې کوئ او نه راځي [۱] دوئ ته هېڅ نښه دليل

مِّنْ آيَاتِ رَبِّهِمْ إِلَّا كَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ ۝

د نښانو [۲] درب د دوئ نه. مګر دوئ د هغې نه اعراض (ځنګ، ګرځونکي) دي

فَقَدْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ ۖ فَسَوْفَ

پس په تحقیق سره دوئ نسبت د دروغو کړو حق ته، هر کله چه دوئ ته حق ورسید. پس زر ده چه [۳]

يَأْتِيهِمْ أَنْبَاءُ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ۝

را به شي دوئ ته حقیقت د هغه خبري (عذاب) [۴] چه دوئ په هغې پورې ئې مسخرې کولي

﴿وَهُوَ اللَّهُ فِي السَّمَاوَاتِ وَفِي الْأَرْضِ﴾ دادريم دليل عقلی دی. «**فی السموات والارض**» جارمجرور دلفظ د «**الله**» سره متعلق کيدل په ظاهرنه دي صحيح ځکه متعلق د جارمجرور فعل وی یاهغه شئي وی چه په معنی دفعل کښې وی، نودد ې وجې نه مفسرين وائی چه دلته دلفظ دالله نه مرادمعنی مشتقی ده چه معبودبرحق-یامتصرف دي مشرکینوتقسیم کړې وؤ- الله تعالی ته به ئ اله السماء وئيل اوخپل معبودباطل ته به ئې اله الارض ،وئيل نوالله تعالی فرمائی چه داتقسيم نشته،دهرځه اله صرف الله تعالی دي کماقال الله ﴿وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ إِلَٰهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلَٰهٌ ۚ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْعَلِيمُ﴾ زخرف ۸۴ ﴿يَعْلَمُ سِرَّكُمْ وَجَهْرَكُمْ﴾ په دې کښې دحصر معنی اود ﴿تَكْسِبُونَ﴾ نه مراداعمال مکتسبه دی په جوارحوسره یاپه قلب سره اوددی ذکرکول بعدد «**سرکم وجهرکم**» نه دوجې داهتمام نه دي ځکه چه اعمال مکتسبه مداردجزاء اوسزادی

﴿وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ آيَةٍ﴾ دازجردې اوشکوی ده، په دې کښې زجراوشکوی په درې اومورو

---

۱ . زجر
۲ . دلائل د توحید مراد دی
۳ . تخویف دنوی .
۴ . عملی ظهور د وعده سزا .

باندې ده اول اعراض – دويم تكذيب دريم استهزاء ﴿فَقَدْ﴾ (فاء) د تعقيب ده يعني روستو د اعراض نه ئې تكذيب او استهزاء وكړه. ﴿أَنبَٰٓؤُا مَا﴾ انباء نه مراد حقيقت اودوعدهٔ سزاعملي ظهوردې. يعنې په كوم عذاب اوتخويف پورې چه دوئ استهزاء اومسخرې كوى نودهغې عملي ظهوربه عنقريب اوشي اوحقيقت به ئې ښكاره شي

أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ مَّكَّنَّٰهُمْ

آيا نه گورى دوئ چه څومره هلاك كړيدى مونږ مخكښ د دوئ نه ډلې (پيړۍ) ،قوت وركړې وؤ مونږ هغوئ ته

فِى ٱلْأَرْضِ مَا لَمْ نُمَكِّن لَّكُمْ وَأَرْسَلْنَا ٱلسَّمَآءَ عَلَيْهِم مِّدْرَارًا

په زمكه كښ دومره چه مې ندې دركړې تاسوته، اوراليږلى وؤ(وروَلى وؤ) مونږ بارانونه په دوئ پرله پسې (په قدرد ضرورت)

وَجَعَلْنَا ٱلْأَنْهَٰرَ تَجْرِى مِن تَحْتِهِمْ فَأَهْلَكْنَٰهُم بِذُنُوبِهِمْ

اوگرځولى وو مونږنهرونه چه بهيدل به لاندې ددوئ نه پس هلاك كړل مونږدوئ لره په سبب د گناهونو د دوئ

وَأَنشَأْنَا مِنۢ بَعْدِهِمْ قَرْنًا ءَاخَرِينَ ﴿٦﴾ وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتَٰبًا

او پيدا كړل مونږ روستو د دوئ نه قوم نور او كه نازل[1] كړې وې مونږ په تا باندې كتاب (ليكلې شوې)

فِى قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ لَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿٧﴾

په كاغذونو كښ. پس مسه كړې وې دوئ هغه په خپلو لاسونو سره خامخا به وائى كافران ندې دا مگر جادو ښكاره دى

: ﴿أَلَمْ يَرَوْا﴾ داتخويف دنيوى دې، اوروٴية نه مرادروٴية علمى دې يابصرى دې او﴿كَمْ﴾ استفهاميه هم كيدې شي اوخبريه هم كيدې شي اوداقائم دې په مقام دمفعول ده (يرى) باندې او ﴿قَرْنٍ﴾ ديوې زمانې خلقوته وائى، اومدت دقرن بعض وائى (١٢٠) كاله دې او بعضې وائى (١٠٠) اوبعضې وائى (٨٠) يا (٧٠) يا (٦٠) يا (٣٠) يا (٢٠) كاله او بعضې وائى چه اوسطه زمانه دعمرونو دخلقو دهردورته قرن وائې(پيړۍ) ﴿مَّكَّنَّٰهُمْ﴾ ددې نه جسمانى اومالى قوت مراددې، يعنې هغوئ ته مونږدومره جسمانى اومالى قوت وركړې وؤ چه تاسوته م نه

1 - د اولې شبهې جواب

دي درکړي. ﴿وَأَرْسَلْنَا ٱلسَّمَآءَ﴾ د دېنه مراد باران دي او﴿مِّدْرَارًا﴾ په معنی دمتتابعةً سره دي. پې درپې، خو دحاجت موافق ، يا دَسماء نه سحاب، «وريځ» مراد ده اومدراراً په معنې دکثيرالدرور، کثيرالصب«ډېره ورونکې» سره دې «مدرارا» منصوب دې حال دې دالسماء نه ﴿وَجَعَلْنَا ٱلْأَنْهَٰرَ تَجْرِى مِن تَحْتِهِمْ﴾ يعنی نهرونه ددوئ په اختيار اوتصرف کښې وو. يا ددوئ دبنګلو . اوفصلونو دلاندې بهيدل.يعنی بارانونه پرې هم وريدل اونهروونه ئې هم جاري وو. نودفصلونو ، ميوؤ پيداوارئې ډېرزيات وؤ ، غرض داچه مادی قوت اووسائل ؤرسره ډېرزيات وؤليکن ايمان ورسره نه وؤ، اودکفراوشرک مرتکب وؤنومونږ هلاک کړل-دذنوب نه مرادکفرشرک اونورقبائح دی ﴿وَأَنشَأْنَا مِنۢ بَعْدِهِمْ﴾ يعنې د دوئ په هلاك کيدلوسره د دنيا په ودانئ کښې هيڅ فرق نه وؤ راغلې ﴿وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتَٰبًا﴾ دادمشرکينوپه شبهاتوکښې داولې شبهې جواب دې، شبهه «سوال» مقدردې، په سورة بنی اسرائيل کښې دی.﴿وَلَن نُّؤْمِنَ لِرُقِيِّكَ حَتَّىٰ تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتَٰبًا نَّقْرَؤُهُۥ﴾اوپه حديث کښې دی چه دمکې بعض مشرکانواووئيل که محمدصلی الله عليه وسلم يوتيارليکلې شوې کتاب دآسمان نه راؤړی چه څلورفرشتې ورسره هم وی اوزمونږ په مخکې ګواهی اوکړی چه بيشکه داکتاب دالله تعالی دطرفه راليږلې شوې دې نومونږ به ايمان راؤړو-په بل روايت کښې دی چه عبدالله بن ابی أميه، دنبی صلی الله عليه وسلم نه معاندانه سوال اوکړو چه زه په تاباندې ترهغه وخته پورې ايمان نه راؤړم ترڅوچه داواقعه ؤنه وينم چه ته اسمان ته ؤخيجې اويوخط راؤړې چه په هغې کښې څمانوم وی،ماته داسې ليکلی شوی وی چه زه دې ستاتصديق اوکړم اوبغيرددې نه په تاباندې ايمان نه راؤړم، نوداآيت نازل شو، عبدالله بن ابی اميه بيامسلمان شو اوپه عزوۀ طائف کښې شهيدشو، حاصل دجواب دادې چه که چرې الله تعالی ددوئ دغه مطالبه پوره کړی، اوداسمان نه کتاب نازل کړی اودوئ ئې اووينی اوپه لاسونوسره ئې مسح کړی چه دنظربندئ احتما ل هم پاتې نه شی، نودوئ بياهم نه منی اووائی به چه داجادو ،سحر،دې څکه چه څوک چه سوال اوطلب دمعجزې دعنادپه وجه کوی نودهغه سوالات نه ختميږی ﴿فِى قِرْطَاسٍ﴾بعض وائی چه دالفظ معرب دې د کراسة نه اوبعض وائی چه دالفظ عربی دې يامشترک دې، په معنی دکاغذسره مطلقًا ياهغه کاغذچه ليکل پکې شوی وی اوجارمجروريامتعلق د دمقدرسره معنی ئی داده چه رانغختې شوې په کاغذکښې يامتعلق دې دکتابًا سره که

هغه په معنې دمکتوب سره شي، ﴿فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ﴾لمس په معنی دمس بالید سره دې نو ذکر د «بِأَيديهم» دپاره دزيات تعين اوددفع دتوهم دمجازدې.اودلته «راوه» ذكرنشوبلكه «لمسوه» ذكرشو ځكه چه علم په ذريعه دلمس سره ډيرقوى وى ځكه چه مرئې-(ليدلې شوې) باندې سحر راځى اوپه ملموس باندې نه راځى، بل داچه لمس ړوندهم كولې شى په خلاف درؤيت نه چه ړوندنې نه شى كولې.

وَقَالُوا لَوْلَآ أُنْزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ ۖ وَلَوْ أَنْزَلْنَا

او وائى دوئ چه ولې نشې نازلولې په ده (نبى صلى الله عليه وسلم) باندې فرشته، او كه نازل كړې وې مونږ

مَلَكًا لَّقُضِيَ الْأَمْرُ ثُمَّ لَا يُنْظَرُونَ ۝ وَلَوْ جَعَلْنٰهُ

فرشته [1] . خامخا به فيصله شوې وې د كار د ددوئ بيا به دوئ ته مهلت نشى وركيدلې او كه جوړ كړې وې مونږ رسول

مَلَكًا لَّجَعَلْنٰهُ رَجُلًا وَّلَلَبَسْنَا عَلَيْهِمْ

فرشته نو خامخا به مونږ ګرځولې وې په شكل د سړى اوخامخا به شك راوستې وې مونږ په دوئ باندې

مَّا يَلْبِسُوْنَ ۝ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ

هغه چه اوس كوم شك كوى دوئ. او په تحقيق سره [2] مسخرې كړې وې په ډيرو رسولانو پورې مخكښې ستا نه،

فَحَاقَ بِالَّذِيْنَ سَخِرُوْا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝

پس راګير كړو هغه كسانو لره چه مسخرې ئى كولې په دې پورې، هغه عذاب چه دوئ ورپورې مسخرې كولې

﴿وَقَالُوا لَوْلَآ أُنْزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ﴾ دا دويمه شبهه ده، مشركينوويل چه فرشته دده سره ولى نه راځى چه مونږ ئې اووينواوخبرې ئې واؤرولكه په سورت فرقان كښې دى ﴿لَوْلَآ أُنْزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُوْنَ مَعَهٗ نَذِيْرًا﴾ نوجواب اوشوچه ﴿وَلَوْ أَنْزَلْنَا مَلَكًا﴾ كچرې فرشته راشى اومشركين ئى و وينى اوخبرې ورله واؤرى اوبيا هم ايمان نه راوړى نوفوراً به هلاك كړېشى اومهلت به ورته

---

۱ - د دويمې شبهې جواب.

۲ - تسلى ، تخويف دنيوى

نښی ورکولې ﴿وَلَوْ جَعَلْنَٰهُ مَلَكًا﴾ دادریم سوال جواب دې چه دبشرپه ځائې ملک رسول ولې نه راځی. نوجواب راغې چه که الله تعالی فرشته رسول راؤلیګی نوخامخابه په شکلِ بشری کښې راځی ځکه چه دصورتِ ملکی لیدل دعوامودپاره قابل دتحمل نه دی بلکه دخواصو دپاره هم مشکل دی- اوچه فرشته په شکل بشری کښې راشی نوبیابه په دوئ باندې اشتباه راځی-﴿وَلَلَبَسْنَا عَلَيْهِم﴾ دوئ به په هغه شبه اواشتباه کښې واچؤ چه اوس پکښې دی-﴿وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ﴾داتسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اوتنوین په «بِرُسُلٍ» کښې دتکثیریادتفخیم دپاره دې﴿فَحَاقَ﴾په معنی دنزل، احاط سره دې

﴿بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُم﴾په هغه کافرانوباندې چه مسخری ئې کولې په انبیاؤپورې-﴿مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ﴾ دافاعل د(حاق) دې، مرادترینه عذاب دې، یعنی په استهزاء کونکو باندې هغه عذاب نازل شو چه دوئ په هغې پورې مسخری کولې

| قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ ثُمَّ انظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ۝ قُلْ لِّمَن |
|---|
| وه وایه چه وګرځئ [١] په زمکه کښې بیا وګورئ چه څنګه وؤ آخر انجام د تکذیب کونکو وه وایه: چا لره دی [٢] اختیار |
| مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ قُل لِّلَّهِ ۚ كَتَبَ |
| د هر هغه څه چه په آسمانونو کښې دی او په زمکه کښې دی ، وه وایه چه الله تعالی لره دې . لازم کړې ئې دې |
| عَلَىٰ نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ۚ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ ۚ الَّذِينَ |
| په خپل ځان باندې رحم کول، خامخا به جمع کړی تاسو په ورځ د قیامت کښې، نشته دې هیڅ شك په هغې کښې. هغه کسان |
| خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ۝ وَلَهُ |
| چه تاوان کښې ئې اچولی دی خپل نفسونه نو پس دوئ ایمان نه راوړی. او خاص [٣] د الله تعالی په اختیار کښې دی |

---

١ - تخویف دنیوی.

٢ - خلورم دلیل عقلی علی سبیل الاعتراض من الخصم

٣ - پنځم دلیل عقلی .

مَا سَكَنَ فِي الَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ⊙

هر هغه څه چه ارام کوی په شپه او ورځ کښې، او صرف دې دهر څه اوريدونکې او په هر څه عليم دې.

﴿قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ﴾ داتخویف دنیوی دې، یعنی منکرینو او مستهزئینوته اووایه چه په زمکه کښې دعبرت حاصلولو دپاره اوګرځئ اودهغه خلقوانجام اوګورئې چه دانبیاؤ تکذیب ئې کړې وواواستهزاء ئې کړې وه.

﴿قُلْ لِمَنْ مَا فِي السَّمَوَاتِ﴾ داځلورم دلیل عقلی علی سبیل الاعتراف من الخصم دې.مافی السموات،والارض، عام دی ذوی العقول اوغیرذوی العقول ټولوته شامل دی، یعنی ددوئ نه داتپوس اوکړه چه تمام کائنات داسمانونو، ملائکه وغیره اودزمکو- انبیاء اولیاء وغیره، دچاپه اختیاراوتصرف کښې دی- نودوئ به اعتراف اواقراراوکړی چه داخودالله تعالی په اختیارکښې دی نورددشرک فی التصرف راغې، لیکن که چرې دوئ دخوف دمغلوبیت دوجې نه سکوت اوکړی،نو﴿قُلْ لِلَّهِ﴾ نوته اووایه چه داد الله دپاره دی، حضرت الشیخ رحمه الله فرمائی چه دلته همزه داستفهام تقریری مقدردې ﴿كَتَبَ عَلَى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ﴾كتب په معنی دمقررکولو اولازم کولوسره دې په طریقه دتفضل اواحسان سره اودابشارت دې دمؤمنانو دپاره﴿لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾داتخویف اخروی دې دمنکرینولپاره-﴿الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ﴾ ده خَسِرُوا نه مراد ضائع کول دی او د أَنْفُسَهُمْ نه مراد، عقل،نظر، صلاحیت دی- یعنی کوموخلقوچه خپل عقل اوصلاحیت ضائع کړیدې اودلائلو دقرآن ته ئې توجه نده کړې نودغه خلق دایمان نه محروم دی،دایمان نه دمحرومتیاسبب، عقل اوصلاحیت غلط استعمالول دی﴿وَلَهُ مَا سَكَنَ فِي الَّيْلِ وَالنَّهَارِ﴾داپنځم دلیل عقلی دې،((سکن)) که چرې دسکونت نه ماخوذوی نوځه اشکال نشته دې لیکن که چرې دسکون نه ماخوذشی،په معنی دارام سره نو**سوال** واردیږی چه ارام په شپه کښې وی اودورځې خوخلق دکاروباردپاره ګرځی راګرځی. **جواب** دادې چه عطف د ((والنهار)، د قبیلې د ((علفتهاتبنًاوماءً بارداً))، نه دې ((اى سقيتها ماءً بارداً)) نودلته مراددادې چه ((والتشرق النهار)) لکه ((وجعل النهارنشوراً))

قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَتَّخِذُ وَلِيًّا فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

وه وایه[1]، آیا ! سوا د الله تعالی نه ونیسم څه مددګار ، دوست ، چه پیدا کونکې دې د آسمانونو او د زمکې

وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ قُلْ اِنِّيْٓ اُمِرْتُ

او هغه خوراك ورکوی تول مخلوق ته، او هغه ته خوراك نشی ورکولې، وه وایه[2] بیشکه حکم کړې شویدې ما ته

اَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَسْلَمَ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝

چه شم څه اول مسلمان «حکم منونکې» یعنې د دې اُمت «او ویلې شوی دی ماته» چه هرګز مه کیږه د مشرکانونه

قُلْ اِنِّيْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ۝

وه وایه ![3] بیشکه څه خو یریږم ، که نافرمانی وکړم د حکم د رب خپل نه، د عذاب د ورځې لوئی نه

مَنْ يُّصْرَفْ عَنْهُ يَوْمَىِٕذٍ فَقَدْ رَحِمَهٗ ؕ وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْمُبِيْنُ ۝

هغه څوك چه لرې کړې شو د هغه نه عذاب پدې ورځ «قیامت» کښې نو پس یقینًا رحم وکړو الله تعالی په هغه، او دا کامیابی ښکاره ده

وَاِنْ يَّمْسَسْكَ اللّٰهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهٗٓ اِلَّا هُوَ ؕ

او که چرې[4] اورسوی تاته الله تعالی څه تکلیف پس نشته دې هیڅ څوك لرې کونکې د هغې سوا د الله تعالی نه

وَ اِنْ يَّمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝

اوکه هغه ورسوی تا ته څه خیر پس هغه په هرڅه باندې قدرت لری

وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ ؕ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ۝

او دې زورآور «غالب» دې په خپلو بندګانو باندې، اوهغه حکمتونو والا ، خبردار دې

---

1 - اوله طریقه تبلیغ.

2 - دویمه طریقه تبلیغ.

3 - دریمه طریقه تبلیغ.

4 - شپږم دلیل عقلي

﴿ قُلْ أَغَيْرَ اللَّهِ أَتَّخِذُ وَلِيًّا ﴾ دااول طريقه دعوت ده، اواستفهام انكاري دي ﴿ فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ ﴾ الخ صفت دالله تعالى دي. يعني داسې نه شي كيدې چه دالله تعالى نه غيربل څوک خپل رب معبود. مددګار ونيسم ځکه پيداکوونکې صرف الله تعالى دي اوروزي ورکونکې صرف الله تعالى دي، هغه خپل مخلوق ته طعام ورکوي-دچانه عوض نه اخلي ﴿ قُلْ إِنِّي أُمِرْتُ ﴾ دادويمه طريقه تبليغ ده، ماته ددې حکم کړې شوې دې چه زه په ((مَنْ أَسْلَمَ))، کښې دصف اول نه شم ياپه دې امت کښې اول مسلم، ځکه چه نبي دامت نه اول مسلم وي-﴿ وَلَا تَكُونَنَّ ﴾ دلته (قيل لي) مقدردې ﴿ قُلْ إِنِّي أَخَافُ ﴾ دادريمه طريقه تبليغ ده، په دې درې واړوطريقوکښې نسبت دفعل خپل ځان ته شويدې اومرادترينه مخاطبين دي، (۱) يعنى تاسو، دالله تعالى نه غيرولى اومددګارمه نيسئ (۲) اوتاسوتابعدارجوړشئ شرک مکوئ (۳) اوکه چرې عصيان يعني شرک اوکفراوکړئ نوعذاب ديوم عظيم به په تاسونازل شي، نبي معصوم چه خوف لري دعذاب نه نوتاسو خامخا وُلرئ-﴿ مَّن يُصْرَفْ عَنْهُ ﴾ نائب فاعل دیُصرف دپاره ضميردې چه راجع دې عذاب ته يعني دعذاب ديوم عظيم نه بچ کيدل لويه کاميابي ده، اودا په ايمان سره حاصليږي

﴿ وَإِن يَمْسَسْكَ اللَّهُ ﴾ داشپږم دليل عقلي دې په توحيد باندې، چه ضرردفع کونکې، (مرض ،فقر، وغيره) اوخيرورکونکې (صحت مال اولادوغيره نورحاجتونه پوره کونکې) صرف الله تعالى دې، تنوين په ((بِضُرٍّ)) کښې اودارنګه ((المس)) دلالت کوي په قلت باندې، يعني تکليف اګرکه قليل وي خودالله تعالى نه غيربل څوک ئې نشى دفع کولې، روايت کړيدې ترمذي اواحمد، دابن عباس رضى الله عنه نه چه دَ کسرٰى بادشاه نبي صلى الله عليه وسلم ته ،بغله، (قچره) هديه ورکړې وه نونبي صلى الله عليه وسلم په هغې رکوب اوکړو په رسئ سره دوبينتونه- يعني واګې، (ملوني) ئې دوبينتونه جوړه کړې شوې رسئ وه، بيائې ځه دخپل ځان نه روستو، پدغه قچره کينوَلَمه، نوماته ئې اووئيل، ياغلام، مااووئيل ،لبيک يارسول الله، اوئ فرمائيل چه تاته يوڅوکلمات (خبرې) درخايم ((احفظ الله يحفظک)) الله تعالى يادلره دهغه دِ احکامو حفاظت کوه، هغه به تا يادوي، ستا حفاظت به کوي ((احفظ الله تجده تجاهك)) الله تعالى ياد لره، اوبه مومې هغه لره مخامخ اوکله چه ته سوال کوى نوصرف دالله تعالى نه سوال کوه، اوکله چه مددغوارې نوصرف ديوالله نه مددغواره اوپه دې پوهه شه چه که چرې اُمت (ټول مخلوق) راجمع شي تاته نفع رَسول غوارې نوتاته نفع نشى رسولې مګرهغه چه الله

تعالى تالره ليکلي وی اوکه ټول مخلوق راجمع شي چه تاته څه نقصان رسول غواړي نوتاته ضررنشي رسولې مگرهغه چه الله تعالى هغه ضررتالره مقررکړې وی، قلمونه ((دتقديرد ليکلو)) اوچت کړی شوی دی اوصحيفې ((چه تقديرپرې ليکلې شويدې)) وچې شوی دی. .په بل روايت کښې دی ((اعلم ان النصر مع الصبر والفرج مع الكرب وان مع العسريسرا)) پوهه شه چه مدد دصبر سره دې اوراحت دمصيبت سره دې اودتنگئ سره اسانی ده ﴿وَإِن يَمْسَسْكَ بِخَيْرٍ﴾ ددې شرط جزاء مقدره ده چه ((فلا رآدّ لفضلِه)) اودامذکوريعنی ﴿فَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ دمحذوف جزاء دپاره علت دې.

﴿وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِ﴾ دادماقبل دليل حصه ده، ((قاهر)) معنی ده، داسې غالب چه هيڅ څوک ئې د خپلې ارادې نه نشی منع کولې، اوظلم نه کوی، قهرغلبه بلاظلم ته وائی ﴿فَوْقَ عِبَادِهِ﴾ فوقية په اعتباردسمت اوجهت سره نه دې مراد، بلکه دمرتبې. اوقدرت په اعتبارسره دې، يعنی ټول مخلوق دالله تعالى دحکم اوقدرت ماتحت دی، قرطبی وائی ((الاستعلاء بالقهروالغلبة عليهم اي هم تحت تسخيره لافوقية مكان)) بعض مفسرين وائی چه لفظ دفوق زايددې اوبعض وائی چه په معنی د ،،على،، سره دې داتاويلات څکه ضروری دی چه فوقية په معنی دجهت اوسمت سره نشی مرادکيدلې، څکه هغه منزه دې دجهت اودمکان نه،ليکن تحقيق دادې چه مذهب دسلفو اثبات دفوقية دې الله تعالى لره لکه تصريح کړې ده په دې باندې امام طحاوی-اوپه دې باند سلفو تقريباً يوزرد لائل وئيلی دی((روح)) منجمله دهغې نه حديث الاوعال دې- چه روايت ئې کړيدې احمدبن حنبل دحضرت ابن عباس رضى الله عنه نه چه په هغې کښې يوجمله داده ((والعرش فوق ذلک، والله تعالى فوق ذلک كله)) بل دابوداؤد حديث دې چه مروی دې دجبيربن مطعم ﷺ نه، چه په هغې کښې يوجمله داده: ((قال رسول الله صلى الله عليه وسلم للرجل الذى استشفع بالله تعالى عليه : ويحک اتدرى مالله تعالى، ان الله تعالى فوق عرشه وعرشه فوق سمواته — الحديث)).

فوقية په اعتباردفضيلة سره، فوقية په اعتباردقهرغلبې سره، فوقية په اعتباردذات سره فوقية مطلقه ،داټول سلف ثابتوی الله تعالى لره، ليکن لکه څرنگه چه دالله تعالى ذات چاته معلوم نه دې اوذات ئې دچاسره مشابه مماثل نه دې نودغه شان صفات ئې هم دمخلوق سره مشابه مماثل نه دی، بلکه دَ صفاتو د الله تعالى دصفاتودمخلوق سره صرف اشتراک

لفظی دي نوصفت د . ،فوق، . چه الله تعالی لره ثابت دي نودهغي معنی هغه نه ده چه زمونږه په عرف اومحاوره کښي ده، بلکه داهغه فوقية دي چه (کمايليق بجلال ذاته) ،اوفوقية دجهت اومکان څکه مرادنه دي چه جهت اومکان ،غير دي دذات اودصفاتودالله تعالی نه اوهرهغه شئ چه غيروی دذات اوصفاتودالله تعالی نه نوهغه مخلوق وی اوحادث وی، اوپه کوم وخت کښي چه مخلوق پيدا نه وؤ نو ذات د الله تعالی سره د خپلو صفاتونه هم موجود وؤ. صاحب د روح المعانی وائی چه لفظ دجهت کله ذکرکيږی اومرادترينه امرموجودغيرالله وی نوپه دي معنی سره جهت مخلوق دي اوالله تعالی منزه دي دَ دينه چه مخلوق په ده احاطه اوکړی، ذات دالله تعالی خارج دي داحاطي دعالم نه ،نوموصوف نه دي په علواوسفل ،فوق تحت ،سره، موصوف په فوق ياتحت سره هغه څوک وی چه ده عالم په احاطه کښي وی. اوکوم ذات چه خالق دعالم دي اوخالق دجهاتودي نوهغه دعالم په احاطه کښي نه دي نوهغه موصوف په فوق سره نه دي اونه په ضدددي (تحت) سره دي اودابديهی خبره ده، اوکله اراده کولې شی دجهت نه امرِ عدمی نوپه دي معنی سره جهت الله تعالی لره ثابت دي څکه چه ددي معنی راجع ده سلب ته، نوچه اووئيلي شی: ((الله فوق العالم)) ددي معنی داده ((حيث انتهت المخلوقات)) ،(روح) يعنی دالله فوق العالم معنی داده چه الله تعالی دمخلوقاتودداڼري نه باهردي، علامه آلوسی رحمه الله وائی : خلاصه دکلام داد چه واجبه ده تنزيه دالله تعالی دمشابهت دمخلوقاتونه، او واجب دي تفويض دعلم دمتشابهاتوالله تعالی ته، اوواجب دي ايمان په متشابهاتو په هغه وجې سره چه راغليدی، اوداسي تاويل چه قريب الی الذهن وی اوشائع وی نظير دهغي،پدي کښي هم باک نشته دي، علاوه داچه بعض آياتونه داسي دی چه دهغي په تاويل کولوباندي اجماع دسلفواودخلفوده،آه.

| قُلْ أَيُّ شَيْءٍ أَكْبَرُ شَهَادَةً ۖ قُلِ اللَّهُ ۖ شَهِيدٌۢ |
|---|
| ته وه وايه [1] چه څه څيز دي دير لوئ په گواهئ کښ ؟ (څوك لوئ گواه دي) وه وايه چه الله تعالی گواه دي. |
| بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ ۚ وَأُوحِيَ إِلَيَّ هَٰذَا الْقُرْآنُ لِأُنذِرَكُم بِهِ |
| په مينځ څما او ستاسو کښ او وحي کړي شويده ماته دَ دي قرآن ، دپاره د دي چه څه ويروَم تاسو پدي سره |

۱ . ثمره د دلائلو

| وَ مَنْۢ بَلَغَ ؕ | اَئِنَّكُمْ | لَتَشْهَدُوْنَ | اَنَّ | مَعَ | اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|---|

وهغه چا لره چه ورسی هغه ته دا قرآن، آيا تاسو دا شهادت کوئ (منئ) چه بيشکه دَ الله تعالى سره

| اٰلِهَةً | اُخْرٰى ؕ | قُلْ | لَّاۤ | اَشْهَدُ ۚ | قُلْ |
|---|---|---|---|---|---|

نور خوك دَ عبادت اوبندگئ لائق شته، ته وه وايه، چه خه دا گواهي نه کوم (نه منم) وه وايه

| اِنَّمَا | هُوَ | اِلٰهٌ | وَّاحِدٌ | وَّاِنَّنِيْ | بَرِيْٓءٌ | مِّمَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|

چه بيشکه صرف هغه دې معبودِ بر حق، يو، او بيشکه خه بيزاره يم دَ عبادت دَ هغه معبودانو نه

| تُشْرِكُوْنَ ۟ۘ | اَلَّذِيْنَ | اٰتَيْنٰهُمُ | الْكِتٰبَ | يَعْرِفُوْنَهٗ |
|---|---|---|---|---|

چه تاسو ئې دَ الله سره شريکوئ. هغه کسان چه ورکړيدې مونږ هغوئ ته کتاب، پيژنې دا قول (يعني توحيد)

كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ ۘ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْۤا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۟

لکه چه پيژنې دوئ خامن خپل، هغه کسان چه تاوانی کړيدی دوئ خپل ځانونه پس دوئ ايمان نه راوړی

﴿قُلْ اَيُّ شَيْءٍ اَكْبَرُ شَهَادَةً﴾ دامتعلق دې ددلائلوسابقوسره اوددغه دلائلوثمره ده، په يوروايت کښې دی چه قريشوُنبی صلى الله عليه وسلم ته اووئيل اې محمدصلی الله عليه وسلم مونږستاپه باره کښې ديهودونصاری ؤنه تپوس اوکړو نوهغوئ اووئيل چه نشته دې مونږسره دده ذکر،اونه دده صفت، نوته مونږته داسې څوک اوخايه چه ستادنبوت شهات اوکړی نوداآيت نازل شو، (اى شئ) مبتداء ده (اكبرُ) ورته خبردې (شهادةً) تميزدې دمبتداء نه،يعنی ته ددوئ نه تپوس اوکړه چه دچاشهادت ډيرلوئ دې اوظاهره ده چه لوئ شهادت خودالله تعالى شهادت دې ﴿قُلِ اللّٰهُ﴾ داجواب د ﴿اَيُّ شَيْءٍ اَكْبَرُ شَهَادَةً﴾ دې. لفظ د الله مبتداده اوخبرئ محذوف دې چه ((اكبرشهادةً)) دې، ﴿شَهِيْدٌ﴾ خبر دمبتدا محذوف دې (اى وَهُوَشَهِيْدٌ) نو جواب، د سوال سره مطابق شو، يا لفظ د الله مبتداء ده او(شَهِيْدٌ) ورته خبردې اومطابقت دجواب دسوال سره په دې اعتبارسره دې چه هرکله الله تعالى گواه شونوداخوظاهره ده چه گواهي دالله تعالى ډيره لويه گواهي ده نومطابقت حاصل شوپه مابين دسوال اوجواب کښې.

جمهورعلماء وائی چه اطلاق دشئ په ذات دالله تعالى جائزدې اوداسې ونيلې شی ((هوشئ

لاکالاشیاء)) اودلیل ئ داسوال اوجواب دی چه په دې آیت کښې مذکوردی چه ﴿قُلْ أَيُّ شَيْءٍ أَكْبَرُ شَهَادَةً قُلِ اللَّهُ﴾ لفظ دشئ واقع دې په موقع دلفظ دالله کښې (قرطبی) اودارنګه په بل آیت کښې داسې دی ﴿كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ﴾ وجه په معنی دذات سره اوددې استثناء د ((کل شئ)) نه شویده اواصل په کلام کښې استثناء متصله ده نومعلومه شوه چه ذات دالله تعالی داخل وۀ په کل شئ کښې اوپه استثناء سره خارج شو. ﴿وَأُوحِيَ إِلَيَّ﴾ دادلیل وحی دې په توحید.
﴿وَمَنْ بَلَغَ﴾ داعطف دې په ((کُم)) باندې اوددینه معلومه شوه چه دنبی صلی الله علیه وسلم نبوت باقی دې ترقیامت پورې. ﴿أَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُونَ﴾ استفهام دزجردپاره دې اودشهادت نه مراد دَ عقل شهادت دې ((قاله الشیخ رح)) یعنی ده تیرشوؤ دلائلو نه بعدستاسوعقل داخبره منی؟ اوداشهادت ورکولې شی؟ چه دالله تعالی سره نورآلهه شته دې. ﴿قُلْ لَا أَشْهَدُ﴾ یعنی ځما عقل خودانه منی ﴿قُلْ إِنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ زما عقل خو دتوحید ګواهی ورکوی اوکلمه د (انما) دحصردپاره ده. یعنی نفی دشرک اواثبات دتوحید، نودتوحیدذکرپه دې جمله کښې اوشو او دنفی دشرک په دې روستوجمله کښې کیږی، چه ﴿وَإِنَّنِي بَرِيءٌ﴾، ﴿الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ﴾ داشکوه ده ﴿يَعْرِفُونَهُ﴾ ضمیریاراجع دې قول مذکورته یعنی کله توحید، لکه شاه ولی الله رحمه الله داسې ترجمه کوی ((می شناسند حقیقت این قول یعنی کلمه توحید)) یاراجع دې ماجاء به النبی صلی الله علیه وسلم ته (ابن کثیر) یاراجع دې نبی صلی الله علیه وسلم ته سره دصفاتو دهغه نه، لکه روایت دې چه هرکله چه نبی صلی الله علیه وسلم هجرت اوکړو مدینې ته راغې اوعبدالله بن سلام رضی الله تعالی عنه اسلام راؤړو، نوحضرت عمررضی الله تعالی عنه ترینه تپوس اوکړوددې آیت په باره کښې چه الله تعالی په خپل نبی (محمد صلی الله علیه وسلم) باند په مکه کښې داآیت نازل کړیدې نوداڅنګه ده؟ نوعبدالله بن سلام اووئیل چه په تحقیق سره مااوپیژندنبی صلی الله علیه وسلم هرکله چه م اولیدو داسې لکه چه خپل زوئ پیژنم. بلکه حضرت محمدصلی الله علیه وسلم زیات خه پیژنم دخپل ځوئ نه، نوعمررضی الله عنه ورته اووئیل چه دا څنګه، نوهغه اووئیل چه زه ګواهی کوم په دې چه بیشکه محمدصلی الله علیه وسلم دالله رسول برحق دې، ((ولاادری ماتصنع النساء)) یعنی نه پوهیګم

چه خزې څه کوي، خیانت کولې شی،، په دې آیاتونوکښې دتوحید بیان دې نوبناء په اوله اودویمه توجیه مناسبت ظاهردې اوبناء په دې اخیره توجیه مناسبت دادې چه رسو ل الله صلی الله علیه وسلم مبین دتوحید دې ﴿الَّذِینَ خَسِرُوٓا﴾ په آیت نمبر ۱۲ کښې وعیدؤ منکرینو دقیامت دپاره اودلته وعیداوتخویف منکرینوتوحیداودرسالت دپاره دې.

| |
|---|
| وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ ۗ |
| اوڅوک دې زیات ظالم دَ هغه چا نه چه جوړکړی په الله تعالی باندې دروغ. یا نسبت دَ دروغو وکړی آیاتونو د الله . |
| إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ ﴿٢١﴾ وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ |
| بیشکه نه کامیابیږی ظالمان او په هغه ورځ [1] چه جمع به کړو مونږ دوئ ټولو لره بیا به ووایو |
| لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا أَيْنَ شُرَكَاؤُكُمُ الَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿٢٢﴾ |
| هغه کسانو ته چه شرك ئې کړیدې، چرته دی؟ ستاسومددګاران هغه چه تاسو به دعوه کوله (چه دا شرکاء دی) |
| ثُمَّ لَمْ تَكُن فِتْنَتُهُمْ إِلَّا أَن قَالُوا وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ ﴿٢٣﴾ |
| بیا به نوی څه بهانه او عُذر دَ دوئ مګر دا چه اوبه وائی دوئ، قسم دې په الله چه رب زمونږ دې، نه وؤ مونږ شرك كونكي |

﴿وَمَنْ أَظْلَمُ﴾ دازجردې منکرینوودتوحیدته بعددذکرددلائلونه، یعنی ددغه شان سړې ډیرغټ ظالم وی چه په الله تعالی دروغ جوړه وی یعنی شرك کوی اووائ چه (الملائکه بنات الله) یا (اتخذالله ولدًا) یانسبت ددروغواوکړی آیاتونودتوحیدته، اوتوحیدنه منی. ﴿وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ﴾ داتخویف اخروی دې مشرکانوته،﴿لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا﴾ دا عام دې چه عبادت ئې ده بتانو کړې وی،یا دعزیر عليه السلام یا دعیسی عليه السلام وغیره ﴿أَيْنَ شُرَكَاؤُكُمُ﴾ اضافت ئې دوئ ته څکه اوشوچه په حقیقت کښې خودالله تعالی لپاره شرکاء نشته دې بلکه دوئ په خپل زعم باطل کښې شرکاء ګرځولی دی اوګمان کوی چه دازمونږ شفاعت کوی،﴿تَزْعُمُونَ﴾زعم قول باطل اوعقیدې باطل دواړوته وئیلې شی،﴿ثُمَّ لَمْ تَكُن فِتْنَتُهُمْ﴾فتنه په معنی د ،،بهانه،، معذرت سره رازی جلالین وغیره دامعنی لیکلې ده، مدارك په معنی د ،،جواب،، سره لیکلې ده.

---

[1] . تخویف أخروی

اوجواب نه فتنه څکه وئیلي شویدی چه داجواب محض کذب، اودروغ وو- حضرت الشیخ رح دخیل شیخ نه داسې ترجمه نقل کوی- گنده جواب ان کا،،اوبعض وائی چه فتنه په معنی دجرم سره دي اومضاف مقدردي،معذرت دجرم ،،امام رازی رح دزجاج نه نقل کوی ،چه مشرکین په دنیاکښې په شرک باندې ،مفتونین، عاشقان وو،لیکن أوس ئې برائت اوکړو اوقسم ئې اوکړو، ((والله ربناماکنامشرکین)) نوورته اووئیلي شو نه وو افتنان د دوئ په اوئانو مگر دا چه ((والله ربنا – الایه)) نو مراد دفتنې نه شرک د دوئ دې په دنیاکښې اومضاف مقدردې ((ای لم تکن عاقبة فتنتهم الاالبراءة)) ﴿وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ﴾ دوئ به دشرک نه انکار اوکړی، اوداگمان به اوکړی چه په دې به مونږ ته نجات حاصل شی،نوبیابه الله تعالی ددوئ خوله بنده کړی اواندامونه به ئې گواهی ورکړی، ((الیوم نختم علی افواههم – الایه))، ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه الله تعالی به مؤمنانوته دگناهونومغفرت اوکړی نومشرکان چه دااووینی چه الله تعالی شرک نه معاف کوی اوباقی نورگناهونه معاف کوی نودوئ به یوبل ته اووائ چه راشئ چه داسې اووایو چه مونږ گناهکاران یوخوشرک مونه دې کړې نوقسمونه به اوکړی چه مونږمشرکان نه وو، نوالله تعالی به ئې خوله بنده کړی اواندامونه به ئې گواهی اوکړی. نودوئ به پوهه شی چه دالله تعالی نه هیڅ څه نه پټیگی لکه په بل آیت کښې راځی ((یومئذیودالذین کفرواوعصوالرسول لوتسوی بهم الارض ولایکتمون الله حدیثاً)).

| اُنْظُرْ كَيْفَ كَذَبُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۲۴﴾ |
|---|
| اوگوره څنگه دروغ اوویل دوئ په خانونو خپلو باندې، اوورك شو د دوئ نه هغه چه دوئ دروغ جوړول. |
| وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُ اِلَيْكَ وَجَعَلْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً |
| اوبعض ددوئ نه هغه څوك دی چه غوږ کیدی تاته (خونه پوهیږی) څکه چه پیدا کړیدی مونږ په زړونو د دوئ پردې |
| اَنْ يَّفْقَهُوْهُ وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا ۭ وَاِنْ يَّرَوْا كُلَّ اٰيَةٍ ۭ |
| د دینه چه دوئ پوهه شی په قرآن او په غوږونو د دوئ کښې مونږ پیدا کړیدې بوج، اوکه او وینی دوئ هر قسم معجزه، |
| لَّا يُؤْمِنُوْا بِهَا ۭ حَتّٰٓى اِذَا جَاۗءُوْكَ يُجَادِلُوْنَكَ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا |
| نوبیا هم ایمان نه راوړی په هغې، ترد‌ې چه کله دوئ راشی تاته جگړه کوی ستا سره. نو وائی کافران |

إِنْ هَٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ ۝ وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ

نه دی دا مگر دروغ قصې دَ زړو خلقو او دوئ منع کوی خلق دَ ایمان نه په ده باندې

وَيَنْـَٔوْنَ عَنْهُ ۖ وَإِن يُهْلِكُونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ۝

او لرې کیږی دَ اِتباع دَ ده نه، او نه هلاکوی دوئ مگر ځانونه خپل او نه پوهیږی دوئ

﴿ اُنظُرْ كَيْفَ كَذَبُوا ﴾ داتعجب دې. دنظرنه مرادسوچ فکردې یعنی دتعجب په نظرسره اوګوره چه دوئ څه رنګه صریح دروغ اووئیل.﴿وَضَلَّ عَنْهُم ﴾ ای انظر کیف ضل عنهم ﴿مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴾ (ما) موصوله ده اومراددینه هغه بوتان دی چه دوئ دهغې عبادت کولو. اوونیل به ئې ((هؤلاء شفعائنا عندالله)) اوافتراء په معبودانوباندې نه وه واقع بلکه دهغوئ په احوالو باندې واقع څکه چه افتراء د ذات د معبودانو، نه کیږی بلکه افتراء دا وه چه دوئ هغوئ نه شفعاء ویل. نو دلته نسبت د افتراء معبودانوته مجازاً دې دپاره دمبالغې. چه ګویاکښې هغه معبودان نفس مفتری وه،معنی ئې داده چه دوئ خوداسې وئیل چه دامعبودان به زمونږ شفاعت کوی دوئ زمونږ اسره، وسیله ده لیکن هغوئ ترینه بالکل غائب شو،هیڅ خیرخبرئې ورته وانه غستو، اوبعض وائی چه ما مصدریه دې ((ای ضل عنهم افتراءهم)) دافتراء نه مراد هغه دروغ ،اوشرکی، قصې اوخبرې دی چه دوئ دزان نه جوړې کړې وې هغه به ترینه هیرې شی.﴿ وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ ﴾ دازجردې یعنی په اهل مکه کښې بعض داسې خلق دی چه ستاخبرې په غورسره اوری مګرددې باوجودپه هغوئ څه اثرنه کوی. څکه چه دضد اوعناد اود بیابیا انکار په جه ددوئ صلاحیت اواستعداد سلب شویدې، دزړونونه ئې دحق قبلولو. استعدادختم شویدې چه په زړونوئې پردې دی، اودغوګونونه ې دسماع قبول استعدادسلب شویدې په غوږونوکښې ئې ثقل اوبوجی دی نوپه سماع قبول سره حق نشی اوریدلې، اودسترګونه ئې دعبرت دنظرکولوصلاحیت ختم شویدې نوکه دوئ هرقسم معجزې اودلیل دتوحید اووینی نوایمان پر نه راوړی بلکه مجادله اومناظره کوی اوداسې وائ چه دا ((اساطير الاولين)) دی، اساطیر، دروغ قصوته وائی بعض وائی چه ددې مفردنشته دې لکه ابابیل. مذاکیر، اوبعض وائ چه داجمع داسطورة ده يااسطارة ده، یاداسطارده اودهغه جمع دسطرده

﴿وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ﴾ دا هم زجردي او مراد ددينه عام مشركين اهل مكه دي معنى ئ داده چه دوئ نور خلق هم منع كوى دايمانه په نبى صلى الله عليه وسلم باندې او په قرآن او پخپله ترينه هم لرې لرې گرځي. يا ددينه مراد ابوطالب دې او معنى ئې داده چه نور خلق خو منع كوي د ضرر رسولو نه نبى صلى الله عليه وسلم ته ليكن پخپله ئې نه منى. لكه په دې باندې دلالت كوى اشعار دهغه . چه وئيلى وو

| | |
|---|---|
| والله لن يُصِلوا اليک بجمعهمْ | حتّٰى اُوَسَّد فـي التُّراب دَفِينَا |
| فاصدَعْ بامرکَ ماعليکَ غضاضةٌ | وابشِر بذاکَ و قَرَّ منکَ عُـيُونَا |
| ودَعَوتَنِیْ وزَعَمْتَ اِنَّکَ ناصِحِی | فلقدْ صَدَقْتَ وکنتَ قَـبْلُ اَمِيْنَا |
| وعرضتَ دينًا قد عرفتُ بانّـه | مِن خَيرِ اَدْيَانِ الْبَرِيَّـةِ دِيـنَا |
| لَولا الملامـةُ او حـذار مسبّـةٍ | لَوَجَدْتَنِی سـمحًا بذاک مبـينَا |

وَلَوْ تَرٰى اِذْ وُقِفُوْا عَلَى النَّارِ فَقَالُوْا

(او تعجب به وكړې ته) كه وه وينې دوئ لره كله چه دوئ او دروليې شى داُور په خوا كښې. پس او وائى دوئ

يٰلَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِاٰيٰتِ رَبِّنَا وَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۞

هاى افسوس! چه مونږ واپس كړې شوې وې دنيا ته او تكذيب او نه كړې مونږ په آياتونو دَخپل رب. او شوې مونږ دَ مؤمنانو نه

بَلْ بَدَا لَهُمْ مَّا كَانُوْا يُخْفُوْنَ مِنْ قَبْلُ

بلكه ښكاره شو دوئ ته هغه څه چه وُو دوئ پټولوئى (انكار ئى ترينه كولو) مخكښې دَ دينه.

وَلَوْ رُدُّوْا لَعَادُوْا لِمَا

او كه چرې بالفرض دوئ واپس كړې شو دنيا ته نو خامخا به دوئ واپس را او گرځي هغه كارونو ته

نُهُوْا عَنْهُ وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ۞ وَقَالُوْا اِنْ هِيَ اِلَّا

چه دوئ دَ هغې نه منع كړې شوى وُو، او بيشكه دوئ خامخا دروغژن دى. او وائى دوئ ندې دا مگر

حَيَاتُنَا الدُّنْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِيْنَ ۞

ژوند دَ دنيا زمونږ دې اونه يو مونږ دوباره پورته كيدونكى (ژوندى كيدونكى)

وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذْ وُقِفُوا۟ عَلَىٰ رَبِّهِمْ ۚ

او تعجب به وکړې ته، کچېرې ووینې ته هغه وخت چه دوئ اودرولې شی په حضور د خپل رب کښې.

قَالَ أَلَيْسَ هَٰذَا بِٱلْحَقِّ ۚ قَالُوا۟ بَلَىٰ وَرَبِّنَا ۚ

الله تعالی به ووائی، آیا ندې دا ژوند حق. دوئ به ووائی چه هو! بیشکه حق دې اوقسم دې په رب زمونږ.

قَالَ فَذُوقُوا۟ ٱلْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ۝

اوبه وائی الله. پس اوڅکئ عذاب په سبب د دې چه تاسو کفر کولو

﴿وَلَوْ تَرَىٰٓ﴾ داتخویف اخروی دې، اوجزاء دشرط محذوفه ده چه ((لرأیت امرا فظیعا)) یعنی ددوئ حال به په دغه وخت ډیرناکاره وی، ﴿إِذْ وُقِفُوا۟ عَلَى ٱلنَّارِ﴾ وقوف هغه اودرول دی چه په هغې سره علم په حقیقت باندې حاصل شی. ﴿يَٰلَيْتَنَا﴾ یاحرف نداء ده اومنادی محذوفه ده. یانداء صرف دحسرت لپاره ده، ﴿نُرَدُّ﴾ دنیاته واپس کیدل مراددی اوداخبره د لَیتَ دې ﴿وَلَا نُكَذِّبَ﴾ په «لانکذب» او ﴿وَنَكُونَ﴾ کښې دوه قراته دی یوقرات داهل مدینې اودنافع، ابن کثیرکسائ دې، داقرات درفع دې عطف په نُرَدُّ باندې اوقرات دحفص اوحمزه، په نصب سره دې جواب دتمنې دې په اضمارد (أنْ) سره، ولاَ نُکذِب اولاَنُکذِب، ونَکُونَ، په تاویل دمصدرسره معطوف دی په مصدرمتوهمه باندې، اوداټول داخل دی په تمنی کښې اوحاصل دمعنی داسې دې، (یالیت لنارُدّ)، (وانتفاء التکذیب والکون مع المؤمنین) اوداټوله جمله مقوله د (قالو) ده ﴿بَلْ بَدَا لَهُم﴾ بل داضراب دپاره دې، اودااضراب دې دتمنې ددوئ نه دایمان، چه داتمنا په قصدداطاعت نه ده، بلکه دوئ په یومصیبت کښې گرفتارشو، چه عذاب دقیامت دې نوځکه تمنی کوی، او که چرې بالفرض والتقدیر دوئ دنیاته واپس کړې شی نوبیا اطاعت نه کوی اوایمان نه راوړی ﴿مَا كَانُوا۟ يُخْفُونَ﴾ بعض وائی چه ددینه مراددوئ کفری عقیدې دی لیکن په دې اعتراض واردیگی چه دوئ خوخپلې کفری عقیدې نه پټولې بلکه ښکاره کولې به ئې نوصحیح داده چه د (ماکانوا) نه مرادقیامت اونار-اواهوال دقیامت دی او«یخفون» په معنی دینکرون اویکذبون، سره دې، لکه ((هذه النارالتی کنتم بهاتکذبون)) نومعنی داده چه ښکاره شو. دوئ ته هغه شئ چه دوئ به ترینه انکارکوو-اوحضرت الشیخ رحمه الله دخپل شیخ رحمه الله نه نقل کوی چه

يُخفون باب افعال دوجدان دپاره دې نومعنی ئې داده چه (يجدونه مخفيًا) يعنی کوم شئ چه دوئ په دنياکښې نه ليدو يعنی قيامت نوهغه ورته اوس ښکاره شو. ﴿وَلَوْ رُدُّوْا لَعَادُوْا﴾ وجه داده چه په دو ئی کښې استعداد، اوصلاحيت دقبول دحق ختم شويدې، اوددې وجې نه دوئ په دنياکښې ددلائلو اودمعجزاتوکتلوسره ايمان نه ؤ راوړې، نوکه مشاهده اوکړی دقيامت ليکن چه که بالفرض دنياته واپس شی نوبيا به هم دوئ انکارکوی دحق نه ځکه چه ددوئ استعداد سلب شويدې اومهرِ جباريت پرلګيدلې دې. ﴿وَقَالُوْٓا اِنْ هِيَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا﴾ داعطف دې په (لعادوا) باندې-يعنی که چرې دوئ بالفرض دنياته واپس کړې شی نوبيابه هم عود ((واپسی)) کوی نافرمانئ،کفرشرک ته اودابه وائ چه ((ان هی الاحياتناالدنيا)) ياداجمله مستانفه ده يعنی دوئ په دنياکښې وائی چه ((ان هی الا)) ان نافيه دې- (هی) مبتدا ده (حياتنا) موصوف (الدنيا) ورته صفت دې،موصوف سره دصفت نه خبردمبتداء دې،اوضميرد (هی) راجع دې حيات ته چه روستو مذکوردې اواضمارقبل الذکرلفظًا اورتبةً په بعض مواضعوکښې جائزوی، منجمله دهغې نه دادې چه خبر مفسروی دضميردپاره لکه په دې ځائې کښې ﴿وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِيْنَ﴾ يعنی دوئ وائی چه دمرګ نه روستوبيابل ژوند نشته دې، انکارکوی دحشرنه ﴿وَلَوْ تَرٰٓى﴾ تخويف اخروی دې جواب د (لو) محذوف دې، (وُقِفُوْا) په معنی دپيش کيدلوسره دې (اَیْ عُرِضُوْا)

قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِلِقَآءِ اللّٰهِ ؕ حَتّٰٓى اِذَا جَآءَتْهُمُ

په تحقيق سره په تاوان کښې دی[1] هغه کسان چه دروغ ګڼرې پيښې الله ته (قيامت) تردې پورې چه کله راشی په دوئ

السَّاعَةُ بَغْتَةً قَالُوْا يٰحَسْرَتَنَا عَلٰى مَا فَرَّطْنَا فِيْهَا ۙ

قيامت، ناڅاپه، وائی به دوئ هائی افسوس زمونږ په کوتاهئ او غفلت زمونږ په باره د قيامت کښې

وَهُمْ يَحْمِلُوْنَ اَوْزَارَهُمْ عَلٰى ظُهُوْرِهِمْ ؕ اَلَا سَآءَ مَا يَزِرُوْنَ ۝

اودوئ به پورته کوی پيتی دګناهونو خپلو په شاګانو خپلو باندې، خبردارا ديريدې دې هغه بوج چه دوئ ئی پورته کوی

۱ - تخويف اخروی

| وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ ؕ وَلَلدَّارُ الْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ؕ |
|---|
| اونده زندگاني ددنيا [۱] مگر لوبي او مشغله ده . اوخامخا كور دآخرت ډير غوره دي هغه جا لره چه تقوى كوي. |
| اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝ قَدْ نَعْلَمُ اِنَّهٗ لَيَحْزُنُكَ الَّذِيْ يَقُوْلُوْنَ |
| آيا پس عقل نه لرئ تاسو په تحقيق سره پوهيږو مونږ [۲] چه خامخا خفه كوي تالره هغه خبري چه دوئ ئي وائي |
| فَاِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُوْنَكَ وَلٰكِنَّ الظّٰلِمِيْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ ۝ |
| هه خفه كيږه) پس بيشكه دوئ تاته نسبت ددروغونه كوي ليكن دا ظالمان د الله تعالى د آيتونونه انكار كوي |

﴿ قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ ﴾ داهم تخويف اخروي دي اودلقاء الله نه مرادورځ دقيامت ده چه دالله تعالى په حضوركښي داودريدلوورځ ده، ﴿ حَتّٰٓى اِذَا ﴾ (اى استمرتكذيبهم حتى) ﴿ بَغْتَةً ﴾ بغير د اطلاع نه، يعنى دوئ تكذيب دقيامت كولو، تردې پورې چه كله قيامت ناڅاپه راشي نوددوئ تكذيب به ختم شي اوافسوس به شروع كړي وائى به ﴿ يٰحَسْرَتَنَا ﴾ دلته حرف (تا) د اظهار افسوس دپاره ده . ﴿ عَلٰى مَا فَرَّطْنَا ﴾ ما مصدريه ده اى على تفريطنا يعنى دوئ به وائى چه افسوس دي په كوتاهئ زمونږپه باره دقيامت كښې دايمان اواعمالوئ. ﴿ وَهُمْ يَحْمِلُوْنَ ﴾ داجمله حاليه ده، يعنى حال به داوى چه دوئ بهٔ خپل گناهونه په خپل خان باركړى وى ﴿ اَوْزَارَهُمْ ﴾ جمع د (وزر) ده (وزر) په اصل كښې ثقل اوبوج ته وائى مرادترينه گناه ده. اوحمل كول .حقيقةً دى لكه روايت دې دسُدى وغيره نه ، چه مؤمن چه دقبرنه راؤزى په قيامت كښې نومخامخ به ورته راشي ډيرخائسته، ډيرخوشبويه صورت اوبه وائى چه آيا ، ته ماپيژني؟ مؤمن به اووائى. نه، نوهغه به ورته اووائى چه زه ستاعمل صالح يم (فاركبنى) په ماباندې راسورشه. ډيرزمانه ماپه تاباندې ركوب (سورلئ) كړيده اودامعنى ددې قول دالله تعالى ده ﴿ يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِيْنَ اِلَى الرَّحْمٰنِ وَفْدًا ﴾ (اى ركبانا) . او كافر ته به مخامخ راشي ډير قبيح اوډير بد بويه صورت نو وه به وائى (هل تعرفنى ؟ ) يعنى آيا ته ما پيژنې ؟ نو دې به وه وائى (لا) يعنى نه ' نوهغه به ورته وه

---

۱ - تقليل او تحقير د دنيا لپاره د اصلاح د مشركينو.

۲ - تسلى مع تخويف .

وانى چه زه ستا قبيح عمل يم، ډيره زمانه په دنيا كښې تا ركوب (سورلى) كړې وه په ما باندې اوس به زه سورلى كوم په تا باند، او دا معنى د دې قول د الله تعالى ﴿وَهُمْ يَحْمِلُونَ أَوْزَارَهُمْ﴾ ، ﴿وَمَا الْحَيَوٰةُ الدُّنْيَآ إِلَّا لَهْوٌ وَلَعِبٌ﴾ د اصلاح د منكرينو دپاره په قرآن پاک كښې كله كله تحقير اوتقليل ددُنياذكركيږى، ځكه چه دانكار، اوعصيان بنياد حب الدنيا دې. كمال قال عليه الصلوة والسلام (حب الدنيا راس كل خطيئة) نوپه دې آيت كښې تزهيدمن الدنيا بيانيګى په ذكردتقليل اوتحقيرسره اودنياته چه لهو، لعب وئيلې شويدى نوياپه اعتباردقلت سره،لكه دلوبو وخت لږ وى نودارنګه جونددنيالګ دې اوياپه دې اعتبارسره چه لكه څه رنګه چه دلهولعب هيڅ انجام اوفائده نشته دې نودغه شان هغه سامان ددنياچه آخرت پرې نه طلب كيږى هغه هم فائده اوصحيح انجام نه لرى- د﴿وَمَا الْحَيَوٰةُ الدُّنْيَآ﴾نه مرادهغه اعمال دى چه مختص وى په حيواة ددنياپورې (اى وما اعمال الحيوة الدنيا الا لهو) او هرچه دى اعمال صالحه او عبادات او په قدر د ضرورت كسب دمعاش، نو دا خارج دى د (الحيوة الدنيا) نه د (لهو، لعب) معنى داده (الاشتغال بمالايعنى العاقل) فرق د دواړو په درميان كښې په مختلفو اعتباراتو سره كړې شويدې منجمله دهغې نه دادې چه بې فائدې كارته لهوپه دې اعتبارسره واى چه په دې سره اعراض عن الحق رازى او غفلت راځى د مقصود نه اولعب ورته په دې اعتبار سره وائى چه فائده پرې نده مرتب، اوبعض وائى چه لعب هغه بې فائدې شئ دې چه مقصود ترينه زرخوشحالى حاصلول وى اوپه لهو كښې خوشحالى مقصود نه وى، صرف زړه مشغولول وى.

ــ ﴿قَدْ نَعْلَمُ إِنَّهُ لَيَحْزُنُكَ الَّذِى﴾داتسلى ده رسول الله صلى الله عليه وسلم ته. كفاروچه تكذيب دنبى صلى الله عليه وسلم كولونوپه دې باندې به نبى صلى الله عليه وسلم غمژن كيدلو نوالله تعالى ورته تسلى وركوى چه مه غمژن كيږه ځكه چه دوئ ستاتكذيب نه كوى بلكه ځمادا اياتونوتكذيب كوى. ځكه چه كله تادوئ ته ځماآياتونه نه بيانول دبعثت نه قبل نودوئ تاته الصادق الامين وئيلو، ليكن چه كله د دوئ ته زماآياتونه بيانول شروع كړل نودوئ تاته كاذب وائى «قدنعلم» د عنوان دمحبت اودتسلئ دې، لكه خلق قصه كوى چه مجنون دليلى په طرف تيرشو. نوخلقواووهلو اوتكليف ئې ورته وركړو، نودې ډيرخفه اوغمژن شو. نوليلى

ورته جواب اوليكلو چه زه خبره شوې يم چه خلقوته زمادمحبت په وجه وهلې ئې تكليف ئې دركړېدې نودې دير خوشحاله شو. نوالله تعالى چه خپل حبيب صلى الله عليه وسلم ته دمحبت په عنوان كښې خطاب فرمائيلودپاره ددې چه خوشحاله شي. ﴿لَيَحْزُنُكَ الَّذِي يَقُولُونَ﴾ ددينه دمنكرينواقوال مراددى په باره دانكاردتوحيداودرسالت كښې لكه چه مخكښې تيرشو.
﴿فَإِنَّهُمْ﴾ دامتعلق دې دمقدرسره چه (فلاتحزن) دي ﴿لَا يُكَذِّبُونَكَ﴾ ددې دوه توجيهات دى **يو دا چه** (لايكذبونك بالقلب ولكن يجحدون بالسنتهم) يعنى ستا تكذيب په زړه كښې نه كوى صرف په ژبه باندې كوى، دوجې دضدنه، لكه روايت دې چه اخنس بن شُريق دابوجهل سره ملاؤشو، ورته ئې اووئيل چه دمحمدصلى الله عليه وسلم په باره كښې ماته خبر راكړه چه صادق دې كه كاذب. ځكه چه دلته خوبل هيڅ څوک نشته چه زمونږ خبرې اورى- نوابوجهل ورته اووئيل چه قسم په الله چه بيشكه محمدصلى الله عليه وسلم صادق دې، دروغ ئې چرته هم نه دى وئيلى،ليكن چه، بنوقُصى، لواء سقايه، حجابة، ندوة، نبوت هرڅه واخلى نوزمونږ دنوروقريشونور څه پاتې شو نوځكه ورته مونږ كاذب وايو، **دويمه** داچه دوئ تاته كاذب نه وائى بلكه صادق امين وائى درته ليكن دقرآن نه انكاركوى لكه ترمذى دحضرت على رضى الله عنه نه روايت ذكركړيدې چه ابوجهل نبى صلى الله عليه وسلم ته اووئيل چه مونږستاتكذيب نه كووبلكه تكذيب دهغه څيزكوؤ چه تا را وړې دې.

| وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ فَصَبَرُوا عَلَىٰ مَا |
|---|
| اوخامخا په تحقيق سره دروغژن اوويلې شودېيرورسولانو ته مخكښې ستا نه پس صبر كړې وؤ دوئ په هغه څه |
| كُذِّبُوا وَأُوذُوا حَتَّىٰ أَتَاهُمْ نَصْرُنَا ۚ |
| چه د دوئ تكذيب كړې شوې وؤ او تكليفونه، رسولې شوى وؤ، تر دې پورې چه راغې دوئ ته مدد زمونږ |
| وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِ اللَّهِ ۚ وَلَقَدْ جَاءَكَ مِنْ نَّبَإِي الْمُرْسَلِينَ ۞ |
| اونشته دې هيڅ بدلونكې لپاره دوعدو دالله تعالى، اوپه تحقيق سره راغليدى تاته بعضې خبرونه درسولانو |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِنْ | كَانَ | كَبُرَ | عَلَيْكَ | إِعْرَاضُهُمْ | فَإِنِ اسْتَطَعْتَ | أَنْ تَبْتَغِيَ |
| او | كچري | گران [1] | وي په تا باندې | روګرداني (مخ اړول) د دوئ | نو پس كه ته طاقت لرې | د دې چه طلب كړې |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نَفَقًا | فِي الْأَرْضِ | أَوْ | سُلَّمًا | فِي السَّمَاءِ | فَتَأْتِيَهُمْ | بِآيَةٍ | وَلَوْ شَاءَ |
| سُرنګ | په زمکه كښې | يا | اندر پايه (پاوړئ) | آسمان ته، | پس راوړې ته دوئ ته | څه معجزه. | او كه غوښتلي |

| | | | |
|---|---|---|---|
| اللَّهُ | لَجَمَعَهُمْ | عَلَى | الْهُدَىٰ |
| الله تعالى (دوئ ته جبراً هدايت) | نو خامخا به ئې جمع كړي وې دوئ لره | په | هدايت. |

فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْجَاهِلِينَ ۞
پس مه كيږه ته د ناپوهانو نه

﴿وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ﴾ دا هم تسلي ده، چه كه دوئ ستا تكذيب كوي نو مه خفه كيږه ځكه چه دالله تعالى نصرت به راځي لكه مخكنو انبياؤ ته چه راغلي وو ﴿عَلَىٰ مَا كُذِّبُوا وَأُوذُوا﴾ ما مصدريه دې يعني انبياؤ صبر كړې وو، په تكذيب داُممُ دوئ لره په تكليف رسولو دهغوئ دوئ ته، نو ته هم صبر كوه لكه چه هغوئ كړې وو چه دالله مدد راشي لكه هغوئ ته راغلي وو او دالله تعالى وعده ده چه ﴿وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِينَ ۝١٧١ إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنْصُورُونَ ۝١٧٢﴾ د دې وعدې تبديل ځوك نشي كولې اويقينًا تا ته بعض حالات د رسولانو راغليدي چه دهغوئ سره امداد شوې وو- نو دالله تعالى نصرت دانبياؤ سره يقيني دې «مِن» زايد دې يا د تبعيض د پاره دې لكه په بل آيت كښې دي (منهم من قصصنا عليك ومنهم من لم نقصصهم عليك) ﴿وَإِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ إِعْرَاضُهُمْ﴾ دا زجر دې نبي صلى الله عليه وسلم ته او بيان د شدت حرص دې په ايمان د دوئ ځكه نبي صلى الله عليه وسلم ډير شفيق دې په امت باندې- نو كفارو به چه دعناد په وجه د معجزاتو مطالبه كوله نو نبي صلى الله عليه وسلم به داغوښتله چه دغه معجزات ظاهر شي، نو كيدې شي چه دوئ ايمان راوړي نو الله تعالى اوفرمائيل چه كه چرې په تا باندې د دوئ داعراض او انكار بوج وي او غواړې چه د دوئ فرمائيشي معجزات دظاهر شي ،نو كه ستا دا طاقت وي چه په زمكه

[1] - زجر

کښې سُرنګ اووهې اودزمکې دلاندې نه دوئ ته معجزه راوړې یااسمان ته پورئ اولګوې.
اوآسمان ته اوخیجې دهلته نه ورته معجزه راوړې نوداسې اوکړه. اوالله تعالی دوئ ته ددوئ
فرمائشي معجزې لدې وجې نه نه ظاهروی چه ضرورت ورته نشته اوفائده حکمت په کښې
نشته. دالله تعالی په علم کښې داده چه دوئ ایمان نه راوړی. په خپل اختیارسره البته که
چرې دالله تعالی داراده وې چه جبراً دوئ مسلمانان کړی نوټول مخلوق به ئې په هدایت
اوایمان جمع کړې وې. لیکن جبری ایمان مقبول اومنظور عندالله نه دې. ﴿فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَن
تَبْتَغِيَ﴾ ددې آیت نه یوه داخبره معلومه شوه چه دنبی صلی الله علیه وسلم ډیرحرص وو په ایمان
ددوئ حتی کښې که چرې طاقت ئې لرلو، ده سورنګ کولو په زمکه کښې یااسمان ته دختلو
نودوئ هدایت اوایمان راوړلو دپاره به ئې دغه تکلیف هم برداشت کړې وې. لیکن نه نبی
صلی الله علیه وسلم داطاقت لرلو، اونه دوئ ایمان راوړلو. بلکه دامعلومه شوه چه معجزات
دنبی په اختیارکښې نه وی اونبی مختارکُل نه وی، که دهرڅه اختیارئې لرلې. نوکفاروته به ئې
معجزات ظاهرکړی وو، اوهدایت به ئې ورته ورکړې وو لیکن باوجودډیرحرص اوشفقت نه ئې
داسې نشوکولې نومعلومه شوه چه مختارِ کُل نه دې اوتخصیص د﴿نَفَقًا فِي الْأَرْضِ﴾﴿أَوْ سُلَّمًا فِي
السَّمَاءِ﴾ځکه اوشه چه منکرینوچه کومې معجزې طلب کولې نودهغې تعلق یادزمکې سره
ووبادااسمان سره-﴿فَإِنِ اسْتَطَعْتَ﴾ شرط دې اوجزاء ئې مقدره ده چه فافعل او﴿فَتَأْتِيَهُم﴾ عطف
دې په﴿أَن تَبْتَغِيَ﴾ باندې ﴿وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ﴾ یعنی که چرې غوختلې الله جبراً هدایت ورکول اوایمان
دوئ ته نو﴿لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدَىٰ﴾ لیکن جبراً هدایت ددوئ په مشیة دالله تعالی کښې نه دې
اوجبری ایمان منظورمقبول عندالله نه دې، نوددې وجې نه ئې ټولوته هدایت نه دې ورکړې
﴿فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْجَاهِلِينَ﴾ فاء فصیحیه ده. اومقصود دنهی نه بچ ساتل دنبی صلی الله علیه وسلم
دی دصفت دجاهلانونه. ځکه چه امرلکه چه دددوام اوثُبات لپاره راځی دغسې نهی هم رازی.
مراددجاهلانونه هغه څوک دی چه دخلقو دانکاراوتکذیب په وجه جزع فزع اوبې صبری کوی-
اودحدنه زیات تحسر افسوس کوی، یا هغه دی چه هدایت په مشیة الهی سره نه ګڼړی

إِنَّمَا يَسْتَجِيبُ الَّذِينَ يَسْمَعُونَ ؕ وَالْمَوْتَىٰ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ

یقینًا قبلوی حق لره هغه خلق چه اوری (ضد نه کوی) او مړی یعنې کافران پورته به کړی الله تعالی دوئ لره.

ثُمَّ إِلَيْهِ يُرْجَعُونَ ۝ وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِّنْ رَّبِّهِ ۚ

بيا به طرف دهغه ته وګرځولې شي اووائي دوئ ولې نشي نازلولې په ده باندې څه نشاني دطرفه د رب د ده نه؟

قُلْ إِنَّ اللَّهَ قَادِرٌ عَلَىٰ أَنْ يُنَزِّلَ آيَةً وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝

نه وه وايه بيشکه الله تعالى قادر دې په دې چه نازل کړي نشاني (معجزه) ليکن زيات خلق نه پوهيږي

﴿إِنَّمَا يَسْتَجِيبُ الَّذِينَ﴾ دابيان دعلت دې يعنى منکرين چه دهدايت نه محروم دي نو دضداوعنادپه وجه، حق صرف هغه خلق قبلوي چه نابت اوحق طلبي وي پکښې ﴿يَسْمَعُونَ﴾ نه مراد (يُنِيبُونَ) دي لکه ﴿وَمَا يَتَذَكَّرُ إِلَّا مَنْ يُنِيبُ﴾. ﴿وَالْمَوْتَىٰ﴾ دينه مراد کفاردي ځکه چه ددوئ زړه دايمان اوتوحيد نه خالى کيدلو په وجه، مړ ،اوبى جان، دي، ددوئ دکفراوجهل تشبيه دموت سره ورکړې شويده ﴿يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ﴾ يعنى کفاروته ددوئ داعراض انکارپوره سزابه په قيامت کښې ورکولې شي، ﴿وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ﴾ داشکوى ده اوځلورم سوال دمشرکينودې، يعنى دوئ وائ چه که چرې محمدصلى الله عليه وسلم برحق نبى وى نوپه دې باندې معجزه ولې نه شى نازلولې يعنى هغه معجزه چه کافرانوئ طلب اوفرمائيش کولو. ﴿قُلْ إِنَّ اللَّهَ قَادِرٌ﴾ داجواب دې يعنى ته ورته اووايه چه بيشکه الله تعالى قادردې چه دغه شان معجزه نازله کړي، ليکن تاسوددې دانجام نه خبرنه يئ، چه غوختلې شوې معجزه چه کله ظاهره شى اوبياهم څوک انکارکوى، اوايمان نه راوړى نوفوراً هلاکولې شى.

وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُمْ ۚ

اونشته هيڅ زنده سر[1] په زمکه کښې اونه يوه مرغه چه الوځى په دوؤ وزرونوخپلو. مګر دلې دى ستاسو په شان

مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِنْ شَيْءٍ ۚ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ ۝

مونږ ندى پريخى په کتاب (لوح محفوظ) کښې هيڅ شې (دليکلونه) بيا به خپل رب ته جمع کړې شى

۱ . اووم دليل عقلى. يعنى د باقى مخلوقاتو لپاره هم الله تعالى خالق . رازق. متصرف دې.

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا صُمٌّ وَّبُكْمٌ فِي الظُّلُمٰتِ

او هغه کسان چه تکذيب ئې کړې دې د آياتونو زمونږ ، دوئ کانړه ، ګونګيان دی. په تيرو کښې دی.

مَنْ يَّشَاِ اللّٰهُ يُضْلِلْهُ وَمَنْ يَّشَاْ يَجْعَلْهُ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝

هغه خوك چه وغواړي الله تعالى بې لارې كړى هغه لره، او خوك چه وغواړي الله تعالى وګرځوى هغه لره په لارې برابرې باندې

قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ اَوْ اَتَتْكُمُ السَّاعَةُ اَغَيْرَ اللّٰهِ

ره وايه ، خبراكړئ ماته [۱] كه راشي تاسوته عذاب د الله تعالى يا راشي تاسوته قيامت آيا ما سوى د الله تعالى نه

تَدْعُوْنَ ۚ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ بَلْ اِيَّاهُ تَدْعُوْنَ فَيَكْشِفُ مَا

بلئ به تاسو . كه تاسو ريښتني يئ (چه دوئ لائق د بلنې دی) بلكه خاص الله لره به بلئ تاسو پس لرې به كړى هغه تكلف

تَدْعُوْنَ اِلَيْهِ اِنْ شَآءَ وَتَنْسَوْنَ مَا تُشْرِكُوْنَ ۝

چه سوال كولو تاسو الله تعالى ته دهغې د لرې كولو، كه ئې خوښه شي او هير به كړئ تاسو هغه معبودان باطله چه تاسوئې الله سره شريك ګرځئ

﴿ وَمَا مِن دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ ﴾ دااوم دليل عقلى دې په توحيد د ((دآبة)) نه روستو ((فى الارض)) اود ﴿ طٰٓئِرٍ ﴾ نه روستو، ﴿ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ ﴾ ذكردصفت كاشفه دې ددفع دتوهم دمجازدپاره. اودقصد د تعميم لپاره، يعنى هر فرد د (دابه) او د (طائر) په مثل ستاسو دې او مراد د مماثلت نه يا دادې چه هرقسم دحيوان ته امت ونيلې شى، نوطيرأمت دې ،دواب امت دې ﴿ أُمَمٌ أَمْثَالُكُمْ ﴾ ستاسوپه شان امت نه مراددادې چه لكه څه رنګه ستاسومخصوص فطرت استعداددې نودغه شان هرنوع (دابې) لره مخصوص فطرت استعداددې په خپل محدود د دائرې داستعدادكښې عمل كوى-ياترينه مراددادې چه ټول ستاسو پشان مخلوق محتاج اوضرورتمنددى اوالله تعالى دټولورازق خالق حاجت روادې، ياترينه مرادمماثلت په توحيد اومعرفت كښې دې، ياترينه مرادمماثلت په بعث كښې دې يعنى ټول بهائم اوطيوربه بياژوندى كولې شى .﴿ مَّا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ ﴾دكتاب نه مرادلوح محفوظ دې چه په هغې كښې

۱ . اتم دليل عقلى على سبيل الاعتراف من الخصم

دهرڅه تقدیردرج دي،دټولو ژوندګۍ احوال،اعمال په کښې درج دی. یامراددکتاب نه قرآن دی اومرادترینه دادي چه په هرڅه څه چه هغې ته اختیاج وی په دېن کښې هغه په قرآن کښې موجوددی صراحةً یااستنباطاً۔ ﴿ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ﴾ ددینه مراد (۱) دادې چه دانسان (ذوی العقولو) حشر به کولې شي، او دَ غیر ذوی العقولو د حشر ذکر نفیًا،اثباتًا نشته دې. (۲) یا مراد دادې چه د ټولو یعنی ذوی العقول او غیر ذوی العقولو حشر به کیږی، اوجمع په واؤنون سره تغلیبي ده نوچه څاروی ،اومرغان دقیامت په ورځ راپورته شي اوددوئ کورنۍ قصاص واغستې شي نوبیابه فناشی، په دې باره کښې ډیراحادیث دی چه ابن کثیر، قرطبی وغیرهما ذکرکړیدی، (۳) اودابن عباس او دَ ضحاک رضي الله عنهم نه روایت دې چه دحیواناتوحشرموت ددوئ دي ،صاحب دروح المعانی وائی چه مراددابن عباس دادې چه یُحْشَرُوْنَ مستعاردې دموت دپاره. چه داټول به مړه کیږی اوفانی کیږی لکه په حدیث کښې دی (من مات فقدقامت قیامته) ،نوهرکله چه یحشرون مستعارشو دموت دپاره نوداسوال واردنه شو چه تفسیر دحشرپه موت سره نه صحیح کیږی، ځکه حشر، (بعث من مکانٍ الی مکانٍ آخر) ته وائی- وجه دعدم ورود داده چه اطلاق د (إِلَىٰ رَبِّهِمْ يُحْشَرُوْنَ) په موت باندې په طریقه داستعاره علی سبیل التمثیل سره دې. نه په طوردحقیقت سره، اوهمدارنګه په موت کښې نقل من الدنیاالی الاخرت دې نواطلاق دحشرپر صحیح دې۔ قرطبی د حدیث د جلجاء، قرناء نقل کولونه بعدوائی چه دادلالت کوی په دې چه حشر دبهائم شته دې په ورځ دقیامت باندې- اوداقول دحضرت ابوذررضی الله عنه ابوهریرة اوحسن وغیرهم دې اودابن عباس رضی الله عنه نه هم مروی دې. ضحاک رضي الله عنه هم دغه شان وئیلی دی، اوقول اول اصح دې، دوجې دظاهرآیت اوخبر صحیح نه، اویوجماعت وئیلی دی چه په آیت کښې دحشرنه مرادحشردکفارودې اوپه حدیث کښې مقصود تمثیل دې دپاره دعظمة دامردحساب اوقصاص ،اواهتمام دامرده حقوقو، چه هیڅ څوک ترینه نشی خلاصیدلې، اودامقصد نه دې چه حقیقةً به په مابین دهغوئ کښې دهغوئ قصاص وی اودهغوئ حشربه وی، ځکه چه هغوئ مخاطب نه دی په احکامو، اومکلف نه دی، اوددې تائید دبعض نورورواياتونه دې چه په هغې کښې ذکر دقصاص دحجر دې دحجر نه کما ذکره القرطبی، بیا وائی (الصحیح القول الاول) ، (۵) صحیح قول دادې چه د بهائمو حشر او قصاص په مابین ددوئ کښې شته دې اګرکه دوئ مکلف نه دی په شریعت اواحکامو سره ،مکلف ته جزاء سزاورکولې شی اوددوئ په مابین کښې قصاص داظهار د

غایت عدل اوانصاف دپاره دي اواهمیت دحقوقو ته اشاره ده، چه دحقوقو مظالمو .دومره اهمیت دي چه غیرمکلف مخلوق ترینه آزادنه دی نومکلف به ترینه څنګه آزادشی. ﴿وَالَّذِينَ كَذَّبُوا﴾ دازجردي ﴿صُمٌّ وَبُكْمٌ﴾ اشاره دسلب استعداد ،مهرجباریت ته ﴿فِي الظُّلُمَاتِ﴾ مراد ددینه دکفراوجهل تیرې دی، دکفراودجهل طریقې ډیرې دی نوځکه جمع ذکرشوه.

﴿قُلْ أَرَأَيْتَكُمْ﴾ دااتم دلیل عقلي دې علی سبیل الاعتراف من الخصم.

**ترکیب**: همزه داستفهام ده،«رایتَ» فعل فاعل «کم» حرف خطاب دې دلالت کوی په اختلاف دحال دمخاطب باندې،-د رَأَيْتَ سره چه کاف خطاب نه وی متصل شوې نوپه (تاء) کښې به اختلاف اوتغیر راځی : (اَرَاَیْتَ، اَرَاَیْتُمَا، اَرَاَیْتُمْ، اَرَاَیْتُنّ) اوچه کاف خطاب ؤسره متصل شی نو تاء به همیشه مفتوحه وی اوتثنیه جمع کیږی به نه، بلکه په کاف خطاب کښې به اختلاف اوتبدیل راځی نووئیلې به شی : (ارایتکَ، ارایتکُما، ارایتکُم، ارایتکُنّ) نوتاءِ. فاعل دې مرفوع محلاً ،اوکاف لره په اعراب کښې هیڅ مقام نشته دي بلکه داصرف یوحرف دې چه دمخاطب دحال تذکیرتانیث- افرادتثنیة ،جمعیة اظهارکوی، او«رایت» که دروٴیت بصری نه شی یاپه معنی د عرفت سره شی یومفعول غواړی چه هغه محذوف دې،چه «حالکم» دې،اوکه د روٴیت قلبی نه شی نوبیادوه مفعوله غواړی دواړه محذوف وی اوخومفعول ثانی همیشه جمله استفهامیه وی سدمسد، دمفعول ثانی نوتقدیردلته کښې دارنګه دې (ارایتَکم- عبادتکم الاصنام هل تنفعکم) یا (اتخاذکم غیرالله الهاً، هل یکشف عنکم العذاب) اوبعض وائی چه د ارایتکم نه بعد، شرط اوجواب شرط قائمقام دمفعولینودی اودالفظ اکثرمستعملیږی،په معنی مجازی کښې، نوکله په معنی ده تَنَبَّهْ سره وی یعنی،خبرشه دعجیبه خبرې نه لکه ﴿قَالَ أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ﴾ (کهف) اوکله په معنی د(اَخْبِرْنِیْ)سره وی یعنی ماته خبرراکړه دعجیبه خبرې ځکه چه که روٴیت بصری مرادشی نوهغه سبب دعلم دې اوعلم سبب داخباردې نومجازپه دوه واسطوسره شو،اوکه روٴیت علمی وی نوهغه سبب داخباردې نومجازپه یوه واسطه سره شو،نودلته دوه مجازه دی، یوداچه (رُوٴیتٌ) په معنی د اخبار سره دې، بل دا چه همزه استفهامیه چه د طلب د روٴیت لپاره وو نو هغه د طلب د اخبار لپاره دې لیکن ارایتَ همیشه، د حالت عجیبه د اخبار- یااستخبار،دپاره مستعملیږی ارایتَ بغیردکَانَ نه دتلک تعجب په ځائې کښې مستعملیږی اوسره دکَانَ نه د ډیرتعجب په محل کښې استعمالیږی-

حاصل داذي چه نه دمشركينونه تپوس اوكړه چه تاسوچه دشرك مدعيان يئ اودالله تعالى سره شركاء الهه منئ. نوكه چرې په تاسوباند ددنياعذاب راشي ياقيامت راشي نوآيادذي ددفع كولودپاره به تاسوخوك رابلئ؟ آياغيرداالله تعالى نه بل څوك به رابلئ؟ بلكه په دغه وخت كښې به تاسوصرف يوالله بلئ، نومعلومه شوه چه صرف يوالله معبودبرحق دي.

﴿فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُونَ إِلَيْهِ﴾ د «ما» نه مرادعذاب دي ((تدعون اليه)) په معنى د (الى كشفه) سره دي (اى تدعونه الى كشفه) (روح) يعنى هغه عذاب چه دهغې ددفع كولودپاره تاسوالله تعالى ته سوال كوئ نوكه الله اوغواړي نوهغه به دفع كړي اوكه اوغواړي نودفع به ئې نه كړي. الله تعالى ددواړوخبروقدرت لري، اومعبودان باطله دهيڅ قدرت نه لري. ﴿وَتَنسَوْنَ﴾ اى تتركون

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ أُمَمٍ مِّن قَبْلِكَ فَأَخَذْنَاهُم بِالْبَأْسَاءِ

اوبه تحقيق سره [1] ليږلي وو مونږرسولان ډيروامتونوته مخكښې ستا نه پس ونيول مونږهغوئ لره په سختوډ مال

وَالضَّرَّاءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُونَ ۝ فَلَوْلَا إِذْ جَاءَهُم بَأْسُنَا

او مرضونو سره د دې لپاره چه دوئ عاجزى وكړي. پس ولې نه وو كله چه راغې دوئ ته عذاب زمونږ

تَضَرَّعُوا وَلَٰكِن قَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝

چه عاجزى ئې كړې وې ليكن سخت شوزړونه د دوئ اوښائسته كړې وو دوئ ته شيطان هغه عملونه چه دوئ به كول

فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ

پس هركله چه دوئ هير كړو هغه چه نصيحت كړې شوې وو دوئ ته په هغې سره نو را پرانستې مونږ په دوئ

أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ حَتَّىٰ إِذَا فَرِحُوا بِمَا أُوتُوا

دروازې د هرڅيز. ترډې پورې چه كله دوئ خوشحاله شو (تكبر ئې وكړو) په هغه څه چه دوئ ته وركړې شوى وو

أَخَذْنَاهُم بَغْتَةً فَإِذَا هُم مُّبْلِسُونَ ۝ فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِينَ ظَلَمُوا

اونيول مونږدوئ ناڅاپه پس دغه وخت دوئ نا اميده پاتې شو دهرڅيز نه. پس پرې كړې شوې جرړې دهغه قوم چه ظالمان وو

[1] ـ تخويف دنيوى

وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۞

او ټول صفتونه د اُلوهیة خاص الله تعالیٰ لره دی چه پالونکی دخلقو دی

﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَآ﴾ دلته (رُسلاً) مقدر دی ﴿إِلَىٰٓ أُمَمٍ﴾ دلته (فکذّبوا) مقدر دی، اوتخویف دینوی دی چه مخکښو کافرانوته مونږ رسولان رالیږلی وو-لیکن هغوئ تکذیب اوکړو نومونږ په هغوئ باندې ابتلاء امتحان اوکړو، یوځل په عذابونو اوتکلیفونو سره- اوبل واری په نعمتونو راحتونو سره، نوانسان عاقل کله دتکلیفونو نه عبرت واخلی نوعصیان اونافرمانی پریږدی اوکله دنعمتونو نه عبرت واخلی نوشکریه اداکړی اوایمان راوړی؛لیکن دوئ ددواړو نه عبرت حاصل نه کړو نوالله تعالیٰ په هغوئ عذاب استیصال نازل کړو اوبالکل ئې ختم کړل. ﴿بِالْبَأْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ﴾ باسآء مالی تکلیف فقرقحط .ته وئیلې شی او(ضرآء) بدنی تکلیف .مرضونه وغیره نه وئیلې شی. ﴿فَلَوْلَآ إِذْ جَآءَهُم﴾ د (لولا) محل (تضرعوا) دی (ای هلاتضرعوا) تضرع سوال ته وائ په عاجزئ اوتذلل سره،د بلا ، اوعذاب، دفع په دُعا اوتضرع سره کیږی. ﴿وَلَٰكِن قَسَتْ قُلُوبُهُمْ﴾ زړونه ئې په سخت والی مستمرپاتې وو- ﴿وَزَيَّنَ﴾ ،شرک اونورګناهونه شیطان ددوئ په نظرکښې خائیسته ښکاره کړه﴿ فَلَمَّا نَسُوا۟﴾ ای ترکوا-﴿مَا ذُكِّرُوا۟ بِهِۦ﴾ایمان اوتوحید مراد دی ﴿فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ﴾ دادویم قسم امتحان وو چه کومې دخیردروازې په دوئ بندشوې وې هغه خلاصی شوې، نودوئ شکریه ادانه کړه بلکه فرح ئې وُکړه،د﴿ فَرِحُوا۟﴾نه مرادفرح بطر، اوتکبر مراد دی،یعنی دوئ مغرور شو،نوالله تعالیٰ اونیول ،اودوئ تباه شو.

﴿وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ هلاك د کافرانو نعمت او رحمت دی د مؤمنانو لپاره نوځکه (الحمد لله) وه وئیلې شو. حضرت الشیخ رحمه الله فرمائی چه ددې معنی داده چه ددوئ دهلاک نه دامعلومه شوه چه صفات کارسازی، داُولوهیة، صفات، صرف الله تعالیٰ لره ثابت دی،که چرې ددوئ معبودان متصرف،مشکل کشاوې، نودوئ به ئې بچ کړی وې.

قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَخَذَ اللّٰهُ سَمْعَكُمْ وَأَبْصَارَكُمْ وَخَتَمَ عَلَىٰ

نه وه وایه ' وګورئ ،[۱] خبر راکړئ که واخلی الله تعالیٰ غوږونه ستاسو او نظرونه ستاسو او مهر ولګوی په

۱- نهم دلیل عقلی په توحید علی سبیل الاعتراف من الخصم.

قُلُوْبِكُمْ مَّنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَأْتِيْكُمْ بِهٖ ۗ اُنْظُرْ كَيْفَ

زړونو ستاسو نو څوك دي بل داسې رب سِوى د الله تعالى نه چه راوړي (درکړي) تاسوته دا څيزونه. وګوره څنګه

نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُوْنَ ۞ قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ

قسم قسم بيانوو مونږ دليلونه بيا هم دوئ مخ اړوى د هغې نه وه وايه [1] خبر راکړئ کچرې راشى تاسو ته عذاب

اللّٰهِ بَغْتَةً اَوْ جَهْرَةً هَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الظّٰلِمُوْنَ ۞

د الله ناڅاپه (د شپې) يا ښکاره (د ورځې) نو څوك به هلاکولې شى؟ پدې.عذاب سره سِوى د قوم ظالمانو نه

﴿ قُلْ اَرَءَيْتُمْ ﴾ دانهم دليل عقلى على سبيل الاعتراف من الخصم دې. اومراددسمع اوابصارنه ياظاهرى سمع اوبصردى ياباطنى دى ﴿ وَخَتَمَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ ﴾ ددينه مرادسلب استعداددې.يادقلوب نه مرادعقول دى يعنى كه چرې الله تعالى تاسو، کانړه- رانده- ليونى کړى. نوبل به څوك وى چه تاسو روغ کړى، اوغوګونه، سترګى،عقلونه، درکړى

﴿ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ ﴾ تصريف په مختلف عباراتو، اومختلف اساليبوسره يومضمون ذکرکولوته وائى. نوالله تعالى توحيداورسالت په مختلف اساليبواودلائلو عقليونقليۆ سره ذکرکوى. ﴿ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُوْنَ ﴾ (ثم) داستبعاددپاره دې، (يَصْدِفُونَ) په معنى داعراض اومخ اړولوسره دې ﴿ قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ ﴾ دا اعاده د اتم دليل عقلى ده سره دزيادت نه چه بغتةً جهرةً دې.د اَرَاَيتَ نه بعداستفهام ضرورراځى، كله مذكور وى اوكله مقدروى، دلته مقرردې چه (فمن يَهلکُ بِهِ، فمن يَدفعهُ) ﴿ هَلْ يُهْلَكُ ﴾، يامستقله جمله ده يادمحذوف، (فمن يهلک به) جواب دې معنى ئ داده چه هلاک مختص دې په کافرانوپورې.

وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ۚ فَمَنْ اٰمَنَ وَاَصْلَحَ

اونه ليږو مونږ [2] رسولان مګر زيرې ورکوونکى او ويروونکى، پس چا چه ايمان راوړو اونيك كارونه ئې وکړل

---

۱ - اعاده د دليل سابق.

۲ - جواب د سوال مقدر

فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝ وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِاٰيٰتِنَا

پس نه به وی هیڅ یره په دوئ او نه به دوئ غمژن وی . او هغه کسان چه تکذیب کوی [1] زمونږ د آیاتونو

يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ۝ قُلْ لَّآ اَقُوْلُ لَكُمْ

وبه رسی دوئ ته عذاب په سبب د دې چه دوئ نافرمانی کوله. وه وایه [2] نه وایم زه تاسو ته

عِنْدِيْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّيْ مَلَكٌ

چه ما سره دی (خما په اختیار کښې دی) خزانې د الله. او نه پوهیږم په غیب باندې. او نه وایم زه تاسو ته چه زه فرشته یم.

اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ ۚ قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ۚ اَفَلَا تَتَفَكَّرُوْنَ ۝

زه نابعدار ی نه کوم مگر د هغې چه وحی ئې کیدې شې ماته. وه وایه آیا برابر دي ړوند او لیدونکی. پس آیا فکر نکوئ تاسې

﴿ وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا ﴾ داجواب دسوال دې یعنی که چرې ته رسول ئې نوبیامونږ ته زمونږ فرمائشی معجزات ولې نه راوړې- لکه مخکښې تیرشو چه ﴿ وَقَالُوْا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ ﴾ . یابه مونږ باندې عذاب ولې نه راولی- حاصل دجواب دادې چه معجزات راوړل یاعذاب راوستل دانبیاؤ په اختیارکښې نه وی بلکه هغوئ بشارت انذارورکوی دثواب اوعذاب کرونه بیانوی ﴿ فَمَنْ اٰمَنَ ﴾ بشارت دې ﴿ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا ﴾ تخویف دې ﴿ يَمَسُّهُمْ ﴾ مس په معنی درسیدلو ، اوملصق کیدلوسره دې یعنی جوخت به شی عذاب په دوئ پورې

﴿ قُلْ لَّآ اَقُوْلُ لَكُمْ ﴾ په دې آیت کښې، د پنځم شپږم اوم سوال جوابونه ذکرکیږی. دځلوروسوالاتوجوابونه مخکښې تیرشویدی دلته ددرې سوالاتوجوابونه ذکرکیږی ،دپنځم سوال حاصل دادې چه که چرې ته نبی وې مالداربه وې،ستا ملگری متبعین به مالداروې. لکه ﴿ وَقَالُوْا لَوْلَا نُزِّلَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيْمٍ ۝ ﴾ ، ﴿ فَلَوْلَآ اُلْقِيَ عَلَيْهِ اَسْوِرَةٌ مِّنْ ذَهَبٍ ﴾ - دشپږم سوال حاصل دادې چه ته پیغمبرئې نومونږ ته دغیبوڅیزونوخبرراکړه په شام کښې دمیوؤدغلې قیمت راته اوخایه، پټې خزانې راته اوخایه: داوم سوال حاصل دادې چه ته نبې

[1] . تخویف أخروی .

[2] . جواب د سوال نمبر (۵) او سوال نمبر (۶) او سوال نمبر (۷)

ئې نو خوراک څکاک ولې کوې.بیاخومونږ اوته برابرشو ، جوابونه په ترتیب دادی ‹۵› چه زه دعوی دنبوت کوم-اومالداری اوبادشاهئ دعوه نه کؤم چه ماسره خزانې ضروری ئی اوزماملګری مالداروی ‹۲› زه دالوهیت دعوی نه کوم چه علم غیب به راته حاصل وی. زه عالم الغیب نه یم‹۷› زه د مَلَکِیَتْ ‹فرشته والی› دعوه نه کوم چه خوراک سکاک به نه کوم، بلکه دنبوت دعوی کوم. نبوت سره بشریت مناسب دې مفسرین وائی چه په دې آیت کښې دمنصب رسالت په لوازماتو ، روښنی اچولې شویده څکه چه منکرینوبه فرمائیشی معجزات غوښتل اودعناد په وجه به ئې په مختلف قسمونوسوالات کول، چه قیامت به کله راځی ، داڅنګه رسول دې چه طعام خوری بازارونوکښې ګرځی غرونه دسروزروکړه وغیره، نوپه دې آیت کښې وضاحت اوشوچه دنبی دپاره داضروری نه ده چه دالله تعالی تولې خزانې به دده په قبضه کښې وی چه هرکله دده نه څوک دڅه شئ طلب اوکړی نوخامخابه هغه کیږی یابه ئې په تولومغیباتو. خواه که دفرائضودرسالت سره تعلق لری یانه، به مطلع اوخبرداروی . یابه دبشری لوازماتونه برائت کوی، نوهرکله چه داامور دنبوت اورسالت دلوازماتونه نه دی نوداقسم سوالونه کول او دغه اموردتکذیب اوتصدیق معیارګرځول صحیح نه دی. بلکه محض عناددې، ﴿ خَزَآئِنُ اللّٰهِ ﴾ ددینه مرادمقدورات دالله تعالی دی،یاترینه مرادمرزوقات دی-یاعبارت په حذف دمضاف سره دې ‹ای خزائن رزق الله›.

﴿وَلَآ أَعۡلَمُ ٱلۡغَيۡبَ ﴾ په دې کښې دوه احتماله دی یوداچه داعطف دې په ‹‹لااقول›› باندې نودقُل ماتحت دې یعنی ‹قل لااعلم الغیب› دااعلان اوکړه چه زه عالم الغیب نه یم. دلته کښې نفی داصل فعل اوشوه اوپه ماقبل ‹لااقول لکم عندی خزائن الله› اومابعدکښې ‹ وَلَآ اقول انی ملک› نفی دقول اوشوه څکه دغه دواړه دمشاهدې سره تعلق لری یعنی دامشاهده ده چه دنبی صلی الله علیه وسلم سره خزانې نشته دې اودامشاهده ده چه فرشته نه ده. نوهلته نفی دقول کافی وه. البته په علم غیب کښې احتمال ووچه نبی ته دِې حاصل وی نوددې وجه نه د اصل فعل نفی اوشوه. اودویم احتمال دادې چه داعطف دې په محل د ‹عندی خزائن الله› باندې، او ‹لا› زاید دې دتاکیدنفی دپاره یا ‹لا› زائد نه دې خود‹‹لا›› نه روستواقول مقدردې ‹لا اقول اعلم الغیب›. بناپه دواړو تقدیرونومطلب دکلام دادې چه ما خو دا دعوه نه ده کړې چه زه عالم الغیب یم. نو ناسو چه داسې سوالات کوئ چه قیامت به کله وی. په شام کښې به دمیزو.

غلوڅه قيمت دي، يا داسې سوال کوئ، چه (اخبرنا بمصالحنا ومضارنا في المستقبل) يعنی په مستقبل کښې چه کوم مفيد او مُضر ،اشياء دی مونږ ته دهغې خبراکړه اوبياچه ددې قسم سوالاتو ،جواب درنکړې شی نوتاسو قدح په رسالت کوئ نوداقسم سوالات اوددې ،جواب مطالبه ،نامناسبه، اوبې محله سوالات اومطالبه ده. ځکه داسې قسم سوالات دهغه ځانه کول پکاردی چه دعوه دعلم غيب ئې کړې وی او څه دغه دعوه نه کوم نوداقسم سوالات خمانه کول بې محله اومحض دضداوعنادپه وجه دی. دآيت صحيح مطلب داوؤ چه بيان شو

اواهل بدعت وائی چه «ولااعلم» الغيب په (عندی خزائن الله) باندې عطف دې يعنی صرف دويم احتمال مرادکوی، اودآيت مطلب داسې بيانوی چه زه په ژبه دانه وايم چه ما سره د الله تعالی ټولې خزانې دی اګر که په واقع اونفس الامر کښې ما سره تمامې خزانې او اختيارات دی.او زه داسې نه وايم چه په غيب عالم يم اګرکه په واقع کښې په تماتو مغيباتو عالم يم.. اوداخبره باطله ده، داتفسيرنه دې بلکه تحريف دې ځکه چه مطلب به داشی چه کومه خبره په واقع اونفس الامرکښې ده هغه زه نه وايم، بلکه دهغې خلاف وايم. بله داچه بيا به د

﴿وَلَآ أَقُولُ لَكُمْ إِنِّى مَلَكٌ﴾ هم دغه معنی وی چه زه دانه وائم چه زه فرشته يم. اګرکه په واقع اونفس الامرکښې فرشته يم، د ((لااعلم الغيب)) نه داهم معلومه شوه چه دکوموامورو علم چه نبی ته په ذريعه دوحی سره ورکړې شی ياولی ته په ذريعه دالهام سره ورکړې شی هغې ته علم غيب نشی وئيلې نبی صلی الله عليه وسلم ته دډيرو مغيباتو علم ورکړې شوېدې اودمغيباتو نه ئې خبرورکړې دې اوبياهم ورته حکم کيږی چه اووايه چه زه په غيب نه يم عالم- نوداځکه چه نبی صلی الله عليه وسلم ته دمغيباتوعلم په ذريعه وحی سره ورکړې شوې دې اوکوم علم چه په ذريعه دوحی، ياالهام، يابل څه ذريعې سره حاصل شی نوهغې ته علم غيب په اصطلاح دقرآن اوپه شرع کښې نشی وئيلې ،بلکه علم غيب هغه دې چه په اسبابو سره نه وی ،بلکه ذاتی وی، اوپه تماومغيبات باندې وی،اودجناب سيدالکونين حضرت محمدصلی الله عليه وسلم علمی کمالات بلکه تمام کمالات دټماومخلوقاتونه زيات دی اوپه مخلوق کښې ورسره هيڅ څوک برابر نشته ، خوبياهم هغه دالله تعالی دطرف نه ورکړې شوی (عطائی) دی- اودالله جل جلاله سره برابر نه وو ، شعر :

دع ما ادَّعَتْهُ النصارٰی فی نبيّهم — واحکُم بماشئتَ مدحًا فيه واحتکم
لايمکن الثـناءُ کما کان حـقُّه — بعداز خدابزرګ توئ قصه مختصر

﴿إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ﴾ يعنى مادالوهيت دعوه نه ده كړي حتى چه تاسوته ستاسو مقترحات، معجزې ښكاره كړم- بلكه مادرسالت دعوه كړيده اودوحي اتباع كوم- بعض علماء ددې آيت نه اثبات كوي چه نبي صلى الله عليه وسلم اجتهادنه كولو، ليكن تحقيق دادې چه دنبي صلى الله عليه وسلم به چه اجتهاد ته ضرورت راغې نواجتهاد به ئې كولو- لكه ډيرواحاديثونه معلوميږي، البته كه چرې په اجتهادكښې به ئې غلطي راغله نوپه هغې به برقرارنشوپرېښودلې نودهغې اتباع يعنى اجتهادپه حقيقت كښې اتباع دوحي وه، ﴿قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ﴾ يعنې حضرت محمد صلى الله عليه وسلم اګركه بشردې اوبشرى ضروريات، دخوراك سكاك ،ازواج وغيره، لرى خودنورو، بشرو، انسانانونه ئې ،دزمكې اسمان فرق دې، انسانى قوتونه دوه قسمه دي، علمي عملي، دعلمي قوتونوپه اعتبارسره دنبي اوغيرنبي په مينځ كښې دراندهٔ اوروغ په شان فرق دې دنبي دزړه سترګې هروخت دمرضيات الهيۀ او د تجليات ربّانيو لپاره پرانستلې وي،او د عملي قوتونو حال ئې دادې چه په هر حركت اوسكون كښې دالله تعالى دمرضياتو، تابع اومنقادوي، ﴿أَفَلَا تَتَفَكَّرُونَ﴾ آيا، تاسو دومره فكرسوچ نه كوئ چه حق دباطل نه جدا كړئ، ايمان راوړئ.

| وَأَنذِرْ بِهِ الَّذِينَ يَخَافُونَ أَن يُحْشَرُوا إِلَىٰ رَبِّهِمْ |
|---|
| او ويره وه ‹نصيحت وكړه› (١) په دې قرآن سره هغه كسانو ته چه يريږي دينه چه جمع كولې به شي خپل رب ته |
| لَيْسَ لَهُم مِّن دُونِهِ وَلِيٌّ وَلَا شَفِيعٌ |
| نه به وى لپاره د دوئ ماسوى د الله تعالى د ذات نه كارساز اونه په غير د اذن د ده نه سفارش كوونكې |
| لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ۝ وَلَا تَطْرُدِ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ |
| لپاره ددې چه دوئ بچ شي‹دعذاب نه› اومه شړه هغه كسانو لره چه بلي دوئ رب خپل صبا اوبيګا،غواړي دوئ |
| وَجْهَهُ ۖ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِم |
| رضا د الله تعالى، نشته دې په تا باندې د حساب د دوئ نه هيڅ څه، او نشته دې د حساب ستا نه په دوئ باندې |

١ - زجر

مِنْ شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُونَ مِنَ الظَّلِمِينَ ۝ وَكَذٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُمْ

هيڅ څه. چه نه وشړې دوئ لره (مه شړه دوئ لره) کنې شې به نه د ظالمانو نه او دغه شان آزمايو مونږ څينې

بِبَعْضٍ لِّيَقُولُوا أَهٰؤُلَاءِ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْهِم

په څنو سره. عاقبت دا چه وه وائي منکرين آيا دا هغه کسان دي چه احسان کړې دې الله تعالى په دوئ باندې

مِّنْ بَيْنِنَا ؕ أَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَعْلَمَ بِالشّٰكِرِينَ ۝

د مينځ زمونږ نه. آيا نه دې الله تعالى ښه پوهه په شکر کوونکو باندې

﴿ وَأَنذِرْ بِهِ الَّذِينَ ﴾ دا تخويف اخروي دې. ﴿ الَّذِينَ يَخَافُونَ ﴾ نه مراد يا هغه مؤمنان دي چه قيامت مني خو عملي کمزوري پکښې وي يا ترينه مراد اهل کتاب يا هغه مشرکان دي چه قيامت مني. او په دې آيت کښې اشاره ده چه انذار هغه چاته نفع ورکوي چه په زړه کښې ئې خوف د قيامت وي، نو ايمان په قيامت باندې ذريعه ده دپاره د نفع اخستلو د قرآن نه . ﴿ لَيْسَ لَهُم مِّن دُونِهِ وَلِيٌّ وَلَا شَفِيعٌ ﴾ په دې کښې اشاره ده چه که يو کافر او مشرک صرف خوف او يقين د آخرت لري. لکه اهل کتاب وغيره نو صرف د قيامت منلو په وجې سره نه د هغه مغفرت کيدې شي نه د هغه دپاره شفاعت، معتزله د شفاعت نه منکر دي او په دې آيت سره دليل نيسي. ځکه چه دا آيت صريح دې په دې کښې چه د الله تعالى د ذات نه ماسوى بل څوک ولي. کارساز نشته دې او بل څوک شفاعت کونکې هم نشته دې، اهل سنت والجماعت وائي چه شفاعت حق دې د مؤمنانو دپاره، ډيرنصوص په دې دلالت کوي- او **جواب** د دې آيت دا دې چه د لته تقدير دې، ((ليس لهم من دون ذاته ولى ولامن دون اذنه شفيع)) د لته نفي د شفاعت بلا اذن ده. او د مطلق شفاعت نفي نه ده، ﴿ وَلَا تَطْرُدِ الَّذِينَ ﴾ دا زجر دې، روايت دې چه رؤساؤ د مشرکينو نبي صلى الله عليه وسلم ته اووئيل چه ستا په مجلس هغه کسان ناست وي چه هغه زمونږ غلامان وو. او خوار حقير خلق دي نو د هغوئ سره په يو ځائې کيناستلو مونږ ته شرم راځي نو ته دوئ د خپل مجلس نه اوشړه نو مونږ به ستا سره کينو او ستا خبره به واؤرو- نو نبي صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ((ما انا بطارد المؤمنين)) زه خو مؤمنان د خپل مجلس نه نه شړم. نو دوئ اووئيل چه بيا داسې اوکړه چه کله چه مونږ ستا حضورته راشو، نو دوئ په دغه وخت کښې لرې

کوه. نوحضرت عمررضی الله عنه اووئیل چه په دې کښې څه حرج نشته دې. داغرباء خوهم کامل ایمان والادی، دوستان دی، که دڅه وخت دپاره دوئ جداشی. اوغنیان راسی نوکیدې سی چه ایمان راوړی نودنبی صلی الله علیه وسلم په زړه کښې هم داسې اراده راغله. نودا آیت نازل شو. اوحضرت عمررضی الله عنه معذرت پیش کړو. اودنبی صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضرشو نوروستنې آیت نازل شو. ﴿يَدْعُونَ رَبَّهُم﴾ ددینه مرادبلنه ده یعنی فقط دخپل رب بلنه کوی بل چاته څڼه نه وهی په وخت دتکلیف اومصیبت کښې .یاترینه مراد مونځ دې یاترینه مرادذکردې. یاتلاوت دقرآن دې. ﴿يُرِيدُونَ وَجْهَهُ﴾ داحال دې دضمیرديَدْعُونَ نه. ددینه مرادرضاء الهی اواخلاص دې، اوپه ﴿بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ﴾ کښې اشاره ده دوام ته. یعنی ددوئ په عبادت کښې دوام هم دې اواخلاص هم دې ﴿مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِم﴾ دادمشرکانودقول جواب دې چه دوئ نبی صلی الله علیه وسلم ته اووئیل چه غریبانو په تاباندې حقیقی ایمان نه دې راوړې. حاصل دجواب دادې چه ظاهری علامات د دوئ دَاخلاص دی اودباطن حساب کول ئې په تاباندې نشته دې ﴿وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِم مِّن شَيْءٍ﴾ دا دتاکیددپاره ذکرکیږی. ځکه نبی صلی الله علیه وسلم دأمت دپاره مربی دې اودمربی دپاره دخپلو ما تحتانو د احوالودتفتیش کولواحتمال شته دې لیکن دَ دې برعکس دماتحت دپاره مربی داحوالودتفتیش کولوهیڅ احتمال نشته دې نودلته محتمل دمتیقن سره برابرکړې شو نوتاکیدحاصل شو. یعنی لکه دادویم احتمال چه څرنگه منتفی دې نودغه شان اول هم منتفی دې.یادحساب نه مراد. کفالت درزق دې(قرطبی) یعنی ددوئ دررزق کفالت اوبوج په تانشته دې اوستادرزق بوج په دوئ باندې نشته دې، ستاسوپه مینځ کښې تعلق صرف دالله تعالی اودایمان اوعمل صالح په وجې سره دې ﴿فَتَطْرُدَهُمْ﴾ دامنصوب دې جواب دنفی دې (ای ماعلیک من حسابهم فتطردهم) یعنی نشته دې په تاباندې حساب ددوئ چه اونې شړې. اول سبب دې دویم مسبب دې اوچه سبب منتفی وی نومسبب هم منتفی وی نوچه حساب نشته دې نوطردهم نشته دې﴿فَتَكُونَ مِنَ الظَّالِمِينَ﴾فتکون منصوب دې جواب دنهی دې ((ای لاتطرد))، ((فتکون من الظلمین)) یعنی دوئ مه شړه ورنه دظالمانونه به شې، نودلته تقدیم تاخیردې اصل دارنگه وو- (لاتطردفتکون من الظلمین ماعلیک من حسابهم فتطردهم) (قرطبی) زی محشری

وائي چه جائزده چه (فتكون من الظلمين) عطف شي په ((فتطردهم)) باند دقبیلې دعطف دمسبب نه په سبب باندې ځکه طرد شرل سبب دي كون من الظلمين دپاره. اوطردخومنتفی دي په وجه دانتفاء دسبب سره نوکون من الظلمين هم منتفي دي. دآیت مطلب دانه دي چه نبی صلی الله علیه وسلم طرد. شړل کړیدی اوظلم ئې کړیدې بلکه مطلب دادې چه طردنې نه دي کړی او نهی یعنی په طریقه دتعلیق سره وئیلې شوی دی که چرې دوئ دي اوشړل نو دظالمانونه به سی. اومفسرین وائي چه نبی صلی الله علیه وسلم اراده کړې وه ددوئ دلرې کولو دمجلس نه دلگ وخت دپاره. لیکن دادپاره دطمع په اسلام دکفارو. اودااجتهادی خطائی وه نوپه دي وجه نهی راغله اومحفوظ شو دخطاء اجتهادی نه هم. امام رازی رحمه الله وائی چه په قرآن کښ چه د انبیاؤ په حق کښ لفظ د ظلم استعمال شوې وی نوهغه په معنی د خطاء اجتهادی اوخلاف اولی سره وی. نبی صلی الله علیه وسلم ددې خطاء اجتهادی نه هم محفوظ اوساتلې شو. ﴿ وَكَذَٰلِكَ فَتَنَّا ﴾ دااوله وجه دانکاردمشرکینوده حاصل ئې دادې چه مونږ ددولتمندومشرکینو ازمائیش په غریبانو. مسلمانانوسره کړیدې، چه مشرکین ددولت په نشه کښې مست دی، صحابؤ رضی الله عنهم ته خوارذلیل گوری اوتحقیرئې کوی چه آیادوئ څه رنګه دالله تعالی دفضل لائق دی، نوځوک چه دصحابؤکرامورضی الله عنهم اودالله تعالی ددوستانوتحقیرکوی نوهغه دایمان اودهدایت ددولت نه محرومیږی، ﴿وَكَذَٰلِكَ ﴾کښې کاف دتشبیه دپاره نه دي. لکه صاحب دروح المعانی وائی (والكاف مقحمة بمعنى ان التشبيه غيرمقصود منهابل المقصودلازمة الكنائ اوالمجازی وهوالتحقق والتقرر -اهـ) حضرت شیخ رحمه الله ددې نه تعبيركوی چه كاف للبيان الكمال.دي .لکه محاوره ده چه داسې کارنامې خومونږ کوو. نود (کذالک) معنی داده چه دازمونږ دقدرت کرشمې ،اوکمالات دی، چه مونږ په دوئ امتحان کړې دې . اولام په ﴿لِيَقُولُوا ﴾ کښې دعاقبت دې، یعنی انجام کارداشو چه دوئ توهین اوتحقیر دصحابؤاوکړونودایمان نه محروم شو. ﴿أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَعْلَمَ بِالشَّاكِرِينَ ﴾یعنی الله تعالی زړونوته گوری. ظاهرصورت، مالدارئې ته نه گوری

وَإِذَا جَاءَكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِنَا فَقُلْ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ

اوكله چه راشي تاته هغه کسان چه ایمان لری په آیتونو زمونږ پس ووایه چه سلام دې وی په تاسو (د طرفه د الله نه)

كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَىٰ نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ۙ أَنَّهُ مَنْ عَمِلَ مِنكُمْ سُوٓءًا بِجَهَالَةٍ

لازم کړي دي رب ستاسو په خان خپل رحم کول (هغه دا چه) چا عمل کړي وی ستاسو نه بد عمل په ناپوهئ سره

ثُمَّ تَابَ مِن بَعْدِهِۦ وَأَصْلَحَ فَأَنَّهُۥ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝ وَكَذَٰلِكَ

بیا توبه وباسی روستو د دینه او نیك عمل کوی، پس یقینًا هغه بښونکې دی، مهربان دی اودغه سی همیشه

نُفَصِّلُ الْأٓيَٰتِ وَلِتَسْتَبِينَ سَبِيلُ الْمُجْرِمِينَ ۝

تفصیل کوؤ مونږ [1] د آیتونو د توحید، او لپاره د دې چه ښه ښکاره شی لار د مجرمانو

﴿ وَإِذَا جَاءَكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِـَٔايَٰتِنَا ﴾ دامتعلق دې د ((ولاتطرد الذين – الخ)) سره. نوعلی سبیل الترقی وئیلې کیږی چه دوئ خودخپل مجلس نه مه جدا کوه بلکه چه کله دوئ ستامجلس ته راشی نوخما سلام ورته اوویه، او دابشارت ورته ورکړه چه الله تعالی په خپل خان باندې لازم کړیدې رحمت کول په تاسو. او که ستاسو نه څه ګناه دناپوهئ سره شوې وی نوهغه به هم معاف کوی.

**فائده** دادصحابه کراموشان دې، چه الله تعالی په خپل کلام ازلی کښې ذکرکړیدی، اوحقه خبره داده چه دصحابه کرامورضی الله عنهم شان دقرآن نه معلومیږی نه دتاریخی روایاتونه. نوبناپه دې توجیه باندې مراددد (الذین یؤمنون – الخ) نه هغه کسان دی چه نبی صلی الله علیه وسلم منع کړې شوده‌غوئ دطرد نه، اودویمه توجیه په دې آیت کښې دا ده چه داپ. حق دحضرت عمررضی الله عنه کښې نازل دې، کله چه ئې مشوره ورکړه اوبیاآیت نازل شو ((ولاتطرد الذین)) نوعمررضی الله عنه ډیرنادم شواودنبی صلی الله علیه وسلم حضورته راغې معذرت ئې پیش کړونوداآیت نازل شو ﴿ فَقُلْ سَلَٰمٌ عَلَيْكُمْ ﴾ مرادترینه دادې چه خما سلام دوئ ته اوواپه. یامراددادې چه ته پخپله دوئ ته سلام اوواپه. **نوسوال** واردیګی چه سنت طریقه داده چه راتلونکی به سلام وائی. **جواب** دادې چه دا صحابو خصوصیت دې. اوددینه دامعلومه شوه چه هرکله داعی دحق ته څوک سپکې سپورې اووائی اوتحقیر اوتوهین ئې اوکړی نوهغه ته تسلی ورکول اوبشارت ورکول پکاردی.

﴿ وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْأٓيَٰتِ ﴾ دادویمه وجه دانکارده، یعنی مونږ حق په تفصیل او وضاحت

---

[1] ، رسمه، چه

سره بيانوؤ- اوددوئ دعقائدو شركيؤ ردپه وضاحت سره كوؤ، نودوئ ضدكوى اوانكاركوى ﴿وَلِتَسْتَبِينَ﴾ په دې واؤ كښې درې قوله دى : (۱) دا واؤ زائد دې او ﴿وَلِتَسْتَبِينَ﴾ علت دې دماقبل دپاره(۲) واؤعاطفه دې اومعطوف عليه ورته په لفظ كښې مناسب مقدردې (اى لِتَستبِينَ سبيلَ المؤمنينَ وَلِتستبينَ سبيلَ الْمُجرمِينَ)، (۳) واؤعاطفه دې معطوف عليه ورته په لفظ كښې نشته دې بلكه داعطف دې په مضمون دكلام سابقه باندې .

قُلْ إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ الَّذِينَ تَدْعُونَ

وه وايه بيشكه زه منع كړې شوې يم [1] د دينه چه عبادت وكړم دهغه معبودانو چه تاسو ئې عبادت كوئ

مِنْ دُونِ اللَّهِ ۚ قُلْ لَا أَتَّبِعُ أَهْوَاءَكُمْ ۙ قَدْ ضَلَلْتُ

چه ماسوئ دالله تعالى نه دى، ته وه ايه چه زه تابعدارى نكوم [2] دخواهشاتو ستاسو، په تحقيق سره گمراه به شم زه

إِذًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُهْتَدِينَ ﴿٥٦﴾ قُلْ إِنِّي عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِنْ رَبِّي

دغه وخت، او نه به يم زه د هدايت والؤ نه.　وه وايه بيشكه زه په ښكاره دليل باندې يم [3] د طرف د خپل رب نه

وَكَذَّبْتُمْ بِهِ ۚ مَا عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ ۚ

او تاسو تكذيب كوئ د هغې، نشته دې ما سره هغه څه (عذاب) چه تاسو ئې په تلوار سره غواړئ هغه.

إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ۖ يَقُصُّ الْحَقَّ ۖ وَهُوَ خَيْرُ الْفَاصِلِينَ ﴿٥٧﴾ قُلْ

ندې اختيار مگر الله تعالى لره دې، بيانوى الله تعالى حق لره، اوهغه ډير غوره فيصله كوونكې دې　وه وايه

لَوْ أَنَّ عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ لَقُضِيَ

كچرې وې ما سره [4] (خما په اختياركښې) هغه شې چه تاسوئې په تلوارسره غواړئ هغه نوخامخا به فيصله كړې شوې وې

---

1- خلورمه طريقه ، تبليغ.
2- پنځمه طريقه ، تبليغ.
3- شپږمه طريقه ، تبليغ.
4- اوومه طريقه، تبليغ.

الْأَمْرُ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ ۗ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالظَّالِمِينَ ۝

د کار په مینځ څما او ستاسو کښې. او الله تعالی ښه عالم دی په ظالمانو

﴿قُلْ إِنِّي نُهِيتُ﴾ داځلورمه طریقه دتعلیم اودعوت ده. یعني فعل خپل ځان ته منسوب کول مخاطبین اراده کول-﴿قُل لَّا أَتَّبِعُ أَهْوَاءَكُمْ﴾ داپنځمه طریقه ددعوت ده. ﴿قُلْ إِنِّي عَلَىٰ بَيِّنَةٍ﴾ داشپږمه طریقه ددعوت ده چه ماسره حقیقة دتوحیداورسالت باندې واضحه دلائل موجوددی تاسو. دضددوجې نه انکارکوئ اوتکذیب کوئ-﴿قُل لَّوْ أَنَّ عِندِي﴾ داومه طریقه دتبلیغ ده اوجواب دسوال دې هغه داچه که نه برحق نبی ئې نوزمونږ دانکارپه وجې په مونږباندې عذاب راوله. **جواب** اوشوچه عذاب نازلول څماپه اختیارکښې نه دی که چرې وې نوزمااوستاسوپه مینځ کښې به فیصله شوې وې.

وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ ۚ وَيَعْلَمُ مَا

او په نیز د الله تعالی دی خزانې د غیب[1]، نه پوهیږی په هغې مګر صرف الله تعالی. او پوهیږی په هر هغه څه

فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۚ وَمَا تَسْقُطُ مِن وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا

چه په وچه کښې دی او د دریاب کښې دی، او نه را غورزیږی هیڅ پاڼړه مګر الله تعالی عالم دې په هغې

وَلَا حَبَّةٍ فِي ظُلُمَاتِ الْأَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَلَا يَابِسٍ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ ۝ وَهُوَ الَّذِي

اونه پریوځی یوه دانه په تیرو دزمکه کښې اونه لونداونه وچ مګرپه کتاب واضح کښې دی . او الله تعالی هغه ذات دې[2]

يَتَوَفَّاكُم بِاللَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُم بِالنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ

چه قبض کوی روح ستاسې د شپې اوپوهیږی په هرهغه څه چه تاسوئی کوئ د ورځې. بیا راپورته کوی تاسو لره

فِيهِ لِيُقْضَىٰ أَجَلٌ مُّسَمًّى ۖ ثُمَّ إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ

په بله ورځ کښې لپاره د دې چه پوره کړې شی نیته مقرره. بیا خاص د هغه مخې ته ده پیشی ستاسو.

---

١ - لسم دلیل عقلی

٢ - یوولسم دلیل عقلی

ثُمَّ يُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ۝

بیا به خبر کړی تاسو په هغه عملونو چه تاسو به کول

﴿وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ﴾ دالسم دلیل عقلی دی په توحیدباندې- اوجواب دسوال دی هغه راچه که عذاب نشې راوستلې نوداخواووایه چه کله به راځی. **جواب** دغیب علم الله تعالی سره دی ماسره نشته دی، اوتقدیم د «**عِنْدَهُ**» دپاره دحصراختصاص دی او «**مفاتح**» یاجمع دمفتاح ده یعنی صرف الله سره دی کُنجیانی دخزانودغیب. یاجمع دمفتح ده په معنی دخزانوسره یعنی صرف الله تعالی سره دی خزانې دغیبو. ﴿وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ﴾ قاعده کلیه ده او ﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ﴾ ددغه قاعدې کلیې جزئیات دی.موجودات دوه قسمه دی. اعیان،اعراض، اواعیان یوبری دی اوبل بحری دی اواعراض هم مختلف قسمونه دی- لکه حرکات، صفات، رطوبت یبوست وغیره دلته دټولوذکردې. یعنی په تمامو موجوداتو اودهغوئ په تمامواحوالو، تغیراتوباندې عالم صرف الله تعالی دی اود﴿كِتَٰبٍ مُّبِينٍ﴾ نه مرادیاعلم دالله تعالی دی یالوح محفوظ دی﴿وَهُوَ الَّذِي يَتَوَفَّىٰكُم﴾ دایولسم دلیل عقلی دی په توحید، اوتخویف اخروی دی دتوفّی نه مرادقبض دروح ممیزه دی اوقیدد ﴿بِالَّيْلِ﴾ په اعتباردا کثریت سره دی نودانسان خوب اوبیدارکیدل دالله تعالی دقدرت لویه نشانه اودبعث بعدالموت نمونه ده ﴿ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيهِ﴾ ضمیردفیه نهارأخری ته راجع دی تیرشوی نهارته نه دی راجع،﴿لِيُقْضَىٰٓ أَجَلٌ﴾ شپه روزتیریدلوسره دانسان دمرگ مقرره شوې نیټه پوره کیږی ﴿ثُمَّ إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ﴾ دمرگ نه روستو، بیادالله تعالی حضورته پیش کیدل دی اودا عمالو حساب کتاب دی.

وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَحَدَكُمُ

او دی غالب دی په خپلو بندگانو. او رالیږی په تاسو باندې ساتونکی ملائك. تر هغې چه کله راشی بو تن ته ستاسو نه

الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُونَ ۝ ثُمَّ رُدُّوٓا

مرگ، روح قبض کړی د هغه نه ملائك زمونږ او دوئ هیڅ کوتاهی نه کوی په حکم د الله کښې بیا به پیش کړی شی دوئ

إِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ ۚ أَلَا لَهُ الْحُكْمُ ۚ وَهُوَ أَسْرَعُ الْحٰسِبِيْنَ ۝

الله تعالى ته چه مالك د دوئ دې ، حق دې ، خبردار، خاص هغه لره اختيار دې اوهغه زر حساب كوونكې دى

قُلْ مَنْ يُّنَجِّيْكُمْ مِّنْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ تَدْعُوْنَهٗ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ۚ

ته وه وايه [1] څوك بچ كوى تاسو د تيرو (سختو) د وچې او د دريابونونه چه بلئ تاسوهغه په عاجزئ سره او په پټه سره

لَئِنْ أَنْجٰىنَا مِنْ هٰذِهٖ لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ۝ قُلِ اللّٰهُ يُنَجِّيْكُمْ

(وايئ تاسو) كچرې بچ ئې كړو مونږ د دې مصيبت نه . خامخا شو به مونږ د شكر گذارونه وه وايه [1] الله به بچ كړى تاسو لره

مِّنْهَا وَمِنْ كُلِّ كَرْبٍ ثُمَّ أَنْتُمْ تُشْرِكُوْنَ ۝

د هغې نه او د هر غم نه بيا به هم تاسو شرك كوئ

﴿ وَهُوَ الْقَاهِرُ ﴾ دا تخويف دې، قاهِرمعنى داسې زوراور، اوغالب چه ظلم نه كوى اوهيڅ څوك ئې خپلې ارادې نه نشي منع كولې اود ﴿ فَوْقَ ﴾ نه مرادفوقيت دمكان اوجهت نه دې لكه مخكښې ذكرشو، اوغلبه دالله تعالى په بندگانو داده چه دوئ ئې د عدم نه وجود ته راوباسلى دى او بيا به ورته موت وركوى، د بندگانو پيدا كيدل اودنياته راتلل ددوئ په اراده اواختيار سره نه دى اوددنيا نه تلل هم ددوئ په اراده اواختيارسره نه دى اودارنگه بيمارى صحت، خوشحالى غم، اوتمام احوال ددوئ، صِرف ديوالله جَلَّ جَلَالُهٗ په اختيارارادې سره دى ﴿وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً ﴾ دا هم يوصورت دغلبې دالله تعالى دې چه غلبه په حفاظت كولوسره ده، اِرسال په معنى دمقرركولواومحكوم گرځولوسره دې حفظةٌ جمع دحافظٌ ده. لكه كتبة جمع دكاتب ده. اوپه دې كښې درې قوله دى **اول** داچه ددينه مرادكرام الكاتبين دى چه حفاظت اوكتابت داعمالوكوى. يوملك اعمال حسنه محفوظ كوى اوليكې ئې. هغه په جانب ديمين كښې دې اوهغه اميردې اوبل ملک اعمال سيئة ، محفوظ كوى اوليكې ئې اوهغه په جانب ديساركښې دې ماموردې. **اودويم** قول دادې چه ددينه مرادهغه فرشتې دى چه حفاظت كوى دجسم دانسان دموذياتو نه چه هغې ته معقبات وائى لكه په سورت رعد كښې ذكر دې **اودريم**

---

[1] - دولسم دليل عقلى

ول دادې چه ددینه مراد عام دی یعنی هغه فرشتې چه داعمالو دنگرانۍ اوداجسامو دحفاظت دپاره مقرردی دادواړه مراد دی، اوپه دې کښې تنبیه ده چه انسان لره غفلت نه دې پکار. څکه چه الله تعالی په خپله هم په دوئ باندې عالم اورقیب دې اوفرشتې پر هم مقررې دی دهرځه نگرانۍ ئې کوی اوتمام اعمال به ئې په ورځ دقیامت باندې علی رؤوس الاشهاد پیش کیږی اوښکاره کیږی به، ﴿ حَتّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَحَدَكُمُ ٱلْمَوْتُ ﴾ یعنی دافرشتې ستاسوحفاظت کوی ترڅوچه ژوندگی باقی وی اووخت موعوددموت نه وی راغلې لیکن کله چه وخت موعودراشی نوبیادغه فرشتې حفاظت نه کوی بلکه ددوئ دیوټی نگرانی ختمه شی ﴿ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا ﴾ د رسلنا نه مراد (الآخرون) یعنی نوری فرشتې دی چه هغوئ مقرر دی په قبض د روح باندې هغه مراد دی اوحفظه ندی مراد. اوپه دې کښې دوه قوله دی یو داچه مراددرسلنا» نه ملک الموت اواعوان دملک الموت دی، اودویم قول دادې چه یواځې ملک الموت ترینه مراددې اوجمع تعظیماً ده. که څوک سوال اوکړی چه په سورت زمرآیت نمبر ۴۲ کښې نسبت دتوفی الله تعالی ته شویدې ﴿ ٱللَّهُ يَتَوَفَّى ٱلْأَنفُسَ حِينَ مَوْتِهَا ﴾ اوپه سورة آلم سجده ۱۱ کښې نسبت ملک الموت ته شویدې ﴿ قُلْ يَتَوَفَّىٰكُم مَّلَكُ ٱلْمَوْتِ ٱلَّذِى وُكِّلَ بِكُمْ ﴾ اوپه دې آیت کښې نسبت دیروملائکو ته شویدی، **فماوجه التطبيق، جواب** دادې چه نسبت الله تعالی ته حقیقةً دې څکه چه وفات کونکې حقیقة هغه دې نوهرکله چه وخت دموت راشی نوالله تعالی امراوکړی ملک الموت ته دقبض دروح نوملک الموت ته نسبت په دې وجه دې چه دې ماموردې په توفی یعنی په قبض دروح باندې اودملک الموت دپاره نوراعوان اوملگری دی نوملک الموت هغوئ ته حکم اوکړی دروح رااوباسلو، نوچه روح حلقوم ته اورسی نوملک الموت ئې ترینه بیاپه خپله قبض کړی نودوئ ته نسبت په دې وجې سره کیږی چه دوئ اعوان اوملگری دملک الموت دی. ونیلی دی حضرت مجاهد رحمه الله چه نشته دې هیڅ یوکچه کوریاپوخ کور، مگرملک الموت دهغې طواف کوی دروزی دوه واری (السراج المنیر).

﴿ وَهُمْ لَا يُفَرِّطُونَ ﴾ فرشتې کمې کوتاهی نه کوی نه دوخت موعودنه قبل دچاروح قبض کوی اونه چاته مهلت اوتاخیرورکوی ﴿ ثُمَّ رُدُّوٓا۟ ﴾ ضمیرد ((ردوا)) راجع دې انسانانوته چه ذکرئې شویدې په ماقبل کښې ﴿ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ ﴾ کښې نودالتفات شودخطاب نه غیبوبة ته یا

دا ضمير راجع دي رُسُل ته اومراد دا دي چه دافرشتې به هم وفات شي اوبیابه دالله تعالی ته حضورته پیش شي ﴿مَوْلَىٰهُمُ الْحَقِّ﴾ مولی په معنی دمالک علی الاطلاق دټولو امورودي. اوحق په معنی دعادل. صادق الوعد. سره دي حجة الاسلام غزالي رحمه الله وائي چه حق مقابل د ضل دي اوهرشئ(مخبرعنه) یابه باطل مطلقًا وي یابه حق مطلقًا وي یا به حق باطل من وجه وي نو دحق معنی داده چه هغه ذات چه موجود حقیقي بذاته دي اوهغه صرف ذات دالله تعالی دي ﴿أَلَا لَهُ الْحُكْمُ﴾ صرف دالله فیصله نافذه ده په هرڅه کښې ﴿وَهُوَ أَسْرَعُ الْحَاسِبِينَ﴾ الله تعالی ډير زر حساب کونکي دي لکه په يوحديث کښې دی چه چه ((في مقدارنصف يوم)) په اندازه دنيمي ورځي کښې به حساب اوکړی. اوپه يوروايت کښې ((قدرحلب شاة)) دي وغيرذلک من الروايات

﴿قُلْ مَن يُنَجِّيكُم مِّن ظُلُمَٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ﴾ دادولسم دليل عقلي على سبيل الاعتراف من الخصم دي. مشرکانو په په ډيرې سختئ کښې صرف ديوالله بلنه کوله، اودابه ئې وئيل چه دازمونږ معبودان زمونږ مددنه په درياب کښې نشي رارسيدلې نو الله تعالی فرمائي چه لکه څرنګه چه تاسوپه ډيره سختئ کښې ديوالله تعالی نه مددغوارئ نودغه شان په هرتکليف کښې ديوالله نه مددغوارئ ځکه بل څوک مددګارمشکل کُشانشته دي. اومراددظلماتونه ياخودظلمات يعنی (تيری) مراددي، ((ظلمات البر)) دا چه په صحراء او ځنګل کښې د شپې او د وريځې يا د باران يا دهوا او د ګردونوپه تيروکښې راګير شي. او ((ظلمات البحر)) دادی چه په درياب کښې په (تيرو) دشپې اودوريځې يادباران يادهواواوګردونو په تيروکښې راګيرشي. يامرادظلمات نه شدايداوسختئ دی چه په انسان باندې راځي په وچه کښې وی يادرياب کښې .﴿تَدْعُونَهُ﴾ داحال دي دضميرکُم نه په ﴿يُنَجِّيكُم﴾ کښې ﴿تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً﴾ دادواړه منصوب يا بنا بر حالية دی دضمير د تَدْعُونَ نه او دواړه مصدرپه معنی داسم فاعل سره دي منصوب دی بنا په دي چه دامفعول مطلق دي من غيرلفظه ياپه اعتبار دموصوف مقدر سره دی. اوتضرعًا په معنی دعاجزئ سره دي ياپه معنی دعلانيه اوجهرسره دي، اوخفيةً نه مرادسوال دي په زړه کښې په اخلاص سره اومراددادي چه کله تاسو په ډيره سختئ کښې صرف دالله تعالی نه سوال کوئ کله په جهرسره اوکله په زړه کښې، ياپه يووخت کښې تضرع په ژبه،اوپټ والی يعنی اخلاص په زړه کښې وی. ﴿لَئِنْ أَنجَانَا﴾ (يقولون). يا

(مقولون) مقدردي. اولام مؤطئه للقسم دي (ای والله لئن انجانا) یعنی تاسو قسمونه کوئ که چری الله تعالی مونږ ددي مصیبت نه خلاص کړو نو مونږ به خامخا الله تعالی شکرکوو په دې نعمت باندې اوشکرخودنعمت حق اداکول دی نوددې نعمت حق ادا کول خو ایمان اوتوحید دې لیکن تاسو بیاهم شرک کوئ

قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَىٰ أَن يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّن فَوْقِكُمْ أَوْ مِن تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ

نه وه وایه چه الله قادردې پدې چه راولیږي په تاسوباندې عذاب دبره طرف ستاسونه یا لاندې د خپو ستاسونه.

أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُم بَأْسَ بَعْضٍ ۗ انظُرْ كَيْفَ

یا خلط اوګډ کړی تاسولره مختلف خیال والا ډلي. او وبه څکوی بعضې ستاسو ته جنګ دبعضو. وګوره څنګه

نُصَرِّفُ الْآيَاتِ لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُونَ ۝ وَكَذَّبَ بِهِ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ۚ

ګسمااقسم بیانوو مونږ دلیلونه د دې لپاره چه دوئ پوهه شی او دروغ ګنړی[1] دې لره قوم ستا او دا حق دې

قُل لَّسْتُ عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ ۝ لِّكُلِّ نَبَإٍ مُّسْتَقَرٌّ ۚ وَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ۝

ووایه نه یم زه په تاسو نګهبان او ذمه وار لپاره د هرې خبرې وخت مقرر وی او زرده چه تاسو به پوهه شئ

﴿قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَىٰ أَن يَبْعَثَ﴾ داتخویف دنیوی دې په دې آیت کښې ددرې عذابونو ذکردې داولودوه عذابونونه امت محفوظ کړې شویدې په سبب دعادنبی صلی الله علیه وسلم سره اودریم عذاب به وقتًا فوقتًا په دې آمت باندې نازلیګی امام بخاری دحضرت جابررضی الله عنه نه روایت ذکرکړیدې چه هرکله دانازل شو﴿قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَىٰ أَن يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّن فَوْقِكُمْ ﴾ نونبی صلی الله علیه وسلم اووئیل ((اعوذبوجهک)) (نوددې عذاب حفاظت اوشو)اوچه ﴿أَوْ مِن تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ ﴾نازل شونونبی صلی الله علیه وسلم اووئیل ((اعوذبوجهک)) (نوددې عذاب نه هم حفاظت راغې) اوهرکله چه ﴿أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا ﴾الخ راغې نونبی صلی الله علیه وسلم اووئیل (هذااهون اوقال هذایسر) تفسیر مظهری په حواله دبغوی نقل کړیدی چه سعدبن ابی وقاص

---

[1] زجر ـه

رضی الله عنه فرمائی چه یوځل مونږدنبی صلی الله علیه وسلم سره روان وونوزمونږ تیریدل اوشو په مسجددبنی معاویه باندې نونبی صلی الله علیه وسلم مسجدته لاړو. اودوه رکعته مونځ ئې اوکړواومونږ هم مونځ اوکړو. بیانبی صلی الله علیه وسلم په دعاکښې مشغول شو اودډیروخت پورې ئې دعاکوله، اوبیائې ارشاداوفرمائیلو چه ماد خپل رب نه درې خبروسوال اوکړو یوداچه زماامت په غرق کولو سره هلاک نه شي نودادعا قبوله شوه اودویم داچه زماامت په قحط اودلوګې په ذریعه سره هلاک نشي نو دا دعا هم قبوله شوه. دریم داچه زماامت په خپل مینځ کښې په جنګ اوجدال سره تباه نه شي نودائې منع کړه، اودابن عمررضی الله عنه په روایت کښې په درې دعاګانوکښې یره داده چه په دې امت داسې دشمن مسلط نه شي چه ټول تباه اوبربادکړي، دادعاقبوله شوه ،اوچه په خپلوکښې اونه جنګیږي نودادعاقبوله نه شوه، په دې آیت کښې دعذاب الهی درې صورتونه ذکرشویدی اول داچه ﴿عَذَابًا مِّن فَوْقِكُمْ﴾ ((عذابًا)) نکره ذکرشویده نودیته اشاره ده چه د (عذابًا مِنْ فَوْقِكُمْ) مختلف صورتونه کیدې شی، دفوق نه مراددادې چه داسمان دطرفه چه کوم عذاب راځی سخته هوا، صیحه، کانړی ورول، طوفان، لکه په عادیانو ثمودیانوقوم لوط عليه السلام ، اصحاب فیل، قوم نوح وغیره باندې راغلی وو، اومراد د ﴿مِن تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ﴾ نه هغه عذاب دې چه دلاندې طرف نه راشي لکه خسف په قارون اوغرق په فرعون، اودابن عباس اومجاهد، نه منقول ده چه ((**عذاباً من فوقكم**)) نه مرادظالم حاکم اوبادشاه دې، اودتحت نه مراد نافرمانه رعیت غلامان، نوکر، ملازم او اولاد دې، ظالم حاکم درعیت دپاره عذاب وی، اوسبب ورته ګناهونه او معاصی وی، لکه په حدیث کښې راغلی دی ((کماتکونون یُوَمّرعلیکم)) چه ستاسواعمال څنګه وی هغه شان به ستاسو حاکم اوبادشاه وی، او((اعمالکم عُمّالکم)) هم مشهوره مقوله ده : شعر:

شامتِ اعمال ماصورتِ نادر گرفت

په حدیث قُدسی کښې دی - ((عن ابی الدرداء قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان الله تعالی یقول اناالله لااله اِلّاانا، مالک الملوک ومِلِک الملوک قلوب الملوک فی یدیّ واِنّ العِبادَ اِذاطاعُونی حولتُ قلوبَ ملوکِهم علیهم بالرّحمة والرّافةِ واِنّ العبادَ اذا عَصَوْنِی حولتُ قلوبَهم بالسخطة والنقمة فساموهم سوء العذاب فلاتشغلواانفسکم بالدعاء علی الملوک ولکن اشغلواانفسکم بالذکر والتضرع کی اکفیکم)). رواه ابونعیم فی الحلیة ، مشکوة ص ٣٢٣ ج ٢ .

**ترجمه** الله تعالى فرمائي چه زه الله يم، زمانه سوى هيڅ ـک معبودنشته دي. زه دټولوبادشاهانومالک يم او بادشاه يم، دټولوبادشاهانو زړونه زماپه لاس کښې دى ، او بندګان چه کله څما اطاعت کوى، څماحکم منى، نوزه ددوئ دبادشاهانو ،حاکمانو په زړونو کښې ددوئ «رعيت» مينه شفقت واچوم ،اوبندګان چه څمانافرمانى کوى نوزه ددوئ دحکامو زړونه په دوئ سخت کړم چه هغوئ «حکام »دوئ ته هرقسم سخت عذابونه ورکوى. «نوچه تاسوداااوينئ » نو تاسو حکاموته په بدرد ، وئيلومشغوله کولوسره خپل اوقات مه ضائع کوئ بلکه الله تعالى ته په ذکراوزاړئ کولوکښې مشغول شئ«يعنى دخپلو عملونو اصلاح اوکړئ» ددې دپاره چه زه ستاسو کفايت اوکړم اوستاسوحالات درست کړم، ظالم حاکم چه لکه څه رنګه درعيت اوقوم دپاره عذاب وى نو دغه شان رعيت او قوم دظالم حاکم دپاره عذاب وى. اوسبب ددې عذاب دپاره بداعمال دى، اوعلاج اوحل دمسئلې صرف او صرف. رجوع الى الله اواصلاح داعمالوده، صاحب دکشاف وائى چه ﴿عَذَابًا مِّن فَوْقِكُمْ﴾ نه مراد ، باران بندول دى اوتحت نه مراد. دزمکې نه فصلونه اوګياه بندوَل اونه پيداکيدل دى، د ﴿أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا﴾ دادريم عذاب ذکردې، چه ددې نه امت محفوظ نه دې يَلبِسَ په معنى دخلط کولوسره دې ديوبل سره او«شيعاً» حال دې د «کُم» نه، اوددې نه مرادهغه مختلفې ډلې دى چه دخواهشاتو تابع دى يامختلف وى په اصول اواعتقادياتوکښې لکه په حديث کښې راغليدى چه په دې امت کښې به درې اوياډلې پيداکيږى ، ديوې ډلې نه علاوه به ټول په جهنم کښې وى د خواهشاتو تابع به وى دموجوده دورپاتئ هم ددې عذاب نمونه ده، اوهغه اختلاف چه په فروعياتوکښې وى اواتباع دخواهشاتو پکښې نه وى نوهغه نه دې مراد ، ځکه هغه عذاب نه دې بلکه رحمت دې لکه اختلاف دفقهاؤ دامت، اودصحابؤاوتابعينو. اومعنى دآيت داده چه ياخلط کړى تاسولره ديوبل سره په داسې حال کښې چه تاسو، مختلفې فرقې. دخواهشاتو تابع، کړى، ﴿وَيُذِيقَ بَعْضَكُم بَأْسَ بَعْضٍ﴾ددې نه مرادقتل اوقتال دې په خپل منځ کښې. ﴿وَكَذَّبَ بِهِ قَوْمُكَ﴾ دازجردې اوضميرد «به» راجع دې ياقرآن ته ياراجع دې عذاب ته. يعنى دوئ تکذيب کوى په وقوع دعذاب حالانکه داحق دې يعنى عذاب واقع کيدل په کفاروباندې يقينى دى نوکه دوئ سوال اوکړى چه نه وائى چه عذاب يقينى دې نوراولې ئى. نوجواب راغې ﴿قُل لَّسْتُ عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ﴾وکيل هغه څوك وى چه دکاراختيارورته اوسپارلې سى. معنى

داده چه دعذاب دنازلیدو اختیارمانه نه دي سپارلې شوې اوزماپه اختیارکښې نه دي. اوکه دوئ داسوال اوکړي چه داخواوښایه چه کله به راځي نوجواب اوشو﴿ لِكُلِّ نَبَإٍ مُّسْتَقَرٌّ ﴾ چه دقرآن دهراخبار دواقع کیدلو دپاره وخت مقرروی په علم دالله تعالی کښې نوپه خپل وخت موعود به راځي. تعین دوخت ئې مانه معلوم نه دي. البته دومره خبره یقیني ده چه به خپل وخت موعودبه راځي. د (نبأ). نه مراداخبار دقرآن او د نبي صلی الله علیه وسلم دي. مُستقرپه معنی د (وقت يقع فيه ويستقر). سره دي. يعنى هغه امورچه نبي صلی الله علیه وسلم اوقرآن . دهغي نه خبرورکړیدي نو دهغي دپاره وخت دقرار اودوقوع دي

| وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتَّىٰ |
|---|
| اوکله چه ته وه وينې هغه کسان چه ناروا بحث کوی په آیتونو زمونږ کښې پس مخ واړوه د دوئ نه تر دې چه |
| يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ ۚ وَإِمَّا يُنسِيَنَّكَ الشَّيْطَانُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرَىٰ |
| مشغوله شي په نورو خبرو کښې. او که چرې هیر کړي ستا نه شیطان، پس مه کینه پس د یاد راتللو نه |
| مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ۞ وَمَا عَلَى الَّذِينَ يَتَّقُونَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ |
| د قوم ظالمانو سره اونشته دي په هغه کسانو چه تقوی کوی د حساب د کافرانو هیڅ څه. |
| وَلَٰكِن ذِكْرَىٰ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ۞ |
| لیکن په دوئ باندې نصیحت کول دی د دې لپاره چه هغوئ بچ شی |

﴿ وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ ﴾ دا زجردې، خوض په لغت کښې په اوبوکښې ننوتلو، غوپه کیدلوته وائی .اواستعمال ئې کیږي په لغواوعبث کښې مشغوله کیدلواوپه طعن اوعیب جوئ کښې. ﴿ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا ﴾چه ننوځي، په آیاتونوزمونږ کښې. یعنی استهزاء اوتکذیب دآیاتونوکوی. اوددې په حکم کښې هغه خلق هم دی چه غلط تفسیرونه کوی. اوهغه اهل بدعت یکښې هم داخل دی چه دبدعت دوجې نه په آیاتونوکښې غلط تاویلات کوی لکه معتزله وغیره. نودداسې خلقوسره .ناسته ولاړه راشه درشه کول حرام دی. اوپه بل آیت کښې دی ﴿ إِنَّكُمْ إِذًا مِّثْلُهُمْ ﴾ اهل باطل مستحق دعذاب وی نوددوئ سره په تعلق ساتلوکښې هم

داخطره ده چه تاسومستحق دعذاب شئ اوديومؤمن دغيرت تقاضا دانه ده چه په داسې مجلسونوكښې شركت اوكړي. البته كه ناځاپه ياسهواً په داسې مجلس كښې شريک شي.

نوديادراتللونه بعددي ددغه مجلس نه لرې شي. ﴿حَتَّىٰ يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ﴾ . ضميرراجع دې آيتونوته په تاويل دقرآن سره، اومراددينه دادې چه داسې بحث شروع كړي چه استهزاء پكښې نه وي اوتحريف نه كوي.

﴿وَإِمَّا يُنسِيَنَّكَ الشَّيْطَانُ﴾ دانساء(هيرولو) نسبت شيطان ته تسبيبًا دې. دشيطان وسوسې اچول اولايعنې طرف ته متوجه كول سبب دهيرولو دحكم دې. يعنې كه شيطان ستانه دغه حكم هيركړي چه فَأَعْرِضْ، نودرادراتللونه بعدبيامه كينه دظالمانوسره. اوخطاب په دې آيت كښې نبي صلى الله عليه وسلم ته دې اوداعلى سبيل الفرض والتقدير دې خكه . نسيان ددې حكم اوكيناستل دظالمانو سره نه دې واقع شوى دنبي صلى الله عليه وسلم نه. اوبعض وائي چه خطاب دلته اوپه ماقبل كښې نبي صلى الله عليه وسلم ته دې اومرادترينه غيردې اوځاوئيلى دى چه خطاب هرمخاطب ته دې ،اودا آيت دليل دې په جوازدنسيان دنبي صلى الله عليه وسلم نه (يعنى د نبي صلى الله عليه وسلم نه هم خبره هيرې دې شي) اوپه حديث دبخاري كښې دى (انما انا بشرمثلكم انسى كماتنسون)، اوپه بل روايت كښې. (لقد اذكرني آية كذاوكذا كنت انسيتها)، راغليدى، واقعه د سهوفى الصلوة مشهوره واقعه ده. روافض وائي چه نسيان په نبي صلى الله عليه وسلم اونوروانبياؤباندې نشي راتلې په هغه احكامانوكښې چه دوئ دهغې ابلاغ عن الله تعالى كوى، اوپه نوروا احكاماتوكښې نسيان كيدې شي په شرط ددې چه اخلال في الدين نه راځي، اوپه نيزدجمهوروعلماؤنسيان په نبي صلى الله عليه وسلم جائزوو-ليكن په دې خبره اتفاق دې چه نبي صلى الله عليه وسلم په نسيان اوخطاء اجتهادى باندې برقرار نشو پريخودلې، البته په نيزدبعض علماؤ تنبيه په خطااونسيان باندې على الفورضرورى وه اوپه نيزدبعض جائزووتاخيرترمودې دحيات پورې صاحب دروح المعاني وائي چه هغه نسيان چه منشائې اشتغال دسروى په وساوسو اوخطراتو شيطانيو سره .نوپه دې كښې شک نشته دې چه دامحال دې په نبي صلى الله عليه وسلم باندې اومحل دخلاف ماسوى ددينه دې. قرطبي اوصاحب دروح المعاني وئيلى دى چه سهواوخطا په اقوالو بلاغيو. كښې بالاتفاق منع ده، اوپه افعالو بلاغيو اوپه عباداتوشرعيو كښې مختلف فيه ده. ﴿فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرَىٰ﴾ ذكرى په معنى ديادراتلو د حكم د﴿فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ﴾ سره دى. ...

معنی دنصیحت کولو سره دي ﴿وَمَا عَلَى الَّذِينَ يَتَّقُونَ﴾ ددې آیت دوه مطلبه کیدي شي. **اول** داچه که متقیان دطعن کونکو د مجلس نه جدا کیږي نو د هغوئ دګمراهئ او ضلالت مواخذه او ضرربه دغه متقیانو نه راځي. البته په دوئ باندې په قدرد خپل طاقت او استطاعت سره او موقعې سره مناسب نصیحت کول دي. شاید هغوئ تقوی اختیار کړي. **دویم مطلب** داچه متقیانو نه که چرې په وجې د دینې یا دنیوي ضرورت سره د هغوئ مجلس ته دورتللو ضرورت پیش شي او لاړشي په وجه دضرورت سره نو دوئ ته دطعن کونکو دګناه اثر او ضرر نه رسیږي لیکن ددوئ په ذمه په قدرد خپل طاقت سره نصیحت کول شرط دي. ممکنه ده چه هغوئ اثرواخلي

وَذَرِ الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَهُمْ لَعِبًا وَلَهْوًا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَوٰةُ الدُّنْيَا

او پرېږده هغه کسان چه جوړ کړي ئي دي دين خپل لوبې او مشغله او دهوکه کړي دی دوئ لره ژوند د دنيا

وَذَكِّرْ بِهِ أَنْ تُبْسَلَ نَفْسٌ بِمَا كَسَبَتْ ۖ لَيْسَ لَهَا

اونصیحت کوه پدې قرآن سره دوئ ته. ددې لپاره چه راګیرنه شي يو نفس په سبب د عمل خپل . نه به وی ده لره

مِنْ دُونِ اللَّهِ وَلِيٌّ وَلَا شَفِيعٌ ۚ وَإِنْ تَعْدِلْ

ماسوی د الله د ذات نه دوست هيچ کوونکې اونه پغير د اذن د ده نه خوك سفارشي ، او كه فديه (جرمانه ورکوي

كُلَّ عَدْلٍ لَا يُؤْخَذْ مِنْهَا ۗ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ أُبْسِلُوا بِمَا

هره جرمانه (پوره فديه) نه به شي قبلولې د ده نه. دغه کسان هغه دي چه راګير شوی به وی به وبال د هغه عمل کښې

كَسَبُوا ۖ لَهُمْ شَرَابٌ مِنْ حَمِيمٍ وَعَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ ۝

چه دوئ کړي وو. د دوئ لپاره څکل دي د ګرمو اوبونه او عذاب دردناك په سبب د هغې چه دوئ کفر کولو

﴿وَذَرِ الَّذِينَ﴾ داهم زجردې. اوتاکیدې دماقبل .یاتعمیم دې. یعنی دټولوهغه خلقو نه بې تعلقه شه چه خپل دين ئې لهولعب ګرځولې دې یعنی په دين پورې مسخرې کوي. یا دلهولعب نه مرادعبادت د اوثانو دې یاترینه مرادتحریمات غیرالله دی څکه عبادت دبُتانو او تحریمات غیرالله لوبې دی څکه چه داصرف دنفس دخواهش په وجه دی. په امرد الله تعالی

سره نه دی. یادامرادادي چه دوئ لهولعب خپل دین گرځولي دي یعنی کوم شئ چه لهواولعب دی لکه ډهول ،سارنگی، ډیرنې، قوالی، وغیره دیته دین اوذریعه دمعرفت الهی وائی. لکه بعض ملنگان. اوجاهل پیران، ددي قائل دی.﴿وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَوٰةُ الدُّنْيَا ﴾یعنی کوم شئ چه په دوئ فرض وو، اومقصداصلی وونوهغې ته لهولعب وائی. اوکوم چه خسیس ادنی شئ دي نوهغه ئې مقصد گرځولي دي دهوکه شویدی، نودداسې خلقونه بې تعلقه شه. پرواه ئې مه کوه ،البته نصیحت ورته کوه. ﴿وَذَكِّرْ بِهِ ﴾ضمیرد «به» راجع دې قرآن ته لکه په بل ځاني کښې دی ﴿فَذَكِّرْ بِالْقُرْءَانِ مَن يَخَافُ وَعِيدِ ﴾ اوبناپه دې باندي (اَنْ تُبْسَلَ) مفعول له دي (ای لئلاتبسل) یاضمیردبه ضمیرمبهم دي (اَنْ تُبْسَلَ) ترېنه بدل دي او (تُبْسَلَ) په معنی د (تُحبس) سره ،راگیرول، گانړه کیدل، زاغب وائی، (البسل الممنوع بالقهر) یعنی په زوراوغلبې سره راگیرولوته بسل وائی، شاه ولی الله ﷺ د (ان تبسل) ترجمه کوی «تابهلاک گرفتارنشود» ﴿مِن دُونِ اللَّهِ وَلِيٌّ وَلَا شَفِيعٌ ﴾ (ای لیس لها من دون ذات الله ولی ولامن دون اذنه شفیع) نو استدلال دمعتزلوختم شو، ﴿وَإِن تَعْدِلْ ﴾ ضمیرنفس ته راجع دې یعنی دنجات ذریعه دکفارودپاره په قیامت کښې نشته شفاعت هم نشته اوفدیه اوجرمانه ورکول هم نشته .

﴿كُلَّ عَدْلٍ ﴾ داپه معنی کامل اوپوره فدیه ورکولوسره دي لکه په دې قول دعربوکښې. هورجل کل رجل،،ای کامل فی الرجولیة، او (کل) منصوب دې مفعول مطلق دي (تعدل) دپاره باعتبارد مضاف الیه سره. ﴿لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ وَعَذَابٌ ﴾دکفاروباطن اوظاهردواړه به په عذاب کښې وی، په خیټوکښې به ئې داسې اوبه وی چه بې حده زیاته گرمی به وی اوپه ظاهر باندې به ئې هم نهایت گرم اوربلیږي. اوسبب دعذاب، دپاره دوئ کفراودوام په کفردي

| قُلْ أَنَدْعُوا مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنفَعُنَا وَلَا يَضُرُّنَا |
|---|
| ووایه آیا را وبلو[1] مونږ سوی د الله تعالی نه هغه څوك چه نه فائده راکولي شی مونږ ته اونه ضرر راکولي شی مونږ ته |
| وَنُرَدُّ عَلَىٰ أَعْقَابِنَا بَعْدَ إِذْ هَدَىٰنَا اللَّهُ كَالَّذِي |
| او واپس شو په خپلوپوندو، پس دهغې نه چه هدایت کړي دي مونږ ته الله تعالی او شو به په شان دهغه چا |

[1]. ثمره د دلائلو

| |
|---|
| اسْتَهْوَتْهُ الشَّيٰطِيْنُ فِي الْأَرْضِ حَيْرَانَ ۠ لَهٗ أَصْحٰبٌ يَّدْعُوْنَهٗ إِلَى الْهُدَى |
| چه بې لارې کړې وي هغه لره شيطانانو په زمکه کښې چه حيران وي، ده لره ملګرې وي بلې ده لره طرف د سمې لارې نه |
| ائْتِنَا ؕ قُلْ إِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ؕ وَأُمِرْنَا |
| چه راشه مونږ ته. ووايه چه بيشکه هدايت د الله تعالى هم دغه صحيح هدايت دې. اوحکم کړې شوې دې مونږ ته |
| لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ وَأَنْ أَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاتَّقُوْهُ ؕ |
| چه تابعدار شو مونږ د رب العالمين او حکم شوې دې چه پابندى کوئ د مانځه او يره کوئ د هغه نه. |
| وَهُوَ الَّذِيْٓ إِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ۝ |
| او دې هغه ذات دې چه خاص هغه ته تاسو جمع کولې شئ |

﴿قُلْ أَنَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ داثمره اونتيجه دمخکنو دلائلو ده، په بعض رواياتو کښې دى چه مشرکينو .مؤمنانو ته دعوت ورکړو چه ((اتبعواسبيلنا واترکوا دينَ محمدصلى الله عليه وسلم)) نوجواب اوشو چه داسې توقع زمونږ نه مه کوئ، مؤمن موحد په دې فکرکښې وى چه هغه کسان چه دغيرالله په دروازوئ خپل سرونه ايخودلى دى هغه په څه شان سره ديوالله دربارته نزدې کړی. اوددوئ نه دااميد ساتل چه دغيرالله په دروازه به سرټيټې اوکړى فضول دې معاذالله که داسې اوشو نودده مثال به دهغه مسافرپشان وى چه په لاره دَ بلدوملګروسره په يوبيابان کښې سفرکوى اوناڅاپه خبيث جنات ،پيريان، پرې راشى او په دماغوورته قبضه اوکړى، اولاره ترينه وروکه کړى اوسرګردانه ګرځى، اوملګرى ورته دخيرخواهئ دپاره اوازونه کوى چه زمونږ په لورې رازه، سمه صافه لار،داده ،مګرهغه حيران مخبوط الحواس وى، په هيڅ نه پوهيږى ،نودغه شان دآخرت دمسافرودپاره داسلام اودتوحيدسمه اوصافه لامقررشويده اودتوحيدنه دانکارکونکوپه دماغو ،شيطانانو، انسى. جنى. اهل باطلو قبضه کړيده. په حق نه پوهيږى ، نوکه چرې دوئ داهل حق ،داعيانُ دتوحيد خبره اومنى. نومنزلِ مقصودته به اورسى اوکچرې اونه منى نوتباه اوبربادبه شى، ﴿وَنُرَدُّ عَلٰٓى أَعْقَابِنَا﴾ واپس تلل په پُندو. چه ګورى مخې ته اوروان وى په شاباندې، سبب دهلاکت وى نوداکنايه ده، دبې سوچه تللو. اوهلاکت نه. چه سبب ئې بلنه اوعبادت دغيرالله دې نوداعطف د مسبب دې په سبب

باندې. ﴿ كَالَّذِى اسْتَهْوَتْهُ ﴾ داصفت دمحذوف دپاره دې (ای اَنُرَدُّ رَدًّا مِثْلَ رَدِّالَّذِی – الخ)
«استهوته» یادهوی (بالفتح) نه ماخوذدې خواهشاتو دنفس ته وائی. «استهوت» یعنی دنفس
تابعداری ته مائل کیدل (غولول) نو «استهوته» معنی داشوه چه شیطانانوتابع د خواهشاتو
گرخولې وی اوبخاری ئې ترجمه په «اضلته» سره کوی یعنی گمراه کړې وی اوبې لارې کړې وی
هغه لره شیطانانو. یاد هوی، (بالکسر) نه ماخوذدې، داوچت نه لاندې ته راکوزیدل
اوغورزیدلوته وائی-یعنی دهلاکت په کنده کښې غورزولې وی شیطانانو. صاحب دروح
المعانی وائی چه داباب استفعال دې د ((هوی فی الارض یهوی)) نه گویا چه طلب اوحرص
کړې وی جناتو دبوتللو دده ، په شرخنګل کښې.اولاره ئې ترینه ورکه کړې وی. ﴿ حَيْرَانَ ﴾
منصوب دې حال دې دمفعول د «استهوته» نه، اوداصفت مشبه دې اومؤنث ئې، حیرې. دې
لکه سکران سکرې اوددې وجې نه داغیرمنصرف دې، حیران،سرګردان، هغه څوك چه نه
پوهیږی چه په کومه مخه لاړشی. ﴿ لَهُ أَصْحَابٌ ﴾ یعنی دملګروخیره هم نه منی. ﴿ قُلْ إِنَّ هُدَى
اللَّهِ ﴾ یعنی مشرکینوته اووایه چه هدایت فقط دین اسلام اوتوحیددې اومونږ ته دهغې
دتابعدارئ اومنلوحکم دې ﴿ وَأَنْ أَقِيمُوا الصَّلَاةَ ﴾ دلته (قِيْلَ لَنَايَا اُمِرْنَا) مقدردې مونځ دانقیاد.
واضحه نښانه ده ﴿ وَهُوَ الَّذِي ﴾ د قیامت په ورځ به الله جل جلاله په حضور کښې پیشې وی نو د
ایمان او د کفر بدله به ورکولې شی.

| بِالْحَقِّ | وَالْأَرْضَ | السَّمٰوٰتِ | خَلَقَ | الَّذِي | وَهُوَ |
|---|---|---|---|---|---|

او خاص الله تعالی هغه ذات [1] دې چه پیدا کړی ئې دی آسمانونه او زمکه، د حق ښکاره کولو لپاره.

| وَلَهُ | الْحَقُّ | قَوْلُهُ | فَيَكُوْنُ | كُنْ | يَقُوْلُ | وَيَوْمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

او اختیار لرې د هغې ورځې چه وبه وائیږ، وشه، نو وبه شی. وینا د هغه حقه ده ، حکم ئې نافذ دې اوخاص هغه لره

| وَالشَّهَادَةِ | الْغَيْبِ | عٰلِمُ | الصُّوْرِ | فِي | يُنْفَخُ | يَوْمَ | الْمُلْكُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

بادشاهی ده په هغه ورز چه پوکې وکړې شی په شپیلۍ کښې، هغه عالم دې په هر پټ او ښکاره باندې

[1] - دیارلسم دلیل عقلی.

وَ هُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ۞

او هغه حکمتونو والا دې خبردار دې

﴿ وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ ﴾ دادیارلسم دلیل عقلی دې په توحید باندې ﴿ بِالْحَقِّ ﴾ باپه معنی دلام سره ده اومضاف. اودارنګه معطوف مقدر دې (ای لاظهارالحق والباطل) یعنی اسمانونه زمکې. علویات سفلیات ټول دتوحید دلائل دی ، یاد «بالحق» معنی داده چه (بکلامه الحق) چه هغه دادې چه «کُن» اودادلیل دې چه کلام الله مخلوق نه دې ځکه چه مخلوق په مخلوق سره نشی پیداکیدې(السراج المنیر) ﴿ وَيَوْمَ يَقُولُ كُن ﴾ دلته (اُذْکُرْ) مقدر دې. اود (کُنْ) نه مراد دادې چه ژوندې شئ پس دمرکیدلونه ﴿ قَوْلُهُ الْحَقُّ ﴾ قول په معنی د ((قضاءه الصواب)) دې یعنی فیصله اوحکم دالله تعالی جل جلاله نافذدې په هرڅه کښې نوژوندی کول اومره کول مشکل نه دی هغه ته. ﴿ وَلَهُ الْمُلْكُ يَوْمَ ﴾ یعنی په ورځ دقیامت به ظاهری مجازی بادشاهی دماسوی الله هم ختم شی. نوبادشاهی، اوواک اختیاربه صرف دیوالله تعالی وی، په نفخ الصورسره به ټولی بادشاهئ ختم شی صرف دالله تعالی بادشاهی به باقی وی

(ع) بقاء بقاء خدائیست ملک ملک خدا

وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ لِأَبِيهِ آزَرَ أَتَتَّخِذُ أَصْنَامًا آلِهَةً ۚ

اوکوم وخت چه وه ویل ابراهیم [1] خپل پلار آزرته، آیانیسې ګرځې ته بُتانو لره خدایان . معبودان،

إِنِّي أَرَاكَ وَقَوْمَكَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ۞ وَكَذَٰلِكَ نُرِي إِبْرَاهِيمَ

بیشکه زه وینم تا لره او قوم ستا لره په ګمراهئ ښکاره کښې او دغسې ونبودل مونږ ابراهیم ته

مَلَكُوتَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلِيَكُونَ مِنَ الْمُوقِنِينَ ۞

عجائبات، غرائب دآسمانونو، اودزمکې د دې لپاره چه دې پرې دلیل ونیسی او چه شی دې د یقین کوونکونه

﴿ وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ لِأَبِيهِ آزَرَ ﴾ دادلیل نقلی دې په توحید باندې د موحداعظم حضرت

1 دلیل نقلی د ابراهیم علیه السلام تفصیلاً او د باقی وؤنس(۱۷) انبیاؤ نه اجمالاً بطور دستخط

ابراهیم عليه السلام نه تفصیلاً اودباقی اولس (۱۷) انبیاء نه اجمالاً بطوردستخط. دابراهیم عليه السلام په نوم کښې بُت پرستی هم وه اوکوکب پرستی (دستوروعبادت) هم وه حضرت ابراهیم عليه السلام دبُت پرستئ رد. په قول اوبیان سره هم کړیدې لکه په دې آیت کښې اودارنګه په سورت مریم کښې. (لِمَ تَعْبُدُ مالایسمع ولایُبصرولایغنی عنک شیئًا) اوپه عمل سره ئې هم کړیدې چه بُتان ئې ټکړې ټکړې کړل لکه په سورة الانبیاء کښې دی. ﴿فَجَعَلَهُمْ جُذَاذًا إِلَّا كَبِيرًا لَّهُمْ لَعَلَّهُمْ إِلَيْهِ يَرْجِعُونَ﴾ اودکوکب پرستئ ردئې په طور دمناظرې اوالزام سره کړیدې لکه دلته په مابعد آیتونوکښې. ۷۵ نه تر ۸۱ پورې مذکوردې. دقرآن دظاهر نه معلومیږی چه دابراهیم عليه السلام پلار نوم ازردې. اودائې عَلَم دې، او آزر غیرمنصرف دې دوزن فعل اوعلمت دوجې نه یادوزن فعل اووصفیت اصلی دوجې نه. ځکه چه آزرددوئ په لغت کښې په معنی دمخطی (خطاکار) یااعوج (کوږ روان) سره دې، اوآزرپه غلطه لارې اوکږې لارې روان وو. نوځکه ئې نوم ازرشو. اواهل سیر وائی چه آزر، لقب دې اوعلم (نوم) ئې بناپه قول دزجاج، تارح دې یا یارخ دې. بناپه قول دامام ابن جریج ، اوبعض وائی(ابن عباس رضی الله عنه مجاهد ، سدی) چه آزرنوم دبُت دې نودلته مضاف مقدردې ((ای عابدازر)) - یادوجې ددیرتعلق اومحبت نه دبُت سره دهغه بت په نوم سره یادشو. «ازر» - د «ابیه» عطف بیان دې نودادلیل دې په دې چه ازر. دحضرت ابراهیم عليه السلام پلاردې، علامه سیوطی رحمه الله اوبعض نورحضرات وائی چه آزر دحضرت ابراهیم عليه السلام پلارنه وو، بلکه تره (عم) ئې وو، اوپه عربی محاوره کښې اطلاق داب په عم .باندې شائع دې، اودوئ دلیل داوائی چه دنبی صلی الله علیه وسلم اباء اجدادتمام مؤحدین ووځکه په سورت شعراء کښې دی (وتقلبک فی السّاجدین) نودساجدین نه مراداباء واجداد. دنبی صلی الله علیه وسلم دی اودتقلب نه مرادپشت به پشت، منتقل کیدل دی نوثابته شوه چه دنبی صلی الله علیه وسلم اباء واجداد، تمام مؤحدین وو. نوددې وجې نه ازر. دابراهیم عليه السلام پلارنه دې، لیکن صحیح داده چه آزر د ابراهیم عليه السلام پلاردې لکه دظاهردقرآن نه معلومیږی اوپه صحیح احادیثوکښې هم دغه شان دی اوپه هیڅ صحیح حدیث کښې نه دی راغلی چه آزر، تره دې دابراهیم عليه السلام ، اوپه آیت کښې دساجدین نه مرادصحابه کرام دی اودتقلب نه مراددنبی صلی الله علیه وسلم ګرځیدل اوراګرځیدل دی په صحابوکښې دخبرګیرئې دپاره، حضرت الشیخ فرمائی

لیکن آنحضرت صلی اللہ علیہ وسلم کے آباء کرام کے ایمان وکفر کی بحث میں ھرگز نہی پڑنا چاہئے

حضرت ابراهیم علیه السلام خپل پلار ته دعوت اول ورکړو ځکه چه داحق شرعی دې نودپلار حق اول اداکول پکاردی بل داچه آزر هغه اکابرومشرکینوکښې وو چه نورخلق به ئې شرک ته رابلل. اودنمرود معتمد. اوپیروؤ نوددې وجې نه مخکښې کړې شوپه دعوت کښې ﴿فِي ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ﴾ سوال واردیګی چه په دعوت کښې خونرمی پکارده، (قال تعالی لموسی وهارون فقولا له قولالینا). خصوصًا پلارته ایذاء نه ده پکاراګرکه کافروی، «﴿فَلَا تَقُل لَّهُمَآ أُفٍّ﴾ داعام دې چه ابوین کافران وی یامسلمانان نوابراهیم علیه السلام ولې خپل پلار ته په سخت کلام سره مخاطبه اوکړه. سره ددینه چه ابراهیم علیه السلام «اواه حلیم» وو- جواب دادې چه حضرت ابراهیم علیه السلام اول په نرمئ سره دعوت ورکړیدې لکه په سورتِ مریم کښې مذکوردې لیکن هرکله چه په هغې سره هدایت ته رانغې نوسخت الفاظ ئې ؤته اووئیل، شاید چه په دې سره هدایت ته راشی.

قال ابو العلاء المعرى اضـرب ولیـدک
وادلُلْهُ عـلى رشـد و لاتقل هوطفل غيرمحتلم
فرب شـق براسٍ جرمـنفـعةً
وقس على شق راس السهم والقلم

اوچه په دې سره هم هدایت ته رانغې نوبیائې ترینه قطع تعلق اوکړو. ﴿وَكَذَٰلِكَ نُرِيَ إِبْرَٰهِيمَ﴾ داابطال دالوهية دکواکبودې، په زمانه دحضرت ابراهیم علیه السلام کښې خلق (کنعانیان) په زمکه کښې داصنامو، بتانودالوهية قائل وو- نودبُتانو عبادت به ئې کوو- اوپه آسمان کښې دستورو دالوهية قائل ووا و دهرستوری دپاره ئې په زمکه کښې بُت خاص کړې نوچه ستوری ته به ئې تقرب حاصلولو نو دهغه دپاره به ئې چه کوم بُت، مختص کړې وو دهغه عبادت به ئې کولو. نوحضرت ابراهیم علیه السلام د بُت پرستئ ردهم اوکړو اودکوکب پرستی ردئی هم اوکړو. اوکاف په (کذلک) کښې یادتشبیه دپاره دې یعنی لکه څه رنګه چه مونږ اوخودله ابراهیم علیه السلام ته قبح دعبادت دبتانودغه شان مونږده ته اوخودل ابطال دالوهية دستورو، یاکاف لبیان الکمال دې یعنی دازمونږ دکمال قدرت نشانات اوکرشمې دی چه مونږ ده ته ملکوت السموات والارض اوخودل. اودَ (اراءت نُرِیَ) نه مرادخودل اولیدل دی په

سترګودعقل اوزړه سره يعنی رؤيت علمي ترينه مراددي. چه دکائناتو داسمان اوزمکې حقيقت ئې ورته څکاره کړو، چه هيڅ مخلوق علوی وی ياسفلی. اله نشی کيدې. ياترنيه مرادرؤيت بصری اومشاهده ده چه الله تعالی ورته دعلوياتواوسفلياتو ترکيبی نظام اوخودلو اودعجيب غريب اسرارونه ئې مطلع کړو، ددې دپاره چه دخپل قوم دکوکب پرستئ عقيده علی وجه البصيرت .ردکړی. اوپخپله ورته علم مشاهدی حق اليقين درجه حاصله شی. لکه روايت دې چه حضرت ابراهيم عليه السلام په يوصخره«لويه ګټه»باندې اودريدو. اوالله تعالی ورته کشف اوکړودعجائباتوداسمانونو، حتی چه عرش .کرسی اودآسمان عجائبات ئې اوليدل اوحتی چه خپل مکان ئې په جنت کښې اوليدلو اودامعنی ددې آيت ده ((وَآتَيْنَاهُ أَجْرَهُ فِي الدُّنْيَا)) معنی ئې داده چه په دنياکښې مونږ دته دده مکان په جنت کښې اوخودو. اودارنګه ئې ورته کشف اوکړو دعجائباتو دزمکې حتی چه نظرئې اوکړو لاندې حصې دزمکې ته او عجائباتو دهغې ته . اوروايت دعلی رضی الله عنه نه چه هرکله اوليدلو ابراهيم عليه السلام عجائبات داسمان زمکې. نواوئ ليدلو يوسړې په ګناه باندې نوبددعائې ورته اوکړه، نوالله تعالی ورته اوفرمائيل. چه اې ابراهيم،ستادعاقبليږی نوزما بندګانوته بددعاء مه کوه، زه دبنده سره درې قسمه معامله کوم يابه دې دګناه نه توبه اوکړی نوزه به ئې توبه قبوله کړم يابه دده نه داسې څوک پيداشی چه زماعبادت به کوی، يابه ځما حضورته «ګناهګار» پيش شی نوکه زه اوغواړم نوعفوبه ورته اوکړم اوکه اوغواړم نوعذاب به ورته ورکړم«سراج المنير، معالم، درمنثور» ﴿مَلَكُوتَ﴾ صيغه دمبالغې ده ، دامبالغه ده په ملک کښې اوتاء،زائده ده دپاره دمبالغې. نومعنی داده چه ډيره لويه بادشاهی، اوډيرلويه بادشاهی صرف دالله تعالی ده نوددې وجې نه امام راغب وائی چه «الملكوت مختص بملكِ الله» تعالی اواضافت دملکوت..سموات ارض،، ته دزيادت مبالغې دپاره دې اومراد دملکوت نه آيات داسمان زمکې دې يعنی دليلونه .علوی، سفلی دتوحيد، ياترينه مراد عجائبات داسمانونودی لکه مختلف تيزحرکات دکواکب په خپلو خپلو مدارکښې چه ديوبل سره ئې تصادم نکړو. نه راځی. اوديومضبوط اساس په بنيادپه معين وخت طلوع اوغروب کوی. اوپه مقدار ديو لحظه هم دخپل مقرروخت نه تقديم ، تاخيرنه کوی. ﴿ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ﴾ دااندازه دهغه ذات ده چه غالب قوی دې په خپله بادشاهئ کښې اوعالم دې په مخلوقاتو. ﴿وَلِيَكُونَ﴾

معطوف عليه مقدردې چه «ليستدل» دې او د ﴿ٱلۡمُوقِنِينَ﴾ نه مرادهغه يقين دې چه حاصل شي دمشاهدې دحال اودحقائقو دمخلوقاتو نه .

| فَلَمَّا جَنَّ عَلَيۡهِ ٱلَّيۡلُ رَءَا كَوۡكَبٗاۖ قَالَ هَٰذَا رَبِّيۖ |
|---|
| پس هركله چه تياره را واچوله په ده باندې شپې ، وې ليدلو يو ستورې، نو وې وئيل چه آيا دا خما رب دې [1]. |
| فَلَمَّآ أَفَلَ قَالَ لَآ أُحِبُّ ٱلۡأٓفِلِينَ ٧٦ فَلَمَّا رَءَا ٱلۡقَمَرَ |
| پس هركله چه پټ شو هغه وې وئيل چه زه نه خوښوم «د خدائ توب لپاره» پټيدونكي. پس هركله چه وې ليدله سپوږمۍ |
| بَازِغٗا قَالَ هَٰذَا رَبِّيۖ فَلَمَّآ أَفَلَ قَالَ لَئِن لَّمۡ يَهۡدِنِي |
| خليدونكې . وې وئيل آيا دا خما رب دې . پس هركله چه هغه پټه شوه [2] نو وې ويل كچرې هدايت نوې كړې ما ته |
| رَبِّي لَأَكُونَنَّ مِنَ ٱلۡقَوۡمِ ٱلضَّآلِّينَ ٧٧ فَلَمَّا رَءَا ٱلشَّمۡسَ بَازِغَةٗ قَالَ |
| رب خما «د توحيد» خامخا وې به زه د قوم گمراهانونه پس هركله چه وليدلو ده نمر خليدونكې ده وه ويل |
| هَٰذَا رَبِّي هَٰذَآ أَكۡبَرُۖ فَلَمَّآ أَفَلَتۡ قَالَ يَٰقَوۡمِ |
| آيا دا خما رب دې، دا لوئ دې «ستاسو په گمان كښې» پس هركله چه هغه پټ شو، وې ويل : اې خما قومه ! |
| إِنِّي بَرِيٓءٞ مِّمَّا تُشۡرِكُونَ ٧٨ |
| بيشكه زه بيزاريم [3] د هغه نه چه تاسوئې «دالله سره» شريك جوړوئ . |

﴿فَلَمَّا جَنَّ عَلَيۡهِ ٱلَّيۡلُ﴾ «فاء» ياعاطفه ده اوداعطف دې په ﴿وَإِذۡ قَالَ إِبۡرَٰهِيمُ﴾ اوپه درميان كښې جمله معترضه وه- يادتفصيل دماقبل دپاره ده چه ﴿وَكَذَٰلِكَ نُرِيٓ إِبۡرَٰهِيمَ مَلَكُوتَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ يعنى دهغې تفصيل دادې چه هركله قلب دحضرت ابرهيم عليه السلام منورشو په انوارودلائلو

---

١ - استفهام مقدر دې او حضرت ابراهيم عليه السلام هرگز شرك ندې كړې په دې باندې شپږ قرينې دى

٢ - اوله قرينه

٣ - دويمه قرينه جمله اسميه په دوام ، استمرار دلالت كوى.

دتوحید سره نو دمشرکینو دالزام دپاره ئې دلائل شروع کړل. اوپه مناسب وخت کښې ئې ورته دلیل الزامی پیش کړو. ﴿جَنَّ﴾ په معنی د ستر (پټولو) سره دې یعنی شپه په ده رااوغوړیده ﴿كَوْكَبًا﴾ دانکره ده، اطلاق ئې په مطلق ستوری کیږی، دلته ترینه مراد. زهره. یامشتری دې چه مشرکینو ددې عبادت کولو.

﴿قَالَ هَٰذَا رَبِّي﴾ دادحضرت ابراهیم علیه السلام دلیل الزامی دې، نو (هذاربی) یاپه طریقه داستفهام انکاری سره دې یعنی آیادارب کیدې شی؟ یادمشرکینو دزغم اولهجې په اعتبار سره دې. لکه داعامه محاوره ده چه په بعض اوقاتو کښې دچادالزام یازجر یادتهکم دپاره، دهغه په زغم یالهجې سره کلام ذکرکیږی، لکه په دې قول دالله تعالی کښې ((أَيْنَ شُرَكَائِي)) یا لکه پدې قول کښې ﴿ذُقْ إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْكَرِيمُ﴾ یا لکه موسی علیه السلام چه وه وئیل ﴿وَانظُرْ إِلَىٰ إِلَٰهِكَ الَّذِي ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا﴾ نو د (هذاربی) معنی داده چه ستاسوپه زغم اوګمان کښې دازمارب دې، لیکن ستاسودزغم اوګمان غلطی به اوس تاسوته خکاره شی. اوداوینا ده ابراهیم علیه السلام په عقیدې سره یاشک سره نه وه، اوچاچه داوئیلی دی چه داقول دابراهیم علیه السلام په طریقه دعقیدې سره وو، یادشک سره وو، اوبیاروستوئې توحیداوپیژندو، نوداغلطه ده څکه چه پدې خبره باندې اجماع ده چه انبیاء علیهم الصلوة والتسلیمات معصوم او پاك دی دعقیدې دشرک نه اودشک نه ، قبل النبوة اوبعدالنبوة خصوصًا دحضرت ابراهیم علیه السلام شان الله جل جلاله پخپله بیان کړیدې ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا إِبْرَاهِيمَ رُشْدَهُ مِن قَبْلُ﴾ ای قبل بلوغه. قرطبی ابن کثیر، اونورمحققین وائی چه جائزه نه ده چه په نبی باندې داسې وخت راشی چه دعقیدې دتوحید اودمعرفت نه خالی وی، نبی په هیڅ وخت کښې په عقیده دکفریادشرک یادجهل عن الله تعالی وصفاته باندې نشی کیدې، دالله تعالی دذات اوصفاتومعرفت په هروخت کښې دوئ ته حاصل وی، په دې آیت کښې پخپله ډیرقرائن دی چه دحضرت ابراهیم علیه السلام داقول، په وجه دشک اودشرک سره نه وو. لکه ﴿لَئِن لَّمْ يَهْدِنِي﴾ ماضی منفی ده اودارنګه ﴿إِنِّي وَجَّهْتُ﴾ صیغه دماضی ده اودارنګه ﴿قَالَ أَتُحَاجُّونِّي فِي اللَّهِ وَقَدْ هَدَانِ﴾ صیغه دماضی ده اودارنګه ﴿إِنِّي بَرِيءٌ﴾ جلمه اسمیه ده په دوام اواستمراردلالت

کوی اودارنگه روستو داقول چه ﴿ وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ ءَاتَيْنَٰهَآ إِبْرَٰهِيمَ عَلَىٰ قَوْمِهِۦ ﴾ واضح دلالت کوی په دي چه داقول حضرت ابراهیم علیه السلام حجت اوالزام گرزولیدلي په خپل قوم. نوکه داقول په وجه دشرک یادشک سره وي نوبیاخودا الزام اوحجت نشی کیدي، تمام انبياء علیهم الصلوات والتسلیمات دټولو گناهونونه پاک دی، خصوصاً دشرک نه اود شک نه. اودارنگه ددي نه چه په دوئ داسي وخت راشی چه دوئ خالي وی دمعرفت دذات اوصفاتودالله تعالی نه. اوداچونکه اجماعی قطعی عقیده ده نوددي خلاف چه کوم اسرائیلی روایات دی نو د دي په مقابله کښي هغه هيڅ حیثیت نه لري، ﴿ فَلَمَّآ أَفَلَ ﴾ «افول» غائب کیدلو، پټيدلوته وائی، ددي استدلال حاصل دادي چه کوم شئ چه په هغه کښي تغیرراځی اومحکوم اومسخروی نوهغه اله نشی کیدي. صاحب د روح المعاني نقل کړی دی دبعض محققینو نه چه ددي استدلال نه استفاده حاصلوی خواص، اوساط، اوعوام ، خواص فهموی د «افول» نه امکان اوهرممکن محتاج وی اومحتاج حاجت روانه شی کیدي نولابدی شوه چه انتهاراشی داسي ذات ته چه منزه وی دهغه امکان نه چه هغه حاجت رواشی، کماقال تعالی ﴿ وَأَنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ ٱلْمُنتَهَىٰ ﴾ اواوساط فهم کوی داافول نه مطلق حرکت اوهرمتحرک حادث وی اوهرحادث محتاج وی قديمٌ قادرته . نوآفل (پټيدونکي) اله نشی کیدي بلکه اله په هغه ذات وی چه هغه ته آفل محتاج وی، اوعوام فهم کوی دافول نه غروب اوپه غروب سره زوال دنورراشی، اووقت اوغلبه ختم شی اودمعزول پشان شی اوهرڅوک چه داسي وی نوهغه اله نشی کیدي، اواستدلال په دغه دري واړه طریقوسره شامل دي تمام ممکناتو محدثاتوته ،انسانان وی اوکه جنات وی اوکه ملائک وی ژوندی وی اوکه مړه وی اوکه بُتان وغیره وی. نوددي وجې نه «آفلين» جمع ذکرشوه چه ﴿ لَآ أُحِبُّ ٱلْأَفِلِينَ ﴾ اودنفی دمحبت نه مراد نفی دمحبت دعبودیت ده، اودمحضِ محبوبيت نفی نه ده مراد، چه کواکبْ، شمس،قمر، م خوخ نه دی. یامضاف مقدردي چه ((لااحب عبادة الافلين)) ﴿ فَلَمَّا رَءَا ٱلْقَمَرَ بَازِغًا ﴾ «بزوغ» طلوع ته وائی (بازغا ای طالعًا) ازهری وائی چه بزوغ په اصل کښي شق ته وائی اونمرسپوږمئ چه طلوع اوکړی نوتیاره څیری کړی. ﴿ فَلَمَّآ أَفَلَ قَالَ لَئِن لَّمْ يَهْدِنِى رَبِّى ﴾ د افول «غائب کیدلو» نه معلومه شوه چه قمرهم معبودنشی کیدي لکه په ماقبل جمله کښي معلومه شوه نوپه دي جمله کښي حکم دعبادت. دکوکب اودقمر. ذکرکيږی چه داگمراهی ده ، اوددي جملی نه دامعلومه شوه

. چه ابراهيم عليه السلام مخکښي په هدايت باندي وواوشک اوشرک کونکې نه وو ﴿لَئِن لَّمْ يَهْدِنِي﴾ معنى داده چه (ان لم يثبتنى على الهدى) اودامطلب نه دي چه مخکښي په هدايت نه وو «السراج المنير» اودانبياؤ عليهم الصلوات والتسليمات داعادت دي چه خپل کمال خپل خان ته نه منسوب کوی بلکه خپل کمال عطيه الهى گنړی اوځان محتاج گنړی الله تعالى ته نوځکه دلته دهدايت نسبت، رب ته اوشوچه معلومه شی چه انبياء هم په هدايت کښې محتاج دی الله تعالى ته، ﴿فَلَمَّا رَأَى الشَّمْسَ بَازِغَةً﴾ شمس مؤنث سماعى دې نوځکه بازغةً مؤنث ذکرشو . اوکه څوک دا **سوال** اوکړی چه روستو (هذاربی) کښې هذا مذکرولی ذکرشو. نو بعضو **جواب** کړي دي چه دا د رعايت دخبردووجې نه څکه چه اسم اشاره چه دائره شی په مابين دمشاراليه اودخبرکښې نورعايت دخبراولی وی، اوبعضو جواب کړيدي چه شمس مؤنث سماعى دي اودمؤنث سماعى دپاره تذکير اوتانيث دواړه جائزدی، اوبعضوئيلی دی چه داپه تاويل د ((هذاالطالع)) ياپه تاويل د ((هذاالضوء)) سره دي ﴿هَٰذَا أَكْبَرُ﴾ غټ والي په اعتباردجسم اودنُور دواړوسره مرادکيدي شی، اودعلماؤ دهيئة اودجديد سائنس اقوال په غټ والی دشمس کښې دزمکې اوسپوږمئ نه، مختلف دی، اوپه دې کښې اشاره خفيه ده فسادعقيدې دقوم ته چه مستحق دالوهية څوغټ وی نوکه دالله تعالى نه ماسوى بل چاته اله وانی نوبيافقط شمس اله اوگرځوئ. ﴿قَالَ يَا قَوْمِ إِنِّي بَرِيءٌ﴾ دلته هم دليل دَ افول دې. اوبراءت دې دشرک نه اودمعبودانو دمشرکينونه، متفرع دي په دغه دليل باندې چه افول دې. لکه دا معلوميږی د دې قول نه ﴿فَلَمَّا أَفَلَتْ﴾ او اُفول ئی دليل وگرځولو «فلما افلت» اوبزوغ ئی دليل اونه گرځوو، اگرکه هغه هم دليل کيدي شو، چه دا حرکت دي اوهر حرکت حادث وی - الخ . څکه چه په افول کښې عجزاوزوال ډير ظاهردې نو دا دليل گرزول اولی دی، دکواکبُ اودقمرعبادت دشپې کيږی، اودشمس عبادت دورځې کيږی نوحضرت ابراهيم عليه السلام دشرک ليلی دابطال په موقع کښې (لاحب الافلين) او (لئن لم يهدنى ربى - الخ) اوونيل څکه چه شرک کول څکاره نه وؤ اوشرک نهاری چونکه ظاهروؤ نودې دابطال په موقعه ئې براءت دشرک نه څکاره ذکرکړو، چه ﴿إِنِّي بَرِيءٌ﴾ جمله اسميه ده دلالت کوی په دوا م او استمرارباندې. نومعلومه شوه چه ابراهيم عليه السلام شک ياشرک نه دي کړې.

إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ حَنِيفًا

ــــکه ما برابر کړی دی مخ خپل[1] هغه ذات ته چه پیدا کړی ئی دی آسمانونه او زمکه، کلك اوبرابر یم په توحید بندګی

وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿۷۹﴾ وَحَاجَّهُ قَوْمُهُ ؕ قَالَ أَتُحَاجُّونِّي

اونه یم د مشرکانو د ډلې نه[2] اوجګړه وکړه د ده سره قوم د ده ، وه ویل ده آیا جګړه کوئ تاسو ما سره

فِي اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنِ ؕ وَلَا أَخَافُ

په باره د توحید د الله کښې او په تحقیق سره هدایت ئی کړی دی ما ته[3] (په دلیلونو سره) ، او زه نه یریږم

مَا تُشْرِكُونَ بِهِ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ رَبِّي شَيْئًا ؕ وَسِعَ

دهغه بُتانونه چه تاسو ئی شریك ګرځوئ د الله تعالی سره مګر که وغواړی رب خما څه شي احاطه کړیده

رَبِّي كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ؕ أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ ﴿۸۰﴾ وَكَيْفَ أَخَافُ مَا

خما د رب علم په هر شی باندې، آیا پس نصیحت نه قبلوئ تاسو او څنګه وه یریږم زه د هغه چا نه

أَشْرَكْتُمْ وَلَا تَخَافُونَ أَنَّكُمْ أَشْرَكْتُمْ بِاللّٰهِ مَا

چه تاسوئی د الله تعالی سره شریکوئ اونه یریږئ تاسو د دینه چه تاسو شریك ګرځوئ د الله سره هغه خوك

لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا ؕ فَأَيُّ الْفَرِيقَيْنِ أَحَقُّ

چه نه ئی دی نازل کړی د هغې په معبود والی په تاسو څه دلیل، پس کوم یو د دواړو ډلو نه زیات حقدار دی

بِالْأَمْنِ ۚ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۸۱﴾ اَلَّذِينَ اٰمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ

د بچ کېدلو د عذاب نه. که تاسو پوهیږئ هغه کسان چه ایمان ئی راوړی دی اونه ئی دی ګډ کړی ایمان خپل

---

1 دریمه قرینه

2 خلورمه قرینه جمله اسمیه

3 پنځمه قرینه

﴿بِظُلۡمٍ أُولَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱلۡأَمۡنُ وَهُم مُّهۡتَدُونَ ۝﴾

د شرك سره. دغه کسان د دوئ لپاره امن دې د عذاب نه او دوئ لار موندونکي دي

﴿إِنِّي وَجَّهۡتُ وَجۡهِيَ﴾ يعنى ماخپل مخ صرف الله تعالى ته گرخولې دې يعنى عبادت صرف دالله تعالى کوم، اومقصودم صرف الله تعالى دې. ﴿حَنِيفًا﴾ حنيف په اصل کښې مائل نه وئيلې شى اومستقيم ته هم وئيلې شى اوددې وجې نه کله .. اعرج.. ته حنيف. تفاؤلاً. وئيلې کيږى، نودحنيف معنى داده چه ميلان اواعراض کونکي دهرباطل نه اومستقيم کلك په حق اوتوحيد باندې- اوحنيف هغه چاته هم وائى چه په مونځ کښې استقبال کوى کعبې ته. يعنى مونځ کونکې کعبې ته.. ﴿وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ﴾ دابراءت دې دجماعت دمشرکينو نه په عقائدو اواقوالو اوافعالوتولوکښې اومخکښې براءت وو دشرك نه. ﴿وَحَآجَّهُۥ قَوۡمُهُۥ﴾ مشرکانودحضرت ابراهيم عليه السلام مقابله په دلائلو فاسدؤ سره هم اوکړه اوپه تخويف تهديد. سره ئې هم اوکړه چه زمونږ دمعبودانو نه يره اوکړه هسې نه چه په جنون اومرضونودې اخته کړى نوحضرت ابراهيم عليه السلام دهغوئ ددلائلو فاسدؤ ردپه دې سره اوکړو چه ﴿أَتُحَٰٓجُّوٓنِّي﴾ چه ماته الله صحيح پوهه راکړيده اودملکوت السموات والارض، سير علي وجه البصيرت ئې راباندې کړيدې نوآيازه ستاسو دفاسدو دلائلو اوخُرافاتونه متاثرکيدې شم؟ اودهغوئ دتخويف اوتهديد ردئې داسې اوکړو﴿وَلَآ أَخَافُ﴾ چه ستاسودمعبودانو په لاس کښې نفع نقصان، راحت زحمت هيڅ نشته نوزه ددې نه ولې اوويريږم ؟ ﴿إِلَّآ أَن يَشَآءَ رَبِّي شَيۡـًٔا﴾ البته که ماته په ژوند کښې، مرض يامصيبت رسيږى، نوهغه به صرف خُمادرب په مشيت اوارادې سره وى اوستاسو معبودانولره پکښې هيڅ مداخلت نشته، اودهغه په هرکارکښې حکمت وى چه بهغې دهغه علم محيط دې اود هغه علم هرڅه ته وسيع دې ﴿وَكَيۡفَ أَخَافُ﴾ يعنى ستاسو دمعبودانونه زه ولې اوويريګم اوحال دا چه نه دهغوئ په قبضه کښې نفع ضررشته. اونه دتوحيد اختياررول څه جرم دې چه ماته به په دې سره سزاملاؤشى بلکه خوف اويره تاسوله پکارده چه تاسو دالله تعالى باغيان مجرمان يئ اودبدترين جرم مرتکب يئ اوالله تعالى دنفع اوضررمالک هم دې. قادردې، نوتاسو به څه پوهيږئ نوفيصله پخپله اوکړئ چه خوف چاله پکاردې. اومستحق دامن دعذاب الهى نه څوک دې، مونږ ياتاسو؟ اودالله تعالى فيصله

خوداده چه ﴿الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا﴾ چه امن دعذاب الهی نه مؤمنانوته دي، ﴿وَلَمْ یَلْبِسُوْۤا اِیْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ﴾ دظلم نه مرادشرک دي، معتزله اوخوارج ددې آیت نه استدلال کوی چه مرتکب دکبیره مخلدفی النارديِ ځکه چه په دې آیت کښې اختصاص دامن راغې په هغه چاپورې چه ایمان ئې نه وی خلط کړې دهیڅ ظلم سره ځکه چه، ﴿بِظُلْمٍ﴾ نکره ده نوفائده کوی تعمیم، اوهرګناه خوظلم دې نوچه څوک دایمان سره ظلم یعنی ګناه خلط کړی نوهغه لره به امن نوی. **جواب** دادې چه دظلم نه مرادشرک دې لکه داقول دابن عباس رضی الله عنهما سعیدبن مسیب قتاده رضی الله عنهما وغیره هم دې اوپه حدیث دبخاری اونوروصحاحوکښې راغلیدی چه هرکله داایت نازل شو نوصحابؤ اووئیل چه (اَیُّنَالَمْ یَظْلِمْ) چه مونږ کښې څوک داسې دې چه ګناه به ئې نوی کړې. (مبنی ده سوال ددوئ داوه چه تنوین دتنکیر دپاره دې نو، ‹بظلم›، نکره ده تعمیم فائده کوی) نوجواب اوکړو نبی صلی الله علیه وسلم (اَلَمْ تعلمُوا الی ماقال لقمنُ لابنهِ وهُوَیَعِظُهٗ یابُنَیَّ لَاتشرِکْ باللهِ اِنَّ الشِّرْکَ لَظُلْمٌ عَظِیْمٌ) ،حاصل داچه تنوین دتعظیم دپاره دې او دظلم نه مراد ظلم عظیم دې یعنی شرک، اومطلب دآیت دادې چه کوم خلقوایمان راوړې وی اودایمان سره ئې شرک نوی خلط کړی نودوئ لره امن دې دعذاب الهی نه اوچاچه دایمان سره شرک خلط کړې وی نوهغوئ لره امن نشته دې، نومعتزله خوارج اعتراض کوی چه ایمان اوشرک نقیضین دې خلط ئې هسې هم نشی راتلې نوپه نفی کښې ئې څه فائده نشته ، نود«بظلم» نه شرک اراده کول صحیح نه شو. اهل سنت والجماعت جواب الزامی ورکوی چه ستاسو په نیز خوایمان هم دګناه سره نشی جمع کیدې نوبیاهم نفی ده ظلم روستود﴿اٰمَنُوْا﴾ نه مفیده نشوه، اوجواب تحقیقی دادې چه د «آمنوا» نه مرادتوحید فی الخالقیة والربوبیة دې اودظلم نه مرادشرک فی العبادة دې اوډیرخلق داسې دی چه دتوحیدفی الخالقیة والربوبیة قائله دی اودشرک فی العبادة مرتکب دی کماقال تعالی ﴿وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَهُمْ لَیَقُوْلُنَّ اللّٰهُ﴾ ، ﴿قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ السَّبْعِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِیْمِ ﴿۸۶﴾ سَیَقُوْلُوْنَ لِلّٰهِ﴾ ، وقال تعالی ﴿وَمَا یُؤْمِنُ اَكْثَرُهُمْ بِاللّٰهِ اِلَّا وَهُمْ مُّشْرِكُوْنَ﴾ ، مشرکین دتوحیدفی الخالقیة قائل وؤ، خالق اورب ئې صرف الله تعالی ګڼرلو، خوبیائې هم دغیرالله نه خپل حاجتونه غوختل اوهغوئ ته ئې سجدې کولې اودهغوئ په نوم ئې نذرونه ورکول نوالله تعالی فرمائی چه څوک داسې ایمان راوړی چه بل څوک (نبی ،ولی) حاجت روامشکل کشا، اوداالله تعالی په شان اختیارمند، اوغیب دان ئې ګڼری نودده ایمان

معتبر نه دي. بلکه معتبر او موجب د امن هغه ایمان دي چه د هیڅ قسم شرک سره نه وي خلط .
دغه شان ایمان موجب د امن دي

وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ اٰتَيْنٰهَآ اِبْرٰهِيْمَ عَلٰى قَوْمِهٖ ؕ نَرْفَعُ

و دغه دلیل زمونږ دي چه ورکړې وو مونږ دا ابراهیم ته په مقابله د قوم د ده کښې. پورته کوو مونږ

دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ؕ اِنَّ رَبَّكَ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ۝ وَ وَهَبْنَا لَهٗٓ

درجې د هغه چا چه وغواړو مونږ. بیشکه رب ستا حکمتونو والا . پوهه دي په هرڅه او ورکړې وو مونږ ده ته

اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ؕ كُلًّا هَدَيْنَا ۚ وَنُوْحًا هَدَيْنَا مِنْ قَبْلُ

اسحاق او یعقوب، هریو ته د دوئ نه هدایت ورکړې وو مونږ . او نوح ته هدایت ورکړې وو مونږ مخکښې د دینه

وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ وَاَيُّوْبَ وَيُوْسُفَ وَمُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ؕ

او د اولاد د نوح نه مونږ هدایت ورکړې وو داؤد او سلیمان ته او ایوب ته او یوسف ته او موسی ته او هارون ته

وَكَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ۝ وَزَكَرِيَّا وَيَحْيٰى وَعِيْسٰى وَاِلْيَاسَ ؕ

او دغسې بدله ورکوو مونږ ښائسته عمل کوونکو ته او زکریا او یحیی او عیسی او الیاس ته .

كُلٌّ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝ وَاِسْمٰعِيْلَ وَالْيَسَعَ وَيُوْنُسَ وَلُوْطًا ؕ وَكُلًّا فَضَّلْنَا

ټول دکاملو صالحانو نه وو . اواسماعیل ته اویسع ته اویونس ته اولوط ته. او دې ټولو ته غوره والي ورکړې وو مونږ

عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ۝ وَمِنْ اٰبَآئِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَاِخْوَانِهِمْ ۚ وَاجْتَبَيْنٰهُمْ

په خلقو باندې اوبعضې دپلارانو ددوئ نه او د اولاد د دوئ نه او د رونړو د دوئ نه. او غوره کړي وو مونږ دوئ.

وَهَدَيْنٰهُمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝ ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهْدِيْ بِهٖ

او روان کړي وو مونږ دوئ په لاره سمه باندې دغه دین حقّه هدایت دي د الله د طرفه . هدایت کوي بدې سره

مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ؕ وَلَوْ اَشْرَكُوْا لَحَبِطَ

هغه چا ته چه وغواړي د بندګانو خپلو نه . اوکه بالفرض دوئ شرك کړې وي نوخامخا به برباد شوي وو

عَلَيْهِمْ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٨٨﴾

د دوئ نه هغه عملونه چه ځوئ کول

﴿وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ﴾ تلک اشاره ده، مذکوراستدلال دابراهيم عليه السلام ته د «قال هذاربى» نه تر «مهتدون» پورې. ﴿ءَاتَيْنَٰهَآ﴾ ورکول په طريقه دوحى سره مراددى. ﴿عَلَىٰ قَوْمِهِۦ﴾ دپاره الزام اوغلبى په قوم باندې، نودامذكور كلام حجت، اوالزام هله کيدې شى چه په طريقه دشک اوشرک سره نه وی، اود «على قومه» نه داهم معلومه شوه چه دامذکور حجت الله تعالى دابراهيم عليه السلام دپوهې دپاره نه ؤوورکړې بلکه دقوم په مقابله کښې اودهغوئ دالزام دپاره ئې ورکړې وؤ- ﴿نَرْفَعُ دَرَجَٰتٍ مَّن نَّشَآءُ﴾ يعنى داسې حجت سبب درفع ددرجاتودې علمى عملى دواړه درجې مراددى، اودتنکيرددرجات نه معلوميږى چه ددرجاتودپاره څه مخصوص حد نشته دې دهرې مرتبې دپاسه بله مرتبه کيدې شى امام رازى رحمه الله اوجصاص وغيره محققينو ددينه دااستنباط کړيدې چه شغل په علم کلام کښې اوپه دلائلو داثبات دتوحيدکښې اشتغال په لايعنى کښې نه دې بلکه لوئې شرف اوسبب درفع ددرجاتو دې ﴿وَوَهَبْنَا لَهُۥٓ إِسْحَٰقَ﴾ دحضرت ابراهيم عليه السلام دتفصيلى ذکرنه بعدداولسو (١٧) انبياؤ ذکراجمالاً دې، اوداذکرنهايت په عمده ترتيب سره ذې، اول څلور انبياء، حضرت ابراهيم، اسحق، يعقوب ، نوح عليهم السلام، اصول اباء دپيغمبرانودى حضرت داؤداوسليمان عليهما السلام ، لوئې بادشاهان وؤ. حضرت يوسف اوايوب عليهما السلام ته په زندګئ کښې ډير مصيبتونه اوتکليفونه راغلى وؤ، حضرت موسى اوهارون عليهما السلام ته لوئ لوئې معجزات ورکړی شوی وو اوحضرت عيسى اوالياس عليهما السلام، ډيرعابدان زاهدان وو، اودحضرت اسماعيل واليسع، اوداليسع اويونس اولوط عليهم السلام ، ملګری متبعين ډيرکم وو اود دوئ ددين شهرت زيات نه ووالبته په يونس عليه السلام باندې روستوډيروخلقو ايمان راوړو ، خواول ئې ملګری ډيرکم وو- نوپه دې آيت کښې دينته اشاره ده چه انبياؤ په هرحال کښې ددين محنت کړيدې په حال دمشرئې کښې اوپه حال دبادشاهئې کښې اوپه حال دمصائبو اودسختوکښې اوپه حال دزهد کښې اوپه حال دکموالى دملګرو کښې اودمتبعينو کښې، په هرحال کښې ئې ددين محنت کړې دې ﴿وَمِن ذُرِّيَّتِهِۦ﴾ ضمير راجع دې نوح عليه السلام ته نه ابراهيم عليه السلام ته څکه چه لوط عليه السلام اګرکه د ابراهيم عليه السلام وراره «برادرزاده» دې نو په اولاد کښې مجازًا شامل کيدې شى ليکن يونس عليه السلام مطلقًا د ابراهيم عليه السلام په اولادکښې نه دې. ﴿وَكَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلْمُحْسِنِينَ﴾

یعني لکه څه رنګه چه دوئ ته رفع د درجاتو ملاؤشوه نوهراحسان کونکی او ددین خدمت کونکی ته هم ملاویکی، ﴿كُلٌّ مِّنَ الصَّالِحِينَ﴾ داځلورانبیاء دکمال زهداوعبادت دوجې نه داعلی اواکمل صالحینو نه شمارشو . اوداسماعیل اوالیسع اویونس اولوط علیهم السلام دین مشهور شوي نه وؤ نو خلقو ددوئ فضیلت نه پیژندلو نوځکه ورسره ﴿وَكُلًّا فَضَّلْنَا﴾ ذکرشو . ﴿وَمِنْ آبَائِهِمْ﴾ معنی داده چه په مذکوره انبیاؤکنبې چه دچاپلاران وو-نوپه هغوئ کنبې بعضو ته مونږ هدایت کړې وو . اودامعنی نه ده چه دمذکور انبیاؤ کنبې دټولو آباؤ، لکه قادیانی دجال وغیره وائی چه دحضرت عیسی علیه السلام پلاروو.لکه د ((وذریاتهم واخوانهم)) مطلب دانه دې چه دټولواخوان ((رونړه)) ذریات وو، اوداخبره چه هرکله دحضرت عیسی علیه السلام پلارنه وونوبیاڅه رنګه په ذریت دنوح یادابراهیم کنبې داخل دې، **نوجواب** دا دې چه دلونړواولادهم ذریت دې اوددې نه فقهاؤ استدلال کړیدې چه حسنین ذریت دنبی صلی الله علیه وسلم کنبې داخل دی، ﴿وَاجْتَبَيْنَاهُمْ وَهَدَيْنَاهُمْ﴾ دا دواړه صفات دنبوت دی، اجتباء غوره والې دصفاتوحسنؤ لازمؤ نه دې اوهدایت دعلومو دنبوت اودصفاتو متعدیؤ نه دې اومجموعه ددواړو صراط مستقیم اولاردانبیاؤ ده، ﴿ذَٰلِكَ﴾ دا اشاره دهدایت ته چه مذکور دې په ضمن د ((هدیناهم)) کنبې ﴿هُدَى اللَّهِ يَهْدِي﴾ الله تعالی چه چاته هدایت ورکول اوغواړي نورئې کړي، نوانبیاؤ ته الله تعالی هدایت ورکړیدې اومعصوم کړي ئې دی دضلالت اوشرک نه، اوشرک داسې ناقابل معافی جرم دې چه ﴿وَلَوْ أَشْرَكُوا﴾ که په فرض محال دوئ شرک کړې وې نودې محبوب اومقربین بندګانوته به هم داجرم معاف نه وې اوددوئ تمام اعمال به بربادشوي وې نو چه په شرک سره دانبیاء مقربینو عمل حبط کیږي نودبل چاڅه حیثیت دې

| أُولَٰئِكَ الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ۚ فَإِن يَكْفُرْ بِهَا |
| --- |
| داهغه کسان دی چه ورکړې وؤمونږ دوئ ته کتاب اوشریعت او پیغمبری، پس کچرې انکاروکړي د دې آیتونو د قرآن نه |
| هَٰؤُلَاءِ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا |
| دا خلق (اهل مکه) پس په تحقیق سره مونږ مقرر کړي دي (یعني توفیق ورکړې دې مونږ) په دې باندې داسې قوم ته |
| لَّيْسُوا بِهَا بِكَافِرِينَ ﴿٨٩﴾ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ |
| چه ندی د دې نه انکار کونکی دا ؤله د انبیاؤ هغه خلق دی چه هدایت کړې دې دوئ ته الله تعالی |

فَبِهُدٰىهُمُ اقْتَدِهْ ۗ قُلْ لَّآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ؕ

پس په طريقه د دوئ اقتداء وکړه ته، ووايه چه زه نه غواړم ستاسو نه په تبليغ د دې قرآن هيڅ بدله.

اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٰى لِلْعٰلَمِيْنَ ۝

ندې دامگر نصيحت دې لپاره د ټولو خلقو

﴿ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ ﴾ داتفصيل دهدى الله دې يعنى هدايت دالله تعالى کتاب اوحکم اونبوت دې. د «الْكِتٰبَ» نه مراد جنس دې اومراد دکتاب ورکولونه دادې چه يائى ورته مخکنې کتاب په ميراث کښې ورکړو يائې ورته بل جديد کتاب نازل کړو ﴿ وَالْحُكْمَ ﴾ دحکم نه مراد دادې چه هرنبى ته دکتاب نه علاوه وحى هم ورکوى چه هغې ته حکمت اوسنت وئيلې شى ﴿ وَالنُّبُوَّةَ ﴾ يعنې ورکړې وو مونږ دوئ ته نبوت ﴿ فَاِنْ يَّكْفُرْ بِهَا ﴾ ضمير راجع دې ثلاثو ته (کتاب، حکم، نبوة) ياراجع دې آياتونودقرآن نه ﴿ هٰٓؤُلَآءِ ﴾ نه مرادموجوده کفاردى، اهل مکه وغيره ﴿ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا ﴾ مقررکړيدې مونږ اوتوفيق دايمان په دې باندې ورکړيدې مونږ ﴿ قَوْمًا ﴾ دينه صحابه مهاجرين، انصارمراددى اوددوئ اتباع کونکى دقيامت پورې اودارنگه دهرې زمانې اتباع دانبياؤ مراددى. اوپه دې کښې اشاره ده ديته چه الله تعالى په حفاظت ددين کښې چا ته محتاج نه دې که يوخاص قوم ددين حفاظت اوخدمت نه کوى نوالله تعالى دبل چانه داخدمت اخلى. اودا انتخاب الهى دې اودهغه عظيم احسان انعام دې چه دچانه ددين خدمت واخلى. الله تعالى دخادمانو ددين نه دشکر توفيق ورکړى (آمين)، ﴿ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ ﴾ دااشاره ده انبياؤ ته او﴿ هَدَى اللّٰهُ ﴾ په اصل کښې «هداهم الله» دې اوددينه يوه داخبره معلومه شوه چه انبياء معصوم دى دضلال اوگناه نه بله دامعلومه شوه چه هدايت منحصردې په طريقه دانبياؤ عليهم الصلوات والتسليمات پورې ﴿ فَبِهُدٰىهُمُ اقْتَدِهْ ﴾ ددوئ په طريقه ته هم روان شه، ﴿ اقْتَدِهْ ﴾ کښې هاء دوقف دپاره ده اوضميرنه دې ددې نه مراددادې چه لکه څه رنگه چه هغوئ ردد شرک اواثبات دتوحيد کولونوته هم داسې کوه (اى فى نفى الشرک واثبات التوحيد) (کبير) يادامعنى ده چه لکه څه رنگه هغوئ دمنکرينو په ايذارسانئ صبر کرى وؤ نوته هم داسې

صبر کوه. (ای اصبر کماصبروا) -قرطبی) داقتداء معنی دَموافقت دَ روستنی دَ مخکنی سره په
تول اوعمل کښې اودامعنی صرف په روستو والی دلالت کوی اوپه افضلیت دلالت نه کوی
وافضلیت دمقتدی (امام) دمقتدی نه ضروری هم نه دې ځکه اقتداء دنبی صلی الله علیه
وسلم په مونځ کښې په ابوبکررضی الله عنه پسې، اوپه عبدالرحمن بن عوف پسې ثابته ده
اودارنګه اقتداء دصحابؤ په تابعینو پسې په مونځونوکښې ثابته ده حالانکه دلته افضلیت
دمقتدی یامساواة ئې دمقتدی سره نشته دې، نوداآیت دلالت نه کوی په افضلیت
دنوروانبیاؤپه سیدالکونین صلی الله علیه وسلم باندې، اوددې آیت نه یودامعلومه شوه چه
اصول دین دټولوانبیاؤیودی اختلاف ئې صرف په بعض فروعوکښې کښې دې. اوبل
دامعلومه شوه چه شرائع دمخکنوانبیاؤ زمونږ دپاره شرع ده اوحجت دې که چرې نسخ یا
تخصیص ثابت نه وی اوپه حدیث دبخاری کښې دی چه حضرت ابن عباس رضی الله عنه په
سورة ص کښې دسجدې داثبات دپاره داآیت په دلیل کښې پیش کړې دې-علامه شیربینی
وغیره وائی چه استدلال کړیدې بعض علماء په دې آیت سره چه نبی پاک صلی الله علیه وسلم
دټولو انبیاؤ نه افضل دې ځکه چه په دې آیت کښې ((اقتده)) حکم راغلیدې اوداسې خوکیدې
نه شی چه نبی صلی الله علیه وسلم په دې باندې عمل نه دې کړې نومعلومه شوه، چه ټول هغه
خصلتونه اوصفات دشرافت چه په انبیاؤ کښې متفرق طورسره موجودوؤ، هغه ټول زمونږ په
نبی صلی الله علیه وسلم کښې جمع دی نوپه نوح علیه السلام کښې تحمل اوصبرپه ایذاء دقوم وه اوپه
حضرت ابراهیم علیه السلام کښې کرم اومجاهده فی الله اوپه دعوت کښې طریقه داستدلال وه اوپه
اسحق اویعقوب علیهما السلام کښې صبرپه مصائبو اوپه داؤد اوسلیمان علیهما السلام
کښې شکر دنعمتونووو اوپه ایوب علیه السلام کښې صبرپه مرضونووو اوپه یوسف علیه السلام کښې
شکراوصبر په حسددبدخواهانووؤ اوموسی اوهارون علیهما السلام کښې کثرت دمعجزاتو
اودلوئ متکبر طاغی سره مقابله وه، اوپه ذکریااویحی اوعیسی اوالیاس علیهم السلام کښې
زهد فی الدنیا وو اوپه اسماعیل علیه السلام کښې صدق اوپه یونس علیه السلام کښې تضرع وه په سختئ
کښې. دې ټولوصفاتوته اشاره ده په ﴿فَبِهُدَاهُمُ﴾ کښې اوبیاالله تعالی نبی صلی الله علیه
وسلم ته حکم اوکړو چه ددغه انبیاؤ په طریقه ته روان شه نومعلومه شوه چه دغه ټول صفات
دشرافت اوفضائل چه متفرقًا موجودوؤپه انبیاؤ کښې هغه راجمع دی په سیدالکونین صلی
الله علیه وسلم کښې، نوافضل الرسل اشرف الرسل شو (صلی الله علیه وسلم) ﴿ قُل لَّآ

﴿أَسْئَلُكُمْ﴾ دانبیاؤ یوسنت اوخصلت داهم دي چه په تبلیغ ددین اجرت معاوضه فیس . نه اخلی، ځکه تبلیغ په دوئ باندې فرض عین دی اوپه فرض عین اجرت اخستل جائزنه دی اوچه فرض عین نه وی نوپه هغې باندې اجرت اخستلوکښې اختلاف دې. مدارک وائی چه ((فیه دلیل علی ان اخذالاجرعلی تعلیم القرآن ورواية الحديث لايجوز))

﴿إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرَىٰ﴾ ضمیرقرآن ته راجع دې مطلب دادې، چه قرآن دقصویادسائنس فلسفی یادتاریخ، جغرافیه ،کتاب نه دې بلکه دانصیحت اودستورالعمل دې اوصرف دعربو دپاره هم نه دې بلکه ده تمام عالم اقوامودپاره دې.

| |
|---|
| وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ إِذْ قَالُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ |
| او دوئ (یهودیانو) ندي پیژندلې الله په حق پیژندلو سره [1] کله چه وه ویل دوئ ندي نازل کړې الله تعالی |
| عَلَىٰ بَشَرٍ مِّن شَيْءٍ قُلْ مَنْ أَنزَلَ الْكِتَابَ الَّذِي جَاءَ بِهِ مُوسَىٰ نُورًا وَهُدًى |
| په هیڅ بنده باندې هیڅ شې، ته ووایه [2] چا نازل کړې دې هغه کتاب چه راوړې دې هغه موسی رڼا او هدایت |
| لِّلنَّاسِ تَجْعَلُونَهُ قَرَاطِيسَ تُبْدُونَهَا وَتُخْفُونَ كَثِيرًا |
| لپاره د خلقو (یهودیانو) چه ګرځوئ تاسو هغه ټکرې ټکرې، ښکاره کوئ بعضې او پټوئ ډیر لره. |
| وَعُلِّمْتُم مَّا لَمْ تَعْلَمُوا أَنتُمْ وَلَا آبَاؤُكُمْ |
| او ښودلې شوی دی تاسو ته [3] په ذریعه د دې کتاب هغه څه چه نه پیژندل تاسو اونه ستاسو پلارانو. |
| قُلِ اللَّهُ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِي خَوْضِهِمْ يَلْعَبُونَ ⊙ |
| ته ووایه چه الله نازل کړې وو ، بیا پریږده دوئ په خرافاتو د دوئ کښې چه لوبې کوی |

﴿وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ﴾ داشکوه ده او ﴿قُلْ مَنْ أَنزَلَ الْكِتَابَ الَّذِي﴾ ورته جواب دې، دابن عباس

---

١ . شکوی

٢ جواب شکوی او دلیل اول لپاره د صداقت د موسی علیه السلام

٣ دویم دلیل لپاره د صداقت د موسی علیه السلام

ﷺ نه روایت دې چه یهودیانو نبی صلی الله علیه وسلم ته اوونیل چه آیاالله تعالی په ښاندې کتاب نازل کړیدې نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه (نعم) ، نودوني اوونیل ((والله ما انزل الله من السماء کتابا)) دسعیدبن جبیر نه روایت دې چه دیهودیانو یوعالم اورئیس چه مالک بن صیف نوم ئې دې راغې دنبی صلی الله علیه وسلم سره ئې مخاصمه. مناظره کوله په مکه کښې، (که چرې دا سورة مکی وی) نونبی صلی الله علیه وسلم هغه ته اوفرمائیل چه زه تاته قسم درکوم په هغه الله سره چه تورات ئې نازل کړیدې په موسی علیه السلام آیاتانه دی موندلی په تورات کښې، چه ((ان الله یبغض الحبرالسمین، وکان حبراً سمینا)) یعنی الله تعالی نه خوخوی څورب عالم، چه دالله تعالی خوف اودآخرت غم ورسره نه وی اودخوهشاتو نفسانیوتابع وی ، او دغه عالم، رئیس څورب ملاوو ، نوپه غصه شو اواوئې وئیل چه ((والله ما انزل الله علی بشر من شئ)) نو قوم ئې ورته وه وئیل چه : هلاك شې دا دې څه وه وئیل. نو ده وه‌وئیل چه زه محمدپه غصه کړې وم ، نوهغوئ ده لره دمشرئې نه اوباسلو اودده په ځائې ئې کعب بن اشرف مشرکړو. (السراج المنیر) په دې ایت کښې اشکال دې هغه داچه که ددې قول قائلین مشرکین مکه وی لکه ابن کثیر وائی نوروستوجواب ورسره موافق نه دې ځکه مشرکین . نه دَ موسی علیه السلام دنبوت قائل وو ، نه دَ نورانبیاؤ ، اوکه یهودیان وی نوبیایو اشکال دادې چه دوئ دخپلو مسلماتوخلاف خبره څنګه اوکړه؟ دوئ خودنبوت اودنزول دوحی قائل وو. اوبل اشکال دادې چه دیهودو سره مخاصمه دهجرت نه بعدپه مدینه کښې ده اوداسورت مکی دې نوددې دواړو اشکالونو جواب دغه مذکورروایت نه معلوم شو ، چه قائلین یهوددی او دغه قول ئې دغصې دجوش په وجه‌کړیدې، اوانسان چه کله په ډیره غصه اوغلو کښې راشی نوبیائ خپلومسلماتو ته هم خیال اوتوجه نه وی، اوددې وجې نه یهودیانودغه عالم دخپلې مشرئ نه معزول کړو چه ده دیهودودمسلماتونه خلاف قول اوکړو -اوده دغه روایت نه داهم معلومه شوه چه دوئ مکې ته تللی وو. هلته داګفتګواومناظره شویده. اوبعضو داجواب کړیدې چه کیدې شی چه داایت مدنی وی کله په مکی سورة کښې بعض ایاتونه مدنی هم وی. ﴿قَدَرُوا اللَّهَ﴾ په معنی د ((ماعرفواالله)) . یا ((ماعظمواالله)) سره دې. یعنی دوئ الله تعالی نه دې پیژندلې په حق پیژندلو سره ، یادوئ دالله قدراوتعظیم نه دې کړې حق قدراوتعظیم سره ﴿حَقَّ قَدْرِهِ﴾ مفعول مطلق دې په اصل کښې ((قدره الحق)) دې بیا اضافت

دصفت وشو موصوف نه ﴿مَآ أَنزَلَ اللَّهُ﴾ سلب کلی دی. ددې په جواب کښې ایجاب جزئی راخی چه ﴿قُلْ مَنْ أَنزَلَ الْكِتَٰبَ الَّذِى﴾الخ ﴿نُورًا وَهُدًى﴾ منصوب بنابرحالیت دی. ((نور)) نه مراد دلیلونه او د ((هدیٰ)) نه مراد حکمونه دی ﴿تَجْعَلُونَهُ﴾ داجمله حال دې د ((الكتب)) نه یاجمله استینافیه ده اودعلماؤ دیهودودشرارت بیان دې ﴿قَرَاطِيسَ﴾ ای فی قراطیس. ﴿تُبْدُونَهَا﴾ ښکاره کوئ هغه چه ستاسو دطبیعت سره موافق وی اوپټوئ هغه چه ستاسو دطبیعت اومزاج نه مخالف وی لکه دنبی صلی الله علیه وسلم اوصاف یاحکم درجم وغیره ﴿وَعُلِّمْتُم﴾ دادویم دلیل دصداقت دوحی دې. یعنی تاسوته چه اهل علم اواهل کتاب وئیلې شی نودتورات په وجه وئیلې شی، نودغه کتاب چانازل کړیدې؟ یادامعنی ده چه تاسوته علم درکړې شویدې په واسطه دحضرت محمدصلی الله علیه وسلم زیات دهغې نه چه په تورات کښې وو. اوبیان دهغې چه اشتباه اوالتباس په تاسواوستاسوپه آباؤ وولکه په دې قول کښې، ((ان هذاالقرآن یقص علی بنی اسرائیل اکثرالذی هم فیه یختلفون)) .

﴿قُلِ اللَّهُ﴾ ای الله انزله، اودامتعلق دې د ﴿قُلْ مَنْ أَنزَلَ الْكِتَٰبَ الَّذِى﴾ سره یعنی ته ترینه تپوس اوکړه چه داکتاب چانازل کړې دې نوکه دوئ اقراراوکړی چه الله نازل کړې دې نو(فبها) اوکه اقراراونکړی نوته اوویه چه الله تعالی نازل کړې دې ﴿ثُمَّ ذَرْهُمْ فِى خَوْضِهِمْ﴾ بیاپریکده دوئي لره په خرافاتو ددوئ کښې، اودازجراوتهدید دې منکرینوته بعدد الزام نه په دوئ

| وَهَٰذَا | كِتَٰبٌ | أَنزَلْنَٰهُ | مُبَارَكٌ | مُّصَدِّقُ | الَّذِى |
|---|---|---|---|---|---|
| او دا قرآن هغه کتاب دې [1] چه مونږ نازل کړې دې دا، برکت والا ، تصدیق کوونکې دې د هغه کتابونو | | | | | |
| بَيْنَ | يَدَيْهِ | وَلِتُنذِرَ | أُمَّ | الْقُرَىٰ | وَمَنْ |
| چه د ده نه مخکښې دی. او د دې لپاره چه ته وه ویروې په دې سره مرکزی کلې (یعنې اهل مکه) او هغه خوك چه | | | | | |
| حَوْلَهَا | وَالَّذِينَ | يُؤْمِنُونَ | بِالْآخِرَةِ | يُؤْمِنُونَ | بِهِۦ |
| چاپیره د دوئ نه دی. اوهغه کسان چه ایمان لری په آخرت باندې دوئ راوړی ایمان په دې کتاب (قرآن) باندې | | | | | |

١ - دلیل وحیی لپاره د توحید نفی شرك فی التصرف.

وَهُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ ⊙

او دوئ دخپلو مونځونو ساتنه کوی

﴿وَهٰذَا كِتٰبٌ﴾ دادلیل وحی دي دنفی دشرک اعتقادی دپاره اوترغیب دي ایمان ته په محمدصلی الله علیه وسلم باندي یعنی لکه څه رنګه چه په موسی علیه السلام کتاب نازل وو- دغه ـن داقرآن په تانازل دي اوپه دي کښي دتورات تصدیق دي چه موافق دي دهغه سره په بیان دتوحید اورسالت وغیره کښي نودا ولي نه منئ تاسو، تنوین په «کتابٌ» کښي دتعظیم دپاره دي یعنی داعظیم شان اوقدر والا کتاب دي ﴿أَنزَلْنٰهُ﴾ دااهم بیان دعظمت دي چه دادالله تعالی کتاب دي ﴿مُبٰرَكٌ﴾ برکت، نماءاو زیادت ته وائی یعنی ((کثیرالخیر والبرکات)) دائمی نفع والاکتاب دي.دقرآن سره چه څوک تعلق ساتی نوهغه ته هم ډیرخیربرکت اوسعادت حاصلیږی او دا مجربه ده سلفًا ،،خلفًا امام رازی رحمه الله ددي آیت په په ذیل کښي لیکی، یقول مصنف هذالکتاب (تفسیر کبیر) محمدبن عمرالرازی – اناقد نقلت انواعًا من العلوم النقلیة والعقلیة فلم یحصل لی بسبب شئ من العلوم من انواع السعادات فی الدارین مثل ماحصل لی بسبب خدمت هذاالعلم – یعنی ماډیرعلوم عقلی نقلی حاصل کړیدی لیکن ماته دهیڅ علم نه ددین اودنیا هغه خیراوسعات نه دي حاصل شوي کوم چه ماته په خدمت ددي علم (قرآن) سره حاصل شویدي . ﴿وَلِتُنذِرَ﴾ واؤزائددي یاعاطفه دي معطوف علیه مقدردي چه «لتبین» دي «ام القری» مضاف مقدردي ((ای اهل ام القری)) ام القری (مرکزی شهر) دمکی نوم دي ام القری ورته یاپه دي وجه وائی چه دتماموبلادو د روحانی پرورش سبب دي، ټول رحمتونه دلته نازلیږی بیا په ټوله دنیا باندي تقسیمیږی، یا ورته د دي وجه نه وائی چه د ټولوبلادو قبله رُخ دتوجه، اومجمع دهغوئ ده، دټول دنیا خلق دلته جمع کیږی، اودجغرافیه په لحاظ سره په عین وسط کښي واقع ده، یاداچه ټوله زمکه د دینه غوړیدلي اوخوره شوي ده یاداچه دااول بیت دي دخلقودعبادت دپاره.د﴿وَمَنْ حَوْلَهَا﴾نه مراد نور ټول بلاددی شرقا وغربًا اوددینه ثابتیږی عموم بعثت دسیدالکونین صلی الله علیه وسلم .﴿وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِالْاٰخِرَةِ يُؤْمِنُونَ بِهٖ﴾ ضمیرراجع دي نبی صلی الله علیه وسلم ته یاقرآن ته، اوڅوک چه ایمان لری په آخرت .نو د

عاقبت فکرکوی نودهغې وجې نه ایمان په نبی اوپه قرآن لری ﴿وَهُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ﴾ ذکرد صلوٰة روستو دذکرد ایمان نه دپاره داهمیت دې ځکه چه صلوٰة عمادالدین دې، عَلَم الایمان دې

| وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا أَوْ قَالَ أُوحِيَ إِلَيَّ |
|---|
| اوخوك دې زيات ظالم د هغه چا نه چه جوړ كړى په الله تعالى باندې دروغ. يا وائى وحى كړې شوې ده ماته. |
| وَلَمْ يُوحَ إِلَيْهِ شَيْءٌ وَّمَنْ قَالَ سَأُنْزِلُ مِثْلَ مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ |
| او وحى نوى سوى ده نه هيڅ څه، او هغه څوك چه وائى چه زر ده چه زه به هم نازل كړم په شان دهغې چه نازل كړې دي الله. |
| وَلَوْ تَرٰى إِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا |
| او ډير تعجب به وكړې ته، كه ووينې كله چه ظالمان په سختو د مرگ كښې وى، او ملائك اوږده كوونكى وى |
| أَيْدِيْهِمْ أَخْرِجُوْٓا أَنْفُسَكُمْ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا |
| لاسونه خپل، وائى به راوباسئ ساگانې خپلې، نن بدله دركيدې شى تاسوته د عذاب د ذلت، په سبب د هغه چه |
| كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ ۝ |
| ويل به تاسو په الله تعالى باندې ناحقه خبرې او وئ تاسو چه د آيتونو دهغه نه مو تكبر كولو |

﴿وَمَنْ أَظْلَمُ﴾ دازجردې چه دادرې صفات یایوددینه په چا کښې موجو شی نو هغه ډیر لوئ ظالم دې، اول ﴿وَمَنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا﴾ مرادترینه شرک دې لکه تحریم دهغه شئ چه الله تعالى نوى حرام كړې. مثل عمروبن لُحَىّ واتباعه القائلين بان الله حرم السوائب (مظهرى) دويم ﴿أَوْ قَالَ أُوحِيَ إِلَيَّ﴾ دعوه دنبوت كاذبه اوكړى لكه مسيلمة الكذاب، اسودعنسى، دارنگه مرزا قاديانى لعين، دريم داچه ﴿وَمَنْ قَالَ سَأُنْزِلُ﴾ يعنى دمقابلې دقرآن دعوه اوكړى، مفسرين وائى چه ددې مصداق نضربن حارث دې ياعبدالله بن ابى سرح دې نضربن حارثه دقرآن دمعارضې دپاره داسې ونيلى وو: ((والطاحنات طحنًا والعاجنات عجناً فالخابزات خبزاً فاللاقمات لقمًا)) اوعبدالله بن ابى سرح دحضرت عثمان رضى الله عنه رضاعى روروو، اوكاتب دوحى وو. هركله چه دسورت المؤمنون، دا آيت نازل شو ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ طِيْنٍ﴾ .

نونبی صلی الله علیه وسلم دې را اوبللو دلیکلو دپاره، نوده لیکل شروع کړه نوچه ﴿ ثُمَّ أَنشَأْنَٰهُ خَلْقًا ءَاخَرَ ﴾ ته اورسیدو، نوتعجب ئې اوکړو دتفصیل دخلق دانسان نه. نوتعجبًا ئې اوونیل چه ﴿ فَتَبَارَكَ ٱللَّهُ أَحْسَنُ ٱلْخَٰلِقِينَ ﴾ ،نونبی صلی الله علیه وسلم ده ته اوفرمائیل چه (کذلک انزلت) دغه شان خونازل شویدې نودته شک راغې او وې وئیل (ان کان محمدصادقا لقد اوحی إِلَيَّ کما اوحی الیه) نومرتدشو، په فتح مکه کښې نبی صلی الله علیه وسلم دده دقتل حکم کړې وو، نودې پټ شو، اوبیاعثمان رضی الله عنه دده سفارش اوکړو نونبی صلی الله علیه وسلم دته امن ورکړو اوایمان ئې راوړو- کامل الایمان وو، په فتح دمصرکښې حاضروو اوحضرت عثمان رضی الله عنه ده لره دمصروالی مقررکړې وو اودده په لاس افریقه فتح شویده په سنه ۲۷هـ کښې اودارنګه حبشه په سنه ۳۱ هـ دحضرت عثمان ﷺ دشهادت نه بعدوفات شویدې، دعائې کړې وه چه (اللهم اجعل خاتمة عملی صلوة الصبح) نودصباح مونځ ئې کولو چه په اول رکعت کښې ئې فاتحه او (والعادیات) تلاوت کړل، اوپه دویم رکعات کښې ئې فاتحه اویوبل سورة تلاوت کړو، چه یوطرفته ئې سلام اوګرځولو نوروح ئې قبض شو. (قرطبی)

﴿ إِذِ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴾ دغه مذکور درې قسمه ظالمانوته شامل دې، ﴿ فِى غَمَرَٰتِ ٱلْمَوْتِ ﴾ په سختو د زنکدن کښې،غمرة، شدت، (سختئ) ته وائی اوجمع ئې غُمرٌ راځی لکه نوبةٌ نوبٌ ،- من غمره الماء اذا ستره، دکوم لفظ په ماده کښې چه غین میم وی هغه په ستردلالت کوی لکه سیف مغمودٌ مُغَمّدٌ ای موضوع فی غمده مستررفیه، تغمّده الله بغفرانه ای سترهُ الله. غمز(په سترګوپټه اشاره) غمس، په اوبو کښې ډوبیدل ، یمین غموس. ګویا کښې په ګناه کښې ډوب شو. غمض الامرای خفی، کلام غامضٌ ای غیرواضح،، جواب د ﴿ وَلَوْ تَرَىٰٓ ﴾ محذوف دې چه (لرایت امراً فظیعًا) دې.

﴿ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ بَاسِطُوٓا۟ أَيْدِيهِمْ ﴾لاسونه اوګده کړی وی دروح قبض کولودپاره یادوهلودپاره ﴿ أَخْرِجُوٓا۟ أَنفُسَكُمُ ﴾ که څوک دا **سوال** وکړی چه څوك قدرت نه لری په اخراج د روح د خپل بدن نه نو بیا د (اخرجوا انفسکم) څه فائده ده؟ **جواب** ددې معنی داده (اخرجواانفسکم کرهًا) یعنی جبراً د روح اخراج مراددې په خلاف دَ روح دمؤمن نه چه هغه په رضااوخوشئ سره

اوبا سلي شي. مؤمن ته په وخت دموت كښې دالله تعالى ملاقات دهرڅه نه زيات محبوب وي. يامعنى داده چه بچ كړئ خپل ځان دعذاب نه، كه قدرت لرئ نوداتوبيخ دي. ﴿ٱلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ﴾ ديوم نه مراد مطلق زمانه ده. نوداشامل دي عذاب دنزع، اوعذاب دبرزخ اوعذاب دحشر ته. ﴿غَيْرَ ٱلْحَقِّ﴾ اول دواړه قسمونوته راجع دي ﴿وَكُنتُمْ عَنْ ءَايَـٰتِهِۦ﴾ دريم قسم ته راجع دي. دريِ واړه مذكوره خبرې دتكبردوجې نه پيداكيږي نودديِ وجې نه عذاب داهانت ورته وركولى شي

وَلَقَدْ جِئْتُمُونَا فُرَادَىٰ كَمَا خَلَقْنَـٰكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَتَرَكْتُم

او خامخا به تحقيق سره راغلئ تاسو مونږ ته يواځې . لكه چه پيدا كړي وئ مونږ تاسو اول ځل او پريخودل تاسو

مَّا خَوَّلْنَـٰكُمْ وَرَآءَ ظُهُورِكُمْ ۖ وَمَا نَرَىٰ مَعَكُمْ شُفَعَآءَكُمُ

هغه نعمتونه، چه دركړي وو مونږ تاسو ته روستو د شاګانو ستاسو نه، اونه وينو مونږ تاسو سره سفارشيان ستاسو

ٱلَّذِينَ زَعَمْتُمْ أَنَّهُمْ فِيكُمْ شُرَكَـٰٓؤُا۟ ۚ لَقَد

هغه چه تاسو به دا دعوه كوله چه دوئ ستاسو په تربيت كښې شريكان د الله تعالى دي. په تحقيق سره

تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ وَضَلَّ عَنكُم مَّا كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ۞

كټ شو تعلق ستاسو په مينځ كښې او ورك شو ستاسو نه هغه چه تاسو گمان كولو

﴿وَلَقَدْ جِئْتُمُونَا﴾ دلته (يقال لهم اذابعثوا للحساب) محذوف دي يعني چه كله د حساب دپاره راپاسولې شي نو ورته به او وئيلې شي چه په تحقيق سره راغلئ نن تاسومونږ ته ﴿فُرَادَىٰ﴾ داجمع د فردٌ ده لكه كُسالى جمع دكسْلٌ ده يعنى يواځې دمال اولاد، نوكرانو، مريدانو، اوعُهدونه. په دغه اشياؤ باندې انسان محنت كوي اودغې د وجې نه په كښې تكبر پيداكيږي. په حديث كښې دي (انكم تحشرون يوم القيمة حفاةً عراةً عزلاً) يعني خپې ابله. بربنډ ناسنته به ستاسو حشر كيږي. ﴿وَتَرَكْتُم مَّا خَوَّلْنَـٰكُمْ﴾ يعني عهدې دولتونه هيڅ شئ به ورسره نه وي. حتى چه كپړې. پيزار به هم ورسره نه وي لكه په حديث كښې مذكوردي. اوپه يوروايت كښې دي (قالت عائشة رضى الله عنها فقلت: الرجل والنساء جميعًا ينظر بعضهم الى بعض فقال

رسول الله صلی الله علیه وسلم الامراشدان یهمّهم ذلک) ﴿شُفَعَآءَكُمْ﴾ یعنی هغه معبودان چه دوئ شفعاء گنړل، اودهغوئ عبادت ئې له دې وجې نه کوؤ چه په آخرت کښې ددوئ شفاعت اوکړی اوالله تعالی ته ئې قریب کړی، لکه په بل آیت کښې دی (مانعبد هم الالیقربوناالی الله زلفی)

﴿أَنَّهُمْ فِيكُمْ شُرَكَٰٓؤُا﴾ تاسو داگمان کولو چه دوئ دالله تعالی شرکاء اوبرخه داردی ستاسو په ربوبیت اوپه استحقاق دعبادت کښې ﴿لَقَد تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ﴾ ((بینکم)) په قرآة درفع سره فاعل د (تقطع) دې اوپه قراة دنصب سره – فاعل مقدردې چه ((الوصلُ)) دې چه دفحوی دکلام نه معلومیږی، یعنی ((فیکم شرکاء)) نه، یا تقطع په معنی د ((وقع القطع)) سره دې. اواخفش وائی چه ((بینکم)) فاعل دې باقی پاتی شویدې منصوب دې دوجی دحمل نه په اغلب احوالو دده ((بین)) په اغلب احوالو کښې منصوب وی نودلته اگرکه فاعل واقع شویدې لیکن خپل زوړ لباس ئې نه دې پریخې، اومراد ادې چه ستاسو په مینځ کښې چه کوم تعلقات وو- دپیرئې مریدئې- یادپارټئې وغیره هغه ټول ختم شو، لکه په سورت بقره کښې دی ﴿وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ ٱلْأَسْبَابُ﴾. په دنیاکښې چه کوم تعلقات په شرعی طریقې سره نه وی بلکه په شرکی طریقې سره وی نواگرکه دانبیاؤ یاصحابواهل بیتو سره یاداولیاؤ سره وی دابه ټول ختم شی البته کوم تعلقات چه دصلحاؤ سره وی اوپه شرعی طریقې سره وی نوهغه نه ختمیږی بلکه هغه سبب اوذریعه دشفاعت ده، قال تعالی ((الاخلاء یومئذٍ بعضهم لبعضٍ عدو الاالمتقین))

إِنَّ ٱللَّهَ فَالِقُ ٱلْحَبِّ وَٱلنَّوَىٰ ۖ يُخْرِجُ ٱلْحَىَّ مِنَ ٱلْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ ٱلْمَيِّتِ

بیشکه الله تعالی څیروونکې [1] د دانې او د کجورې د هډوکی دې، راؤباسی ژوندې د مړ نه او راویستونکې د مړ دې

مِنَ ٱلْحَىِّ ۚ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ ۖ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ۝ فَالِقُ ٱلْإِصْبَاحِ وَجَعَلَ ٱلَّيْلَ

د ژوندی نه، دغه صفاتو والا الله دې پس څنگه اړولې شئ تاسو څیروونکې د صبا دې او گرځولې ئې ده شپه

سَكَنًا وَٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ حُسْبَانًا ۚ ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ ٱلْعَزِيزِ ٱلْعَلِيمِ ۝

وخت د آرام او نمر او سپوږمۍ د حساب لپاره، دا اندازه د زورور ذات ده چه پوهه دې په هرڅه

[1] خوارلسم دلیل عقلی.

﴿إِنَّ ٱللَّهَ فَالِقُ ٱلْحَبِّ وَٱلنَّوَىٰ﴾ داخوارلسم دليل عقلي دي په توحيد اودشرک فعلی د رد مبدء ده ((فالق)) په معنی د موجداومبدع سره دي، يا په معنی دڅيرونکي سره دي. فلق په معنی دشق اوڅيرولوسره دي، ((حَبّ)) جمع ده او((حبة)) ئی مفرد دي، اودارنګه ((نوی)) ني جمع ده او ((نواة)) مفرددي، قاموس وائی چه نواة دکجوری اډوکی ته وائی اوامام رازی رحمه الله وغيره وائی چه د هرې ميوې اډوکی ته وائی، اوبعض وائی چه نواة چه مطلق ذکرشی نومرادترينه دکجورې اډوکې وی او دبلې ميوې اډوکې ترينه هله اراده کيږی چه اضافت ئی اوشی .لکه . نوی الخوخ، نوی المشمش وغيره، معنی داده چه الله تعالى په خپل قدرت سره کلکه دانه اوچوی اوشين نرم تيغ ترينه راوباسی. اودکجهورې اودارنګه دنوروميوو .اډوکی اوچوی اوشين ډکې ترينه راوباسی، ﴿يُخْرِجُ ٱلْحَىَّ مِنَ ٱلْمَيِّتِ﴾دادماقبل تفسيردي نوددې وجې نه عطف ترک شويدي. دَ ((حی. ميت)) نه مراد شين بوټې پيداکول دی دوچې دانې نه. اوبالعکس يعنی دشين ډکی نه وچې دانی پيداکول، ياترينه مرادعالم جاهل، ياموحد مشرک. ياانسان دنطفی نه اوبالعکس . يا د اګئې نه چرګ اوبالعکس. مراددی

﴿وَمُخْرِجُ ٱلْمَيِّتِ مِنَ ٱلْحَىِّ﴾ داعطف دي په ((فالق)) باندي ، اوتفسير دماقبل نه دي،ياعطف دي په ((يخرج)) باندې اوعطف دهغه اسم چه مشابه وی دفعل سره يعنی په معنی دفعل سره وی. په فعل باندې صحيح دي اوبالعکس هم صحيح دي، لکه : ان المصدقين والمصدقات واقرضوا الله . (حديد١٨) دَ ((حَیّ)) سره صيغه دَ فعل مضارع ذکر شويده او دَ ميت سره صيغه دَ اسم فاعل . نو نکته پکښې دا ده چه اخراج دَ ميت نه زيات اظهر دي په قدرت کښې او بل دا چه دا اول دي نو دَ دې وجه نه دَ دې تصوير او استحضار په ذهن دَ سامع کښې ډير اهم دي او تصوير او استحضار په صيغې دَ فعل مضارع سره راځی او په اخراج الميت عن الحی کښې اتيان په اصل سره شويدې ځکه چه اصل په صفاتو دَ الله تعالى کښې تعبير دي په اسم سره، او امام رازی رحمه الله وئيلی دی چه حَیّ ، اشرف دي دَ ميت نه نو هغه ئی په لفظ دَ فعل سره ذکر کړو چه دلالت اوکړی په اعتناء، دَ فعل دَ فاعل نه ځکه چه فعل دلالت کوی په تجدد او په صدور ساعةً فساعةً باندې. ﴿ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ﴾ ((ذلکم)) مبتداء ده لفظ د ((الله)) ئې خبر دي. دا اسم اشاره ده. دمشاهد اومحسوس دپاره راځی اوذات دالله تعالى اګرکه محسوس بالبصرنه دي. ليکن په ذکرداوصافو سره داسې ممتاز شولکه محسوس بلکه دهغې نه هم زيات امتياز . نوددې

وجې نه اشاره ذکرشوه چه دغه دې او ((كُم)) حرف خطاب دې دلالت کوي په حال دمخاطب.
اوددې وجې نه دابدليږي كَ، كُما، كُنّ، راځي نو د ((ذلكم الله)) ترجمه داده چه ((دغه موصوف په صفاتو سابقو سره)) تاسوته وايم ، الله دې، ﴿فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ﴾ ((انى)) په معنى د ((كيف)) سره دې دامفعول د ((تُؤْفَكُون)) دې يعنى څه رنګه تاسواړولې شئ دتوحيدنه. اوځه رنګه څوک داسې خيال کوي چه داتصرف کونکې، ماده، طبيعت يادهر، (زمانه) دې . ياپل څوک هستی، ولی، بزرګ وغيره دې، ﴿فَالِقُ ٱلْإِصْبَاحِ﴾ ((اى هوفالق الاصباح)) (فالق) په معنى د خالق سره دې ياپه معنى دمظهر سره دې او اصباح په معنى دصباح سره دې يعنى الله تعالى پيداکونکې يا ظاهرونکې دصباح دې، يا (فالق) په معنى دڅوونکې، څيرونکى سره دې نوبيا په عبارت کښې مضاف مقدر دې : اى فالق ظلمة الاصباح بالاصباح ، يافالق ظلمة الليل بالاصباح، ﴿سَكَنًا﴾ دامفعول ثانى دجعل دې سكنًا مصدردې په معنى دمسكون فيه سره. ياپه معنى د ((وقت السكون)) سره ﴿حُسْبَانًا﴾ داعطف دې په سكنًا باندې. اوحرف جر مقدردې اى بحساب (ابن عباس) يا دامعنى ده يجريان بحساب، ياحسباناً اسم دې په معنى دحساب سره ((اى جعل الشمس والقمر حسابًا للاوقات)) داوقاتو، حساب په شمس اوقمرسره كيږى ، شمسى قمرى حساب متعارف دى، ﴿ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ ٱلْعَزِيزِ ٱلْعَلِيمِ﴾ شپه راوستل ورځ راوستل ، نمرسپوږمئ چلول وغيره مذکورتصرفات ، صرف هغه ذات کولې شی چه ډير زوراور او ډير دلوئې علم خاوند وی، که يومعمولی شئ لکه يوسائيکل په غيردمصرى نه نه جوړيګى اوپه غير دچلوونکى نه خودبخود نه چليږی نوداسې عظيم نظام زمونږ په غيردصانع عزيزعليم نه چليدلې شی؟

وَهُوَ ٱلَّذِي جَعَلَ لَكُمُ ٱلنُّجُومَ لِتَهْتَدُوا۟ بِهَا

او خاص الله هغه ذات دې [1] چه پيدا کړی ئې دی ستاسو لپاره ستوری د دې لپاره چه لار معلوموئ په هغې سره

فِى ظُلُمَٰتِ ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ ۗ قَدْ فَصَّلْنَا ٱلْءَايَٰتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ۝

په تيروا د وچې او درياب کښې، په تحقيق سره مونږ په تفصيل سره بيان کړی دی آيتونه دهغه قوم لپاره چه پوهيږی

[1] - پنځلسم دليل عقلى

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ

اوخاص الله هغه ذات دی چه پیدا کړی ئې یئ تاسو (۱) د یو نفس (آدم) نه پس تاسو لره ځائ د آرام

وَّ مُسْتَوْدَعٌ ۗ قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّفْقَهُوْنَ ۝

او ځائ د سپارنې دې، په تحقیق سره مونږ په تفصیل سره بیان کړیدی آیاتونه د هغه قوم لپاره چه بنه پوهیږی

﴿وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ النُّجُومَ﴾ داپنځلسم دلیل عقلی دې، په ((لکم)) کښې لام دانتفاع دپاره دې په نجوم کښې ډیرې نفعې دی دلته ترینه بعض ذکرشویدی، په ((لکم)) کښې دټولومنافعو ذکراجمالاً شویدې اواوتفصیلاً دبعضومنافعوذکرشویدې په دې قول سره ﴿لِتَهْتَدُوا بِهَا فِي ظُلُمَٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ﴾ چه تاسوپه دې سره لاراوسمت معلوم کړئې په ظلماتُ دبر او بحر کښې اضافت دظلمات ،بر ،بحرته لادنی ملابسةً دې ای ظلمات اللیل فی البروالبحر ، یاد ظلمات نه مرادمشتبه لارې دی نودظلماتواطلاق په طریقه داستعارې سره دې، اودبعض منافعو تفصیل په سورت ملک ، آیت (۵) کښې دې چه دازینت للسماء، رجوماً للشیاطین دی، اوپه ستوروسره لار، اوسمت معلومول په تیاره کښې ، مشاهددی اوپه دې دور د ترقئ کښې هم ورته احتیاج دې لکه دامشاهده ده، ﴿قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ﴾ دامذکورواضحه دلائل دی دالله تعالی دقدرت اودتوحید اوچه څوک ترینه فائده نه اخلی نوهغه علم اوهوش نه لری،﴿وَهُوَ الَّذِي أَنشَأَكُم﴾ داشپاړسم دلیل عقلی انفسی دې دتوحید ،د﴿نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ﴾ نه مراد حضرت آدم علیه السلام دې، ﴿فَمُسْتَقَرٌّ﴾ ای فلکم مستقر، (۱) دمستقرنه مراد صلب دپلاردې او د مستودع نه مرادرحم دموردې (۲) یادمستقرنه مراد دورځې ګرځیدل اودمستودع نه مراد د شپې دآرام ځائې دې (۳) یادمستقرنه مراددنیوی ژوند اودمستودع نه مرادمحل دې په برزخ کښې.

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ نَبَاتَ

اوخاص الله تعالی هغه ذات دې (۲) چه نازلوی د طرف د آسمان نه اوبه، پس راوباسو مونږ په هغې سره زرغونه هرڅۀ

۱ شپاړسم دلیل عقلی

۲ اوولسم دلیل عقلی

كُلِّ شَيْءٍ فَأَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا نُّخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا مُّتَرَاكِبًا ۚ وَمِنَ النَّخْلِ

د هر قسم. پس راؤباسو مونږ د دينه شين ذكي، چه بيا روباسو مونږ د هغي نه داني په يوبل سوري. او راؤباسو مونږ

مِن طَلْعِهَا قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ وَجَنَّاتٍ مِّنْ أَعْنَابٍ وَالزَّيْتُونَ

د كجورونه د دې د غنچونه وږی، نیزدې (زمكې ته) او راؤباسو مونږ باغونه دانګورو. او راؤباسو خونه (زيتون).

وَالرُّمَّانَ مُشْتَبِهًا وَغَيْرَ مُتَشَابِهٍ ۗ انظُرُوا

او انار. چه يوشان وي په رنګ او صورت كښې اونه وي يوشان په خوند او ميوه كښې. وګورئ په نظر د عبرت سره

إِلَىٰ ثَمَرِهِ إِذَا أَثْمَرَ وَيَنْعِهِ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكُمْ

ميوې د هري ونې ته كله چه اول ميوه راوباسي، او بيا وګورئ پوخ والی د هغې ته. بيشكه په دې مذكور كښې

لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٩٩﴾ وَجَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَاءَ الْجِنَّ

خامخا ډير دلائل دي هغه قوم لره چه ايمان لري. اوګرځولي دي دوئ الله تعالى لره [1] شريكان. پيريان.

وَخَلَقَهُمْ ۖ وَخَرَقُوا لَهُ بَنِينَ وَبَنَاتٍ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ سُبْحَانَهُ

او الله پيدا كړي دي دوئ. او په دروغه جوړوي دوئ الله لره خامن او لونړه بغير د علم نه. پاك دې الله

وَتَعَالَىٰ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿١٠٠﴾

او لوئ دې د هغې نه چه دوئ ئې بيانوي

﴿ وَهُوَ الَّذِي أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ ﴾ داولسم دليل عقلي (جوي) دې په توحيدباندې. مراد دسماء نه وريځ ده ياخوداسمان مراددې نومضاف مقدردې اى من جانب السماء. ﴿ فَأَخْرَجْنَا بِهِ ﴾ با سببيه ده داعالم اسباب دې اومتفرق بوټي مسببات دى نوسبب يودې اومسببات متفرق دى لكه په بل ځاي كښې ﴿ يُسْقَىٰ بِمَاءٍ وَاحِدٍ وَنُفَضِّلُ بَعْضَهَا عَلَىٰ بَعْضٍ فِي الْأُكُلِ ﴾ سورة رعد. آيت

[1] . زجر او شكوى

(۴) ﴿نَبَاتَ كُلِّ شَيْءٍ﴾ هرقسم د مختلف گیاه گانونه، ﴿فَأَخْرَجْنَا مِنْهُ﴾ ضمیر راجع دې نبات. یا ((ماء)) یا ((کل شئ)) ته ﴿خَضِرًا﴾ شین بوټي دوچې کلکې دانې نه. ﴿نُّخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا مُّتَرَاكِبًا﴾ چه راؤباسو مونږ دهغې نه دانې په یوبل سورې لکه دجواروغنمووربشووګی نو دادانې دغیبو دخزانې نه راخی په زمکه کښې دننه نشته دې، ﴿وَمِنَ النَّخْلِ﴾ خبرمقدم دې ﴿قِنْوَانٌ﴾ مبتداء مؤخره ﴿مِن طَلْعِهَا﴾ بدل دې د ((من النخل)) نه، طلع، اول چه راښکاره شی دمیوې دکجورې نه چه هغې ته کُفرئ وئیلې شی، یعنی غلاف، کخوړی دمیوې،غنچې ((قنوان)) جمع د ((قنوٌ)) ده په شکل دتثنیه ،اودارنګه ((صنوٌ،صنوان)) دکجورو ګنګ( ګنګوچی) ته قنوان وئیلې شی او اوعذق ورته وئیلې شي، اودانګورو هغې ته ((عنقود)) وئیلې شی، اوداجمع یعنی قنوان صنوان، په حالت دوقف کښې ئې دتثنیه سره التباس دې اوچه حالت دوقف نه وی نوبیائ فرق دادې چه په تقدیر دتثنیه به نون مکسور وی دائماً اوپه تقدیر دجمع به په نون باندې به حرکات ثلاثه راخی بحسب الاعراب، اودارنګه چه داتثنیه وی نو په حالت داضافت کښې به ترینه نون حذف کیږی نو وئیلې به شی ((هذان قنواک)) اوچه جمع وی نوپه حالت داضافت کښې به نون نشی حذف کیدې نوئیلې شی ((هذه قنوائک، رأیتُ قنوائک)) ،اوپه دې باندې قیاس دې صنوان، ﴿وَجَنَّاتٍ﴾ داعطف دې په ((نبات کل شئ)) باندې، ((ای فَاَخرجنا به جنت)) ﴿مِّنْ أَعْنَابٍ وَالزَّيْتُونَ وَالرُّمَّانَ﴾ داهم عطف دې په نبات باندې ((ای واخرجنا به شجرالزیتون والرمان)) ﴿مُشْتَبِهًا وَغَيْرَ مُتَشَابِهٍ﴾ داحال دې د ((زیتون)) نه، اودوجې دسبقیة د زیتون نه اکتفاء اوشوه په حال دده اوقیاس دې حال د ((رمّان)) په دې باندې نومعنی داده ((حال کون الزیتون مشتبهاوغیرمتشابه والرمان کذالک)) یا دا حال دې د ((رمّان)) نه، دوجې د قُرب نه نو زیتون په ده قیاس دې او په کلام کښې تقدیر دې (( ای مشتبهًا بعضها وغیر متشابه بعضها)) معنی داده چه زیتون بعضې د بعضو سره مشابه وی په مقدار، لون او طعم کښې، او بعضې نه وی، او دارنګه ((رمّان)) او دارنګه په انګورو کښې بعضې قسمونه مخالف وی دنورونه په رنګ، مقدار وغیره کښې ، اوحضرت قتاده رحمه الله نه ددې معنی داسې مروی ده چه زیتون اورمان مشابه دی دیوبل سره په اوراقو کښې،چه په نظرکونکې باندې اشتباه راولی اومختلف دی په طعم کښې ﴿انظُرُوا﴾ مرادکتل دی په نظر دَ عبرت سره.﴿إِلَىٰ ثَمَرِهِ﴾ ثمرجمع د ثمرةٌ ده

اوضمیر راجع دې هریوته نومعنی داده چه اوګورئې په نظرعبرت سره میوو دهریونه

﴿إِذَآ أَثْمَرَ﴾کله چه اول میوه راوباسی چه په دغه وخت کښې پکښې مزه نه وی. تروه اومرئې خپه کوی، ﴿وَيَنْعِهِۦٓ﴾ اوبیاوګورئ پوخ والی دهغې ته چه څۀ رنګه خوګه ذائقه اوخوګ بوئ، اوخائسته رنګ، پکښې راغلیدې، دا هرڅه دالله تعالی د غیبو خزانونه راغلی دی. په زمکه کښې داسې خوند ، رنګ بوئ نشته دې ، ((يَنْع)) په اصل کښې مصدردې. ((ينع ينع ينعا، ينوعًا)) ای نضج واستوی،ماضی مکسورالعین مضارع مفتوح العین. ابوعبیده وائی چه داجمع دیانع ده لکه صحبٌ صاحبٌ نو ((وَيَنْعِهِ)) چه مصدرشی نومعنی داده ((انظرو الی حال نضجه)) اوګورئ حالت دپوخ والی دمیؤوته اوچه جمع شی نومعنی داده چه اوګورئې . پخومیؤوته،﴿ وَجَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَآءَ ﴾ دازجراوشکوی ده، لله،، مفعول ثانی دجَعَلَ دې اوشُرکَاءَ ئې مفعول اولْ دې او ﴿الْجِنَّ﴾ ترینه بدل دې دپاره دتحقیر، اودمفعول ثانی تقدیم دپاره د اشاره دې عظمة ددې جرم ته، اود «جن» نه مرادیاملائکه دی یاترینه مرادپیریان دی یاترینه مرادشیاطین دی، لکه بعض زنادقؤ وئیل چه ابلیس دالله تعالی روردې خالق دشردې. بامراددشریک ګرزولودشیاطینونه دهغوئ اتباع ده، اودسورة جن نه معلومیږی چه بعض مشرکینوجنات شریک ګرځولی دی، ﴿وَخَلَقَهُمْ﴾ ضمیرياراجع دې جن ته یاشرک کونکوته. اوپه دې کښې اشاره ده چه مخلوق دخالق سره شریک ګرځول ډیرحمافت اوقباحت دې.

﴿وَخَرَقُوا﴾ یعنی په دروغه سره جوړکړیدی دوئ الله تعالی له ځامن لونړه، لکه یهودنصاری چه عزیرابن الله اوعیسی ابن الله وائی اومشرکین وائی الملائکة بنات الله- ﴿سُبْحَٰنَهُۥ﴾ دا راجع دې «جعلوا لله شركاء» ته ﴿وَتَعَٰلَىٰ﴾ داراجع دې ﴿وَخَرَقُوا لَهُۥ بَنِينَ وَبَنَٰتٍۭ﴾ ته ﴿عَمَّا يَصِفُونَ﴾ د دواړوسره متعلق دې ای سبحانه عمایصفون وتعالی عمایصفون

بَدِيعُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِۖ أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُۥ وَلَدٌ وَلَمْ تَكُن

په غیرنمونې اومثل نه پیدا کونکې د آسمانونو او د زمکې دې، څنګه کیدې شی هغه لره اولاد. او نشته دې

لَّهُۥ صَٰحِبَةٌۖ وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍۖ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ۝ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْۖ

هغه لره ښځه، او پیدا کړی نی دی هرڅې ، او دې په هرڅه عالم دې دغه صفتونو والا الله دې ستاسو رب دې .

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوْهُ ۚ وَهُوَ

نشته دي لائق د عبادت پغير د ده نه، پيداكوونكي د هرڅيز دي پس صرف د هغه عبادت كوئ، اوهغه

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ ۝ لَا تُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ ۘ وَ هُوَ يُدْرِكُ

په هرڅيز باندې كارساز دي، نه مومي يعني احاطه نشي كولې په هغه د هيڅ چا نظرونه اوهغه احاطه كوي

الْاَبْصَارَ ۚ وَ هُوَ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ ۝

په (خاوندانو د) سترګو . اوهغه باريك ځيزونه ليدونكي دي، خبردار دي

﴿ بَدِيعُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ ﴾ داعلت د ((سبحانه وتعالى)) دپاره دي، مبتدامقدره ((اى هوبديع السموات)) بديع په معنى دمبدع سره دي يعنى پيداكونكى په غيردمثل سابقه نه. نوچه دزمكې اسمان په پيداكولو كښې مخكښې مثل، او نمونې ته محتاج نه دې نوشريک اوولد ته هم حاجت نه لرى﴿ أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُۥ وَلَدٌ ﴾ يعنى دالله تعالى دپاره ولدڅكه نشته دې چه ولدپيداكيږى دزوج اوزوجه متجانسين( هم جنس) نه اودالله تعالى دپاره هم جنس څوک نشته دي نو ،صاحبه،، يعنى زوجه ورته نشته دې نوولدورته هم نشته دې اوپه دې كښې اشاره ده چه كومو خلقوالله تعالى ته دولد نسبت كړې وونوهغوئ دالله تعالى دپاره دزوجيت عقيده نه لرله. ﴿ وَخَلَقَ كُلَّ شَىْءٍ ﴾ يعنى تمام اشياء(كوم چه دشان دهغې نه مخلوقيت وى) مخلوق دى اومخلوق دخالق سره هم جنس نه شى كيدې، اواولادخوهم جنس وى، نودالله تعالى دپاره ځامن لونړه هم نشته دې ﴿ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ ﴾ دانتيجه اوثمره ده دماقبل دلائلونه. چه دماقبل دلائلونه داثابته شوه چه ﴿ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ دماقبل صفاتوذكركولوسره داسې تميزد ذات دالله تعالى راغې لكه چه محسوس مشاهدوى نوپه ((ذلكم)) سره ورته اشاره اوشوه، چه دغه دې تاسو ته وايم، الله تعالى، ستاسورب دې، دهرڅه خالق دې بل اله متصرف نشته دې نوفقط دهغه عبادت كوئ فقط دهغه نه خپل حاجات طلب كوئ، اودې په هرڅه وكيل دې، دهرڅه دحفظ اودتدبير متولى دې

﴿ لَّا تُدْرِكُهُ ٱلْأَبْصَـٰرُ ﴾ په دنياكښې الله تعالى په سترګوسره نه شى معلوميدلې. بلكه په

صفاتو سره معلومیږی چه مخکښې بیان شو . ددې آیت په ظاهرسره استدلال کړیدې معتزلؤ خوارجواوبعضو مرجؤ چه دالله تعالی رؤیت نشی کیدې، ځکه ادراک البصر رؤیت دې نونفی دادراک البصر بعینه نفی د رؤیت ده، اهل سنت والجماعت وائی چه رؤیت دالله تعالی یوپه دنیاکښې دې اوبل په آخرت کښې دې هرچه دې په دنیاکښې نوپه دې کښې اختلاف دې چه آیا ممکن دې اوکه نه؟ حقه داده چه ممکن دې ځکه چه حضرت موسی علیه السلام دالله تعالی نه درؤیت سوال کړې وو، ((رب ارنی)) نوکه محال وې نولازمیږی چه نبی دبې خبره وی دهغه څه نه چه محال دې په حق دَ ذات دالله تعالی کښې اودباطله ده. اوبیاپه دې کښې اختلاف دې چه رؤیت واقع دې په دنیاکښې په شپه دمعراج کښې دپاره دنبی صلی الله علیه وسلم اوکه نه؟ نودحضرت عائشة رضی الله عنها اوابن مسعود اوابوهریره رضی الله تعالی عنهما نه مروی ده چه نه دې واقع، اودحضرت ابن عباس اوانس اوعکرمه اوحسن بصری رضی الله عنهم وغیره نه مروی ده چه واقع دې، اوبعض علماؤ ددواړوقولینو په مینځ کښې تطبیق کړیدې، اوهرچه دې رؤیت دالله تعالی په اخرت کښې نوپه دې اجماع ده چه مؤمنانو ته به نعمت ددیدارالهی ملاویګی ،په دې باندې دلیل قرآن ،حدیث اجماع دی، په قرآن کښې درؤیت دباری تعالی ذکرپه ډیروآیاتونو کښې دې لکه : (۱) ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ ﴿٢٢﴾ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ﴿٢٣﴾﴾ (القیامة ۲۲) (۲) ﴿كَلَّا إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ ﴿١٥﴾﴾ (مطففین ۱۵) امام شافعی وائی چه هرکله کافران دمعصیت اوکفرسره محروم دی ددیدار الهی نه نوثابت شو مؤمنانولره دیدارالهی په وجه دایمان اوطاعت سره، امام مالک رحمه الله وائی چه که چرې مؤمنانو ته دیدار حاصل نه وی نوکفاروته به الله تعالی داپیغور نه وی ورکړې (۳) ﴿لِّلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ﴾ دَ زیادةً نه مراددیدارالهی دې، اواحادیث په حق درؤیت کښې تواتر ته رسیدلی دی، ((انکم سترون ربکم کما ترون القمرلیلة البدر)) الی غیرذلک - اوهر چه ده اجماع نوټول اهل حق دزما نې دنبی صلی الله علیه وسلم نه تردې زمانې پورې متفق دی په دې چه رؤیت دباری تعالی حق دې په آخرت کښې. اوهرچه دې جواب ددې آیت نه نوهغه په ډیروو جوهاتو سره دې (۱) دلته نفی دادراک راغلیده نه درؤیت، اوددې دواړو په مابین کښې فرق دې، ادراک علم ته وائی په کنه اوحقیقت باندې، یاعلم په وجه داحاطې سره، اوحضرت موسی علیه السلام دادراک نفی کړیده سره داثبات درؤیت نه. ﴿فَلَمَّا تَرَاءَى الْجَمْعَانِ قَالَ أَصْحَابُ مُوسَىٰ إِنَّا لَمُدْرَكُونَ ﴿٦١﴾ قَالَ كَلَّا﴾ سورة شعراء، آیت

٧١ نومعلومه شوه چه ادراک غیردې درؤیت نه نودآیت مطلب داشو چه دالله تعالی دکُنه دذات ادراک نشی کیدې یادالله تعالی دذات لیدل په وجه داحاطې سره نشی کیدې

(٢) لاتدرکه الابصار نفی دایجاب کلی ده اوسلب کلی نه دې، سلب العموم دې عموم السلب نه دې، معنی ئې داده چه دهرڅاسترګی ئې نشی لیدلې بلکه خاص خلق به ئې وینی دامعنی نه ده چه هیڅوک نششی لیدلې، (٣) دانفی درؤیت ده په دنیا کښې لکه حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها په دې آیت سره استدلال کړیدې په نفی درؤیت په دیناکښې.

حاصل دادې چه ﴿لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ﴾ په نیز دمعتزلو، خوراجو،قضیه سالبه کلیه دائمه مطلقه ده اوپه نیز د اهل سنت باندې دا رفع دایجاب کلی دې ، نوسالبه جزئیه مطلقه عامه ده ﴿وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ﴾ د ابصاروذکر دمجانست په وجه دې اوالله تعالی دهرڅیز ادراک کوی

• ﴿وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ﴾لطیف مقابل دکثیف دې،کثیف صفت داجسامودې نودلطیف معنی داده چه ((مالایدرک بالحاسة)) یعنی هغه ذات چه په سترګوسره نه معلومیږی نودادلیل شو د (لاتدرکه الابصار) دپاره، او﴿الْخَبِيرُ﴾ دلیل دې د (وهویدرک الابصار) دپاره نو د الف نشر مرتب دې، د لطیف معنی داهم کړی شویده چه لُطف او نرمی کونکې دبندګانو سره ،اودامعنی ئې هم کړې شو یده، عالم بخفیات الامور، بغوامض الامور، بدقائق الامور

| قَدْ | جَآءَكُمْ | بَصَآئِرُ | مِنْ | رَّبِّكُمْ | فَمَنْ |
|---|---|---|---|---|---|

په تحقیق سره راغلیدی تاسوته، ذرائع دحق معلومولو (دلیلونه د توحید) د طرفه د رب ستاسو نه ، نو څوک

| أَبْصَرَ | فَلِنَفْسِهٖ | وَمَنْ | عَمِيَ | فَعَلَيْهَا |
|---|---|---|---|---|

چه وه وینی حق نو دا د ده خپله فائده ده، او څوک چه روند پاتې شی (حق قبول نکړی) پس وبال به په هغه وی

| وَمَآ | أَنَا | عَلَيْكُمْ | بِحَفِيظٍ ۝ | وَكَذٰلِكَ | نُصَرِّفُ | الْأٰيٰتِ |
|---|---|---|---|---|---|---|

اونه یم زه په تاسو باندې نګران اودغسې قسم قسم بیانوؤ مونږ آیتونه[1] دتوحید (ددې لپاره چه دوئ پوهه شی)

---

١ . د نه منلو دریمه وجه

وَلِيَقُولُوا دَرَسْتَ وَلِنُبَيِّنَهُ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿١٠٥﴾

اوچه ووائی دوی، تا دبل چا نه لوستلي اوزده کړي دي اولپاره ددې چه بیان کړو مونږ دا هغه قوم ته چه پوهیږی

اتَّبِعْ مَا أُوحِيَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ ۖ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ وَأَعْرِضْ

تابعداری کوه دهغې چه دهغې وحی کړې شویده تاته د طرف د رب ستا نه. نشته دي لائق د عبادت بغير د ده نه. او مخ واړوه

عَنِ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٠٦﴾ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكُوا ۗ وَمَا جَعَلْنَاكَ

د مشرکانو نه اوکه غوښتي وې الله (جبراً مسلمانول د دوی) نو دوی به شرك نوي کړي اونه ئی مقرر کړی مونږ ته

عَلَيْهِمْ حَفِيظًا ۖ وَمَا أَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيلٍ ﴿١٠٧﴾

په دوی باندې نگهبان ، اونه ئی ته په دوئ باندې ذمه وار

﴿قَدْ جَاءَكُمْ بَصَائِرُ﴾ داترغیب دې قرآن ته، بصائرجمع دبصیرة ده، بصیرة دزړه بینا ته وائی لکه بصر دسترگو بینائی ته وائی، مراددبصائرنه حجج اودلیلونه نه دتوحید اودحق دی چه مذکوردی په قرآن کریم کښې چه په دې سره حق اوهدایت لیدلې شی نو ﴿فَمَنْ أَبْصَرَ﴾ چاچه په دې دلائلوسره حق اوهدایت اوکتلو، ﴿فَلِنَفْسِهِ﴾ نودده خپله فائده ده ﴿وَمَنْ عَمِيَ﴾ اوڅوک چه ړوندشو، په دې دلائلو سره ئې حق معلوم نه کړو اوهدایت ئې حاصل نه کړو ﴿فَعَلَيْهَا﴾ نودده خپل ضرراونقصان دې، الله تعالی اورسول ته اونوروااهل حقو ته څه ضررنه رسی ﴿وَمَا أَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيظٍ﴾ اوزه نه یم ستاسوحفاظت کونکې اوبچ کونکې دعذاب نه یادگمراهئ نه ،یادامعنی چه راکیرو نکې دعملونوپه علم اوقدرت کښې،یا نگرانی کونکې جزادرکونکې بلکه الله به جزاء درکوی- ﴿وَكَذَٰلِكَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ﴾ داده نه منلو دریمه وجه ده یعنی مونږ دتوحید دلائل په مختلف طریقو سره ذکرکوو دپاره د دې چه دوئ ترینه نفع حاصله کړی لیکن دوئ دديرضد اوتعصب دوجې نه نه منی اواعتراض کوی چه داتادبل چانه زده کړيدی یعنی داهل کتابونه دې زده کړيدی، دادهغوئ خبرې دی، اوته ئې نسب. الله تعالی نه کوی. یعنی ستاتعلق اوتلمذ داهل باطل سره دې اومونږته داخکاره کوی چه زه داهل حقونه یم. داسې ضدتعصب ،اواعتراضونه سبب دحرمان گرځی، اوددې آیت نه داهم معلومیږی چه دجاداسې

متعصبانه اعتراضونوته توجه نه ده پکار،بلکه ددين په خدمت کښې مشغوله اوسيدل پکاردی. تصرف ديته وائی چه يومضمون په مختلفو تعبيرونواوطرزونوسره ذکرشی ددې دپاره چه خلق پرې پوهه شی. څکه خبره ډيره اهمه اوضروری وی. نوقرآن پاک توحيد. رسالت . وغيره په مختلفوتعبيرونو اودليلونو سره ذکرکوی. ﴿وَلِيَقُولُوا دَرَسْتَ﴾ معطوف عليه مقدردې چه (ليعتبرو). يا (لتقوم الحجة عليهم) دې اود ((دَرَسْتَ)) معنی داده چه ((قَرَأْتَ وَتَعَلَّمْتَ)) يعنی دا خبر تا دبل چانه يعنی داهل کتابونه يادیوبل بدنام سړی نه زده کړيدې لکه په سورت نحل ۱۰۳ کښې دی، ﴿إِنَّمَا يُعَلِّمُهُ بَشَرٌ﴾ اونسبت ئې الله ته کوی. او درس په معنی داختفا انمحاء سره هم رازی (پټيدل زائل کيدل) لکه اصمعی وائی ((درس المنزل اذاعفا)) حضرت عمربن عبدالعزيز اووئيل ، ((فانی خفت دروس العلم))، (بخاری) نوکه ده ((درست)) دامعنی اوشی چه تامحوه اوزائل کړو زوړ دين ، ،نوداهم صحيح ده (والله اعلم) اولام په ((ليقولوا)) کښې يالام العاقبة دې اومعنی داده چه مونږ دوئ ته دتوحيدواضح بيان په مختلفو طريقو اوکړو نودوئ اونه منی اوانجام داشی چه اعتراض اوکړی يالام العلت دې او﴿وَلِنُبَيِّنَهُ﴾ په دې عطف دې مطلب دادې چه تصريف آلايات دبعضو دشقاوت سبب شی اودبعضو دهدايت ذريعه شی، ((ليشقی بها قوم ويسعد بها آخرون)) (روح) ((کمافی قوله تعالی يضل به کثيراً ويهدی به کثيراً)) - ﴿اتَّبِعْ مَا أُوحِيَ﴾ دا دويم دليل وحی دې دپاره دتوحيد اواشاره ده ديته چه دچامتعصبانه اعتراضونوته توجه نه ده پکار ، بلکه په خپل مقصد کښې لګيدل پکاردی، او د﴿مَا أُوحِيَ﴾اهم مقصددادې چه ﴿لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ﴾ ﴿وَأَعْرِضْ﴾ داعراض مطلب دادې چه دهغوئ دمخالفت اواعتراضونوپروامه کوه ، يادامطلب دې چه دهغوئ سره قلبی محبت اودهغوئ په مجلسونوکښې شرکت مه کوه، اوچاچه ديته منسوخ باية السيف وئيلی دی نوهغوئ داعراض معنی ((کف عن القتال)) کړيده ﴿وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ﴾يعنی که چرې اوغواړی الله تعالی جبراً ايمان ددوئ نوټول به مسلمانان شی ليکن جبری ايمان مقبول نه دې

| وَلَا | تَسُبُّوا | الَّذِينَ | يَدْعُونَ | مِنْ | دُونِ | اللهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|

او اې مسلمانانو ! کنځل مکوئ هغه معبودانو ته چه دا مشرکان دهغوئ عبادت کوی چه ما سوی د الله تعالی نه دی

فَيَسُبُّوا اللَّهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ كَذَٰلِكَ زَيَّنَّا لِكُلِّ أُمَّةٍ

پس كنځل به وكړي دوئ الله تعالى ته، دوجه دبُغض اوظلم نه په ناپوهئ سره. دغسې ښائسته كړې دي مونږ هرې فرقې ته

عَمَلَهُمْ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِم مَّرْجِعُهُمْ فَيُنَبِّئُهُم بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ⑩

عمل دهغوئ، بيا به رب د دوئ ته پيش كيدل ددوئ وي پس خبربه كړي دوئ لره په هغه عملونوچه دوئ به كول

﴿وَلَا تَسُبُّوا الَّذِينَ﴾ په دې كښې بيان دطريقه تبليغ دې كوم شئ چه فرض وي نو دهغې داداء كولوطريقه هم فرض وي لكه مونځ فرض دې نوپه صحيح طريقه اداء كولو دهغې فرض دې نودتوحيد بيانول فرض دى ليكن صحيح طريقه پكښې ضروري ده هغه دا چه د چا په ذات دې حمله نه وي او د چا د ذات استخفاف او توهين دې نوي لكه بعضې جذباتيان نورو اهل علمو ته د شرك اډه، د «بدعت بورئ» وائي ((سب)) كنځلوته اودچا داسې قبائح اونقصاناتو بيانولو ته وائي چه په هغې سره دهغه تحقيراوسپكوالې راځي، اودادوه قسمه دى. يوهغه كنځل دى چه في نفسه منع دى لكه غليظ قسم الفاظ، اودروغ، بل قسم هغه دى چه دچاكوم عيوب اوقبائح بيان شي هغه په هغه كښې موجودوي ليكن هغه ذريعه وي دپاره دحرام ،لكه توهين داهل حق وغيرذلک نوداقسمً كنځل في نفسه اگركه جائزدى ليكن چه ذريعه دممنوع دپاره گرځي نوممنوع به وي، دلته ﴿وَلَا تَسُبُّوا﴾ په صيغه دجمع سره راغليده نومعلومه شوه چه داخطاب صحابۇ ته دې اومقصودترينه ادب خودل دى اورسول الله «صلى الله عليه وسلم سب، نه دى كړي چاته ،اوعلماء وائي چه ددينه دااصولي مسئله مستنبطه كيږي چه كوم شئ في نفسه واجب اوضروري نه وي بلكه يامباح وي يامستحب وي خوهغه ذريعه گرځي دبل ممنوع اوحرام دپاره نوددغه اومستحب ترک ضروري دې اوكول ئې ممنوع دى، البته چه كوم شئ، واجب ياضروري وي نودهغې ترک جائزنه دې بلكه كول ئې ضروري دى بشرط القدرة اومراددد ﴿الَّذِينَ﴾ نه معبودان باطله دى او ﴿يَدْعُونَ﴾ صله ده، اوعائد د موصول محذوف دې چه ((هم)) دې معنى داده چه كنځل مه كوئ هغه معبودانو ته چه مشركين دهغوئ عبادت كوي اوبلنه ئې كوي په خپلوحوائجو كښې ﴿فَيَسُبُّوا اللَّهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ ((عدواً)) حال مؤكده دې مراددينه تجاوزعن الحق اوظلم دې. كه څوک **سوال** اوكړي چه مشركانوخو الله تعالى منلو او دعظمت دالله عقيده ئې لرله نوهغوئ به څنگه الله تعالى ته سب اوكړي، **جواب** دادې چه دضد اوغصې دوجې نه كله داسې كيدې شي لكه د، ((عدواً)) نه معلوميږي بعض وائي چه ددينه مراد

سب دي رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يامؤمنانوته نوپه عبارة كنبې مضاف مقدر دې ﴿كَذٰلِكَ زَيَّنَّا﴾ دادنه منلودپاره خلورمه وجه ده، يعنى هرچاته ،خواه كافران وى يا فاسقان، ياأهل بدعت وى خپل عمل اوعقيده ورته خائسته ښكاريږي يعنې ثواب اوغيرت ئې ګڼرى

| وَأَقْسَمُوْا | بِاللّٰهِ | جَهْدَ | أَيْمَانِهِمْ | لَئِنْ | جَآءَتْهُمْ | اٰيَةٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|

او قسمونه خورى دوئ په الله تعالى باندې كلك قسمونه خپل چه قسم دې كچرې راغله دوئ ته معجزه

| لَّيُؤْمِنُنَّ | بِهَا | ط | قُلْ | إِنَّمَا | الْاٰيٰتُ | عِنْدَ | اللّٰهِ | وَمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

خامخا دوئ به ايمان راوړى په هغې، وه وايه ته چه بيشكه اختيار د معجزاتو الله تعالى سره دې. او څه خبر

| يُشْعِرُكُمْ | لا | أَنَّهَآ | إِذَا | جَآءَتْ | لَا | يُؤْمِنُوْنَ | ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

خبر كړى يئ تاسې چه «دوئ به ايمان راوړى» بلكه زه خبريم چه دا معجزې چه كله راشى نو دوئ ايمان نه راوړى

﴿ وَأَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ ﴾ دا زجراوشكوه ده ﴿ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ ﴾ مضبوط قسمونه خپل، جهدمصدر منصوب دې مفعول مطلق دې، د ((اقسموا)) دپاره په اعتبارددمضاف اليه سره څكه ايمان په معنى دقسمونوسره دې ياحال دې اومصدر په معنى داسم فاعل سره دې ((اى مجتهدين ل ايمانهم)) اومبرد وائى چه دامفعول مطلق دې فعل محذوف دپاره، ((اى اجتهدواجهد ايمانهم)) ﴿لَئِنْ جَآءَتْهُمْ﴾ لام موطئه للقسم دې ((اى والله لئن جاءتهم))، ﴿اٰيَةٌ﴾ نه مراد آيات مقترحه دى يعنى هغه معجزې چه دوئ طلب كولې، لكه روايت دې چه دوئ وئيل چه اې محمد «صلى الله عليه وسلم» ته مونږ ته وائې چه موسى عليه السلام په خپله عصاباندې حجر اووهلو نودولس چشمې ترينه جارې شوې، اوعيسى عليه السلام مړى جوندى كول نوته هم مونږ ته دغه شان معجزات ښكاره كړه چه مونږ ستا تصديق اوكړو، نونبى صلى الله عليه وسلم ورته اووئيل چه تاسوڅه غوارئې دوئ اووئيل چه صفا دسرو زرو كړه، او زمونږ بعض اموات جوندى كړه چه مونږ ترينه ستادرسالت تپوس اوكړو چه آياحق دى هغه خبرې چه ته ئې كوې ياباطل دى؟ اومونږ ته ملائكه اوخايه چه ستادرسالت شهادت اوكړى، نونبى صلى الله عليه وسلم دوئ ته اووئيل چه آيا كه زه دغه اوكړم نوتاسوبه څماتصديق اوكړئې، دوئې اووئيل چه .، هو په خدائې قسم چه مونږ ټول به ستا اتباع اوكړو، اومسلمانانو دنبى صلى الله عليه وسلم نه سوال اوكړو چه داسې معجزات دِظاهرشى چه دوئ ايمان راوړى ، نونبى صلى الله عليه وسلم

ودریدوچه دعااوکری چه ضفا سره زرشی نوجبرئیل علیه السلام راغلي اوويې وئيل يارسول الله ((لک ماشئت)) چه ته څهٔ غواړې هغه به اوشي، که ته غواړې چه «صفا» دذهب شي نوشي به . ليکن بياهم دوئ ايمان نه راوړی نوالله تعالی به ورته خامخاعذاب ورکوی، اوکه ته غواړې نودوئ به دغه حال پريگده حتي چه الله تعالی به دوئ کښې دتائب توبه قبوله کړی، نودااَيت نازل شو ، ﴿إِنَّمَا الْآيَاتُ عِندَ اللَّهِ﴾ معجزات زماپه اختيارکښې نه دی چه زه ئې ظهوراوکرم بلکه دالله تعالی په اختيارکښې دی اوهغه ئ دحکمت اومصلحت مطابق ظاهروی . اوچه په ظهورکښې ئې مصلحت نه وی نونه ئې ظاهروی اوتاسوچه دکوموزمعجزاتو طلب کړيدې، نودهغې ظهوردمصلحت خلاف دې، او هرکله چه دمؤمنانو تمنّیٰ دهٔ چه معجزات دظاهرشی ، شايدچه کفار به ايمان راوړی نو الله تعالی اوفرمائيل ﴿وَمَا يُشْعِرُكُمْ﴾ تاسوخه پوهيږئې؟ چه دوئ به ايمان راوړی، «ما» استفهاميه انکاريه دې او «شعور» علم اوپوهه ، ته وائی اوخطاب مؤمنانوته دې چه دوئ تمنی کوله دظهوردمعجزاتو اوگمان ئې کوو چه مشرکان به په دې سره ايمان راوړی، ((کُم)) مفعول اول دې د ((يُشْعِرُ)) دپاره اومفعول ثانی ورته مابعدجمله دهٔ، نومعنی داشوه چه تاسو څه پوهيږئې؟ يعنی نه پوهيږئې په دې باندې چه معجزات راشی نودوئې ايمان نه راوړی، نوسوال وارديگی چه بياخو ﴿يُؤْمِنُونَ﴾ پکاروو- نوجواب کړيدې بعض علماؤ (١) چه «لا» زائده دې دپاره دتاکيد د انکار (٢) اوبعض وائی چه مفعول ثانی د ((يشعرکم)) محذوف دې اوپه عبارة کښې تقدير دې اصل عبارت داسې وو ((ومايشعرکم انهم يؤمنون، بل أخبرکم انها اذاجاءت لايؤمنون)) (٣) اوبعض علماء وائی چه ((انّها)) په معنی د ((لعلها)) سره دې، (٤) اوبعض وائی چه ((انها)) جواب دقسم محذوف دې تقدير دارنگه دې ((ومايشعرکم حالهم اقسم انها اذاجاءت لايؤمنون)) ، (٥) اوبعض علماؤوئيلی دی چه دباقی دې په خپل حال يعنی په کلام کښې تقدير نشته دې، اولا ، هم زائدنه دې بلکه اصلی دې. ليکن داکلام مبنی دې په قانون ددلائلو الاعجاز باندې. ددې توجيه خلاصه داده چه څوک بل چاته تنبيه ورکوی په خطاء، دزعم اودعلم دهغه باندې نوکله صرف دهغه دعلم خطا ، اوخلاف واقع کيدل ذکرکوی اوکله ورسره دهغه دخطائی عذرمعذرت هم ذکرکوی نوپه اول صورت کښې کلام مثبت ذکرکيږی اوپه دويم صورت کښې منفی ذکرکيږی. مثلاً دچا زعم اوخيال داوی چه فلانې به څما اکرام احترام کوی اوپه حقيقت کښې هغه اکرام احترام کونکې نه وی اودحقيقت علم صرف تاته وی اوهغه ته نه وی نوته کله داسې وائی . ((ومايدريک ان فلانا

يکرمک)) نه څه پوهيږي چه فلانې ستا احترام کوی؟ نوداصرف دهغه دعلم اوخيال دغلطئ بيان دي. اوکله چه داسې اووائی چه ((وما يدريک انه لايکرمک)) نوددې مطلب دادې چه ستاخيال خوغلط دې ليکن ته په دې غلطئ کښې معذورئی، ستا خوعلم اوخيال دادې چه دې به ځمااکرام کوی نوزه عالم يم په نه اکرام. اوته په عدم اکرام عالم نه ئی نومعذور ئی. عدم دعلم يوعذر دې نوپه نفی راوړلو کښې عذرته اشاره وی اوپه استفهام انکاری ذکرکولوکښې غلطئ دخيال اواعتقادته اشاره وی، ((فکذلک الآية انما وردفيها الکلام اقامة عذرللمؤمنين فی عدم علمهم بالمغيب فی علم الله تعالی وهو عدم الايمان هؤلاء فاستقام دخول لا، وتبين ان سبب الاضطراب: التباس الانکار باقامة الاعذار، وهذامن اسمی دلائل الاعجاز)) (اعراب القرآن. للاستاذ الدرويش)

| وَنُقَلِّبُ أَفْئِدَتَهُمْ وَأَبْصَارَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا بِهِۦٓ |
| --- |
| (څکه) چه اړوو مونږ زړونه د دوئ او سترګې د دوئ (دحق نه) څکه چه ايمان ندې راوړې دوئ پدې باندې |
| أَوَّلَ مَرَّةٍ وَّنَذَرُهُمْ فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿١١٠﴾ |
| اول ځل او پريږدو مونږ دوئ لره په سرکشئ د دوئ کښې سرګردانه |

﴿وَنُقَلِّبُ أَفْئِدَتَهُمْ وَأَبْصَارَهُمْ﴾ داعلت د ((لايؤمنون)) دپاره دې واوپه معنی دعلت دې ﴿كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا﴾ کاف هم تعليليه دې ((ای لما لم يؤمنوابه اول مرة)) اومطلب دادې چه اول دوئ دضد دوجې نه ايمان نه دې راوړې، نو دا سبب دې لپاره د ختم اوسلب استعداد، نو الله تعالی د دوئ د زړونو نه د قبول د حق استعداد سلب کړو ، اودسترګو نه ئې ورته ، دنظرعبرت استعداد سلب کړو ددينه تعبير په نوروځايونو کښې په ختم اوطبع سره شويدې، اودلته دسمع ذکرنه دې شوې څکه دلته بحث دمعجزاتو محسوسودې اودهغې نه دعبرت اخستلودپاره سترګې اوزړونه پکاردی، نه سمع، ﴿وَنَذَرُهُمْ﴾ داعطف دې په ((لايؤمنون)) باندې. يعنی ((انها اذاجاءت لايؤمنون، وانها اذاجاءت نذرهم فی طغيانهم يعمهون)).

﴿فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ﴾ د ((عَمَهٌ)) نه مشتق دې دزړه ړوندوالی ته وائی، چه لازم ورسره تحير اوتردد دې

**اوومه پاره ختمه شوه ولله الحمد اولاً واخراً**

وَلَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَآ اِلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتٰى وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ

او كه چرې مونږ نازل كړو دوئ ته ملائك او خبرې وكړي د دوئ سره مړي او راجمع كړو مونږ په دوئ هر شى

قُبُلًا مَّا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْٓا اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُوْنَ ⑪

مخامخ نو (بيا هم) دوئ ايمان نه راوړي، مگر دا كه وغواړي الله (جبراً مسلمانول د دوئ) ليكن اكثر د دوئ نه جاهلان دي

﴿وَلَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَآ﴾ دا د ماقبل تفصيل دې چه ((ومايشعركم)) دې. تاسوځه پوهيږئ چه دوئ به ايمان راوړي بلكه دوئ ايما نه راوړي اگركه ددوئ مطلوبه معجزې ښكاره شى بلكه دهغې نه زيات ښكاره شي، ﴿وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ﴾ يعنى كه ټول مغيبات لكه جنت دوزخ دوئ ته راجمع شى اودوئ ئې اووينى ﴿قُبُلًا﴾ مخامخ، قبلاً اى مقابلة، ومنه، ((وان كان قميصه قدمن قبل)) ومنه ((قبل الرجل ودبره)) ، ((حكى ابوزيد قبلا ، مقابلة ، قبلا، قِبَلاً)) كله په معنى دَ المواجهة سره راځى (قرطبى) .

﴿مَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْٓا﴾ نوبياهم دوئ ايمان نه راوړي ځكه چه په دوئ مهرلگيدلې دې، په وجه دضداوتعصب ددوئ سره ، نوكه چرې دوئې ضدتعصب ترك كړي ، اوانابت اختياركړي نوالله تعالى به ورته توفيق دايمان وركړي، مفسرين وائى چه ددې آيت نه معلوميږي چه دمشاهدې دمعجزاتو سره نفع لازمه نه ده، بلكه اصل ځيزطلب صادق اوانابت دې، (شعر):

عاشق كه شد كه يار بحالش نظرنه كرد    اى خواجه دردنيست وگرنه طبيب هست

اومولانائې روم وائى (شعر):

**آب كم جو، تشنگى آور بدست    تا بجويد آبت از بالا وپست**

﴿اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ﴾ كه الله تعالى اوغواړي اودوئ جبراً په هدايت راولى نوداد الله تعالى دقدرت نه باهرنه ده خوجبرى ايمان، عندالله معتبرنه دې، حاصل دادې چه ددوئ دايمان راوړلوبل هيڅ صورت نشته سوادجبراوالجاء، نه اودامعتبرنه دې ځكه چه دامنافى دې دغرض التكليف سره مكلف هغه څوك وى چه اختيارمندوى مجبور مكلف نشى كيدې

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا شَيٰطِيْنَ الْاِنْسِ وَالْجِنِّ يُوْحِيْ بَعْضُهُمْ

او دغسې گرځولى دى مونږ هر پيغمبر لره دشمنان شيطانان د انسانانو اوپيريانو نه وسوسې اچوى بعضى د دوئ نه

إِلَىٰ بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُورًا ۚ وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ مَا فَعَلُوهُ

بعضو ته. ښائسته کړې شوی د دروغو خبرې لپاره د دهوکه کولو. اوکه خوښه وې د رب ستا نو دوئ به دا کار نوي کړې

فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ ۝ وَلِتَصْغَىٰ إِلَيْهِ أَفْئِدَةُ الَّذِينَ

پس پرېږده دوئ لره سره د هغې چه دوئ دروغ جوړوي . او لپاره د دې چه مائل شي دیته زړونه د هغه کسانو

لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ وَلِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوا مَا هُمْ مُقْتَرِفُونَ ۝

چه ايمان نه لري په آخرت باندې، او چه (بيا) خوښ کړې دوئ دا دروغ، او کوی دوئ هغه څه چه دوئ ئې هميشه کوی

﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا﴾ دادنه منلو پنځمه وجه ده، يعنى الله تعالى تکوينى طورباندې. شياطين الانس والجن دشمنان گرځولى دی دانبياؤ دپاره چه هغوئ دتوحيد اورسالت په باره کښې دخلقو په زړونو کښې وسوسې اچوی، دشرک اودباطل خبرې ورته خائسته کړی.

﴿شَيَاطِينَ الْإِنسِ وَالْجِنِّ﴾ مفعول اول د ﴿جَعَلْنَا﴾ دی او﴿عَدُوًّا﴾ مفعول ثانی دې مقدم شوې دې لپاره د مسارعت بيان د عداوت ته، يا ((جعلنا)) متعدی دې يو مفعول ته چه هغه عدواً دې .او ((شياطين الانس والجن)) ترينه بدل دې، اودا آيت صريح دلالت کوی په دې چه کوم انسان دشيطان نيابت کوی نوهغه همم شيطان دې په شکل اوقالب دانسان کښې، قرطبی، دمالک بن دينارنه نقل کړيدی چه انسی شيطان په مازيات سخت دې دجنی شيطان نه ، ځکه چه جنی شيطان په تعوذ وئيلوسره لاړشی، اوانسی شيطان ماگناهونوته راکاړی عياناً، حضرت عمررضی الله عنه ديوې زنانه نه واوريده چه داشعرئی وئيلو:

| | |
|---|---|
| انّ النساء رياحين خُلِقْنَ لكم | و كلكم يشتهى شم الرياحين |

نوحضرت عمر په جواب کښې اووئيل ، ،

| | |
|---|---|
| انّ النّساء شياطين خُلِقْن لنا | نعوذ بالله من شر الشياطين |

﴿يُوحِي﴾ په معنى دوسوسې اچولوسره دې ﴿زُخْرُفَ الْقَوْلِ﴾خائسته قول، مرادترينه مزخرف. ملمع . (زراندوه) دې يعنى هغه چه ظاهرئی خائسته وی، دزرو، رنگ پرې لگيدلې وی.اودننه خراب وی شيطانی تلبيسات اوهرباطل مذهب کښې خوشنما .دلکش وی.په ظاهر کښې زروی اودننه زهروی ﴿غُرُورًا﴾دامفعول له دې په معنى د ((ليغروا)) سره ﴿وَلِتَصْغَىٰ﴾

عطف دې دې په (غروراً) چه په معنی دفاعل سره دې ﴿ وَلِتَصۡغَىٰٓ ﴾په معنی د (تميل) سره دې.
لکه ((فقدصغت قلوبکما)) یاپه حدیث کښې دی، ((فاصغی لها الاناء)) اوضمیر د﴿إِلَيۡهِ ﴾راجع
دې زخرف القول ته، یاواؤزائده دې او ((لتصغی)) دجعلنا سره متعلق دې ﴿ وَلِيَرۡضَوۡهُ ﴾ به
((لتصغی)) باندې معطوف دې ﴿ وَلِيَقۡتَرِفُواْ ﴾ ((ای یکتسبوا))- حاصل داچه کوم انسان جاهل
چه په آخرت ایمان نه لری اودآخرت غم ورسره نه وی نوهغه اول دزخرف القول په ظاهری
خائست دهوکه شیٔ نوغوګ ورته کیدی اوزړه ئې ورته مائل شی. اوبیائی خوخ اوپسند کړی
اوبیاپرې عمل اوکړی نوباطل عملونه همیشه دپاره کوی. دګمراهئی اوله درجه میلان قلب
وی. دویمه درجه ئې باطل اختیارول اوپسندکول وی په اعتقاد دزړه سره. اودریمه درجه په
معاصیؤ کښې عملاً مبتلاکیدل دائمًا وی اوکوم خلق چه ایمان په آخرت باندې لری نو ایمان
هغوئ دباطل پرستئ نه منع کوی.

أَفَغَيۡرَ ٱللَّهِ أَبۡتَغِي حَكَمٗا وَهُوَ ٱلَّذِيٓ أَنزَلَ

آیا غیر د الله تعالی نه طلب کړم زه بل خوك فیصله کوونکې او حال دا چه الله تعالی هغه ذات دې چه نازل کړی نی دی

إِلَيۡكُمُ ٱلۡكِتَٰبَ مُفَصَّلٗاۚ وَٱلَّذِينَ ءَاتَيۡنَٰهُمُ ٱلۡكِتَٰبَ يَعۡلَمُونَ

تاسوته کتاب چه پکښې تفصیل دې، اوهغه کسان چه ورکړیدې مونږ دوئ ته کتاب. د دی یقین کوی

أَنَّهُۥ مُنَزَّلٞ مِّن رَّبِّكَ بِٱلۡحَقِّۖ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلۡمُمۡتَرِينَ ۝

چه بیشکه دا کتاب نازل کړې شویدې د طرف د رب ستا نه په حقه سره پس هرګز مه کیږه د شك کوونکو نه

﴿ أَفَغَيۡرَ ٱللَّهِ أَبۡتَغِي حَكَمٗا ﴾ مشرکینولکه چه دمعجزاتو طلب کړې ووچه دهغې جواب
مخکښې تیرشونودغسې دوئ نبی صلی الله علیه وسلم ته داسې هم وئیلی وو ((اجعل بیننا
وبینکَ حکمًا مِن احبارِالیهود وإنْ شِئتَ من اساقِفَةِ النّصٰری لیخبرناعنک)) چه ته یوحکم (فیصله
کونکې) مقررکړه، دعلماؤدیهودو یانصاراؤ، یواسقف (عالم) چه فیصله اوکړی زمونږ اوستا
په درمیان کښې ،څکه چه دخصمینو، اومناظره کونکو دپاره (حَکَمْ) پکاروی چه فیصله
اوکړی، نوجواب راغې چه دمناظرې په وخت کښې (حَکَمْ) فیصله کونکې. دالله تعالی کتاب
دې، اوپه اهل کتابو کښې چه کوم، نیکان دی، ضد تعصب نه کوی نوهغوئ ددی تائید کوی.

استفهام انکاری په معنی دنفی سره دی یعنی (حَکَمْ) فیصله کونکی .صرف الله تعالی او دالله
تعالی کتاب دی بل څوک (حَکَمْ) نشی کیدی. ﴿وَهُوَ الَّذِیٓ اَنۡزَلَ﴾ دا بیان علت دی چه دالله
تعالی نه ماسوی بل څوک حکم نشی کیدی، حکم صرف الله تعالی دی هغه فیصله ددی قرآن
په واسطه سره کریده، نو په وخت دمناظری کښې فیصله کونکی دالله تعالی کتاب دی کتاب
دی ﴿مُفَصَّلًا﴾ داوجه دحکمیت دقرآن ده دامنصوب دی حال دی د ((اَلْکِتٰب)) نه.اودمفصلا نه
مراد دا دی چه دایمانیاتو اوعقائدوتفصیل پکښې پوره موجوددی ﴿وَالَّذِیْنَ اٰتَیْنٰهُمُ الْکِتٰبَ﴾
دادلیل نقلی دی دمؤمنین سابقینو نه ،مراددااهل کتابونه هغه دی چه ایمان ئې راوړی دی
اوضدتعصب نه کوی. نودوئ هم ددی اقرارکوی اوعقیده لری چه دقرآن فیصله حقه ده اوقرآن
حکم دی ﴿فَلَا تَکُوْنَنَّ﴾خطاب نبی صلی الله علیه وسلم ته دی اومرادترینه امت دی

| وَتَمَّتْ | كَلِمَتُ | رَبِّكَ | صِدْقًا | وَّعَدْلًا ؕ | لَا مُبَدِّلَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او تام اومکمل دی دا کلام د رب ستا په ریشتنوالی او په انصاف سره، نشته دی هیڅ څوک بدلوونکی | | | | | |
| لِكَلِمٰتِهٖ ۚ | وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿١١٥﴾ | وَ اِنْ | تُطِعْ | اَكْثَرَ | مَنْ |
| د کلماتو د الله (د قرآن) اوهغه هرڅه آوری او پوهه دی په هرڅه . او که ته تابعداری وکړې د ډیرو هغه خلقو | | | | | |
| فِی الْاَرْضِ | يُضِلُّوْكَ | عَنْ سَبِيْلِ | اللّٰهِ ؕ | اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ | اِلَّا الظَّنَّ |
| چه په زمکه کښې دی، وارووی به تاله د لارې د الله تعالی نه، دوئ تابعداری نکوی مګر د ګمان کوی، | | | | | |
| وَاِنْ هُمْ | اِلَّا | يَخْرُصُوْنَ ﴿١١٦﴾ | اِنَّ رَبَّكَ | هُوَ اَعْلَمُ | مَنْ يَّضِلُّ |
| او ندی دوئ مګر په اټکل روان دی (دروغ وائي) . بیشکه رب ستا هغه ښه پوهه دی په هغه چا چه لرې ش | | | | | |
| عَنْ سَبِيْلِهٖ ۚ وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ﴿١١٧﴾ | | | | | |
| د لارې دهغه نه، او هغه ښه پوهه دی په هدایت موندونکو باندې | | | | | |

﴿وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ﴾ دابله وجه دحکمیت ده، دکلمې نه مراد کلام دی یعنی قرآن یعنی
داکلام مکمل اوتام دی په صدق اوعدل سره، صدق راجع دی اخباراتو نه اوعدل راجع دی
اوامرونواهی ؤته . یعنی ددې کلام ټول اخبارات رشتیا دی، دکذب اوخلاف واقع امکان نه

لری اوددي کلام ټول احکامات ،اوامر اونواهی سراسردعدل انصاف نه ډک دی. دظلم بې انصافئ هیڅ شائبه پکښې نشته دې، نوځکه دې حکَم دې بعض وانی چه د ﴿كَلِمَتُ رَبِّكَ﴾ نه مراد دین دې یادلائل دتوحید دی(روح) ﴿صِدْقًا وَعَدْلًا﴾ ، حال دې په معنی دصادقًا عادلاً سره. یامنصوب بنزع الخافض دي ((ای بالصدق والعدل)) یامنصوب بنابرمفعولیة مطلقه دې په اعتبار دموصوف مقدره سره ای تمام صدق وعدل ،،﴿لَا مُبَدِّلَ﴾دابله وجه دحکمیت ده. یعنی په قرآن کریم کښې څوک تبدیل تحریف لفظی نشی کولې. محفوظ دې دتحریف نه اوپه مخکنوکتابونوکښې تحریف واقع شویدې. یادامعنی ده چه دقرآن په وعدوعید کښې تبدیل ، خُلف، نشی راتلې ، امام رازی رحمه الله داسې معنی کړیده چه دقرآن پاک په دې قوی دلائلو کښې منکرین، شکوک شبهات ،تبدیل ، نشی پیداکولې.

﴿وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ﴾دازجردې اودمشرکینو ددلیل جواب دې، دوئ ، اکثریت دحقیقت دلیل ګرځولو ، نومطلب دادې چه هراکثریت دحقیقت دلیل اوسندنه شی کیدې اودامطلب نه دې چه دهیڅچا اکثریت دلیل اوسندنه دې، دمؤمنو صلحاؤ اکثریت په یوخبره دلیل دحقیقة وی، اوددې وجې نه ﴿أَكْثَرَ مَن فِي الْأَرْضِ﴾ذکرشویدې، اکثرالمؤمنین نه دې ذکرشوې

**فائده** : دموجوده زمانې غیرمقلدینو ته چه اووئیلې شی چه دمسلمانانو صلحاؤاکثریت دتقلید قائل دی نودوئ په جواب کښې داآیت پیش کوی، داکثرالمؤمنین اوداکثرمن فی الارض فرق نه کوی اوداکثرالمؤمنین اطاعت سبب دګمراهئ ګرځوی (فالی الله المشتکی) ﴿إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ﴾ داعلت د ((يُضِلُّوكَ)) دپاره دې،مراددظن نه وهم پرستی ده. دشرک حقیقت وهم پرستی ده،یاترینه مراددمشرکینو دلیل دې چه دوئې وئیل ، چه کوم چه تاسو قتل کړئې یعنی ذبیحه نوهغه خورئ اوچه الله تعالی ئې مړه کړی یعنی مرداره نوهغه نه خورئې نو مردارې ته ئې دالله تعالی ذبیحه (قتل کړې شوی) وئیل نوداظن دې، حاصل دادې چه دظن نه مرادهغه ظن نه دې چه معتبردې په شرع کښې، د﴿يَخْرُصُونَ﴾نه مراداټکل بې دلیله خبرې دی. یاپه معنی دیُکذبُونَ سره دې- ﴿هُوَ أَعْلَمُ مَن يَضِلُّ﴾الله تعالی په هرچاخه پوهه دې نودهرچا داعمالو اوعقائدو مطابق به بدله ورکوی، ددی ځائې پورې دسورة حصه اولی مضمون نفی دشرک اعتقادی پوره شوه.

| فَكُلُوْا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ اِنْ كُنْتُمْ بِاٰيٰتِهٖ مُؤْمِنِيْنَ ۝ |
|---|
| پس خورئ د هغې [1] نه چه یاد شوې دې په هغې نوم د الله تعالی خاصةً کچرې یئ تاسو په حکمونو د هغه ایمان لرونکی |

﴿فَكُلُوْا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ﴾ دا د سورة دویمه حصه شروع شوه په دې کښې نفی د شرک فعلی کیږی، په دې حصه کښې دنفی د شرک فعلی دپاره درې صورتونه ذکر کیږی (۱) تحریمات غیر الله په څلورعنواناتوسره (۲) تحریمات الله، په یوعنوان سره (۳) نذرلغیرالله داهم په څلورعنواناتوسره دې ﴿فَكُلُوْا﴾ دا اول عنوان دې دذکردتحریمات غیرالله دپاره ﴿مِمَّا﴾ دمانه مرادهغه حیوانات دی چه مشرکانو دخپلومعبودانو دتعظیم دپاره دخپل طرفه حرام کړیوؤ یعنې بحیره، سائبه، وصیله، حام، معنی داده چه په کوم حیوان چه خاصةً نوم د الله تعالی یاد شوې وی په وقت د ذبح کښې هغه حلال وګڼړئ خورئ ئې، دلته د خوړلو حکم مقصود نه دې بلکه د حلا ګنړلوحکم مقصوددې اودحلال ګنړلوعملی ثبوت خوړل دی نوځکه دخوړلو حکم اوشو. ﴿اِنْ كُنْتُمْ بِاٰيٰتِهٖ مُؤْمِنِيْنَ﴾ دایمان بالایات تقاضاداده چه تحریمات غیرالله عملاً ختم کړې شی.

| وَمَا لَكُمْ اَلَّا تَاْكُلُوْا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَقَدْ |
|---|
| او څه عذر دې تاسولره چه نه خورئ تاسو دهغه څیز نه چه یاد کړې شی نوم د الله تعالی خاصةً په هغې او حال دا چه |
| فَصَّلَ لَكُمْ مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ اِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ اِلَيْهِ ؕ |
| تفصیل کوی تاسوته دهغه څیزونو چه حرام کړی ئې دی په تاسو مګر هغه څه چه مجبوره شئ تاسو هغې ته |
| وَاِنَّ كَثِيْرًا لَّيُضِلُّوْنَ بِاَهْوَآئِهِمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ اِنَّ رَبَّكَ |
| او بیشکه ډیر خلق خامخا ګمراه کول کوی په خپلو خواهشاتو سره په غیر د علم (دلیل) نه . بیشکه رب ستا |
| هُوَ اَعْلَمُ بِالْمُعْتَدِيْنَ ۝ وَذَرُوْا ظَاهِرَ الْاِثْمِ وَبَاطِنَهٗ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ |
| هغه ښه پوهه دې په تجاوز کوونکو (دحدودو د شرع نه). او پریږدئ ښکاره ګناه اوپټ ګناه، بیشکه هغه خلق |

1 - حصه ثانی . نفی د شرك فعلی، د تحریمات غیر الله بیان.

يَكْسِبُوْنَ الْاِثْمَ سَيُجْزَوْنَ بِمَا كَانُوْا يَقْتَرِفُوْنَ ۝

چه كسب كوي ګناه زړده چه دوئ ته به سزا وركړې شي دهغه عملونو چه دوئ ئې كوي

﴿وَمَا لَكُمْ اَلَّا تَأْكُلُوْا﴾ دا د ماقبل تاكيد دې. ﴿وَقَدْ فَصَّلَ﴾ «فصّل» صيغه د ماضي ده نو معنى داده چه د دينه مخكښ تفصيل شوې دې حالانكه د دې نه مخكښ مكي سورتونو كښ تفصيل د حرام، حلال نه دې شوې، سورة بقرة ، مائده كښې تفصيل شته دې خو هغه مدني دی. د دې سورت نه روستو نازل شوی دی . حضرت تهانوی رحمه الله فرمائي چه سورة نحل مراد دې چه د دې نه مخكښ نازل شوې وۇ . ليكن په دې كښ دا اشكال دې چه په سورت نحل كښ تفصيل نشته دې، هلته محرمات اجمالاً ذكردی اوتفصيل دلته دې. حضرت الشيخ رحمه الله فرمائي چه دلته ماضي په معنى دمضارع سره ده اومضارع دپاره دحال ده نو (فصّل) په معنى د (يُفصل) سره دې لكه په سورة نوركښې ﴿سُوْرَةٌ اَنْزَلْنٰهَا وَفَرَضْنٰهَا﴾ انزلنا .فرضنا. په معنى دمضارع حالي سره دی، ﴿اِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ اِلَيْهِ﴾ دا استثناء د ((ماحرّم)) نه ده، نو محرمات لكه ميته ،دم، خنزير، مااهل به لغيرالله، په وخت د اضطراركښې حرام نه دی. د هلاكت نه د بچ كيدو دپاره دهغې خوارك ضروری دې، ﴿وَاِنَّ كَثِيْرًا﴾ ډيرخلق من گهړت قصې بيانوی اونور خلق په هغې سره ګمراه كوی ، عمروبن لُحَی چه هغه دسوائب رسم اول ايخودلې وو . هغه ئې اولين مصداق دې باقی تمام مضلين پكښې داخل دې ﴿ظَاهِرَ الْاِثْمِ﴾ ظاهرګناه هغه دې چه دظاهربدن سره تعلق لری په دې كښې شرک فعلی داخل دې اوباطن ګناه هغه دې چه دزړه اوعقيدې سره تعلق لری اوپه دې كښې شرک اعتقادی داخل دې ﴿سَيُجْزَوْنَ﴾ دا وعيد دې دلالت كوی په عقاب دمذنب، نه په وجوب، اواهل سنت والجماعت وائی چه مذنب چه توبه اونكړی نوبياورته عقاب دې په شرط دمشية سره يعني كه الله تعالى اوغواړی نوعذاب به ورته وركړی اوكه اوغواړی معافی به ورته اوكړی، سزاوركول واجب اوضروری نه دی په الله تعالى باندې.

وَلَا تَأْكُلُوْا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِاسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَاِنَّهٗ لَفِسْقٌ

او مه خورئ دهغې نه چه نوی ياد كړې شوې نوم د الله تعالى خاصةً په هغې. او بيشكه دا خوړل ګناه دې.

| لِيُجَادِلُوكُمْ | أَوْلِيَآئِهِمْ | إِلَىٰ | لَيُوحُونَ | الشَّيَاطِينَ | وَإِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|

اوبيشکه شيطان خامخا وسوسې اچوي خپلو دوستانو ته د دې لپاره چه جګړه او مناظره وکړي ستاسو سره.

وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ ﴿١٢١﴾

او که خبره ومنئ تاسو د دوئ بيشکه تاسو به خامخا مشرکان يئ

﴿ وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ ﴾ دابيان دنذرلغيرالله دي ((مالم يذكراسم الله)) نه مراددادي چه خالص نوم دالله تعالى پرې نه وي يادشوې بلکه نوم دغيرالله پرې ذکرشوې وي يعنى نذرلغيرالله. يامتروک التسميه عامداً وي نوداپه نيزداحنافو حرام دې. دشوافعو په نيزجائزدي

﴿وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ ﴾ شياطينونه مرادانسى شياطين اوجنى شياطين دواړه مراد دي يعنى دوئ دخلقو په زړونوکښې وسوسې اچوي ،دابن عباس ﷺ نه روايت دې چه مشرکانو شبه اوکړه چه کوم حيوان تاسوپخپله مړکړئ نوهغه خورئ يعنى ذبيحه اوچه الله تعالى ئ مړکړي يعنى ميتته نوهغه نه خورئ؟ ﴿ وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ ﴾اطاعت په استحلال دحرامو کښې.مشرکين مردار ته حلال وائى نوکه تاسوورته حلال اووائى

﴿إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ ﴾ دادليل دې په دې چه څوک حرامو قطعيو ته حلال وائى. ياحلال قطعى ته حرام وائى هغه مشرک ،کافردې. داشرک فى الحکم اوشرک فى التشريع دې البته دکوم شئ چه حل حرمت قطعى نوى اوپه هغه کښې ادله دحل اوحرمت دواړه موجودوى نويوجانب ته ترجيح ورکول تفقه فى الدين ده، مقلدينوته په دې وجه مشرکين ووئيل چه دوئ اتباع دائمو کوى په جهالت مبنى ده، دائمه مجتهدينواتباع شرک فى التشريع ندې، مقلدين خپلوخپلوامامانوته شارحين وائى اوشارعين ورته نه وائى.

| لَهُ | وَجَعَلْنَا | فَأَحْيَيْنَاهُ | مَيْتًا | كَانَ | أَوَمَنْ |
|---|---|---|---|---|---|

آيا هغه څوک [1] چه وى دې مړ(په جهل اوشرک سره)پس ژوندې کړو مونږ ده لره په (علم او ايمان سره) او ورکړو مونږ ده ته

---

١ - بشارت . تخويف

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَّثَلُهٗ | كَمَنْ | النَّاسِ | فِي | بِهٖ | يَّمْشِيْ نُوْرًا |
| رڼا «د ایمان او د علم» چه گرځی دهغې سره په خلقو کښې، په شان دهغه چا کیدې شی چه صفت ئی دا وی | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِي الظُّلُمٰتِ | لَيْسَ | بِخَارِجٍ | مِّنْهَا ؕ | كَذٰلِكَ | زُيِّنَ لِلْكٰفِرِيْنَ |
| چه دې په تیرو د کفر او د جهل کښې وی، نوی وتونکې د هغې نه. دغسې ښائسته کړې شوی دی [١] کافرانو ته | | | | | |

| |
|---|
| مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝ وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا فِيْ كُلِّ قَرْيَةٍ اَكٰبِرَ مُجْرِمِيْهَا |
| هغه عملونه چه دوئ ئی کوی او دغسې گرځولی دی مونږ په هر کلی کښې. غټ خلق مجرمان دهغې |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِيَمْكُرُوْا | فِيْهَا ؕ | وَمَا | يَمْكُرُوْنَ | اِلَّا | |
| د دې لپاره چه دوئ چل وَل «حیلې» وکړی، په هغې کلی کښې «د حق خلاف» اونه کوی چل وَل مگر | | | | | |

| |
|---|
| بِاَنْفُسِهِمْ وَ مَا يَشْعُرُوْنَ ۝ |
| د خپلو نفسونو سره اونه پوهیږی دوئ |

﴿ اَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا ﴾ دابشارت اوتخویف دې او دَ مؤمن موحد اودکافرمشرک تمثیل دې اوپه آیت کښې تشبیه تمثیلی ده،نو ((اومن کان)) مشبه ده او ﴿كَمَنْ مَّثَلُهٗ﴾ مشبه به دې او استفهام انکاری دنفی دپاره دې، دمیت نه مرادمشرک دې اود﴿ فَاَحْيَيْنٰهُ ﴾ نه مراد حیاة د ایمان اوتوحید دې یا دمیت نه مرادجاهل اوداحیاء نه مرادعلم ورکول دی ﴿وَجَعَلْنَا لَهٗ نُوْرًا﴾ دنورمرادنوردایمان دې اوحضرت قتاده رحمه الله وائی چه ددینه مراد قرآن دې ﴿ يَمْشِيْ بِهٖ فِي النَّاسِ ﴾ ددې نه مرادعمل دې په قرآن یاترینه مراددعوت دایمان دې

﴿كَمَنْ مَّثَلُهٗ فِي الظُّلُمٰتِ﴾ ((مَثَلُهٗ)) یازائددې نومعنی داده ((کمن هوفی الظلمت)) یا ((مَثَلُهٗ)) په معنی دصفته العجیبة سره مبتداء ده ((فی الظلمات)) خبر د مبتداء محذوف دې چه ((هو)) دې اوداجمله خبرد مَثَلُه دپاره دې، معنی داشوه چه ایا هغه څوک چه مشرک وی اوبیاورته الله

[١] . د نه منول شپږمه وجه.

تعالی نور ایمانی نصیب کړی په شان دهغه چاکیدي شی؟چه دهغه صفت اوحالت دادي چه دي په ظلماتو دکفرکښي وی. د ظلماتونه مراد ظلمات دکفراودجهل مراددی مفسرين وائی چه دا آیت نازل شويدي په باره دحمزه رضی الله عنه کښي اوابوجهل کښی. ليکن حکم ئی عام دی. ابوجهل يو ځل نبی صلی الله علیه وسلم په سرباندي اووهلو. اوپه يوروايت کښی دي ((ان اباجهل رمی رسول الله صلی الله علیه وسلم بفرث)) يعنی ابوجهل نبی صلی الله علیه وسلم په فرث(لری) باندي اوويشتلو يعنی گندگی اولرې ئی ورواچونوحمزه چه په دغه وخت کښي موجودنه وؤ – ښکارته تللي وو. نوچه راغلو خبرشو. نوډيرغصه شو. اولينده قوس ورسره ووروان شو اوپه ابوجهل ئی په وهلو شروع اوکړه. په سرسرئ اووهلو. نوابوجهل ورته اوونيل. چه آيا. ته نه گوري.چه ده (يعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم ) مونږ بې وقوف گرځولی يو. اوزمونږخدايان ئی بي وقوف گرځولی دی اودپلار نيکه خلاف ئې کړيدي. نوحمزه ددي وخته پوري لامسلمان شوي نه وؤ خواوئی وئيل چه ستاسونه زيات بې وقوف څوک کيدي شی چه دکاڼړو عبادت کوئی، ماسوادالله تعالی نه .اوپه دغه وخت کښي ئی کلمه دشهادت اووئيله اومسلمان شو.

﴿كَذَٰلِكَ زُيِّنَ﴾ دادنه منلودځلورمی وجه اعاده ده.﴿ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا﴾ دا دنه منلو شپږمه وجه ده ﴿أَكَابِرَ﴾ مفعول اول دجعل دي او﴿مُجْرِمِيهَا﴾ئی مفعول ثانی دي يابالعکس دي اولام په ﴿لِيَمْكُرُوا﴾کښي لام عاقبت دي يعنی دهرکلي لوئی لوئی خلق .سرداران مجرمان دی اوددين حق خلاف منصوبې جوړوی اوخلق دقبول دحق نه منع کوی ليکن ددي وبال به بالاخر په دوئ راپريوځی خودوئ نه پوهيږي.

وَإِذَا جَاءَتْهُمْ آيَةٌ قَالُوا لَنْ نُؤْمِنَ حَتَّىٰ نُؤْتَىٰ

او کله چه راشی دوئ ته يوه نښه (معجزه) نو وائ دوئ هيچرې ايمان نه راوړو مونږ، تر هغې پوري چه راکړې شی مونږ ته

مِثْلَ مَا أُوتِيَ رُسُلُ اللَّهِ ۘ اللَّهُ أَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ

مثل د هغې چه ورکړې شوی دی رسولانو د الله تعالی ته، الله تعالی ښه پيژنی هغه ځائ چه مقرر کوی په هغه ځائ کښی

رِسَالَتَهُ ۗ سَيُصِيبُ الَّذِينَ أَجْرَمُوا صَغَارٌ عِنْدَ اللَّهِ وَعَذَابٌ شَدِيدٌ

پيغام خپل. زرده چه وبه رسيږی هغه کسانو ته چه مجرمان دی ذلت په نيزد د الله تعالی اوعذاب سخت

بِمَا كَانُوا يَمْكُرُونَ ﴿١٢٤﴾ فَمَن يُرِدِ اللَّهُ أَن يَهْدِيَهُ

په سبب د دې چه وو دوئ د حق خلاف نې حیلې کولې پس څوک چه وغواړي الله تعالى هغه ته هدایت ورکول

يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ ۖ وَمَن يُرِدْ أَن يُضِلَّهُ

نو کولاؤ کړي (پرانخي) سینه دهغه لپاره د اسلام. او څوک چه وغواړي الله تعالى چه بې لارې کړي هغه

يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاءِ ۚ كَذَٰلِكَ يَجْعَلُ اللَّهُ

نو وګرځوي سینه دهغه تنګه. ډیره تنګه. لکه ګویاکښې په زورسره په بره خیژي آسمان ته. دغسې اچوي الله تعالى

الرِّجْسَ عَلَى الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٢٥﴾

پلیتي (لعنت، عذاب) په هغه کسانو چه ایمان نه راوړي

﴿ وَإِذَا جَاءَتْهُمْ آيَةٌ ﴾ داشکوه ده. یعنی دوئ دډیرتکبراوجهالت په وجه داسې وائی چه مونږ ته دې هم رسالت راکړې شی، فرشتې دې مونږ اووینوپه مونږ دې نازلې شی. ﴿ اللَّهُ أَعْلَمُ ﴾ دا جواب ددغه شکوه دې یعنی الله تعالى ته داخبره خه معلومه ده چه لائق دمرتبې درسالت څوک دې. هرکس اوناکس دنزول دوحی اورسالت صلاحیت نه لري.

**فائده** زمونږ مشائخ وائی اوپه حصن حصین کښې هم دی چه دا مقام دقبولیت ددعادې. تلاوت کونکې چه دې مقام ته راؤرسی. ﴿ رُسُلُ اللَّهِ ﴾ دُعاد اوغواړی. بیا دې ﴿ اللَّهُ أَعْلَمُ ﴾ نه تلاوت شروع کړی

﴿ سَيُصِيبُ الَّذِينَ ﴾ دا تخویف دې ﴿ صَغَارٌ ﴾ذلت رسوائی ۔﴿ عِندَ اللَّهِ ﴾یعنی په قیامت کښې. یاپه عبارت کښې تقدیر د مِنْ دې ((ای من عندالله)). ﴿ وَعَذَابٌ شَدِيدٌ ﴾ یعنی سره دذلت نه عذاب شدید. په دنیا کښې په قتل سره اوپه اخرت کښې په نارسره

﴿ بِمَا كَانُوا يَمْكُرُونَ ﴾ باء سببیه ده. اودمکرنه مرادخلق منع کول دی دایمان نه اوطلب دمنصب درسالت دې نو د متکبرینودتکبراو د مکر سزا. ذلت او عذاب دی ﴿ فَمَن يُرِدِ اللَّهُ أَن يَهْدِيَهُ ﴾ یعنی منصب د رسالت خوالله تعالى هرچاته نه ورکوی بلکه درسالت دپاره خوبعض

خلق الله تعالى منتخب كوى. اودانبياؤ نه علاوه بعض خلق داسې دى چه په دهغوئ په سينو كښې دنورايمانى راتللو صلاحيت شته دې اوبعض خلق چه دمنصب درسالت مطالبه كوى نودوئ په سينوكښې دايمان دپاره هم ځائې نشته دې، دايمان راوړلو صلاحيت هم نه لرى . رسالت خودېره لرې خبره ده. دا آيت چه نازل شو نوصحابؤ ددې متعلق تپوس اوكړو دشرح صدر په باره كښې، نونبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل، چه دايونوردې چه الله تعالى ئې دمؤمن په زړه كښې واچوى. نو د ده زړه كُلاؤشى اوارت شى ددې دپاره نوصحابؤ عرض اوكړو چه آياددې دپاره څه علامه شته دې نونبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ((نعم الانابة الى دارالخلود والتجافى عن دارالغرورالاستعداء للموت قبل لقى الموة))،(شيربينى بحواله ابن جرير) يعنى دشرح صدرعلامه داده چه انابت كوى جنت ته، بى رغبتى ددنيانه. دمرگ دپاره تيارې كول. مخكښې دراتلو دمرگ نه .

﴿وَمَن يُرِدْ أَن يُضِلَّهُۥ﴾ يعنى دگمراهانوشرح صدرنه كيږى ايمان ته بلكه ايمان راوړل ورته دومره مشكل اوگران وى لكه اسمان ته ختل چه مشكل وى او دا آيت دليل دې په دې چه هرڅه په مشيت د الله تعالى سره دى حتى چه كفر او ايمان هم . ﴿ضَيِّقًا﴾معنى تنگ او ﴿حَرَجًا﴾ مصدردې صفت دې دمبالغې دپاره نود﴿حَرَجًا﴾ معنى ده ډيره تنگه ، ﴿كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِى ٱلسَّمَآءِ﴾ دامبالغه ده په ضيق الصدركښې يعنى سينه ئې تنگه شى اوايمان داخليدل پكښې داسې محال شى لكه آسمان ته ختل چه عادةً محال دى

﴿كَذَٰلِكَ يَجْعَلُ ٱللَّهُ ٱلرِّجْسَ﴾لكه چه سينه دهغه ئې تنگه گرځولى ده. دَ ايمان نه نودغسې رجس هم په دوئ اچوى، درجس نه مرادتسلط دشيطان دې، اوزجاج ويليدى چه رجس په دنياكښې لعنت دې اوپه آخرت كښې عذاب دې، مجاهد رحمه الله وئيليدى چه رجس هرهغه څيزدې چه په هغې كښې خيرنه وى.

| وَهَٰذَا | صِرَٰطُ | رَبِّكَ | مُسْتَقِيمًا ۗ | قَدْ | فَصَّلْنَا | ٱلْءَايَٰتِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او دا | (اسلام) | لار د | رب ستا | ده نيغه، | په تحقيق سره مونږ | په تفصيل سره بيان كړيدى آياتونه |

لِقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ ۞ لَهُمْ دَارُ السَّلٰمِ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَهُوَ وَلِيُّهُمْ

هغه قوم لره چه نصیحت قبلوی	ددوئ لپاره دي[۱] کوردسلامتیا په نیز د رب د دوئ او هغه مددګار د دوئ دي

بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۞ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ۚ يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ

په سبب د هغه عمل چه دوئ ئې کوی. اوپه کومه ورځ چه جمع به کړی دوئ ټولو لره (وبه وائی) اې ټولیه د پیریانو

قَدِ اسْتَكْثَرْتُمْ مِّنَ الْإِنْسِ ۚ وَقَالَ أَوْلِيٰٓؤُهُمْ مِّنَ الْإِنْسِ

په تحقیق سره تاسو د خپل ځان تابع کړی وو ډیر د انسانانو نه. او وبه وائی دوستان د دوئ د انسانانو نه.

رَبَّنَا اسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ وَّبَلَغْنَآ أَجَلَنَا الَّذِيٓ أَجَّلْتَ

ای ربه زمونږ نفع اخستې وه بعضو زمونږ په بعضو سره او رسیدلی یو مونږ خپلې هغه نیټې ته چه تا هغه مقرر کړې وه

لَنَا ۚ قَالَ النَّارُ مَثْوٰىكُمْ خٰلِدِينَ فِيهَآ إِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ۚ

زمونږ لپاره . وبه وائی الله تعالی چه اُور ستاسو د اُوسیدلو ځائ دي. همیشه به یئ په دې کښې لیکن که وغواړی الله

إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ۞ وَكَذٰلِكَ نُوَلِّي بَعْضَ الظّٰلِمِينَ بَعْضًا

بیشکه رب ستا حکمتونو والا خبر دار دې او دغسې ملګری[۲] کوؤ مونږ بعضې ظالمان د بعضو سره

بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ۞

په سبب د هغه عملونو چه دوئ ئې کوی

﴿ وَهٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ ﴾ «هذا» اشاره ده قرآن ته یامضمون سابقه ته چه نفی د شرک فعلی اواعتقادی ده ﴿ لَهُمْ دَارُ السَّلٰمِ ﴾ دابشارت دي ﴿ عِنْدَ رَبِّهِمْ ﴾ ددوئ دپاره ذخیره ده. په علم دالله تعالی کښې چه دهغې علم تفصیلی صرف الله تعالی سره دي ﴿ وَهُوَ وَلِيُّهُمْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ ولی په معنی دناصر، محب، متولی داموروسره دي، یعنی الله تعالی دخپل بنده سره مدد.

[۱] بشارت

[۲] د نه منلو اوومه (۷) وجه

اومحبت کوی. په سبب داعمالو صالحو سره. اومتولی داموروددوئ وی اوبل چانه ئې نه سپاری. ﴿وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ﴾ داتخويف اخروی دي ﴿يَٰمَعْشَرَ ٱلْجِنِّ﴾ددينه مخکښې ((يقول)) مقدر دي. په ورځ دقيامت به الله دجنی شياطينو نه هم تپوس اوکړی اودانسی شياطينونه هم نو دواړه به اقرار دجرم اوکړی نوالله تعالی به ئې فيصله اوکړی ﴿ٱلنَّارُ مَثْوَىٰكُمْ﴾ . دلته په دې آيت کښې سوال دجنی شياطينو نه مذکوردې ليکن جواب ئې نه دې مذکور. چه هغه اقراردجرم دې. اودانسی شيطاطينوجواب مذکوردې اوسوال ئې استقلالاً نه دې مذکور.

﴿قَدِ ٱسْتَكْثَرْتُم مِّنَ ٱلْإِنسِ﴾ تاسوډیرانسانان خپل تابع کړی وو اوګمراه کړی وو. نودوئ به ددې جرم اقراراوکړی لسانًا یاسکوت ددوئې اقرار دجرم دې، يعنی دوئ به اقرار دجرم اوکړی ﴿وَقَالَ أَوْلِيَآؤُهُم مِّنَ ٱلْإِنسِ﴾ هم ضميرراجع دې جن. ته او﴿مِّنَ ٱلْإِنسِ﴾ بيان داولياؤ دې يعنی انسی شيطانان به داسې اووائی اوددوئ نه سوال کيدل صراحةً مذکورنه دې بلکه ضمنا دې نودوئ به صراحةً دجرم اقرار اوکړی چه ﴿رَبَّنَا ٱسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ﴾ چه مونږ ديوبل نه فائده اخستلې وه دمشرکانو به په سفرکښې چه په بيابان کښې شپه راغله نوجناتو به شرارت کولو. نو دوئ به په هغوئ سره استعاذه کوله. وئيل به ئې ((اعوذبسيد هذالوادی من سفهاء قومه)) نوجنات به خوشحاله شو اووئيل به ئې((سدنا الانس بعد ان سدنا الجن)) مونږ دانسانانوسرداران شو بعد ددې نه چه مونږ دَ جناتو سرداران وو ،نوانسانانو ته به دافائده حاصله شوه چه دهغوئ دشرنه به په امن کښې شو اوجناتو ته به سيادت سرداری ملاؤشوه ﴿وَبَلَغْنَآ أَجَلَنَا﴾ داهم اقرار دجرم دې مراد د اجل نه قيامت دې چه دوئ ترينه انکارکولو. يعنی زمونږ انکارغلط وو .اومونږ دَ دغه جرم ارتکاب کړيدې ﴿قَالَ﴾ نوالله به دوئ ته داقرارجرم نه بعدفيصله واؤروی چه ﴿ٱلنَّارُ مَثْوَىٰكُمْ﴾ اورستاسې داوسيدلوځائې دې هميشه به ئې په دې کښې. ﴿إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُ﴾ مگر داکه د الله مشيت اوشی نو ستاسودراؤباسلو قدرت ئې شته دې. اوستاسوهميشه والې په اورکښې هم دالله تعالی په قدرت کښې دې اوالله تعالی دهيڅ شی نه عاجزنه دې. البته دنصوصو نه داثابته ده چه دوئ به هميشه وی په جهنم کښې نومعلومه شوه چه الله تعالی ددوئ دراؤباسلو اراده نه ده کړې. . اوبعض حضرات ددې دامعنی کوی چه اورنه علاوه نورعذابونه ورنه مراد دی لکه زمهرير. او ﴿سَأُرْهِقُهُۥ صَعُودًا﴾ او ياترينه مراد موده

حمره دنيوي ده او دابن عباس رضى الله عنه نه مروي ده چه «ما» په معنى د «من» سره دي يعنى مگر هغه څوک چه د الله تعالى په علم كښې ده چه دوئ به ايمان راوړي.

﴿وَكَذَٰلِكَ نُوَلِّي بَعْضَ الظَّالِمِينَ بَعْضًا﴾ حضرت الشيخ رحمه الله فرمائي چه دادنه منلو اومه (٧) وجه ده يعنى په وجه د شرك سره تمام مشركين ديو بل ملگري او دوستان دي توحيد نه قبلوي. لكه په سورت عنكبوت كښې دي ((انما اتخذتم من دون الله اوثا مودة بينكم فى الحيوة الدنيا))

﴿نُوَلِّي﴾ دولايت نه ماخوذدي په معنى ددوستانې او ملگرتيا سره. او ولايت په معنى د امارت. سره هم رازي نو په دي تقدير معنى داده چه مونږ بعض ظالمان په نوروحاكمان گرځو. لكه دابن عباس رضى الله تعالى عنه نه مروي دي چه الله تعالى چه ديوقوم سره خير اراده اوكړي نو ددوئ حاكم . خير، اونيك صالح اوگرځوي اوچه اراده اوكړي دشر نو حكم په دوئ باندې د شر اوگرځوي ((وفى الحديث كماتكونون يؤمّرعليكم)) يائې دامعنى ده چه بعض ظالمان په نوروباندې مونږ مسلط كوو. په وړوكى ظالم باندې غټ ظالم مسلط شي. او فضيل بن عياض وائي چه كله اووينى چه يوظالم دبل نه انتقام اخلى نو دتعجب او عبرت په نظر سره ورته گوره، ابن كثير په روايت دابن مسعود رضي الله عنه سره نقل كړيدى چه نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ((من اعان ظالماسلطه الله عليه)) چاچه دظالم سره مدد اوكړو نو الله تعالى به په ده دغه ظالم مسلط كړي، ددې خبرې مشاهده په دې دوركښې ډيره خه كيږي. (قرطبى)

د ﴿نُوَلِّي﴾ ترجمه په قرب سره هم شوې ده. «ولى» قرب ته وائى معنى داده چه په قيامت كښې به قرب. وحدت. په نسل . لسان. وطن سره نه وى بلكه داعمالو په اعتبارسره به وى لكه ﴿احْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا وَأَزْوَاجَهُمْ﴾ يعنى ظالمان او دهغوئ مناسب عمل كونكى . يوزائې راجمع كړې اوجهنم ته ئې روان كړئې.

| رُسُلٌ | يَأْتِكُمْ | أَلَمْ | وَالْإِنْسِ | الْجِنِّ | يٰمَعْشَرَ |
|---|---|---|---|---|---|

او به وائى الله تعالى دوئ ته په قيامت كښې، چه اې ډلې د پيريانو او انسانانو آيا نه وو راغلي تاسو ته رسولان

| قَالُوا | هٰذَا | يَوْمِكُمْ | لِقَآءَ | وَيُنْذِرُوْنَكُمْ | اٰيٰتِيْ | عَلَيْكُمْ | يَقُصُّوْنَ | مِّنْكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

ستاسو د جنس نه چه بيانول ئې په تاسو باندې آيتونه زما. او يرولې ئې تاسو د ملاقات د دې ورځې ستاسو نه. نو به وائى دوئ

شَهِدْنَا عَلٰٓى اَنْفُسِنَا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَشَهِدُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ

چه اقرار کوؤ مونږ په خپلو ځانونو، او دهوکه کړیدی دوئ لره ژوند د دنیا او اقرار به وکړی دوئ په خپلو ځانونو

اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ ۝ ذٰلِكَ اَنْ لَّمْ يَكُنْ رَّبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ

چه بیشکه وؤ دوئ کافران دا د دې وجه نه چه ندې رب ستا هلاك كوونكې د كلو په سزا د ظلم شرك سره

وَّاَهْلُهَا غٰفِلُوْنَ ۝ وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوْا ؕ

په داسې حال کښې چه اهل دهغې بې خبره وی او د هر يو لپاره مختلفې درجې دی د وجه د عملونو د دوئ نه

وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ ۝

او ندې رب ستا غافل د هغې نه چه دوئ څه عملونه کوی

﴿ يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ ﴾ داتخویف اخروی دې ددینه مخکښې ((يقال لهم)) مقدردې يعنى د قيامت په ورځ به الله تعالى اووائى اې ټوليه دجناتو اودانسانانو اياتاسوته رسولان نه ووراغلى. ﴿رُسُلٌ مِّنْكُمْ﴾ ددينه بظاهرمعلوميږى چه په جناتوكښې هم رسولان راغليدى. ليكن جمهوروعلماؤقول دادې چه دحضرت آدم عليه السلام نه مخكښې چه جنات په زمكه كښې آباد وونو رسولان ورته دجناتوراغليدى اودآدم عليه السلام نه بعددجناتو نه رسولان پيغميران نه دى راغلى. البته. دحق داعيان مبلغين، (نذيران) ترينه راغليدى اود﴿مِّنْكُمْ﴾ توجيه جمهوردا سې كوى چه دا په اعتباردمجموعى سره دې لكه په دې قول دالله تعالى كښې ﴿يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ﴾ .((اى من مجموعهما)) ځكه لؤلؤ دبحر مالح، نه راوزى. نو د ((منكم)) معنى ده ((من مجموعكم)) اودا په دې سره هم صادقيږى چه يوازى دانسانانو نه رسولان راغلى وى. دويمه توجيه داده چه رُسل په معنى دنذيرانْ سره دې نورسل الجن نذيران اودعيان دحق دى. لكه په دى قول دالله تعالى كښې .﴿وَاِذْ صَرَفْنَآ اِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ﴾ الى قوله. ﴿وَلَّوْا اِلٰى قَوْمِهِمْ مُّنْذِرِيْنَ﴾ دريمه توجيه داده چه مخكښې دادم عليه السلام نه جناتو ته رسولان ليگى شوى وؤنو په خطاب دجناتوكښې هغوئ مراددى. ﴿يَقُصُّوْنَ﴾ دبعثت درسولانو مقصد، آياتونه بيانول دى. يعنى

توحيدو اوتذكيربمابعد الموة يعنى دقيامت تذكيردي ﴿قَالُوا شَهِدْنَا﴾ ددې شهادت نه مراد اعتراف دي دراتلو درسولانو او دتبليغ دهغوئ اواقراردخپل جرم دي چه شرک كفرانكار قيامت دي ﴿وَغَرَّتْهُمُ﴾ داعلت دانكاراودتكذيب دي

﴿وَشَهِدُوا عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ أَنَّهُمْ كَانُوا كَافِرِينَ﴾ يعنى دوئ به په قيامت كښې داشهادت واقراراوكړى چه مونږ په دنياكښې كفركړيدي په بل آيت كښې دى چه دوئ به دكفرنه نكاراوكړى وائى به ﴿وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ﴾ سورة انعام ، آيت : ٢٣ .نودامحمول دي په تفاوت د حوالواو مواقعو په يوه موقعه كښې به انكار اوكړى اوپه بله موقعه كښې به اقراراوكړى.

شهادت ددوئ دوه ځله ذكرشو ، ﴿شَهِدْنَا عَلَىٰ أَنفُسِنَا﴾ ﴿وَشَهِدُوا عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ﴾ نواول شهادت دپاره د قراردي په راتلودرسولانواوپه تبليغ دهغوئ اودويم شهادت دپاره داقراردي په جرم. يااول شهادت حكايت دي دقول دهغوئ چه دوئ څنګه قول اواعتراف كړي وو اودويم شهادت بيان دذم دنظرئى. اودخطائى درائې دپاره دي ﴿ذَٰلِكَ﴾ دا ارسال درُسلُ ددې وجې نه دي چه الله تعالى چاته سزا اوهلاكت دګناه په وجې سره ترهغې پورې نه وركوى چه ترڅوپورې رسولان نه وى راليرلى. د ﴿بِظُلْمٍ﴾ نه مراداوبدعملونه نه د خلقودى اوباء سببيه ده.﴿وَأَهْلُهَا غَافِلُونَ﴾ حال دي يعنى په داسې حال كښې الله تعالى څوك دكفراوګناهونوپه وجې سره نه هلاكوى چه دوئ بې خبره وى نودخبرولودپاره الله تعالى رسولان راليكى، ﴿وَلِكُلٍّ دَرَجَاتٌ﴾ تنوين په «كُلٍّ» كښې عوض دي دمضاف اليه نه ((اى لكل عامل درجت)). اوپه دي كښې اشاره ده چه مدارد جزاسزاپه اعمالودي. ((ان خيرا فخيروان شرا فشر)).

| وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ ذُو الرَّحْمَةِ ۚ إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَسْتَخْلِفْ |
| --- |
| اورب ستا بې حاجته دي، خاوند درحمت دي، كه وغواړى نو بوبه څي (هلاك به كړي) تاسو. او نائبان به كړي[1] |
| مِن بَعْدِكُم مَّا يَشَاءُ كَمَا أَنشَأَكُم مِّن ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ آخَرِينَ ۝ إِنَّ مَا |
| روستو ستاسو نه هغه څوك چه خوښه ئي شى لكه چه پيدا كړي ئي يئ تاسو د اولاد د قوم نور نه بيشكه هغه |

[1] تخويف دنيوى

تُوْعَدُوْنَ لَاٰتٍ ۙ وَّمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿۱۳۴﴾ قُلْ يٰقَوْمِ اعْمَلُوْا

چه وعده ئې كيدې شي تاسو سره خامخا راتلونكې دې. اونه يئ تاسو بچ كيدونكى وه وايه : اې قومه خما عمل كوئ تاسو

عَلٰى مَكَانَتِكُمْ اِنِّيْ عَامِلٌ ۚ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۙ مَنْ تَكُوْنُ

په طريقه خپله باندې. بيشكه زه هم عمل كوونكې يم. زر دې چه تاسوته به معلومه شى. چه څوك دي چه وي به

لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ ۭ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۱۳۵﴾ وَجَعَلُوْا

هغه لره ښه انجام په داردآخرت كښې. بيشكه نشى بچ كيدې ظالمان (دالله تعالى دعذاب نه) او مقرركوى دوئ

لِلّٰهِ مِمَّا ذَرَاَ مِنَ الْحَرْثِ وَالْاَنْعَامِ نَصِيْبًا فَقَالُوْا هٰذَا لِلّٰهِ

الله تعالى لره[۱] دهغې نه چه پيدا كړى ئې دى.د فصلونواوڅاروونه برخه. پس وائى دوئ دا برخه د الله تعالى ده

بِزَعْمِهِمْ وَهٰذَا لِشُرَكَآئِنَا ۚ فَمَا كَانَ لِشُرَكَآئِهِمْ فَلَا يَصِلُ

په گمان د دوئ او دا برخه زمونږ د شركاؤ لپاره مقرر ده. پس هغه برخه چه مقرر وى لپاره د شركاؤ د دوئ پس هغه نه رسى

اِلَى اللّٰهِ ۚ وَمَا كَانَ لِلّٰهِ فَهُوَ يَصِلُ اِلٰى شُرَكَآئِهِمْ ۭ سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ﴿۱۳۶﴾

الله تعالى ته. اوهغه برخه چه مقرركوى لپاره دالله تعالى نوهغه رسى شركاؤددوئ ته.ډيره بده ده هغه فيصله چه دوئ ئې كوى

﴿وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ﴾ الله تعالى بې حاجته دې نوپيغمبران ليگل اوتاسوته اطلاع دركول داحتياج دوجي نه نه دى بلكه . ﴿ذُو الرَّحْمَةِ﴾درحمت په وجه دى او استغناء ئې ډيره ده نوكه اوغواړى نوتاسوبه ختم كړى اونورخلق به پيداكړى اونمونه يې تاسوته ښكاره ده چه تاسوئې داولاد دنورقوم نه پيداكړى يئ، نوداتخويف دې چه كه الله تعالى اوغواړى نوتاسو به تباه اوبربادكړى. ﴿اِنَّ مَا تُوْعَدُوْنَ﴾اې مشركانو دشرك سزا يقيناً راتلونكې ده تاسو ترينه نه شئ بچ كيدې ﴿قُلْ يٰقَوْمِ﴾ داهم تخويف دې، دكفراوشرك سزا . كه في الحال نشته دې خولگ شان بعدبه تاسوته معلومه شى په مشاهدې دعذاب سره چه دچاانجام خراب اودچاخه دې

---

۱ . د نذر لغير الله بيان تفصيلاً

| نَشَآءُ | بِزَعْمِهِمْ | وَاَنْعَامٌ | حُرِّمَتْ | ظُهُوْرُهَا |
|---|---|---|---|---|

چه وغواړو مونږ. په گمان د دوئ کښې او بعضې څاروی حرام کړې شویدی سوریدل د هغې په ـےګنو.

| وَاَنْعَامٌ | لَّا | يَذْكُرُوْنَ | اسْمَ | اللّٰهِ | عَلَيْهَا |
|---|---|---|---|---|---|

او بعضې څاروی داسې دی چه نه یادوی دوئ خالص نوم د الله تعالی په هغې باندې په وخت د ذبح کښې

| افْتِرَآءً | عَلَيْهِ | سَيَجْزِيْهِمْ | بِمَا | كَانُوْا | يَفْتَرُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|

په سبب د دروغ جوړولو په الله. زرده چه سزا به ورکړی دوئ ته په سبب د دې چه دوئ دروغ جوړول

﴿ وَكَذٰلِكَ زَيَّنَ ﴾ دادنذرلغیرالله دریم صورت دې، ﴿ شُرَكَآؤُهُمْ ﴾ په حذف دمضاف سره فاعل د ((زَيَّن)) دې ای حبّ شرکآئهم یعنی لکه څهٔ رنګه چه مشرکینو په خپلو. غلو،میوو، حیواناتو- کښی، دغیرالله حصه مقررکړې وه نودغه شان، دهغوئی په نوم بهٔ ئې خپل اولادهم نذرکوؤ، اودهغوئ دمحبت په وجه به ئې دهغوئ په نوم ذبح کوؤ. بعض مشرکینو به داسې نذرکولو چه که څامن ئی لسوته اورسیږی، نویوپه پکښې دبُت په نوم ذبح کوی، لکه بعض شیعه ګانو داسې کړی دی چه د مُحَرّم په ورځ ئی خپل زوئ ذبحه کړې دې،حضرت الشیخ رحمه الله به وئیل چه ((هم دغه بهادرشیعه ؤو، اوچه صرف خپل مخونه په څپیړو وهی، اوماتم جړاکوی ،نودا دله ګان شیعه دی))، ﴿ لِيُرْدُوْهُمْ وَلِيَلْبِسُوْا عَلَيْهِمْ ﴾ په نذرلغیرالله سره دوئی هلاک شی، اودین داسمعیل علیه السلام اوابراهیم علیه السلام چه توحید خالص دې ـدابه ګډوډشی، ﴿ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ ﴾اوکه الله تعالی غوښتلې جبراً مسلمانول ددوئ نودوئی په شرک نوې کړې لیکن جبری ایمان مقبول نه دې،﴿ وَقَالُوْا هٰذِهٖٓ اَنْعَامٌ ﴾ دادتحریمات غیرالله بیان دې دویم وار،اودلته دڅلوروصورتونو ذکردې(۱) اول داچه ﴿ اَنْعَامٌ وَّحَرْثٌ حِجْرٌ لَّا يَطْعَمُهَآ اِلَّا مَنْ نَّشَآءُ ﴾ بعض حیوانات اوفصل دعاموخلقودپاره ممنوع اوحرام دی مګردبُتانودخادمانواومنجورانودپاره جائز دی (۲) دویم﴿ وَاَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُوْرُهَا ﴾هغه حیوانات چه دبُتانودپاره به ئې مقررکړی وو نو په هغې باندې ئې سورلی کول حرام ګڼړل،(۳) دریم صورت ﴿ وَاَنْعَامٌ لَّا يَذْكُرُوْنَ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا ﴾ ددینه مراددادې چه چه په وخت دذبح کښې ئی په هغې

...ندې د الله تعالى نوم نه ذکر کولو بلکه د اصنامو په نوم ئې ذبح کول نو دا نذر لغير الله دې. يا دا معنى ده چه دوئ په هغې باندې حج له نه تلل او د نيک کار د پاره ئې په هغې رکوب نه کوو. څکه عادت جاري دې په دې چه په کار خير باندې د الله تعالى نوم ذکر کيږي، نو دا ذم دې په ترک د فعل خير ﴿افْتِرَاءً عَلَيْهِ﴾ چه کوم کارونه ئې کول نو هغه به ئې الله تعالى ته منسوب کول او دا په الله تعالى باندې دروغ جوړول وو.

وَقَالُوا مَا فِي بُطُونِ هَٰذِهِ الْأَنْعَامِ خَالِصَةٌ لِّذُكُورِنَا وَمُحَرَّمٌ

او وائي دوئ هغه څه چه په ګيډو د دې څاروو کښې دي. خالص (حلال) دي لپاره د نارينو زمونږ او حرام دي

عَلَىٰ أَزْوَاجِنَا ۖ وَإِن يَكُن مَّيْتَةً فَهُمْ فِيهِ شُرَكَاءُ ۚ سَيَجْزِيهِمْ

په زنانو زمونږ. او که وي مردار بچي پس دوئ ټول (نر ښځې) په هغې کښې برابر شريک دي. زر ده چه سزا به ورکړي دوئ ته

وَصْفَهُمْ ۚ إِنَّهُ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴿١٣٩﴾ قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ قَتَلُوا

د غلط بيان د دوئ. بيشکه هغه خاوند د حکمت او پوهه دې. په تحقيق سره تاوانيان دي هغه کسان چه قتل کړي ئې دي

أَوْلَادَهُمْ سَفَهًا بِغَيْرِ عِلْمٍ وَحَرَّمُوا مَا رَزَقَهُمُ اللَّهُ

خپل اولاد به کم عقلتيا سره بغير د پوهې (دليل) نه او حرام کړي ئې دي هغه څه چه حلاله روزي ورکړې وه الله تعالى دوئ ته.

افْتِرَاءً عَلَى اللَّهِ ۚ قَدْ ضَلُّوا وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ ﴿١٤٠﴾

د وجه د دروغو جوړولو نه په الله تعالى باندې. په تحقيق سره ګمراه دي دوئ او نه دي هدايت موندونکي

﴿وَقَالُوا مَا فِي بُطُونِ هَٰذِهِ الْأَنْعَامِ﴾ دا څلورم صورت دې د بحائر او سوائب په خيټو کښې به چه کوم بچې (حمل) وو نو مشرکينو به وئيل چه که دا ژوندې پيداشي نو دا خالص د نارينو د پاره حلال دې او په زنانو باندې حرام دې او که مړ پيداشي نو نارينه او ښځې ټول به په دې کښې شريک دي د ټولو د پاره حلال دې ﴿خَالِصَةٌ﴾ کښې تاء د تانيث د پاره نه ده بلکه د مبالغې د پاره ده لکه علامه او ددې وجې نه ﴿وَمُحَرَّمٌ﴾ مذکر ذکر شويدې نو د ﴿خَالِصَةٌ﴾ معنى دا ده چه حلال دې سره د خصوصيت نه ﴿قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ﴾ په دې کښې دوه مضمونونه . نذر لغير الله، تحريمات غير الله، دوباره بالاجمال ذکر کيږي. ﴿قَتَلُوا أَوْلَادَهُمْ﴾ او قتل

داولادبه کله دنذرلغیرالله دپاره وو. اوکله به دخوف دفقردوجي نه اوکله به دعاردوجي نه وو﴿ افۡتِرَآءً ﴾ نصب دمفعول له په وجې دې د ﴿ وَحَرَّمُوا ﴾ دپاره. یاحال دې نومصدریه معنی دفاعل سره دې یامفعول مطلق دې په اعتبار دموصوف مقدرسره چه حراما دي

| وَهُوَ | الَّذِيٓ | اَنۡشَاَ | جَنّٰتٍ | مَّعۡرُوۡشٰتٍ |
|---|---|---|---|---|
| او الله تعالی هغه ذات دي | | چه پیدا کړی ئی دی باغونه غوړولي شوی په خیر وغیره | | |

| وَّغَيۡرَ | مَعۡرُوۡشٰتٍ | وَّالنَّخۡلَ | وَالزَّرۡعَ | مُخۡتَلِفًا | اُكُلُهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوخینی داسې چه نوی غوړولي شوی په خیروغیره باندې او کجورې او فصل چه مختلف قسم وی میوې دهغې | | | | | |

وَالزَّيۡتُوۡنَ وَالرُّمَّانَ مُتَشَابِهًا وَّغَيۡرَ مُتَشَابِهٍ ؕ كُلُوۡا مِنۡ ثَمَرِهٖۤ اِذَاۤ اَثۡمَرَ

اوخونه. اوانارچه خینې دیوبل سره یوشان وی او خینی نوی یوشان.خورئ دمیوۀ دهغې نه.کله چه میوه ورکړی

وَاٰتُوۡا حَقَّهٗ يَوۡمَ حَصَادِهٖ ۖ وَلَا تُسۡرِفُوۡا ؕ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الۡمُسۡرِفِيۡنَ ۙ

ورکوئ ترینه حق دالله تعالی په وخت د ریبلو (لوکولو) دهغې، او اسراف مکوئ، بیشکه الله تعالی نه خوښوی مشرکان

| وَمِنَ | الۡاَنۡعَامِ | حَمُوۡلَةً | وَّفَرۡشًا ؕ | كُلُوۡا | مِمَّا | رَزَقَكُمُ | اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوپیدا کړی ئی دی دڅاروو نه بارورونکی اوچیت قدوالا،خورئ د هغې نه چه حلال کړی دی تاسو لره الله تعالی | | | | | | | |

وَلَا تَتَّبِعُوۡا خُطُوٰتِ الشَّيۡطٰنِ ؕ اِنَّهٗ لَـكُمۡ عَدُوٌّ مُّبِيۡنٌ ۙ

او تابعداری مکوئ د قدمونو د شیطان، بیشکه دې ستاسو لپاره دشمن ښکاره دې

﴿ وَهُوَ الَّذِيٓ اَنۡشَاَ جَنّٰتٍ ﴾دادنذرلغیرالله ذکردې خلورم وار- اودلیل عقلی دې دنفی دشرک فعلی دپاره چه دااشیاء مذکوره الله تعالی پیداکریدی. نو ﴿ كُلُوۡا ﴾ تاسوترینه پخپله خورئ. ﴿وَاٰتُوۡا حَقَّهٗ﴾ اوالله په نوم ئی ورکوئ لیکن ﴿وَلَا تُسۡرِفُوۡا﴾ ای لاتشرکو الاصنام فیه. دغیر الله په نوم ئی مه ورکونی ﴿مَّعۡرُوۡشٰتٍ﴾ چه غوړیدلی وی یاپه مخ دزمکې

---

۱ . د نذر لغیر الله ذکر

لکه ختکی، خربوزې، وغیره، یاغوریدلی وی په بل ځیزباندې لکه انګورچه په څپرونوباندې غوریدلی وی، ﴿وَغَيْرَ مَعْرُوشَٰتٍ﴾ هغه دی چه په خپله تنه ولاړوی لکه نخل وغیره. ﴿مُخْتَلِفًا أُكُلُهُ﴾ ضمیر د «اُکله» راجع دې هرواحدته، ﴿مُتَشَٰبِهًا وَغَيْرَ مُتَشَٰبِهٍ﴾ حال دې دزیتون اورمان نه، یادتولو مذکورنه په ماقبل کښی، اومرادترینه دادې چه دیوجنس بوتی. ونی. وی اومیوی ئی مختلفې وی لکه په کجورو کښې ډیراقسام دی اوپه انګوروکښې ډیراقسام دی.

دارنګه په نوروا جناسوکښی، ﴿وَءَاتُوا۟ حَقَّهُۥ﴾ ددینه مرادپه نیزدبعض علماؤ نفلی صدقه ده ځکه چه عشراوزکوة په مدینه کښې فرض شویدې اوداسورة مکی دې اوپه نیزدبعض علماؤ نزینه مراد عشردې، اوسورت اګرکه مکی دې لیکن داآیت مدنی دې یاداچه زکوة فرض شوې وؤ په مکه کښې خومقدارد زکوة نه ووبیان شوې اوپه مدینه کښې بیان دمقادیروشویدې.

﴿يَوْمَ حَصَادِهِۦ﴾ په دې کښې اشاره ده دې ته چه که فصل اومیوه چه مالک ته دزمکې نه په لاس راشی نوعشرپکښې واجب دې اوکه مخکښې هلاک شی نوعشرورسره هم ختم شی.

﴿وَلَا تُسْرِفُوٓا۟﴾ حضرت مقاتل رحمه الله وائی ((ولاتشرکوالاصنام فی الحرث والانعام)) «روح، خازن» حضرت مجاهد رحمه الله وائی چه اسراف دادې چه ته قصوراوکړې دحق دالله تعالی نه، .په ناحق کښې ورکول لکه نذرلغیرالله، دااسراف دې اودارنګه ونیلیدی مجاهدرحمه الله. چه که ابوقبیس غر دسرو زروشی دپاره دیوسړی اوهغه ئی خرچ کړی په طاعت دالله تعالی کښې نودااسراف نه دې اوکه څوک یودرهمو یایومُد، خرچ کړی په معصیت کښې نوددااسراف دې،

﴿وَمِنَ ٱلْأَنْعَٰمِ﴾ ای انشامن الانعام ﴿حَمُولَةً﴾ هغه چه صلاحیت لری دباراوړلو اودزمکې نه اوچت وی لکه اوښ، قچر، خر. او ﴿وَفَرْشًا﴾ هغه دې چه بارنشی وړلې لکه بیزې وغیره، دینه فرش وائی ځکه چه دا نژدې وی زمکې ته یا د فرش نه مراد دادې چه دهغې دَ ویختواو وړئ نه فراش جوړیږی، ﴿كُلُوا۟ مِمَّا رَزَقَكُمُ ٱللَّهُ﴾ یعنی دځان نه تحریمات مه کوئی ﴿وَلَا تَتَّبِعُوا۟﴾ دشیطان په قدم مه زئ، یعنی دغیرالله په نوم نذرمه کوئ.

| ثَمَٰنِيَةَ أَزْوَٰجٍ ۖ مِّنَ ٱلضَّأْنِ ٱثْنَيْنِ وَمِنَ ٱلْمَعْزِ ٱثْنَيْنِ ۗ قُلْ |
|---|
| پیدا کړی ئی دی اته جوړې، د ګډو نه دو ه قسمه «مذکر،مؤنث» او د بیزو نه دوه قسمه «مذکر، مؤنث» وه وایه |

ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ اَمِ الْاُنْثَيَيْنِ اَمَّا اشْتَمَلَتْ

آیا دا دوه نران (گډ، پیسه)[1] حرام کړیدی الله تعالی یا دا دوه مادې (ګډه، بیزه)، اوکه هغه شي چه مشتمل وی

عَلَيْهِ اَرْحَامُ الْاُنْثَيَيْنِ ؕ نَبِّئُوْنِيْ بِعِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ وَمِنَ الْاِبِلِ اثْنَيْنِ

په هغې باندې رحمونه د ښځو (میندو) خبرراکړئ[2] ما ته په دلیل سره کچرې یئ تاسو رېشتني اوداوښانونه دوه

وَمِنَ الْبَقَرِ اثْنَيْنِ ؕ قُلْ ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ اَمِ الْاُنْثَيَيْنِ

اودغوایانونه دوه قسمه. وه وایه: آیا دا دوه نران (اوښ، غوایه) الله تعالی حرام کړی دی یادوه مادې اوښه. غوا،

اَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ اَرْحَامُ الْاُنْثَيَيْنِ ؕ اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ وَصّٰىكُمُ اللّٰهُ

یاهغه چه مشتمل دی په هغې باندې رحمونه د میندو، یا وئ تاسو[3] حاضر کله چه حکم درکوو تاسو ته الله تعالی

بِهٰذَا ۚ فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا لِّيُضِلَّ النَّاسَ

پدې سره. پس څوك دې ډیر ظالم د هغه چا نه چه جوړوی په الله تعالی باندې دروغ. د دې لپاره چه ګمراه کړی خلق

بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝

بغیر د علم (تحقیق) نه بیشکه الله تعالی هدایت نه ورکوی قوم ظالمانو ته

﴿ ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ﴾ دابدل دې د حمولةً وفرشًانه، اودا ابطال دشرک فعلی دې اومطالبه ددلیل عقلی نقلی وحی ده دمشرکینونه دپاره دتحریمات غیرالله﴿ اَزْوَاجٍ ﴾جمع دزوج ده، اوداپه دوه معانیوسره رازی، یوهغه فردچه په مقابله کښې ئې بل فردوی دده، دجنس نه لکه مذکرچه مقابل ئی مؤنث دې، دویم هغه شئ چه بل ورسره ملګرې وی دده، دجنس نه لکه مجموعه دمذکرمؤنث، بناء په اول مصداق دزوج فرد واحدوی اوبناء په ثانی مصداق ئی دوه فرده وی، دلته اوله معنی مراده، په دې آیت کښې داته قسمو انعامو (څناورو) تفصیل دې

---

1 - د مشرکینونه د دلیل عقلی مطالبه

2 د دلیل نقلی مطالبه

3 مطالبه د دلیل وحی

دګونه دوه قسمه مذکر،مؤنث ، دبيزو (چيلو) نه دوه قسمه مذکرمؤنث . داخلورشو. او خلور روستو، ذکرکيږي يعني دوه قسمه د ابل (اوښانو) نه. دوه قسمه دغوايانونه. ﴿قُلْ ءَآلذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ﴾ دامطالبه ددليل عقلي ده دپاره دتحريمات العباد. حاصل ئې دادې چه تاسوچه دابعض څاروی په خان باندې حراموئی ، نو آيا ددې حرمت دپاره سبب ذکورت دې يعني نارينه والي، اوکه انوثت دې. (زناوالي) اوکه مطلق دې. يعني په رحم دمورکښې زيګيدل- نوبناپه اول بياتول نارينه څاروی حرام شو. اوبناپه ثاني بياتول مؤنث څاروی حرام شو. اوبناء په ثالث بياتول څاروی( نر،ماده) حرام شو نوتاسوبياولې فرق کوئ چه بعض ته حرام وائی اوبعض ته حلال. دامطالبه ددليل عقلي وه او﴿نَبِّئُونِي بِعِلْمٍ﴾مطالبه ددليل نقلي ده علم نه مراددليل نقلي دې دانبياؤ نه ﴿أَمْ كُنتُمْ شُهَدَآءَ﴾ دامطالبه ده دليل وحي ده. ﴿وَصَّىٰكُمُ اللَّهُ﴾ په معنی امرکم الله ای بالوحي ،سره دې ﴿فَمَنْ أَظْلَمُ﴾دازجردې اواستفهام انکاري دې، يعني داسې څوک چه پخپله هم شرک کوی (تحريمات غيرالله. نذرلغيرالله) اونورخلق هم ګمراه کوی اوشرک ته ئې رابلي نوداډير غټ ګمراه دې لکه عمروبن لحي چه عربوته اول دبحائر، سوائب، رسم راوړې وو- اودابراهيم عليه السلام په دين کښې ئې تغير راوستلې وو. اوپدې وعيد کښې هر هغه څوك داخل دې چه افتراء على الله وکړی يعني دخيل خان نه په دين کښې هغه څيز داخل کړي چه الله، رسول دهغې امرنه وی کړې

قُل لَّآ أَجِدُ فِي مَآ أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلَىٰ طَاعِمٍ يَطْعَمُهُۥٓ

ووايه نه مومندم زه په هغه وحی کښې چه کړې شوې ده ماته حرام کړې شوی.په يوخوړونکي چه خوری هغې لره

إِلَّآ أَن يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا مَّسْفُوحًا أَوْ لَحْمَ خِنزِيرٍ فَإِنَّهُۥ رِجْسٌ أَوْ فِسْقًا

مګرچه وی مرداره ياوينه بيولې شوې. يا غوښه د خنزير پس بيشکه دا پليت دې يا وی دغه شې (ذبيحه) د فسق شرك.[1]

أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِۦ ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ

چه آواز اُوچت کړې شوې وی په هغې باندې لپاره د تقرب غيرالله ته. پس څوك چه مجبورد سی

[1] د نذر لغيرالله بيان

غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَإِنَّ رَبَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٤٥﴾

چه نوى زياتي كوونكي.په بل باندې، نه تجاوز كوونكي د حد ضرورت نه پس بيشكه رب ستا بښونكي ، مهربان دې

﴿ قُلْ لَّآ اَجِدُ ﴾ دانفى دنذرلغيرالله اودتحريمات غيرالله ده په دليل وحى سره ﴿ مُحَرَّمًا ﴾ ددې نه مقصودنفى دهغه حرمت ده چه مشركانودخپل ځان دطرفه كړې وو نو ددې وجې نه ورسره روستوذكرشو﴿ عَلٰى طَاعِمٍ ﴾ يعنى هرخوړونكې،مذكروى اوكه مؤنث وى،نو دمشركينو دا عقيده باطله ده،((خالصة لذكورنا ومحرم على ازواجنا)) ﴿ يَّطْعَمُهٗ ﴾ ددينه مرادتناول اونفع اخستل دى په خوړلوياسكلو ياركوب وغيره سره، ﴿ اِلَّآ اَنْ يَّكُوْنَ ﴾ ضميرراجع دې طعام ته. اوداحصراضافى دې حصرحقيقى نه دې يعنى داندې مرادچه دلته چه كوم اشياء مذكور دى د دينه علاوه بل هيڅ څيزحرام ندې ځكه چه د دې مذكوره اشياؤ نه علاوه ډيراشياء حرام دى لكه سپې،خر،ګيدړ، وغيره، بلكه مرادحصراضافى دې په اضافت سره تحريماتُ دَ مشركينو ته حصردې يعنى تاسو چه كوم څيزونه په ځان حرام كړيدى نودغه نه دى حرام بلكه حرام دامذكوراشياء دى نوتاسو ولې دځان نه تحريمات كوئ﴿ دَمًا مَّسْفُوْحًا ﴾ وينه بهيدونكې احترازدې دمنجمد وينى نه لكه :كبد،اينه، زړه، پختورګى ،سګې، ګردې داحلال دى او دارنګه هغه وينه چه روستوذبح نه په غوخه پورې انختلې وى هغه پاكه ده ﴿ فَاِنَّهٗ رِجْسٌ ﴾ ضميرراجع دې خنزيرته دوجې دقرب نه نومعلومه شوه چه ذات دخنزيرپليت دې، نوددې وجې نه دخنزيرهرجزء پليت دې ويخته، اډوكې، څرمن ئى په دباغت سره نشى پاكيدې، اوپه هيڅ جزء سره ئې نفع اخستل جائزنه دى، ﴿ اَوْ فِسْقًا ﴾ داعطف دې په ((لحم الخنـــزير)) باندې ((اى الا ان يكون فسقًا اى شيئًا ذافسق)) فسق خروج ته وائى دحدودودشرعې اودحدودودايمان نه ، اودفسقًا تفسيردادې چه ﴿ اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ ﴾ چه نذركړې شوى دپاره دتقرب غيرالله ته، نونذرلغيرالله ،خروج دې ددائرې دايمان نه اودلته درې څيزونه ذكرشويدى على سبيل الترقى (١) ميتة، ددې نه زيات قبيح(٢) خنزير،ددينه زيات قبيح(٣) نذرلغيرالله ، ﴿ فَمَنِ اضْطُرَّ ﴾ په دې كښې دحالت داضطرار بيان دې، ﴿ غَيْرَ بَاغٍ ﴾ شوافع ددې دامعنى كوى چه نه وى باغى دبادشاه نه اواحناف ئى دامعنى كوى چه نه وى زياتې كونكې په بل مضطرو يادامعنى چه نه وى طلب ګاردلذت، ﴿ وَّلَا عَادٍ ﴾ نه وى تجاوزكونكې دحدضرورت نه.

| وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِي ظُفُرٍ ۖ وَمِنَ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ |
| --- |
| او په هغه کسانو [1] چه یهودیان دي حرام کړي وو مونږ هرنوکونو والا ځاروي، او د غوايانو نه او د ګډو بيزونه |
| حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُومَهُمَا إِلَّا مَا حَمَلَتْ ظُهُورُهُمَا أَوِ الْحَوَايَا أَوْ مَا اخْتَلَطَ |
| حرام کړی وو مونږ په دوئ باندې وازدې د هغوئ مګر هغه چه لګيدلی وی د شا سره يا د کُلمو سره يا هغه چه خلط وی |
| بِعَظْمٍ ۚ ذَٰلِكَ جَزَيْنَاهُمْ بِبَغْيِهِمْ ۖ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ۝ |
| د هډوکو سره، دا سزا ورکړې وه مونږ دوئ ته په سبب د ظلم د دوئ، او بيشکه مونږ خامخا ريشتني يو |
| فَإِنْ كَذَّبُوكَ فَقُلْ رَبُّكُمْ ذُو رَحْمَةٍ وَاسِعَةٍ ۖ وَلَا يُرَدُّ |
| پس که دوئ دروغژن واڼي تاته پس ته وايه رب ستاسو خاوند د فراخه رحمت دې، اونه نشي واپس کيدې |
| بَأْسُهُ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ ۝ |
| عذاب د هغه د قوم مجرمانو نه |

﴿ وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا ﴾ دادسوال مقدرجواب دې چه که دمذکوره اشياؤ نه علاوه بل څه حرام نه وې نوپه يهوديانو باندې څه رنګه ذی ظفروغيره اشياءحرام وؤ، جواب دادې چه دا اشياء خوصرف په يهوديانو باندې، دهغوئ دظلم په وجه، باندې لله تعالی حرام کړی وو، په بل چاباندې حرام نه وو، ﴿ ذِي ظُفُرٍ ﴾ نوکونو والا، ددې معنی دابن عباس ﷠ حضرت مجاهد ﷫ ، قتاده ﷫ نه مروی ده ((مالیس بمنفرج الاصابع)) يعنی هغه چه ګوتې ئې ديوبل نه جداشوې نه وی بلکه دګوتوپه درميان کښې پرده شانته وی، لکه اوښ، شترمرغ، مرغابئي، نودااشياء په يهوديانوحرام وو، اودارنګه حرام ووپه دوئ باندې دغوايانو اوګډانو بيزو(چيلو) هغه وازدی چه په شا، ياکُلمو،باندې لګيدلی نه وی يادادوکی سره متصله نه وی، لکه دپختورګی،(سکی) وازده يادګډلم (داپه نيزدبعضوپه محرماتوکښې داخل ووا وبعض وائي چه حرام نه وو) نوداصرف په يهوديانو باندې ددوئ دشرارت په وجه

---

۱ - جواب د يوسوال.

حرام وو ،ليکن دوئ بياهم حيلې کول شروع کړې، نودوازدونه به ئې دل جوړول اوهغه به ئې خرڅول اودهغې قيمت به ئې حلال ګڼړلو، دنبی صلی الله عليه وسلم ارشاددې چه تاسو ديهوديانو په شان حيلې مه کوئ چه دالله تعالی حرام کړی شوی څيزونه په خان په حيلو سره حلالوئ

﴿ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ﴾ يهوديانو وئيل چه داوښ غوخه دابراهيم عليه السلام په دين کښې حرامه وه بلکه دنوح اوابراهيم عليهما السلام دزمانې نه مسلسل حرامه وه نوپه دې کښې اشاره ده چه دغه قول ديهوديانودروغ دې اورشتيا خبره داده چه ددغه اشياؤ حرمت دابراهيم عليه السلام په زمانه کښې نه وو بلکه ديهوديانودنافرمانئ اوشرارت په وجه په دوئ حرام شوې وو لکه په سورت آل عمران آيت نمبر ۹۳ کښې دی: ﴿ فَأْتُوا بِالتَّوْرَاةِ فَاتْلُوهَا إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴾.

﴿ فَإِن كَذَّبُوكَ ﴾ داتسلی ده، رسول الله صلی الله عليه وسلم ته چه ددوئ تکذيب سزاچه فی الحال دوئ ته نه ورکولې کيږی، ددې وجه عجزنه دې بلکه الله تعالی خاوندد رحمت واسعة دې نومهلت ورکوې دوئ ته ، چه کيدې شی چه دوئ دخپل کفرانکارنه واپس شی ليکن څوک چه واپس نه شی نودهغه نه عذاب نه شی رفع کيدې .

| سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكْنَا وَلَا آبَاؤُنَا |
|---|
| زر ده چه وائی به مشرکان [۱] که خوښه وې د الله تعالی نوشرك به نوې کړې مونږ اونه پلارانو زمونږ ، |
| وَلَا حَرَّمْنَا مِن شَيْءٍ ۚ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ |
| اونه به وې حرام کړې مونږ څه شې. دغسې [۲] نسبت د دروغو کړې وو (توحيد ته، هغه کسانو چه مخکښې د دوئ نه وو |
| حَتَّىٰ ذَاقُوا بَأْسَنَا ۗ قُلْ هَلْ عِندَكُم مِّنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوهُ لَنَا ۖ |
| تردې چه وڅکلو دوئ عذاب زمونږ. ووايه ! آيا شته تاسو سره [۳] څه دليل چه را ښکاره ئې کړئ مونږ ته |

۱ - شکوی

۲ - تخويف

۳ - جواب شکوه

اِنۡ تَتَّبِعُوۡنَ اِلَّا الظَّنَّ وَ اِنۡ اَنۡتُمۡ اِلَّا تَخۡرُصُوۡنَ ﴿۱۴۸﴾

تابعداري نكوئ تاسو مگر د گمان، او نه يئ تاسو مگر په خپل اټكل خبرې كوئ. دروغ وائى

﴿ سَيَقُوۡلُ الَّذِيۡنَ اَشۡرَكُوۡا ﴾ داشكوى ده اودمشركانو ددليل ذكركوى اودهغې نه جواب دې. مشركانوويئيل چه زمونږ شرک اعتقادى اوفعلى كه چرې دالله تعالى خوښ نه وې نوموږ به شرک نه وې كړې، ځكه هرڅه دالله تعالى په خوښه اومشيت سره كيږى. دايادووئ عقيده ده چه ((كل شئ بمشيته تعالى)) يا ئې الزامًا وئيل مؤمنانوته چه تاسوخوهرڅه په مشيت دالله تعالى سره وايئ نو زمونږ داكفرهم دالله تعالى په مشيت اورضاسره دې. نو دوئ مشيت. (اراده) او رضا يوګرځول حالانكه فرق دې په مابين درضا او د اراده كښې. معصيت په اراده، دالله تعالى سره دې ليكن په رضا سره نه دې، نوددې وجې نه اهل سنت والجماعت وائى چه كفر دكافر مراد دالله تعالى دې اومرضى ئې نه دې.

﴿ كَذٰلِكَ كَذَّبَ ﴾ دا اول جواب دې يعنى كه چرې په كفر دكافر باندې الله تعالى راضى وې نومخكنى كافرانو او تكذيب كونكوته به ئې عذاب نه وى وركړې ﴿ قُلۡ هَلۡ عِنۡدَكُمۡ ﴾ دا بل جواب دې يعنى تاسوسره څه يقينى دليل نشته دې چه پيش ئى كړئې بلكه تاسو صرف دتوهماتواتباع كوئى اوداټكل اوتخمين خبرې كوئ اوهغې ته دليل وائى

| قُلۡ فَلِلّٰهِ الۡحُجَّةُ الۡبَالِغَةُ فَلَوۡ شَآءَ لَهَدٰىكُمۡ اَجۡمَعِيۡنَ ﴿۱۴۹﴾ |
|---|
| ووايه پس خاص الله تعالى لره دې دليل محكم،پس كه غوښتې الله تعالى نو خامخابه ئى هدايت كړې وې تاسو ټولو ته |
| قُلۡ هَلُمَّ شُهَدَآءَكُمُ الَّذِيۡنَ يَشۡهَدُوۡنَ اَنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ |
| ووايه راولئ خپل گواهان (علماء) هغه كسان چه گواهي وكړى پدې چه بيشكه الله تعالى حرام كړى دى |
| هٰذَا ۚ فَاِنۡ شَهِدُوۡا فَلَا تَشۡهَدۡ مَعَهُمۡ ۚ وَلَا تَتَّبِعۡ |
| دا مذكور اشياء. پس كچرې دوئ (په دروغه) دغه گواهي وكړى نو ته اعتبار مكوه د دوئ، او تابعدارى مكوه |
| اَهۡوَآءَ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا وَالَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ بِالۡاٰخِرَةِ |
| د خواهشاتو د هغه كسانو چه دروغ ګڼړى آياتونه زمونږ او دهغه كسانو چه ايمان نه لرى په آخرت باندې. |

وَ هُمْ بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ ۞

او دوئ د خپل رب سره نور څوک برابروي (شرک کوي).

﴿ قُلْ فَلِلّٰهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ ﴾ يعنى داثبات دشرک دپاره هيڅ صحيح دليل نشته دي بلکه ټول توهمات دى اوحجت بالغه يعنى هغه حجت چه په قوت اومتانت کښې انتها ته رسيدلې وى هغه دالله تعالى حجت دې دپاره دتوحيد ، حاصل داچه دتوحيد دلائل مضبوط اونهايت محکم دى اودَ اثبات دشرک دپاره معمولى دليل هم نشته دي، ﴿ فَلَوْ شَآءَ ﴾که چرې الله تعالى اوغواړى تاسونه جبراً هدايت، نوټولوته به هدايت درکړى ليکن جبرى ايمان معتبرنه دې، ځکه دامنافى دې دغرض د،تکليف،،سره ،،مکلف،، هغه ځوک وى چه اختيارمندوى، مجبورمکلف نشى کيدې﴿ قُلْ هَلُمَّ شُهَدَآءَكُمُ ﴾ دامطالبه ده د دليل دمشرانو، رُوساؤ دمشرکينو نه، اودهغوئ تفضيح ده، يعنى دشرک دپاره دليل لګه چه اتباع کشران نشى پيش کولې، نو دارنګه دَ دُوئ مشران ئى هم نشى پيش کولې ، دوئى که څه دليل پيش کوى نوهغه به هم اهواء ،اوخوّد ساخته دروغ وى، نوته هغه مه منه بلکه دهغې غلطى ښکاره کړه، ﴿ وَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ ﴾ ((اى لاتتبع اهواء الذين لايؤمنون بالآخرة)) د آخرت نه غفلت اوانکار دټولو ګناهونو او دشرک بنياددې.

قُلْ تَعَالَوْا اَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ اَلَّا تُشْرِكُوْا بِهٖ

ووايه چه راشئ[1] چه بيان کړم هغه شې چه حرام کړيدى رب ستاسوپه تاسوباندې، چه شريک مه ګڼرئ دهغه سره

شَيْـًٔا وَّبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا ۚ وَلَا تَقْتُلُوْٓا اَوْلَادَكُمْ مِّنْ اِمْلَاقٍ ؕ

هيڅ شې او د مور اوپلار سره نيکى کوئ نيکى کول، او مه قتلوئ بچى خپل د وجهې د يرې د لوګې نه .

نَحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَاِيَّاهُمْ ۚ وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ۚ وَلَا تَقْتُلُوا

مونږ رزق درکوؤ تاسو ته او دوئ ته، او مه نژدې کيږئ بې حيايئ ته هغه چه ښکاره وى يا پټه وى، او مه قتلوى

---

۱ . د تحريمات الهيو بيان.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| النَّفْسَ | الَّتِيْ | حَرَّمَ | اللّٰهُ | اِلَّا | بِالْحَقِّ | ذٰلِكُمْ | وَصّٰكُمْ |

هغه نفس چه حرام كړيدى الله تعالى د هغه قتل مگر په حقه سره، دا «ټولې خبرې» تاكيدى حكم دركوى تاسو ته الله تعالى

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِهٖ | لَعَلَّكُمْ | تَعْقِلُوْنَ | وَلَا | تَقْرَبُوْا | مَالَ | الْيَتِيْمِ | اِلَّا | بِالَّتِيْ | هِيَ اَحْسَنُ |

په دې سره لپاره ددې چه تاسوپوهه شئ . اومه نزدې كيږئ مال د يتيم ته مگر په هغه طريقه چه هغه ښائسته وى

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حَتّٰى | يَبْلُغَ | اَشُدَّهٗ | وَاَوْفُوا | الْكَيْلَ | وَالْمِيْزَانَ |

«وحفاظت كوئ دمال ديتيم» ترديې پورې چه ورسى هغه خپلې ځوانئ ته، اوپوره كوئ پيمانه «جوك» او تله «تلل»

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِالْقِسْطِ | لَا | نُكَلِّفُ | نَفْسًا | اِلَّا | وُسْعَهَا | وَاِذَا | قُلْتُمْ |

په انصاف سره، مونږ تكليف نه وركوؤ هيچا ته مگر په قدر د وس د هغه، او كله چه تاسو وينا كوئ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَاعْدِلُوْا | وَلَوْ | كَانَ | ذَا | قُرْبٰى | وَبِعَهْدِ اللّٰهِ | اَوْفُوْا |

بس انصاف كوئ اگر كه وى هغه څوك چه حكم پرې كولې شى خپلوان، او وعده د الله پوره كوئ،

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ذٰلِكُمْ | وَصّٰكُمْ | بِهٖ | لَعَلَّكُمْ | تَذَكَّرُوْنَ |

دا حكم دركوى تاسو ته الله تعالى په دې سره لپاره د دې چه تاسو نصيحت قبول كړئ

﴿قُلْ تَعَالَوْا اَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ﴾ دابيان دتحريمات الله دې، په سورة مائده كښې دتحريمات الله ذكرتفصيلاً نه ووشوې دلته تفصيل دې، حاصل داچه په دې سورت كښې ددريؤمسائلوذكرتفصيلاً دې (۱) نذرلغيرالله، په مختلفوعنواناتو سره مذكوردې، (۲) دتحريمات غيرالله مختلف صورتونه بيان شويدى، (۳) دتحريمات الله بيان په دې آيت كښې دې، اونذرلله دلته نه دې بيان شوې اوپه سورة مائده كښې بيان شوې وو-﴿تَعَالَوْا﴾ په اصل لغت كښې ديته وائى چه څوك بره ولاړوى اوښكته والاته وائى چه بره راشه، بيادمطلق راتللودپاره مستعمل شويدې و نوپه دې كښې اشاره ده ديته چه په دې احكامواندې عمل كول سبب دعلواودورفعت دې، اوقرطبى وئيليدى چه په دې آيت كښې امركړيدې الله تعالى خپل نبى صلى الله عليه وسلم ته چه دعوت وركړى تماموخلقوته داوريدلودماحرم الله، اودغه شان واجبه ده په روستوتولوعلماؤ چه تبليغ اوبيان اوكړى خلقوته دحرا مواودحلالو . لكه

ونيليدى الله تعالى ((لتبينه للناس ولاتكتمونه)) كعب الاحبار چه دتورات ماهرعالم وواول يهودى ووبيامسلمان شوې دې وائى چه دقرآن پاک داآيات چه په دې کښې دلس ځيزونوبيان دې. نو دَ تورات شروع دبسم الله نه بعد په دې آياتونونه سره شوې ده، اوداهغه لس کلمات دى چه په حضرت موسى عليه الصلاة والسلام نازل شوى وؤ، ، ربيع بن خيثم خپل يوملګرى ته اووئيل چه آيا په دې خوشحاليږې؟چه تاته دنبى صلى الله عليه وسلم داسې صحيفه وصيت نامه اوښايم چه په هغې باندې مهرلګيدلې وى اوکُلاؤ شوې نه وى. نوهغه وئيل چه هو! نوده ورته اووئيل لوله دا آيت، ((قل تعالوا – الخ)) ابن عباس رضى الله عنه فرمائى چه داآيات محکمات دى په تماموشرائعوکښې منسوخ نه دى په هيڅ ملت کښ. ﴿ مَا حَرَّمَ ﴾ کښې ماموصوله دې دامفعول به د «اَتْلُ» دې ((اى اتل الذى حرم ربكم)) او﴿عَلَيْكُمْ﴾ متعلق دې د ((حرّم)) سره دوحې دقرب نه يامتعلق دې د «اتل» سره ځکه چه هغه اسبق دې، دلته لس امورمذکوردى پنځه نواهى، پنځه اوامر.

پنځه نواهى دادې : ((لاتشركوا))، ((لاتقتلوااولادكم)) ، ((لاتقربواالفواحش))، لاتقتلو النفس التى حرم الله))، ((لاتقربوامال اليتيم)) .

پنځه اوامر دادى : ((بالوالدين احسانًا)) اى احسنو بالوالدين احسانًا((اوفوالكيل والميزان)) ، ((اذاقلتم فاعدلوا))، ((وبعهدالله اوفوا))، ((وان هذاصراط مستقيمًا فاتبعوه)).

﴿أَلَّا تُشْرِكُوا﴾ داپه اصل کښې «ان لا» دې، «اَنْ» تفسيريه دې، تفسيردهغه فعل کوى چه په معنى دقول سره وى اوصريح قول نه وى، نوهرکله چه دا دټولومعطوفاتوسره تفسير د «ماحَرّم» شو، نوسوال واردېګى چه دلته خو بعض نواهى دى يعنى ((لاتشركوا))، ((لاتقتلوا)) . ((لاتقربوا)). نو دا خو محرمات نه دى، اودارنګه بعض اوامرمذکوردى نوهغه هم محرمات نه دى نو دا څه رنګه بيان دماحرم دپاره کيدې شى، دجواب دپاره متعددوجوهات دى[1] د ((الاتشركوا)) دپاره فعل عامل مقدردې، هغه دادې : ((اتل عليكم الاتشركوا))،((اتل عليكم ان تحسنوا بالوالدين احسانًا)) (۲) ((عليكم)) دماقبل سره نه دې بلکه دمابعدسره متعلق دې ((اى عليكم الا تشركواو عليكم الا تحسنوا–الخ)) نوعليكم اسم فعل په معنى د (الزموا) سره دې يعنى لازم دې په تاسوچه شرک به نه کوئى، احسان به کوئى - الخ (قرطبى) (۳) ابوسعود وائى چه مراد د «ماحرم» نه آياتونه مشتمل على التحريم دى او «عليكم» د اتل سره متعلق دې ((اى

...علیکم الایات المشتمله علی التحریم ، الاتشرکوا- الخ)) بیان دآیات مشتملو علی التحریم دي
...دلته چه دکومونواهیؤذکردي نو اتیان په منهیاتوحرام دي اوچه کومو اوامرو ذکردي
...ترک دماموراتو حرام دي. (۴) ((ماحرم)) په معنی د ((وجب)) سره دي، نوترک دشرک واجب
...دي اواتیان کول په احسان سره واجب دی-﴿ شَيْئًا ﴾ مفعول مطلق دي په اعتباردموصوف
...مقدرسره ((ای شرکاً شیئاً)) یعنی هیڅ قسم شرک مه کوئی یامفعول به دي، یعنی دالله تعالی
...سره هیڅوک مه شریکوئی ﴿ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا ﴾ ای احسنوابالوالدین احسانًا. دلته . نهی چه
...((لاتسبوا،لاتضروا))،ذکرنه شوه ، په دي کښي اشاره د چه حق دوالدینوصرف ترک داذیت نه
...دي بلکه احسان ورسره لازم دي ﴿ وَلَا تَقْتُلُوا ﴾ قتل یوحسی دي لکه (۱) چه مشرکانوبه په
...جاهلیت کښي خپل اولادقتلول،یا(۲) په موجود دَورکښي ،منصوبه بندی، اواسقاطِ حمل
...ناجائزاوفاسدغرض په بنیاد(۳)، اوبل معنوی دي هغه داچه خپل اولاد دَ دِین نه محروم کری،
...دنیا دعهداودولت دحصول دپاره، اوداقتل زیات مضردي اولادته دهغه قتل نه چه
...مشرکانوبه په جاهلیت کښي کولو ځکه راجح قول په حق دنابالغ اولاددمشرکینوکښي دادي
...چه دوئ به جنت ته ځی اودقتل معنوی په صورت کښي چه اولاددین نه محروم شی نوجهنم
...ته به ځی دوالدینودلاسه، نوداقتل زیات مضرشو.

﴿ مِّنْ إِمْلَاقٍ ﴾ املاق فقراولوګي ته وائی، په سورت بنی اسرائیل نمبر آیت نمبر ۳۱
کښي ((خشیة املاق)) ذکردي، ځکه چه څوک به چه فی الحال فقیروو نوهغه به دفقر دوجي نه
اولاد قتلول، اوڅوک به چه فی الحال فقیرنه وؤ نو هغه به دفقر دخطري دوجي نه اولادقتلول
نو «من املاق» د فقیرپه حق کښي دي اوددي وجي نه دلته ﴿ نَّرْزُقُكُمْ ﴾ مقدم راغلیدي،
ځکه چه په وخت دَ فقیرئ کښي انسان اول دخپل ځان فکرکوی او ﴿ خَشْيَةَ إِمْلَاقٍ ﴾ دمالدارپه
حق کښي دي ځکه هلته فقرفی الحال نشته دي لیکن خطره وی دفقرپه حق داولاد کښي نوځکه
نی هلته «خشیة» ذکرکړیدي اواولاد ئی مقدم ذکرکړیدي.

﴿ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ﴾ بی حیائی-زنا- په ښکاره اوپټه دواړوطریقوسره حرام او
جرم دي لیکن مشرکانوبه زناپه ښکاره طریقه سره رزالت ګڼړلواوپه خفیة طریقه سره.
اودخواصو دپاره به ئی شرافت ګڼړلو، نوځکه ددواړودحرمت تصریح اوشوه ﴿ إِلَّا بِالْحَقِّ ﴾

دقتل ،بحق، دري صورته دی ، قتل ارتداداً،قتل قصاصاً- حداً په زنا بعدالاحصان سره.
﴿وَصّٰىكُمْ﴾ وصيت دالله تعالى هغه تاكيدى حكم دي چه منسوخ نه وی﴿حَتّٰى يَبْلُغَ اَشُدَّهٗ﴾ دا غاية دمذكوردپاره نه ده بلكه دمفهوم دپاره ده چه هغه تسليم اوحواله كول دی يعنی ديتيم دمال حفاظت كوئی اوهغه ته ئی مه حواله كوئی ترڅوچه بالغ شوي نه وی نوچه بالغ شی نوبيائی ورته حواله كړئی-﴿لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا﴾داجمله معترضه ده اومقصود ترينه دادي چه په دي احكاموباندي عمل كول ستاسودطاقت نه باهرنه دي نوعمل پري كوئ.
﴿وَاِذَا قُلْتُمْ﴾ داعام دي چه كه په فيصله كولوكښي وی ياپه شهادت كښي وی ياپه تبليغ داحكاموكښی وی ياپه بيان دمسائلوكښي وی﴿فَاعْدِلُوْا﴾ يعنی حق اورشتياوائی، ﴿وَلَوْ كَانَ﴾ ضميردكان راجع دي مقول لهٗ مقول عليه ،ته،يعنی چه دچادپاره خبره كوئ ياپه چاباندي خبره كوئ، نوحق وايئ اگركه هغه خپل وان وی ﴿وَبِعَهْدِ اللّٰهِ﴾عهدالله شامل دي ماقبل مذكورته اونورعهدونو ته .

| وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا فَاتَّبِعُوْهُ ۚ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ |
|---|
| او حكم ئې كړې دې چه دا (مذكور) لار ځما ده نيغه، نو پدې روان شئ او مه ځئ په نورو لارو |
| فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيْلِهٖ ؕ ذٰلِكُمْ وَصّٰىكُمْ |
| (ځكه) چه هغه به تاسو جدا كړى (لرې به كړى) د الله تعالى د حق لارې نه، دا (مذكور) حكم دركوى تاسو ته الله |
| بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۱۵۳﴾ ثُمَّ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ تَمَامًا |
| پدې سره لپاره د دې چه تاسو متقيان شئ. بيا (واورئ) چه وركړى دې مونږ موسى [1] ته كتاب، لپاره د پوره كولو د نعمت |
| عَلَى الَّذِيْٓ اَحْسَنَ وَتَفْصِيْلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ وَّهُدًى وَّرَحْمَةً |
| په هغه چاچه نيك عمله وى، اولپاره دتفصيل د هرشى چه ضرورى وى په دين كښې، او هدايت دې او رحمت دې |

۱ . دليل نقلى د دوارو مضمونو لپاره.

# ﴿لَعَلَّهُمْ بِلِقَاءِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُونَ۝﴾

لپاره د دې چه دوئ په ملاقات د خپل رب ایمان راوړي

﴿وَأَنَّ هَٰذَا﴾ اشاره ده مذکور بما قبل ته يعنى اعتقادات اوشرائع ﴿صِرَاطِي﴾لارخما ده چه په دې څوک روان شی نوماته رارسی، ﴿مُسْتَقِيمًا﴾حال دې دصراط نه اوعامل پکښې معنې داشاری ده، ﴿فَاتَّبِعُوهُ﴾ داعطف دې په لَاتُشْرِكُوْا باندې نوداپه اعتبارد معنې سره مقدم دې په ﴿وَأَنَّ هَٰذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا﴾ باندې، اوداعلت د ((فاتبعوه)) دې ((ای اتبعوه لان هذاصراطی - الخ)) يافاء په فاتّبِعُوْهُ کښې فاء فصيحيه ده اوشرط مقدردې، ((والمعنى اذا اردتم الفوز والنجاة من مهاوى البدع ومساقط الضلالات فاتبعوه)) نوداجمله لامحل لها من الاعراب ده، او﴿وَأَنَّ هَٰذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا﴾ عطف دې په «لاتشركوا» باندې د «أتل» ماتحت دې،نو په محل دنصب کښې دې ياد، ﴿وَصَّاكُمْ بِهِ﴾ ماتحت دې اوپه محل دجرکښې دې ((ای وصکم بان هذاصراطی)) ﴿وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ﴾ يعنى په دې صراط مستقيم باندې روان شئ اوددينه په مخالف لاروباندې مه ځئ، دسُبل نه مرادمخالفې لارې دی لکه يهوديت نصرانيت او تولې کفرى لارې، اوحضرت مجاهدرحمه الله نه روايت دې چه ددينه مرادبدعات اوضلالت دی، ﴿فَتَفَرَّقَ بِكُمْ﴾ په اصل کښ تتفرق، وو- يوه تاء حذف شوې ده، اوباء دتعديت دپاره ده،معنې ئی داده چه په دې نيغې لارې باندې ځئ اوپه مخالفولاروباندې مه ځئ ګنې تاسوبه دنيغې لارې دالله تعالى نه جداکړی، په يوحديث کښې راغليدی، چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دبوهه کولودپاره يوه نيغه کرخه(خط) راښکلو اودهغې دواړوطرفونوته ئې وړې وړې کرخې راښکلې بيائ په هغه مينځ والاکرخه باندې لاس کيخود اووې فرمائيل چه داداالله تعالى لارده، اودطرفونووالاخطونه (کرخې) سُبُل دی اوپه هريو باندې شيطان دې دعوت ورکوی هغې ته، ابن مسعودرضى الله عنه فرمائى چه نبى صلى الله عليه وسلم مونږ په داسې صراط پريخى يو، چه يوطرف ئی مونږ سره دې اوبل ئ جنت ته رسيدلې دې اوددې صراط يمين يسار ته لارې دی نوڅوک چه په صراط(سنت) روان شی نوجنت ته به اورسی اوڅوک چه صراط پريګدی اوپه يمين يسارباندې روان شی نوجهنم ته به اورسی، تفسيرقرطبى دلته په

ذم دبدعت اوداهل بدعو کښې ډير روايات ذکرکړيدی. ﴿ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴾ يعنى تقوی په اتباع دصراط مستقيم (قرآن سنت) سره حاصليږی.﴿ ثُمَّ اٰتَيْنَا مُوسَى ﴾ دسورت په آخر کښې ددوارو مضامينو يعنی نفی دشرک اعتقادی اونفی دشرک فعلی دپاره يو دليل نقلی اوبل دليل وحی ذکرکيږی. په دې آيت کښې ددليل نقلی ذکردې دموسی عليه السلام نه او ((ثمّ)) دپاره دتراخی ذکردې . تراخی زمانی دپاره نه دې، اودکتاب نه مرادتورات دې ﴿ تَمَامًا ﴾ منصوب دې حال دې دکتاب نه يعنی داکتاب پوره وودهغوئی داصلاح دپاره اودبيان دعقائدوداعمالودپاره.هيڅ نقص پکښې نه وو-﴿ عَلَى الَّذِيْٓ اَحْسَنَ ﴾ ((ای علیٰ الوجه الذی احسن)) په هغه وجه او طريقه سره چه ډيره خائسته ده. يعنې په دې کتاب کښې نقص او کمې نه وو، پوره وو د دوئ د اصلاح اعتقادی اوعملی لپاره په ډيره خائسته طريقه د دوئ اصلاح کونکې وو، يا ﴿ تَمَامًا ﴾ مفعول له دې ، يعنی لپاره د اتمام د نعمت ﴿ عَلَى الَّذِيْٓ اَحْسَنَ ﴾ ((ای علی کل من احسن)) په هرهغه چاچه نيکی کونکې وی، لکه موسی عليه السلام اودهغه اتباع کونکی بنی اسرائيل ،آسمانی کتاب، دنبی اوداهل علمو دپاره لوئ نعمت وی ﴿ لِكُلِّ شَيْءٍ ﴾ ((ای لکل شئ ضروری فی الدين)) ، ﴿ وَهُدًى وَرَحْمَةً ﴾ يعنی سبب دهدايت اودرحمت وو.

| وَهٰذَا | كِتٰبٌ | اَنْزَلْنٰهُ | مُبٰرَكٌ | فَاتَّبِعُوْهُ | وَاتَّقُوْا |
|---|---|---|---|---|---|

او دا کتاب دې[1] عظيم الشان مونږ نازل کړې دې، برکت والا دې، د ده تابعداری کوئ او خان بچ کړئ د دې د خلاف نه .

| لَعَلَّكُمْ | تُرْحَمُوْنَ | ۝ | اَنْ | تَقُوْلُوْٓا | اِنَّمَآ | اُنْزِلَ | الْكِتٰبُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

د دې لپاره چه رحم وکړې شی په تاسو ، د دې لپاره چه تاسو بيا دا ونه وايئ چه نازل کړې شوی وؤ کتابونه

عَلٰى طَآئِفَتَيْنِ مِنْ قَبْلِنَا ۪ وَ اِنْ كُنَّا عَنْ دِرَاسَتِهِمْ لَغٰفِلِيْنَ ۝ اَوْ تَقُوْلُوْا

صرف په دوؤ ډلو باندې مخکښې زمونږ نه، او په تحقيق سره وؤ مونږ د لوستلو د هغوئ نه بې خبره يا دا ونه وايئ

[1] - دليل وحی

لَوْ أَنَّا أُنْزِلَ عَلَيْنَا الْكِتٰبُ لَكُنَّا أَهْدٰى مِنْهُمْ فَقَدْ

كچېرې نازل كړې شوې وې په مونږ باندې كتاب نو خامخا وو به مونږ زيات په هدايت د دوئ نه، پس په تحقيق سره

جَاءَكُمْ بَيِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ

راغلېدې تاسو ته واضح حجت د طرفه د رب ستاسو نه او هدايت او رحمت. پس څوك دې لوئ ظالم [1] دهغه چا نه

كَذَّبَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَصَدَفَ عَنْهَا ۚ سَنَجْزِي الَّذِيْنَ

چه دروغ ګڼړې آيتونو د الله تعالى او اعراض كوى د هغې نه. زرده چه سزا به وركړو مونږ هغه كسانو نه

يَصْدِفُوْنَ عَنْ اٰيٰتِنَا سُوْٓءَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوْا يَصْدِفُوْنَ ۝

چه اعراض كوى د آيتونو زمونږ نه سخت عذاب په سبب د دې چه دوئ اعراض كولو

﴿وَهٰذَا كِتٰبٌ﴾ دادليل وحى دې، اوتنوين دپاره دبيان دتعظيم شان دې ﴿أَنْزَلْنٰهُ﴾ كښې نسبت دنزول خپل ځان ته دپاره دتعظيم دې ﴿مُبٰرَكٌ﴾ اى كثيرالخيرفى الدنيا والاخرة. ﴿فَاتَّبِعُوْهُ وَاتَّقُوْا﴾ يعنى ددې كتاب اتباع اوكړئ اودمخالفت نه ځان اوساتئ نوداسبب درحم كيدلودې ﴿أَنْ تَقُوْلُوْٓا﴾ دا دفع دعذر ده ((ان تقولوا)) په اصل كښې ((لئلاتقولوا)) دې ﴿طَآئِفَتَيْنِ﴾ نه مراديهوداونصارى دى، مدارك وائى چه دادليل دې په دې چه مجوس اهل كتاب نه دى ځكه چه كه دوئ هم اهل كتاب وې نو ((طائفتين)) به تثنيه نه وې ذكرشوې ﴿دِرَاسَتِهِمْ﴾ ((دراست)) په ډيرو معانيو سره رازى ، دلته په معنى دقرائت اولوستلوسره دې. يعنى تورات انجيل هغوئى ته نازل شوى وو ،اومونږ دهغوئى دلوستلونه غافل وو ، ځكه چه هغه عجمى ژبه وه. سريانى يا عبرانى، او عرب په هغې باندې نه پوهيدل، او بله دا چه علماء داهل كتابو به دحق كتمان كولو. ﴿أَوْ تَقُوْلُوْا﴾ دادويم عذردفع ده، دعربو دادعوه وه چه مونږ ډيرتيز ذهن والا اوانابت والايو. نوكه په مونږ كتاب نازل شوې وې نومونږ به ډيرهدايت والاوو. نو الله تعالى فرمائى چه دا عذرهم ختم شو، أوس تاسوته داسې كتاب نازل شوچه اشرف اواكمل الكتاب دې اوستاسوپه لغت كښې نازل دې، ﴿بَيِّنَةٌ﴾ واضح بيان والادې اوسبب دهدايت اودرحمت

1 - زجر.

دي نوڅوک چه ددینه اعراض اوکړی اوتکذیب ئی اوکړی نودغه کس ډیرغټ ظالم دی اوهغه ته به سوء العذاب ورکولې شي.

| |
|---|
| هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمُ الْمَلٰٓىِٕكَةُ اَوْ يَاْتِيَ رَبُّكَ اَوْ يَاْتِيَ بَعْضُ اٰيٰتِ |
| انتظار نکوی دوئ مگر (۱) د دې چه راشي دوئ ته ملائك (د مرگ) یا راشي رب ستا، یا راشي بعضي نښاني |
| رَبِّكَ ؕ يَوْمَ يَاْتِيْ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا اِيْمَانُهَا |
| د رب ستا، په کومه ورځ چه راشي بعضې نښانې د رب ستا فایده به نه ورکوی هیڅ نفس ته ایمان راوړل د هغه |
| لَمْ تَكُنْ اٰمَنَتْ مِنْ قَبْلُ اَوْ كَسَبَتْ فِيْٓ اِيْمَانِهَا خَيْرًا ؕ قُلِ |
| چه ایمان ئې نوی راوړې مخکښې د دینه یا ئی نوی کسب کړی په حال د ایمان کښې نیکی، ته ورته ووایه |
| انْتَظِرُوْٓا اِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ ۝ |
| تاسو انتظار کوئ بیشکه مونږ انتظار کوونکی یو. |

﴿هَلْ يَنْظُرُوْنَ﴾ دا تخویف دنیوی دې، دلته دعذاب درې صورتونه ذکرشویدی، یعنی دوئ چه ددلائلو باوجود ایمان نه راوړی نو آیادوئ ددې انتظارکوی چه دموت فرشته راشي اودوئی ارواح قبض کړی نو دَ مرگ نه روستو به ددوئ سترگی رڼراشی، یاددې انتظارکوی چه په دوئ باندې دالله تعالی عذاب راشي یادقیامت په نښانوکښې دوئ ته داسې نښانه راشي چه دهغې په لیدلو سره دوئی مجبورشي په ایمان باندې، لیکن په دې درې واړه صورتونوکښې ایمان مقبول نه دې، ﴿اَوْ يَاْتِيَ رَبُّكَ﴾ نه مراد ((امرربک بالعذاب)) دې (روح، شیربینی) یا ترینه مراد قیامت دې اواتیان دالله تعالی دپاره صفت دې خوهغه ،،کمايليق بشانه،، دې، اوزمونږ داتیان په شان نه دې.

﴿اَوْ يَاْتِيَ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ﴾ په حدیث کښې د دې بیان په ((طلوع الشمس من مغربها)) سره راغلیدې، حضرت الشیخ رحمه الله دخپل شیخ رحمه الله نه نقل کوی چه ددینه مرادهرهغه نښانی دی چه هغه چه څوک اووینی نوپه ایمان راوړلو مجبورشي، لکه فرعون چه په وخت دغرغرې کښې

۱- تخویف

ايمان راؤړو ليکن قبول نه شو . اوپه سورت مؤمن کښې دی ﴿ فَلَمْ يَكُ يَنفَعُهُمْ إِيمَانُهُمْ لَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا ﴾ نودلته مرادمطلق هغه نشانه ده چه دهغې په ليدلوسره انسان مجبورشي په ايمان راؤړلوباندې، اوپه حديث کښې ذکردطلوع الشمس من مغربها.. دحصردپاره نه دې بلکه تمثيل دې. په روايت دمسلم کښې دی خذيفه بن أسيدرضى الله عنه وائى چه يوواري صحابه کرامو دعلامات قيامت تذکره په خپل مينځ کښې کوله نونبى صلى الله عليه وسلم تشريف راؤړو اوئى فرمائيل چه قيامت ترهغې پورې نه راځى ترڅوچه تاسو دهغې نه مخکښې لس علامات نه وى ليدلى : (١) طلوع الشمس دمغرب نه ، (٢) دُخان ، (٣) دابة الارض. (٤) ياجوج ماجوج. (٥) نزول دعيسى عليه السلام ، (٦) خروج ددجال، درې خسفونه، (٧) يوخسف په مشرق کښې (٨) بل په مغرب کښې (٩) بل په جزيرة العرب کښ (١٠) اوبل نار چه دعدن دقعرنه راؤځى اوخلقوله به مخکښې شړى ، اودطلوع الشمس من المغرب حال په بعض رواياتو کښې داسې راغليدې چه دمغرب نه به طلوع کوى، اوپه يوروايت غيرمشهورکښې داسې دى چه درې ورځې به طلوع دمغرب دطرفه کيږى «روح» په روايت دبخارى کښې دى چه نه قائميږى قيامت ترڅوپورې چه طلوع دشمس دمغرب نه نه وى شوى نوچه کله طلوع دشمس اوشى دمغرب نه اوخلق ئى اووينى نوبيابه ټول ايمان راؤړى خوداهغه ورځ ده چه چاته نفع نه ورکوى ايمان، اونبى صلى الله عليه وسلم دا آيت تلاوت کړو. اوپه دې وخت کښى ايمان په دې وجه نه قبليږى چه معتبرعندالله، ايمان بالغيب اواختيارى دې. اوچه کله دآخرت دحقائقومشاهده اوشى نوهرانسان به ايمان راؤړلواوتوبه کولوباندې مجبورشى نواختيارى ايمان بالغيب نه شو ، نوپه وخت دطلوع الشمس من مغربها کښې خوايمان اوتوبه مقبول نه دى. البته ددې نه بعدبه دهميشه دپاره نه قبليږى يابه قبليږى؟ نوصاحب دروح المعانى وائى «ومُقتضى الاخبارفى هذاالمطلب أنّه لايقبلُ الايمانَ بعد ذلک ابدًا لکنّ الظاهرعلى مَا فِي الزواجرقبولُ مَاوقعَ بعد ذلکَ من غيرِ تقصيرٍ کمن جنّ وافاقَ بعد» يعنى درواياتونه اګرکه ظاهراً دامعلوميږى چه دهميشه دپاره به توبه نه قبليږى ليکن ظاهره اوراجحه خبره داده چه قبليږى. ځکه چه دغه حالت به هيرشى، نوددغه حالت دنسيان په وجه ايمان بالغيب اواختيارى دې اونسيان په وجه دطول العهداوقت سره دې، اوامام قرطبى اوحافظ ابن حجرپه شرح دبخارى کښې نقل کړيدى چه خلق به ددينه بعدشپږ شلې (١٢٠) کاله پاتې وى ظاهره ده چه داوخت طويل دې نسيان په کښې راتلې شى

﴿لَا يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ ءَامَنَتْ مِن قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا﴾ زمخشري اونور ومعتزلو به دې آيت سره استدلال کړيدې چه ايمان په غيرد عمل صالح نه نافع نه دې ځکه چه د ((اوکسبت)) معنی داده چه ((او آمنت ولم تکسب فی ايمانها خيرا)) يعنی نفع نه ورکوی هيچانه ايمان چه مخکښې ئې ايمان نه وی راوړې يائې ايمان راوړې وی خوعمل صالح ئې نه وی کړې. نو داهم نافع نه دې. نومعلومه شوه چه ايمان په غيرد عمل صالح نه هيڅ نفع نه ورکوی. نومعلومه شوه چه اعمال جزء دی د ايمان نه او د اعمالو په نشتوالی سره ايمان معدوم کيږی. دکشاف عبارت دادې ((فلم يفرق کماتری بين النفس الکافرة اذاامنت فی غيروقت الايمان وبين النفس التی آمنت فی وقته ولم تکسب خيرا، ليعلم ان قوله الذين آمنوا وعملوا الصالحات جمع بين قرينتين لاينبغی ان تنفک احداهما عن الاخرٰی حتی يفوزصاحبها ويسعدوالافالشقوة والهلاک)) اهل سنت والجماعت وائی چه دمعتزلومذهب په نورو ادلو شرعيو سره مردوداوباطل دې. اوددې آيت نه متعددجوابونه کوی (۱) مشهورقول دادې چه په آيت کښې لف نشرمرتب دې خوپه جانب دلف کښې اجمال دې اوتقدير دې. نوتقديردعبارت دارنګه دې ((يوم ياتی بعض آيات ربک لاينفع نفساً ايمانها ولاکسبها خيراً، لم تکن آمنت من قبل اوکسبت فی ايمانها خيرا)) نوپه جانب دلف کښې دوه امره دی (۱) عدم نفع د ايمان. (۲) اوعدم نفع دکسب خير. اوپه جانب دنشرکښې دوه امره دی يو ((لم تکن آمنت من قبل)) دامرتب دې. په امراول بل. او ((کسبت فی ايمانها خيرا)). دامرتب دې په دويم امرچه مقدردې. (۲) صاحب دمدارک وغيره وائی چه دکسب خيرنه اعمال صالحه نه دی مراد بلکه اخلاص فی الايمان ترينه مراددې يعنی کله چه طلوع الشمس من مغربها اوشی نو. چاچه بالکليه ايمان نه وی راوړې اووس ايمان راوړی نودانافع اومقبول نه دې اودارنګه دچاچه ايمان نفاقی وی اووس اخلاص په ايمان کښې پيدا کوی اوپه اخلاص سره ايمان راوړل غواړی نوداهم نافع اومقبول نه دې. (۳) حضرت شاه انورشاه کشميری رحمه الله فرمائی چه چه ((أو)) په سياق دنفی کښې دې نوعموم فائده کوی لکه ﴿وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ ءَاثِمًا أَوْ كَفُورًا﴾. نودلته معنی داده چه دچاچه ايمان اوعمل صالح دواړه نه وی او اُوس. يعنی بعد طلوع الشمس من مغربها نه ايمان راوړی ياعمل صالح کوی نودانافع اومقبول نه دې (۴) ابن کثيروغيره وائی چه معنی داده چاچه ددينه مخکښې ايمان نه وؤ راوړې او اُوس ايمان راوړی نودانفع نه ورکوی. بالکل اوچاچه مخکښې ايمان راوړې وي خوعمل صالحه ئې نه وی نو

معه نه دغه ايمان نفع كامله نه وركوى. نفع كامله داچه يه غير دعذاب نه جنت ته داخل سي

إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا لَّسْتَ مِنْهُمْ

بيشكه هغه كسان چه ټكړې ټكړې كړې ئې دى دين خپل او دوئ ډلې دى مختلفې نه ئې ته د دوئ نه

فِي شَيْءٍ ۚ إِنَّمَا أَمْرُهُمْ إِلَى اللَّهِ ثُمَّ يُنَبِّئُهُم

په هيڅ تعلق لرلو كښې. بيشكه معامله د دوئ الله تعالى ته سپارلې شوې ده. بيا به الله تعالى خبر كړى دوئ

بِمَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿١٥٩﴾ مَن جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا ۖ

په انجام د هغه عملونو چه دوئ به كول څوك چه راوړى نيكى پس د ده لپاره دى لس چنده ثواب د هغې.

وَمَن جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَىٰ إِلَّا مِثْلَهَا وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿١٦٠﴾

اوڅوك چه راوړى گناه، پس سزا به نه شى وركولې مگر مثل دهغې او په دوئ به هيڅ ظلم نشى كيدى

﴿ إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ ﴾ داتخويف دي ((فرقوا)) ياپه خپله معنى سره دي يعنى دين ئې ټكړې ټكړې كړې وى چه كوم ئى دطبيعت سره موافق وى هغه منى اوكوم ئ چه طبيعت سره موافق نه وى نوهغه نه منى. ياپه معنى د ((فارقوا)) سره دي لكه په بل قرات كښې دغه شان راغليدي يعنى خپل دين ئې پريخودلې وى. اومراددينه يهوداونصارى دى.لكه په بل آيت كښې دى ﴿ وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ إِلَّا مِن بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَةُ ﴾ . ﴿ وَيُرِيدُونَ أَن يُفَرِّقُوا بَيْنَ اللَّهِ وَرُسُلِهِ ﴾ . داهم اهل كتاب دى. داقول دحضرت مجاهد رحمه الله اوقتاده رحمه الله دي ياترينه مرادمشركين دى. ياترينه مراد «فرَق» مبتدعه دى. لكه داقول دحضرت عائشې رضى الله عنها اوابوهريره رضى الله تعالى عنه دي (قرطبى) په حديث كښې دى چه بنى اسرائيل دوه اويافرقې شوې وواوځماپه امت كښې به درې اويافرقې جوړيږى ټول به جهنم كښې وى مگريوه نواصحابوتپوس اوكړو چه دغه به څوك وى نواوئى فرمائيل چه (ما انا عليه واصحابى)

﴿ لَّسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ ﴾ . يعنى ستاددوئى سره تعلق نشته دي اوستانه به ددوئى په باره كښې تپوس نه كيږى. ددوئى معامله الله تعالى ته حواله ده. الله تعالى به ورته ددوئ دعملونو مطابق بدله وركوى.

﴿مَن جَآءَ بِالْحَسَنَةِ﴾ دابشارت دې ﴿عَشْرُ أَمْثَالِهَا﴾ ((اى عشر حسنات امثالها)) څکه چه حسنات مؤنث دي نو عشر څکه مذکر راغليدې ،اوذکر د عَشْرُ ادنى مرتبه ده

قُلْ اِنَّنِىْ هَدٰىنِىْ رَبِّىْٓ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۚ دِيْنًا قِيَمًا مِّلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا

وه وايه بيشكه زه رسولي يم خپل رب [۱] سمې لارې ته يعنې دين صحيح ملت د ابراهيم ، مستقيم كلك به حق باندې.

وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝ قُلْ اِنَّ صَلَاتِىْ وَنُسُكِىْ وَمَحْيَاىَ وَمَمَاتِىْ

او نه وؤ د مشركانو نه وه وايه چه بيشكه [۲] مونځ څما او قرباني اوحج څما او ژوند څما او مرګ څما

لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ لَا شَرِيْكَ لَهٗ ۚ وَ بِذٰلِكَ اُمِرْتُ

خاص الله تعالى لره دى چه رب د ټول عالم دې نشته دې هيڅ شريك هغه لره. او پدې سره حكم كړې شوې دې ما ته

وَ اَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ ۝

او څه اول د مسلمانانو نه يم

﴿قُلْ اِنَّنِىْ هَدٰىنِىْ﴾ دسورت په آخركښې ددرې اعلاناتوذكردې، اودسورت د دوارو مضامينو اعاده ده،اوداول اعلان دې چه څمادين، ملت ابراهيمى دې او ابراهيم عليه السلام .حنيف . دهرقسم شرک فعلى اعتقادى نه بيزاره وو. ﴿قُلْ اِنَّ صَلَاتِىْ﴾ دادويم اعلان دې په ((صلاتى)) كښې نفى دشرک اعتقادى ته اشاره ده اوپه﴿وَنُسُكِىْ﴾ كښې نفى دشرک فعلى ته اشاره ده د((نسک)) نه مراد ذبح يعنى قربانى ده ياطريقه دحج كولو.ياټول طاعات ترينه مراددى. ﴿وَمَحْيَاىَ وَمَمَاتِىْ﴾ ددينه مراد ياهغه كارونه دى چه په حالت دژوند كښې كيږى . اوپه حالت دمرګ كښې كيږى لكه وصيت وغيره.ياترينه مرادخودې ژونداومرګ دې. نو دا دتكوينياتو ذكردې اوماقبل دتشريعياتو ذكردې يعنى څما امورتشريعيه هم صرف دالله تعالى دپاره دى. نوداتوحيد فى الالوهية شو. اوڅما امور تكوينيه هم صرف دالله تعالى

۱ - د سورت په آخر كښې درې اعلانات ، دا اول اعلان دې.

۲ - دويم اعلان

دپاره دی. نوداتوحیدفی الربوبیت شو، نوداآیت دال دې په توحید کامل یعنی په ټولوحالاتو تشریعی، تکوینیوکښې، تسلیم اوتفویض ﴿وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ﴾ په دې امت کښې اول مراددې اوهرنبی په خپل امت کښې اول مسلم وی، اودخپل امت دپاره عملی نمونه وی. یااولیت دمرتبې په اعتبارسره دې یعنی په ټولومسلمانانوکښې اول درجه مسلمان څه یم. یازه دصفت اول دمسلمانانونه یم.

| |
|---|
| قُلْ أَغَيْرَ اللَّهِ أَبْغِي رَبًّا وَهُوَ رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ ۚ وَلَا تَكْسِبُ |
| ووایه چه آیا سوی د الله تعالی نه زه تلاش کړم بل رب او حال دا چه هغه رب د هرڅیز دې. او نه کسب کوی |
| كُلُّ نَفْسٍ إِلَّا عَلَيْهَا ۚ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ۚ ثُمَّ |
| هیڅ نفس بد عمل مګر وبال ئې په هغه باندې وی، اونشی پورته کولې یو نفس دروند په ګناه بوج د بل ځا. بیا |
| إِلَىٰ رَبِّكُمْ مَرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿١٦٤﴾ |
| ستاسورب ته دی واپس تلل ستاسوپس خبر به درکړی تاسوته په هغه څه چه تاسوپه هغې کښې اختلاف کولو |
| وَهُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلَائِفَ الْأَرْضِ وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ |
| او الله تعالی هغه ذات دې چه ګرځولی ئې یئ تاسې، نائبان په زمکه کښې او پورته کړی یې دی بعضې ستاسو |
| فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ لِيَبْلُوَكُمْ فِي مَا آتَاكُمْ ۗ |
| دپاسه د بعضو نه په درجو کښې. د دې لپاره چه ازمیښت وکړی په تاسو په هغه څه کښې چه درکړی ئې دی تاسوته . |
| إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿١٦٥﴾ |
| بیشکه رب ستا، زر عذاب ورکوونکي دې، د نه منونکو لپاره، . او بیشکه هغه خامخا بښنه کوونکې رحکم کوونکې دې «دمنونکو لپاره» |

﴿قُلْ أَغَيْرَ اللَّهِ أَبْغِي رَبًّا﴾ دادریم اعلان دې. چه داالله تعالی نه ماسوی بل څوک رب نشته . صرف هغه رب دهرڅادې. ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ﴾ مشرکانوبه وئیل ((اتبعوسبلناولنحمل خطیکم)) یعنی تاسو زمونږ دلارې تابعداری اوکړئ کفر. شرک اختیارکړئ اوداجرم نه دې اوکه بالفرض داجرم وی نوهغه وبال زمونږ په سردې. نوالله تعالی اوفرمائیل چه داسې نشی کیدې چه جرم

یو کس اوکړی او سزاوبال ئې په بل شي ،((وازرة)) (ای نفس وازرة) نفس درونده په ګناه سره: یعنی ګنهګار. اوکه څوک **سوال** اوکړی چه دچادګناه بوج په بل هیڅانه نه اچولي کیږی. ګنهګاروی اوکه نه. نوتخصیص د ((وازرة)) یعنی دګنهګارولی اوشو. **جواب** دادي چه دعوت ورکونکي مشرکان وو نوځکه تخصیص د ((وازرة)) اوشو اګر که حکم عام دي. ﴿وَهُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلَٰئِفَ الْأَرْضِ﴾ داترغیب دي عمل کولوته په احکامو ددي سورت باندي. ((خلائف)) دخلیفه جمع ده یعنی نائب. اوخطاب یاټول نوع انسانی ته دي ځکه چه خلافت ټولو انسانانوته ورکړي شویدي. نومراددادي چه تاسوخلفاء یئ دطرفه دالله تعالی نه په زمکه کښي نو الله تعالی تاسوته دژوندد تیرولو احکامات بیان کړیدي نوتاسو په هغي عمل اوکړئ. یاداخطاب امت محمدی صلی الله علیه وسلم ته دي ځکه چه نبی صلی الله علیه وسلم خاتم النبیین دي نو امت دهغه هم خلیفه دي دمخکنو اُممو ، ﴿وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ﴾ یعنی د ((جعلکم خلائف الارض)) نه داګمان مه کوئی چه ټول یوشان دی بلکه تفاوت شته ي څوک قوی، څوک کمزوري. څوک حاکم څوک محکوم ،څوک مالدار، څوک غریب، مالک، مملوک نر،ښځه. داتفاوت دابتلاء دپاره دي چه خپل خلق مالک اوپیژنی. ﴿فِي مَا آتَاكُمْ﴾ ددینه مرادهرهغه صفت اوحالت دي چه انسان ته حاصل وی مالداری ،غریبي. صحت بیماری. حسن قُبح دصورت. وغیره. ﴿إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ﴾ دا تخویف دي دنه منونکودپاره. د ((سریع العقاب)) دامطلب نه دي چه چاته مهلت نه ورکوی بلکه مراددادي چه کله دعذاب ورکولواراده ئې اوشی نودهغي په نافذکولوکښي هیڅ توقف نه وی، اوڅوک ئې منع کولي نشی. ﴿وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ دا بشارت دي منونکوته، دعقاب سره لام تاکیدنه دي ذکرشوي اودمغفرت اورحمت سره ذکرشویدي .ځکه رحمت ئې غالب دي په غضب باندي ((وفی الحدیث سبقت رحمتی غضبی)).

**فنسئلک اللهم برحمتک التی وسعت کل شئ ان تغفرلنا وترحمنا انک انت الغفورالرحیم،**

**۳۰ ربیع الاول سنه ۱۴۲۸ هـ یوم الاربعاء ۱۸ اپریل ۲۰۰۷ء**

| ركوع | سورة الاعراف مكية | آيتونه |
|---|---|---|
| ۲۴ | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ۲۰۶ |

خاص په نوم د الله سره چه بيحده مهربان او ډير رحم كوونكي دي (شروع كوم)

**رقمها حسب التسلسل (۷) وحسب النزول (۳۹) قبل الجن وبعد (ص)**

(۱) **ربط اسمي** كه چرې تاسو په انعام اوحرث كنبې د الله تعالى سره بل څوك شريك ونه ګرځوئ نو الله تعالى به تاسو د جهنم نه بلكه د اعراف نه هم بچ كړي او جنت ته به مو داخل كړي

**ربط معنوي مضموني** (۱) په سورة انعام كنبې نفي د شرك فعلي او اعتقادي په تفصيل سره ذكر شوا و په عقلي نقلي دلائلو سره مبرهن شونو دلته كنبې دهغې د تبليغ او بيانولو حكم دى چه بي خوف خطري ئې بيان اوكړه او په زړه كنبې تنګى مه راولِه .﴿فَلَا يَكُنْ فِي صَدْرِكَ حَرَجٌ مِنْهُ لِتُنْذِرَ بِهِ وَذِكْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ﴾ (۲) دلته د ماقبل سورت د ترتيب نه برعكس نفي د شرك فعلي مقدم او نفي د شرك اعتقادي مؤخره ده. (۳) ماقبل سورة كنبې دنذر لغيرالله او تحريمات غيرالله تفصيل ذكرشوې وؤ او ډيرصورتونه يې ذكرشوى وو. دلته دهغې يو نهايت اهم صورت (يعني بربنډ طواف كول) ذكردې (۴) ماقبل سورت كنبې دلائل عقليه ذكرشوى وؤ او دليل نقلي بالتفصيل د حضرت ابراهيم عليه السلام نه ذكرشوې وو. او د باقى انبياؤ نه اجمالاً ذكرشوې وو. ليكن دلته دهغې بعض انبياؤ نه بالتفصيل ذكركيږي

## دسورت دمضامينو خلاصه

په دې سورت كنبې درې دعوې دى. **اوله دعوى** داده چه ددې كتاب يعني د توحيد بيان او د شرك اعتقادي او فعلي رد په حوصله او بهادرئ سره كوه او كه تكليفونه راځي نو صبر كوه. زړه مه تنګوه (آيت نمبر ۲) **دويمه دعوى**. چه كوم احكام الله تعالى نازل كړي دى. حل حرمت. دهغې اتباع كوئې او د شياطينو. اتباع مه كوئ چه دخپل طرفه څه شي ته حلال حرام اووايئ. (آيت نمبر ۳) ددينه بعد د آيت نمبر۹ پورې تخويفات بشارات دى. او بيا د آيت ۲۵ پورې تمهيد دې نفي د شرك فعلي ته اوخلور كرنه. ((يبنى آدم)) خطاب مذكوردى چه دخپل طرفه تحريمات مه كوئ. د آيت نمبر ۳۵ پورې نفي د شرك فعلي ده. او د آيت نمبر ۵۳ پورې

تخويفات بشارات دی. بيا **دريمه دعوی** ذکرکيږي چه ستاسورب خالق مالک صرف الله تعالی دي نولهذا ((ادعوربکم)) صرف اوصرف دهغه بلنه کوئ اودهغه نه خپل حاجات غواړئ.
دآيت نمبر ۵۸ پورې ددې دعوې تفصيل دې. دهغې نه پس بياشپږ قصې ذکردی متعلق دی ددرې واړه دعوؤ سره په طريقه دلف نشرمرتب. اوله قصه دحضرت نوح عليه السلام متعلق ده. ددريمی دعوې سره اصالةً اواول دعوې سره تبعاً. دويمه قصه دهود عليه السلام. اودريمه قصه دحضرت صالح عليه السلام داهم ددريمی دعوې سره متعلق دی. څلورمه قصه دلوط عليه السلام ددويمې دعوې سره متعلق ده. پنځمه قصه دحضرت شعيب عليه السلام ددويمې او دريمې دعوې سره متعلق ده. بيا التفات بسوء اهل مکه دې. اوشپږمه قصه دحضرت موسی عليه السلام ده اولې دعوې سره متعلق ده چه په دې کښې اته واقعات مذکوردی په تفصيل سره او دقصصُ دختميدونه پس دتخويف دنيوی نمونه ذکرکيږي . ﴿ وَسْئَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ ﴾ او بيا ديهودو. ديومقولې ترديددې په څلورو وجوهاتو سره چه دوئ وئيل. ﴿سَيُغْفَرُ لَنَا ﴾ د آيت نمبر۱۶۸ نه دآيت نمبر۱۷۷پورې، اوددينه پس ترآخرپورې آياتونه متعلق دی ددرې واړه دعووسره

**مختصره خلاصه** په دې سورت کښې نفی دشرک فعلی اولاً کيږي اونفی دشرک اعتقادی ثانياً کيږي، دری دعوی، اوشپږ قصې ذکرکيږي،

| الٓمٓصٓ ① كِتٰبٌ اُنْزِلَ اِلَيْكَ فَلَا يَكُنْ |
|---|
| الله تعالی عالم دې په مراد خپل سره د دې حروفونه، دا لوئ شان والا کتاب دې نازل کړې شويدې تاته [1] پس نه دې وی |
| فِيْ صَدْرِكَ حَرَجٌ مِّنْهُ لِتُنْذِرَ بِهٖ وَذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ② |
| په سينه ستا کښې تنگسيا. درسولو ددينه. ددې لپاره چه ته ويره وې پدې سره اولپاره د نصيحت مؤمنانو لره |
| اِتَّبِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ |
| تابعداری کوئ دهغې چه نازل کړې شوې دې تاسو ته د طرفه د رب ستاسو نه او تابعداری مکوئ ماسوی د الله تعالی نه |

---

۱ - اوله دعوی

أَوْلِيَاءَ ۗ قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ ۝ وَكَم مِّن قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا

نورو دوستانو «شیاطینو» ډیر کم غوندې نصیحت قبلوئ تاسې . او ډیرو کلو والا هلاك کړی دی مونږ هغه

فَجَاءَهَا بَأْسُنَا بَيَاتًا أَوْ هُمْ قَائِلُونَ ۝ فَمَا كَانَ

پس راغلی ورځغوئ ته عذاب زمونږ په وقت دشپې کښې یا به دوئ آرام کوؤ په وخت د غرمې کښې پس نه به وو

دَعْوَاهُمْ إِذْ جَاءَهُم بَأْسُنَا إِلَّا أَن قَالُوا إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ ۝

زیاد د دوئ کله چه به راغې دوئ ته عذاب زمونږ مگر دا چه[1] ویل به دوئ بیشکه وؤ مونږ ظالمان

﴿الٓمٓصٓ﴾ دامقطعات دی تفصیل ئی مخکښې تیرشوې دې، ﴿كِتَٰبٌ﴾ ای هذاکتاب.

﴿حَرَجٌ﴾ یعنی ددې کتاب په تبلیغ کښې چه څه تکلیفونه راځی نوصبرکوه اوزړه مه تنگوه.

دااوله دعوی ده، ﴿لِتُنذِرَ بِهِۦ﴾ دامتعلق دې دأنزل سره، یعنی مقصود ددې کتاب نه انذار او نصیحت دې، ﴿اتَّبِعُوا مَا أُنزِلَ إِلَيْكُم﴾ دا دویمه دعوی ده یعنی دماأُنزل اتباع کوئ اودشیاطین الجن والانس اتباع مه کوئ چه دخپل طرفه تحریمات اوکړئ.

﴿وَلَا تَتَّبِعُوا مِن دُونِهِۦٓ أَوْلِيَآءَ﴾ ضمیر په (من دونه) کښې راجع دې (ما انزل) ته، یارب ته، مرادمنع داتباع ده په معصیت کښې، (ای لاتتبعوهم فی معصیة) (جلالین) اومراد دَ اولیاء (دوستانو) نه شیاطین الجن والانس، دی، یاشیاطین اوکوهان دی، ( شیربینی ،بحر، روح المعانی وغیره) یعنی دشیاطین الجن والانس اتباع مه کوئ دوئی به تاسو په شرک، بدعت .خودساخته تحریماتو کښې مبتلاء کړی

**فایده** باطل دې قوله دهغه چاچه وائی چه پدې کښ رد دې په هغه تقلید اومقلد باندې چه د کتاب او سنت په مقابله کښ د بل چا قول غوره کوی، د مجتهد قول د کتاب،سنت مقابل گرځول. جهالت او تعصب دې، مجتهددکتاب اوسنتو مقابله نه کوی . بلکه تشریح دکتاب اوسنت، کوی اوترجیح د یودلیل (حدیث) لره په بل باندې ورکوی. دخپلو اصولومطابق اودیته مقابله وئیل جهالت دې، دمجتهدینو اتباع کول. اتباع په معصیت کښې

1 . تخویف.

نه ده. اومجتهدين مصداق داولياء دپاره په معنى مذكورې سره هم نه دى. ﴿وَكَمْ مِّنْ قَرْيَةٍ﴾ دانخويف دنيوى دې، «كم» خبريه دې «من قرية» ورته تميزدې او «كم» مرفوع دې محلاً مبتداء ده. يامنصوب دې مفعول د (اهلكنا) دپاره دې ﴿فَجَآءَهَا﴾كښې فاء تفصيليه ده. ﴿بَيَاتًا﴾ حال دې په معنى د (بائتين) سره. ﴿دَعْوٰىهُمْ﴾ په معنى دفرياد. سره دى ﴿اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ﴾دظلم نه مراددادې چه دوئى اتباع دمااُنزل نه كوله.

فَلَنَسْـَٔلَنَّ الَّذِيْنَ اُرْسِلَ اِلَيْهِمْ
پس خامخا به تپوس كوؤ مونږ د هغه كسانو نه چه ليږلې شوى دى رسولان دوئ ته يعنى اُمتان

وَلَنَسْـَٔلَنَّ الْمُرْسَلِيْنَ ۝ فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيْهِمْ بِعِلْمٍ
او خامخا به مونږ تپوس كوؤ د رسولانونه پس خامخا به مونږ احوال بيانوؤ په دوئ باندې په علم خپل سره

وَّمَا كُنَّا غَآئِبِيْنَ ۝ وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذِ ﹰالْحَقُّ ۚ فَمَنْ ثَقُلَتْ
اونه وو مونږ غائب د اعمالو د دوئ نه او تول د عملونو په دغه ورځ حق او يقينى دې. پس هغه څوك[1] چه دروند وى

مَوَازِيْنُهٗ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝ وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِيْنُهٗ
سون د نيكوعملونو دهغه. پس دغه كسان هم دوئ بچ كيدونكى دى د عذاب نه. اوهغه څوك چه سپك وى تول دنيكئ د هغه

فَاُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ بِمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَظْلِمُوْنَ ۝
پس داهغه كسان دى چه تاوانى كړى ئې دى خانونه خپل په سبب ددې چه دوئ په آياتونو زمونږ ظلم (انكار) كولو

وَلَقَدْ مَكَّنّٰكُمْ فِى الْاَرْضِ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيْهَا
او خامخا په تحقيق سره ځاى دركړيدې مونږ تاسوته په زمكه كښې او پيدا كړى دى مونږ تاسو لره په دې كښې

مَعَايِشَ ۭ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ۝
اسباب د روزى. ډير لږ غوندې په تاسو كښې شكر كوى

[1] سعادت أخروى

﴿ فَلَنَسْـَٔلَنَّ ٱلَّذِينَ ﴾ داتخویف اخروی دې یعنی دقیامت په ورځ به د هرچا نه سوال کیدی شی. درسولانو نه په باره دتبلیغ کښې اودامتیانونه په باره دمنلوکښې اوداسوال داستعلام یعنی معلومولودپاره نه دې بلکه دزجراوتوبیخ دپاره دې اوپه بل آیت کښې چه ﴿ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْـَٔلُ عَن ذَنۢبِهِۦ ﴾ دې نو هلته دهغه سوال نفی مرادده چه دمعلومولودپاره وی

﴿ فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيْهِم بِعِلْمٍ ﴾ یعنی که څوک دخپل جرم نه انکاراوکړی نو الله تعالی به ئی بیان او ظهار کوی ﴿ وَٱلْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ ﴾ «والوزن» مبتداء ده. «یومئذ» په اعتباردمتعلق سره ورته خبردې. «ای اَلْوَزْنُ ثَابِتٌ يَوْمَئِذٍ» ﴿ ٱلْحَقُّ ﴾ صفت د «وزن» دې. داترکیب راجح دې په نیز دمحققینو. او دویم ترکیب دادې چه «الحق» خبردې. د «الوزن» دپاره. یعنی وزن د اعمالو . دقلب اودجوارحو. حق اوثابت دې. اوپه کیفیت دوزن کښې درې قوله دی **اول** داچه عمل نامې به تللې شی .لکه په یوحدیث کښې د بطاقة. ذکردې. «فَتُوضَعُ السِّجِلاتُ فِي كَفَّةٍ وَالبِطَاقَةُ فِي كَفَّةٍ. الی آخرالحدیث» **دویم** داچه خود اعمال به متجسم شی اووزن به ئی کیږی. دابن عباس رضی الله تعالی عنه نه روایت دې چه اعمال حسنه به صورت حسنه سره راوستې شی واعمال سیئة به په قبیحه صورت سره راوستې شی، اوپه میزان کښې به کیخودې شی. **دریم** قول دادې چه عامل . یعنی دعمل کونکې وزن به کولې شی «لماروی عنه صلی الله علیه وسلم انه قال لیاتی الرجل العظیم السمین یوم القیمة ، لایَزِنُ عندالله جناحَ بعوضةٍ» «رواه البخاری»

﴿ فَمَن ثَقُلَتْ مَوَٰزِينُهُۥ ﴾ اضافت د ..موازین.. ضمیرته دعهددپاره دې معهودپه دې سره موازین الحسنات دی. قرینه ئی ترتب دفلاح دې په دې باندې. اوموازین یاجمع دموزون ده یعنی دچاموزونات چه درانه شی. یاجمع دمیزان ده نوددینه ظاهراً دامعلومیږی چه میزانونه ډیردی. اوداده بعض اهل علموقول دې چه میزانونه متعدددی لقوله تعالی ونضع الموازین. اوجمهور اهل علم وائی چه میزان یودې اودالفظ په قرآن کښې مستعمل دې په صیغه دجمع سره اوپه حدیث کښې په صیغه دمفردسره هم مستعمل دې اوپه صیغه دجمع سره هم مستعمل دې نو چرته چه په صیغه دجمع سره راغلیدې نو دا یا په اعتبار دتعدد دموزوناتو سره دې څکه چه موزونات ډیردی یاجمع دپاره دتفخیم شان ده. لکه په یوروایت کښې دحضرت عائشه رضی الله عنها نه مروی ده چه دَ میزان کفتین، دومره لوئی دی چه تول

اسمانونه اوزمکې په کښې راتلې شی نوملائکو اووئیل چه ((یاربنا من تزن بهذا)). یعنی په دې کښې به څوک تللې شی، نوالله تعالی اوفرمائیل ((ازن به مَن شِئْتُ من خلقی)) په بل روایت کښې دی چه داؤد علیه السلام سوال اوکړو دخپل رب نه چه ماته میزان اوښایه. نوچه اونی لیدلو نوبی هوش ارتاؤشو. نوچه کله هوش کښې راغلونواووې وئیل یا الهی څوک قادریږی؟ ددې میزان دیو کف دډکولو په حسناتو سره، نوالله تعالی ورته اوفرمائیل چه اې داؤد زه چه کله راضی شم دیوبنده نه نو. ((ملأته بتمرةٍ واحدةٍ، یا داؤد اَمْلَؤُها بکلمةِ لااله الاالله)) دا ډکوم په یو کجورې سره اوپه کلمې د ((لااله الاالله)) سره (قسطلانی)

﴿وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِيْنُهُ﴾ داتخویف دې،﴿وَلَقَدْ مَكَّنّٰكُمْ﴾ داترغیب دې قبلولو ددعوت درسول پاک صلی الله علیه وسلم ﴿مَعَايِشَ﴾ اسباب دژوند تیرولو و

وَلَقَدْ خَلَقْنٰكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنٰكُمْ ثُمَّ قُلْنَا

اوبه تحقیق سره پیداکړی یئ مونږ تاسوبیاشکلونه درکړیدی مونږ تاسوته. بیا (داهم واوری) چه ویلی وو مونږ

لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ ۖ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ۭ لَمْ يَكُنْ مِّنَ السّٰجِدِيْنَ ⑪ قَالَ

ملائکو ته چه سجده وکړئ آدم ته. پس سجده وکړه دوئ مگر ابلیس . نه وو دې د سجده کوونکو نه الله تعالی وه ویل

مَا مَنَعَكَ اَلَّا تَسْجُدَ اِذْ اَمَرْتُكَ ۭ قَالَ اَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ ۚ

چه څه شی منع کړې ته. چه سجده دې ونکړه کله چه ما حکم وکړو تاته. وه ویل ابلیس چه زه غوره یم د ده نه

خَلَقْتَنِيْ مِنْ نَّارٍ وَّخَلَقْتَهٗ مِنْ طِيْنٍ ⑫

(ځکه) چه پیدا کړې دې یم زه د اُور نه او پیدا کړې دې آدم د خاورونه

﴿وَلَقَدْ خَلَقْنٰكُمْ﴾ داتمهیددې مضمون دنفی دتحریمات غیرالله ته. حاصل ئې دادې چه الله تعالی فرمائی چه ما آدم علیه السلام پیداکړو اوفرشتوته مې دسجدې حکم اوکړواوابلیس دنافرمانئې په جه ملعون شوو اودآدم علیه السلام ادوحواء. سره ئې دشمنی شروع کړه اودوئ نه ئې وسوسې واچولې اوپه جنت کښې ئې ترینه لباس کېږې. اوباسلی اودجنت نه ئې باهرته راؤباسل. اوس ستاسونه په کعبه کښې کپړې اوباسی. اوتاسوته وائی چه په حالت دطواف

خپلې كېږې مه اغوندئې. دادګناه كېږې دى ، نولكه چه څه رنګه ئې ستاسودنيا نيكه
په جنت كښې كېږې اوباسلى دى نودغسې ستاسونه په حالت دطواف دبيت الله كښې
كېږې اوباسل غواړى، حاصل داچه داتمهيد دې نفي دشرک فعلى. «تحريمات غيرالله، نه . د
خلقنكم)) معنى داده ((خلقنا اباءكم طينًا غيرمصوّرٍ)) ﴿ ثُمَّ صَوَّرْنَٰكُمْ ﴾ ((اى صورنا آباءكم ثم
قلناللملائكة - الخ)) دآدم خلقت اوتصويرنازل كړې شو په منزله دخلقت اود دتصوير دبنى آدم .
ځكه هغه ابوالبشردې. يا مرادد ((خلقنكم)) نه خلق دې په صُلب الاباء كښې. اود ((صورنكم))
مراد فى ارحام النساء دې. يادخلق نه مرادپيداكول دمادې دانسان دى په مختلفواطوارو
نطفه، علقه، مضغه، اودصورت نه مراد صورت انسانى دې لكه ﴿ ثُمَّ أَنشَأْنَٰهُ خَلْقًا آخَرَ ﴾ او
په دې دواړوتوجيهينوسره ﴿ ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ ﴾ (ثم) دتراخى ذكردپاره دى. دتراخى زمانى
دپاره نه دې ځكه چه واقعه دسجوددملائكو آدم عليه السلام ته دبنى آدم دخلق نه مخكښې وه

﴿ مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ ﴾لازائده دې لكه په سورت ص ۲۵ كښې بغيرد لا . نه راغليدې يادلته
تقديردې ((اى مامنعک عن السجود ان لاتسجد)) يا مَنَعکَ په معنى داحوج، اضطرک. سره دې
ځكه چه څوک منع كړيشى نوهغه مضطرشى خلاف ته. معنى داچه ته څه څيز مجبوركړې په
سجده نه كولوباندې. ﴿ إِذْ أَمَرْتُكَ ﴾ددينه معلومه شوه چه ابليس ته هم امرشوې وو. ﴿ قَالَ أَنَا۠ خَيْرٌ
مِّنْهُ ﴾ داجواب په ظاهركښې دسوال سره مطابق نه دې، ځكه سوال شوې ووپه باره دمنع عن
السجودكښې، اوپه جواب كښې ئې دغوره والى ذكردې. ليكن داجواب فى الحقيقت بحسب
المعنى مطابق دې دسوال سره. يعنى مانع دادې چه زه افضل اوغوره يم. اوافضل خومفضول
ته سجده نه كوى بلكه پكارده چه مفضول دې افضل ته سجده اوكړى، نوآدم عليه السلام دې ماته
سجده اوكړى . دلعين جواب په دوؤ مقدمتينو باندې مشتمل دې «صغرى. كبرى» اول داچه
زه افضل يم. دويم داچه دَ افضل مفضول ته سجده مناسب نه ده. اوبنيادددې جواب
كبراوحسددې اودواړه مقدمتين عقلاً اونقلاً باطل دى. نقلاً خوظاهره ده اوعقلاً له دې وجې
نه چه كله ديو مصلحت دپاره دې افضل مفضول ته سجده اوكړى چه هغه مصلحت حاصل شى،
نوكبرى غلط دې، اوداخبره دَ لعين چه زه غوره يم نوددې دليل داسې وائى چه ﴿ خَلَقْتَنِى مِن نَّارٍ
وَخَلَقْتَهُۥ مِن طِينٍ ﴾ چه زه دنارنه پيدايم اونارغوره دې اوځوک چه دغوره نه پيداوى نوهغه هم

غوره او افضل وی اوآدم علیہ السلام دَ خاوري نه پیدادي. اوخاوره مفضول، ناغوره، ده اودمفضول نه پیداشوې څيزهم مفضول او ناغوره وی- نودادليل هم نقلا اوعقلاباطل دي نقلاظهردي اوعقلاله دې وجې نه چه اول خوداخبره غلطه ده چه نارافضل دي دخاوري نه بلکه خاوره غوره خکه په دې کښې حلم، وقار،صبر تواضع صفات دی اوپه نار کښې خفت ،حدة وارتفاع دی. نوظاهره ده چه دخاورې صفات دنارنه ډيرغوره دی . اوهمدارنګه دخاورې نه میوې، ګلونه فصلونه اوډيرپيداوارکيږی . اوپه نار کښې دا فوائد نشته دي، اودويم داچه داخبره غلطه ده چه څوک دغوره نه پیداوی هغه به هم غوره وی، بلکه کله دافضل نه مفضول پیداشی اودارنګه بالعکس دنوح علیہ السلام نه کنعان پيدادي اودآزرنه ابراهیم علیہ السلام پيدادي.

**فائده** لعين دصريح حکم انکارکړيدي اودصريح نص په مقابله کښې ئی عقلی قیاس ذکرکړيدي، نوداشرعی قیاس نه دي، شرعی قیاس حجت شرعی دي. قرطبی وئيليدی چه په دي باندې دامت اجماع ده، چه قیاس دلیل شرعی دي اوددې دپاره ئي دلائل اونظائر ذکر کړيدی، البته دصريحی نص په مقابله کښې قیاس کول فعل دابليس دي. لیکن دمجتهدینو قياس، دنص په مقابله کښې نه وی بلکه علت دقیاس مستنبط وی دنص نه. نوداسې قیاس دنص مقابل ګرځول جهالت دي

قَالَ فَاهْبِطْ مِنْهَا فَمَا يَكُوْنُ لَكَ اَنْ تَتَكَبَّرَ فِيْهَا فَاخْرُجْ

وفرمايل الله تعالی پس کوز شه د دې ځائ نه پس ندی مناسب تالره چه لوئی وکړې ته په دې ځائ کښې. پس وځه

اِنَّكَ مِنَ الصّٰغِرِيْنَ ۝ قَالَ اَنْظِرْنِيْٓ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ۝ قَالَ

بيشکه ته د ذليلانونه ئی وه ويل ده مهلت راکړه ماله د ورځې د بيا ژونديکيدلو پورې وه ويل الله پاك

اِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ ۝ قَالَ فَبِمَآ اَغْوَيْتَنِيْ لَاَقْعُدَنَّ

بيشکه ته د مهلت درکړې شوؤ نه ئې. نو ده وه ويل نو پس په سبب د دې چه تا زه ګمراه کړم خامخا به کېنم زه

لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيْمَ ۝ ثُمَّ لَاٰتِيَنَّهُمْ مِّنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ

دوئ ته د ډاکو په شان په نيغه لار ستا بيا به خامخا رازم دوئ ته د مخکښې طرف د دوئ نه او د شا د طرف د دوئ نه

وَعَنْ أَيْمَانِهِمْ وَعَنْ شَمَآئِلِهِمْ وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَٰكِرِينَ ۞

ر د ښي طرف د دوئ نه او د گس طرف د دوئ نه. اونه به مومې ته اکثر د دوئ نه اطاعت کوونکي

قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُومًا مَّدْحُورًا ۖ لَّمَن تَبِعَكَ مِنْهُمْ

وفرمائل الله تعالى وزه د دې ځای نه بد ويلي شوې رټلي شوې. خامخا چاچه تابعداري وکړه ستا د دوئ نه

لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنكُمْ أَجْمَعِينَ ۞

خامخ ډك به كړم جهنم ستاسو ټولونه

﴿ قَالَ فَاهْبِطْ مِنْهَا ﴾ ضمير ياراجع دې جنت ته. ياراجع دې منزلې اومرتبې يعنى ذليل شه. ياراجع دې اسمان ته. درمنثورپه روايت دابن جريرسره نقل كړيدى چه جناتو شرارت اوكړونوفرشتودوئى ته سزاوركړه اوئى شړل- اوابليس په دوئى كښې وړوكي بچي وو. نوفرشتو آسمان ته اوچت كړو(ناري اونوري دواړه چونكه لطيف دي) نودفرشتو سره يوزائي په عبادت كښې مشغول وو. نوچه دسجدې كولوحكم اوشو نوفرشتودحكم تعميل اوكړو اوابليس دانكارپه وجې ملعون شو نوحكم ورته اوشوچه چه دآسمانونو نه خارج شه

﴿ فَمَا يَكُونُ لَكَ أَن تَتَكَبَّرَ فِيهَا ﴾ دابليس دانكاركولواصلي وجه تكبراوحسدوو تكبرمطلقا مذموم اوبددي ليكن په مجلس دمطيعينوكښې زيات مذموم دي نواسمانونه محل دمطيعينودي نوددې تخصيص ځكه اوشوچه دلته گناه اوتكبر زيات قبيح دي. لكه چاته چه اوئيلي شي چه په مسجدكښې غيبت مه كوه داگناه دې مقصودداوى چه په مسجدكښې غيبت كول زيات گناه اوزيات قبيح دي، اوپه ﴿ إِنَّكَ مِنَ الصَّاغِرِينَ ﴾ كښې يواشاره ده ديته چه داهبوط په طريقه دذلت سره دي اوپه خلاف دهبوط دآدم عليه السلام نه چه هغه په طريقه د ذلت سره نه دي. اوبل اشاره ده ديته چه بدله دتكبرذلت دي. ﴿ قَالَ أَنظِرْنِي ﴾ شيطان مهلت طلب كړو ديوم البعث پورې دپاره ددې چه دمرگ نه بچ شي اوانسانان گمراه كړي ليكن الله تعالى ورته مهلت وركړو ديوم الفناء پورې يعنى دنفخ اولى پورې لكه په سورت حجركښې ((الى يوم الوقت المعلوم)) دي. اوددې آيت نه هم معلوميږي چه مهلت ورته د نفخ اولى پورې وركړى شوې دي ځكه د ﴿ مِنَ الْمُنظَرِينَ ﴾ نه معلوميږي چه نورخلق به هم موجودوي. نودابليس

دعاقبوله شوه خوناتمامه قبوله شوه، اودابليس دعاقبليدل اوده ته مهلت ورکيدل. په دې کښې داالله جل جلاله د رحمکتونه دی اودانسانانو ابتلاء اوامتحان دې. اوددې آيت نه داهم معلومه شوه چه دعادکافرقبليدې شی، اوپه کوم آيت کښې چه راغليدی ﴿وَمَادُعَآءُالْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ﴾ نومراد ترينه دادې چه کفارچه په جهنم کښې داالله تعالی نه سوال اوکړی دنجات نودغه دعانه قبليږی، دامعنی نه ده چه دکافرهيڅ دعانه قبليږی.

﴿قَالَ فَبِمَآ اَغْوَيْتَنِيْ﴾ باء سببيه ده اومامصدريه دې ((ای بسبب اغوائک ايای))، اوداعلت دې د (لاقعدنّ) دپاره ياباء قسميه ده او(لاقعدن) جواب قسم دې،، حضرت تهانوی رحمه الله او نور علماء وائی چه دا دَ قهرالهی انتهائی سخت مظهردې چه ابليس ملعون مطرود شو نوپه دې وجې سره يوداسې حجاب حائل شو چه داالله تعالی عظمت اوجلال دده نه مستورشو اوبی حيائی پۀ ده مسلطه شوه، نودداسې قسم کلام کولوجرات ئی اوکړو چه دلته مذکوردې ﴿لَاَقْعُدَنَّ لَهُمْ﴾ مراد دقعود نه کيناستل دی دګمراه کولو اودايمان لوټ کولودپاره لکه ډاکو. قطاع الطريق چه ډاکه کولودپاره په لاره کښې کينی (لهم) په معنی د ((لاضلالهم ولاغوائهم)) سره دې، ﴿صِرَاطَكَ﴾ منصوب دې بناپه ظرفية، ياعلی مقدردې اوصراط مستقيم هغه لارده چه هغې باندې تللوسره وصول الی الله کيږی چه ابتداء دهغې لااله الاالله (توحيد) دې ﴿لَاٰتِيَنَّهُمْ مِّنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ﴾ يعنی دوئ ته وسوسې اچولو دپاره به دَ څلورو اطرافونه رازم، مخکښې طرف، شاطرف، يمين، يسار، شيطان دفوق نه نشی راتلې ځکه دفوق طرف نه رحمت راځی، اوتحت نه هم نشی راتلې دوجې دتکبرنه. اوبعض وائی چه داکنايه ده دټولو اطرافو جوانبونه يعنی احاطه ترينه مراد ده اوبعض وائی چه د ﴿مِّنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ﴾ نه مراد انکاردې دقيامت نه اود ﴿خَلْفِهِمْ﴾ نه مرادمشغول کول اومتوجه کول دی دنياته اود ﴿اَيْمَانِهِمْ﴾ نه مرادمنع کول دی دحسناتونه. او د (شمائلهم) نه مرادمبتلاء کول دی په معاصيو کښې يادېمين نه مرادقوی دې يعنی حاکم اومالدار به په ظلم اوګناه اماده کوم، اودشمال نه مرادضعيف، محکوم. غريب دې يعنی هغه به په سرقه .خيانت وغيره باندې اماده کوم. ﴿شٰكِرِيْنَ﴾ ((ای موحدين)) (خازن ابن کثير، ((مطيعين)) (جامع البيان ، شربينی) اوکه څوک **سوال** اوکړی چه لعين خبيث ته دغه

علم څه رنګه حاصل شو چه اکثر به په دوئ کښې ناشکري کونکي وي. جواب (١). دا په طريقه د ظن سره لکه ﴿ وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ ﴾ (سبا ٢٠). څکه چه دا نه معلومه شوه چه مبدء الشر په انسان کښې متعدد امور دي شيطان، نفس، هوى. اومبداء الخير ملک ملهم دی.

(٢) اويائی دا دملائکونه اوريدلی دی. ﴿ قَالَ اخْرُجْ ﴾ دادعاده بعدعهدده. اول حکم دخروج به طريقه دفيصلي سره وواوداحکم نافذکول دامردی. يا اول حکم داخراج وو دجنت نه اودويم حکم خروج دې د آسمان نه. ﴿ مَذْءُومًا ﴾ په معنی دمذموم سره دې. ذام. اشدالعيب دی سره دحقارت نه. (محقوراً ممقوتا) ﴿ مَّدْحُورًا ﴾ ای مطروداً. شړلي شوي اورټلي شوي د رحمت الهی نه.

﴿ لَّمَن تَبِعَكَ ﴾ لام مؤطئه للقسم دې اوداتخويف دې انسانانوته په اتباع دشيطان باندې

﴿ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ ﴾ داجواب قسم اوسدمسددجواب شرط دې ﴿ مِنكُمْ ﴾ نه مراد ابليس او ذريت دده، او اتباع دده دی

وَيَا آدَمُ اسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ فَكُلَا مِنْ حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا

او اې آدم او سيږه ته او بی بی ستا په جنت کښې پس خورئ دهغې ځائ نه چه خوښه وی ستاسی اونږدې مه ورزئ

هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الظَّالِمِينَ ۝ فَوَسْوَسَ لَهُمَا الشَّيْطَانُ

دې ونې ته (کنی) پس شئ به تاسې د ظلم کوونکو په خيل خان پس وسوسه واچوله دې دواړو ته شيطان.

لِيُبْدِيَ لَهُمَا مَا وُورِيَ عَنْهُمَا مِن سَوْآتِهِمَا وَقَالَ مَا نَهَاكُمَا

انجام ئې دا شوچه ښکاره شی دوئ ته هغه چه پټ وو ددوئ نه، عورتونه د دوئ. اووې ويل چه نه يې منع کړی تاسو دواړه

رَبُّكُمَا عَنْ هَٰذِهِ الشَّجَرَةِ إِلَّا أَن تَكُونَا مَلَكَيْنِ أَوْ تَكُونَا مِنَ الْخَالِدِينَ ۝

رب ستاسی د دی ونی نه مګر لپاره د احتياط د دې نه چه شئ به تاسو ملائکې يا به شئ تاسو دهميشه ناسی کېدونکو نه

وَقَاسَمَهُمَا إِنِّي لَكُمَا لَمِنَ النَّاصِحِينَ ۝ فَدَلَّاهُمَا

اوقسم ئې ورکړو دې دواړوته چه بيشکه زه ستاسو لپاره د خير خواهانو نه يم. نو پس لاندې مرېئې ئې راکوز کړل دواړه

بِغُرُوْرٍ ۚ فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا سَوْاٰتُهُمَا وَطَفِقَا

په دهوکې سره پس هرکله چه اوڅلکه دوئ ونه. ښکاره شو دواړو ته عورتونه د دوئ او شروع سو دواړه

يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ ؕ وَنَادٰىهُمَا رَبُّهُمَآ اَلَمْ اَنْهَكُمَا

چه نګولې ئې په خان باندې د پاڼو د جنت نه. او آواز وركړو دواړوته رب د دوئ آيا ما نه وئ منع كړې تاسو

عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ وَاَقُلْ لَّكُمَآ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿٢٢﴾

د دې ونې نه؟ او نه وؤ ويلې ما تاسو ته چه بيشكه شيطان ستاسو دشمن ښكاره دې

﴿ وَيٰۤاٰدَمُ اسْكُنْ ﴾ دابيان د اعزاز دآدم علیه السلام دې او اظهار دانعام الهي دې په آدم علیه السلام چه شيطان ورته تحقير كړې وو. ﴿وَلَا تَقْرَبَا﴾ مراد نهي دقربان ‹نزدې كيدلو› عمداً او قصدا ده چه هغه سبب دظلم دې. سهوه نسيان دنهي ماتحت نه راځي نو هغه سبب دظلم نه دې حقيقةً بلكه په سهوه نسيان سره قربان صورةً ظلم دې نه حقيقةً ﴿ فَوَسْوَسَ ﴾په دې آيت كښې دوسوسې ذكر دې سره دتفصيل نه. اوكه څوک **سوال** اوكړي چه ابليس خودجنت نه خارج شونوبيائې وسوسه څه رنګه واچوله . **جواب** كيدې شي چه دخروج نه مخكښې ئې وسوسه اچولې وي. چه الله تعالى آدم علیه السلام ته د ((اسكن)) حكم اوكړواوابليس ته ئې د ((اخرج)) حكم وكړو نومتصل ئې وسوسه واچوله. اودلالت كوي په دې باندې. فاء چه دتعقيب مع الوصل دپاره ده. اوداهم كيدې شي چه ددروازې دجنت ئې ورته وسوسه اچولې وي. اوداهم كيدې شي چه دلرې نه ئې په څه ذريعه سره ‹موبائل.فون› وسوسه اچولې وي ﴿لِيُبْدِيَ﴾ لام عاقبت دې يعني انجام ئې داشوچه چه ظاهرشو عورتونه ددوئ . يالام دعلت دې اولعين ته مخكښې ددې خبرې علم حاصل وو چه عصيان اګركه جنت كښې وي خوداسبب دې دسلب دلباس اونورونعمتونو دپاره ﴿مَا وٗرِيَ﴾ اى غطى. يعنى هغه چه پټ كړې شوى وو .په صيغه دمجهول كښې اشاره ده دينه چه عورت دانسان طبعًا فطرةً پټ والې غواړي اوښكاره كول ئې بد اومخالف دى دفطرت انسانى نه . ﴿سَوْاٰتِهِمَا﴾ دسوء نه ماخوذدې دبدن هغه حصه ته وئيلې شي چه دهغې په ښكاره كيدلو سره انسان فطرةً خفه كيږي ﴿وَقَالَ﴾ دانفصيل د وسوسې دې ﴿اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَا﴾

(اي الا كراهة ان تكونا)). ﴿مَلَكَيْنِ﴾ يعنى تاسو ته به قوة ملكي حاصل شي لكه استغنا .
غذاء نه وغيره يابه مشابهت ستاسو د ملائكو سره راشي په ډيرو صفتونو كښې. چه غذا ته
به ضرورت نه وي.عمر به ډيروي. قدرت به لرئ په هرقسم شكلونو جوړلو . اوپه يوآن كښې
په طويل مسافت قطع كولو .﴿أَوْ تَكُونَا مِنَ الْخَالِدِينَ﴾ داترقى ده دماقبل ((اى بل تكونامن الخلدين))
دمرګ اوفناء نه به هم بچ شئ. يعنى په اكل دشجره كښې دغه فائدې دى چه ماته معلوم دى
ځكه چه زه ستاسونه مخكښې پيداشوي يم،(مشريم) څما تجربې. معلومات ډيردې. څماخبره
اومنئ. نوداخبرې ئى ورته دخير خواهئ په لهجه كښې پيش كړې اوبيائى ورته په دې باندې
قسم هم اوكړو. اوآدم عليه السلام اوحواء ددينه مخكښې دروغ نه وؤ اوريدلى. اوداګمان ئى نه وو چه
څوك به د الله تعال په نوم باندې په دروغه قسم خورى. نوځكه ئى ورته تصديق اوكړو

﴿وَقَاسَمَهُمَا﴾ داصيغه دباب مفاعله ده مفاعله د طرفينونه وى. نو دلته ابليس قسم كړې
دې او آدم اوحواء تصديق د قسم كړيدې نوګويا كښې قسم دطريفينوره وشو .(مدارك. ياباب
مفاعله دمبالغ دپاره ده يعنى ډير كلك قسم ئى ورته اوكړو ﴿فَدَلَّاهُمَا﴾ ښكته ئى را كوز كړل
مرتبې د اطاعت نه معصيت ته. ((دلى الدلوفى البئر)) نه ماخوذدې. اوبعض وائى چه معنى ئى
داده چه طمع ئى وركړه دواړوته، دا ماخوذ دي دتدلية العطشان نه. داهلته وئيلې شى چه
څوك كوهى ته داوبوپه طمع لاړشى اواُوبه ورته ملاؤنه شى. ﴿فَلَمَّا ذَاقَا﴾ ددينه مراداكل قليل
دې ﴿بَدَتْ لَهُمَا سَوْآتُهُمَا﴾ داجمهوروپه نيزپه ظاهرمحمول دي چه حقيقةً كپړې دبدن نه
جداشوې وې په قرينه دمابعدسره چه

﴿وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ﴾ اى يلزقان. پيوست كولې. اوګنډل ئى پاڼې ديوبل سره دپاره ددې
چه په هينت دجاموشى. ﴿عَلَيْهِمَا﴾ ضميرراجع دې آدم اوحواء عليهما السلام ته، اومضاف
مقدر دې ((اي على سوأتهما)) يا ((بدنهما)) يا ضمير راجع دې ((سوأتهما)) ته نوحاجت نشته
دې تقدير دمضاف ته

**فائده** داالله تعالى اولاددادم عليه السلام ته يونمونه پيش كړه . چه په جنت كښې .لباس.
اونورنعمتونه انسان ته پخپله راځى ليكن هركله چه دالله تعالى دحكم خلاف اوكړې شو.
نونعمتونه سلب شو ،اودسترپه ځائې كشف ،اودجلب دنعمتونويه ځائ. سلب راغى.

نو طاعت جالب دنعمتونو او ساتر دعيوبو دې او معصيت سالب دنعمتونو او كاشف دعيوبو دې امام رازى اونور مفسرين حضرات وائى چه ددې نه معلومه شوه چه شرم، حجاب دانسان دپاره فطرى اوطبعى امر دې اوبى شرمى، بى حجابى. انسان دانسانيت نه ابليسيت طرف ته ښكته راغورزوى او بى حجابى طبعًا او عقلاً مستهجن اوقبيح كار او د انسانيت خلاف دې

﴿عَن تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ﴾ ((تل)) په اصل كښې ((تى)) دې د اسم اشاره ده واحد مؤنث دپاره يا ورسره لام ساكن دبُعد دپاره ضم شو. نو د التقاء دساكنينو دوجې نه (ياء) حذف شوه نو (تل) پاتې شو. او (كما) ضمير ـ تثنيه دلالت كوى په حال دمخاطب. دلته مشاراليه واحد مؤنث دې چه شجره ده. اومخاطبين دوه دى. نوددې وجې نه اسم اشاره د واحد مؤنث اوضمير د تثنيه ذكر شو. ﴿تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ﴾ معنى داده. دغه ونه تاسو دواړو ته وايم

قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنفُسَنَا ۚ وَإِن لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا

وه ويل دواړو اې ربه زمونږ نقصان كړيدې مونږ د خپلو ځانونو. اوكه بښنه ونكړې ته مونږ ته او رحم ونكړې په مونږ

لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ ۝ قَالَ اهْبِطُوا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۖ

خامخا شو به مونږ د تاوان والوؤ نه وفرمايل الله تعالى چه كوز شئ بعضې ستاسې د نورو بعضو لپاره دشمنان به وى

وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَاعٌ إِلَىٰ حِينٍ ۝ قَالَ

او ستاسو لپاره په زمكه كښې ځائ د اوسيدلو دې او نفع اخستل دى تر يووخت پورې وفرمايل الله تعالى

فِيهَا تَحْيَوْنَ وَفِيهَا تَمُوتُونَ وَمِنْهَا تُخْرَجُونَ ۝

چه په دې زمكه كښې به تاسو ژوند تيروئ او پدې كښې به مره كيږئ او د دينه به راوباسلې شئ

﴿قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنفُسَنَا﴾ حضرت ادم عليه السلام اوحواء نهايت تضرع اوعجزى پيش كوى (ربنا) په حذف دحرف نداسره دې. اوحذف دحرف ندادپاره دمبالغې فى التعظيم دې. ځكه په نداء كښې معنى دطلب اودامروى. نداء طلب الاقبال. ته وائى. نوحرف نداء حذف شو دپاره داحترازدامرنه. اوظلم په معنى دضررياد نقصان سره دې يعنى دحكم دخلاف كولو په وجه. مونږ خپل ځان ته ضرروررسؤ چه دجنت نه خارج شو. تاته څه ضررنشى رسيدلى

﴿وَإِن لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا﴾ داطلب دمغفرت دي. اوصیغه دامر (اگرکه ددعادپاره وی) ذکر نشوه
دمبالغې په تعظیم د رب اوپه تضرع خپله کښې د (غفر) نه مراد ستر د ذنب اوعیب دي
رحم نه مراد. احسانات کول دی، یعنی ستانه ماسوی زمونږ هیڅ اسره (سهاره) نشته دي.
زمونږ په عیوبو پرده واچوه. اوزمونږ سره احسانات اوکړه. اوکه ته مغفرت اورحم اونکړي
زمونږ به ډیرنقصان مندشو. نوداسوال دي په طریقه دعریضه پیش کولوسره دپاره دمبالغې
تضرع اوعاجزئ کښې

**فایده** دائمواربعؤاوسلفوانفاق دي په دې خبره چه انبیاء علیهم الصلات والتسلیمات
معصوم دی دهرقسم گناه نه قبل دنبوت نه هم اوپس دنبوت نه هم. نوپه کومونصوصوکښې
چه دنبي په شان کښې لفظ د (ذنب) یا د (عصیان) راغلي دي یادمغفرت ذکروی لکه په دي
کښې نواکثر اهل سنت وائی چه د «ذنب. سیئه. معصیت» دپاره دمتفاوت افراد.
درجات دی. (گویا دا یوکُلی مشکک دي چه افرادئی متفاوت دی) دنبی ذنب. معصیت او
سیئه په اصل کښې حسنه وی فی نفسه. خودهغه دلوئ شان سره مناسب نه وی ځکه چه دهغه
شان سره «احسن» مناسب وی. نود احسن ترک اوپه حسن اتیان کول گویاکه دهغوئ دپاره
معصیة. اوسیئه ده او ددې وجې نه وئیلې شی «حسنات الابرارسیئات المقربین» چه دعامو
نیکانو حسنه. داعلی درجې نیکانو. مقربینو دپاره سیئه ده نودهغوئ یوفعل ته. سیئه وئیل
دا په حقیقت کښې دهغوئ اعلی رتبی اومقام ته اشاره ده. اونه ده سیئه دمقربینوپه شان
سیئه دعوامو. دا صرف اشتراک لفظی دي حقیقت ددواړوجداجدادي. اوهم دغه شان
«مغفرت» او«توبه» دخواصوعفوه دگناه نه وی. گناه خونشته دي. بلکه توبه. اومغفرت.
دخواصو. په حقیقت کښې رفع ددرجاتوددوئ وی. اودارنگه چه انبیاؤ خپل ځان ته دظلم
معصیت نسبت کړي دي نودا دکسر نفسی اوتضرع دپاره علامه شربینی وائی. عادت
دمقربینو دادي چه «استعظام الصغیرمن السیئات ،وتحقیرالعظیم من الحسنات» صغیره سیئه
خلاف الاولی ورته کبیره ښکاری. اوکبیره حسنه ورته حقیره ښکاری. علامه الوسی وائی.
«والکثیرمن اهل السنة جعلوه من باب هضم النفس بناء علی ان ماوقع کان عن نسیان ولاکبیرة
ولاصغیرة معه». علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله وائی چه مخالفت دامرتشریعی اونهی
تشریعی نه. معصیت گنړلې شی. لیکن کوم امراونهی چه دشفقت دپاره وی لکه مریض ته چه
اووئیلې شی داقسم خوراک ستا دپاره مفیددې داخوره . او دا بل قسم خوراک مفید نه دي

پرهيز برينه اوكره. لكه داقسم امرنهي په نبوی طب اونوروډيرواحاديثوكښې موجوددي.
خومقصود ترينه تشريع نه وی بلكه دشفقت .اودل سوزئ په بناء وی نوددي قسم امر. نهي
مخالف . معصيت نشي گرزيلي. نوكيد شي چه نهي داكل دشجري نه هم داقسم وی .څكه
جنت دارتكليف نه دي او د ﴿فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقَىٰ﴾ (طه) نه هم اشارة معلوميږی .
﴿ قَالَ اهْبِطُوا ﴾ دقبول دتوبي نه پس دهبوط حكم كښي اشاره ده چه داخروج دجنت نه به طور
داعزاز سره دي څكه چه خلافت اعزاز دي اودا خروج په طور دذلت سره نه دي. او ضمير د
جمع نه مراد آدم عليه السلام حواء. اوابليس دی يا خطاب فقط آدم او حواء ته دي او د جمع نه مراد
تثنيه ده لكه په سورة «طه» كښي ((اهبطا)) په صيغه دتثنيه سره دي. يا داجمع په
اعتباردذريت سره ده څكه دوئ مشتمل دی په خپل اولادباندي. ﴿بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ﴾ يعنی
ابليس ستاسواوستاسوداولاددپاره .ازلي ابدی دشمن دي. صرف په دي ضرر رسولو سره د
ده دشمنی نه ده ختمه اوزړه ئ نه دي يخ شوي. ترڅوچه ستا اولاد ئ جهنم ته نه وی رسولي .
يا دامعنى ده چه په زمكه كښي به ستاسو اولاد ديوبل دپاره دشمنان وی نودا روحاني تكليف
دي. آدم اوحواء ته. اودجنت نه راوباسل جسماني تكليف وو. ﴿وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَاعٌ إِلَىٰ
حِينٍ﴾ تسلى ده چه دا تكليف دلگ وخت پوري دي ((حين)) نه مراد . وقت الموت. دي يا
انقطاع الدنيا مراد ده، دثابت بناني رحمه الله نه منقول دی چه حضرت آدم عليه السلام چه زمكي ته
راكوزشو اودوفات وخت ئ راغلو نوفرشتي ترينه چاپيره شوي. اوحضرت حواء ترينه
چاپيره گرزيدله . نوحضرت آدم حضرت حواء ته اووئيل چه ته بيرته شه فرشتي درب خما ماته
پريږده. ماته چه څه تكليف رارسيدلي دي نوستا دوجي نه را رسيدلي دي. نو بيا چه كله
وفات شو نوفرشتو ورته غسل وركړو په اوبوسره اود بيري په پانړوسره. اوخوشبوئ پري
اولگوله اوكفن ئ ورته وركړو. په دري كپړوكښي .اولحدئ ورته جوړكړو او په سرانديب
كښي ئ دفن كړو. اولاد ته ئ ورته اووئيل چه دا ستاسوطريقه ده روستو ددي نه. ﴿ قَالَ فِيهَا
تَحْيَوْنَ ﴾ الله جل جلاله دوئ ته اوفرمائيل چه په زمكه كښي به ستاسوحيات وی اوبه زمكه
كښي به ستاسو ممات اوقبور وی اودزمكي نه به دقيامت په ورځ پورته كيږئ دحساب
اوجزاء دپاره. اومراد دحيات نه حيات متعارفه دي چه داپه زمكه كښي وی ليكن كه

غیرمتعارف حیات یعنی حیات په طریقه دخرق عادت سره دزمکي نه علاوه په آسمانونو کښې وی نو د دي نفی نشته دي نو اعتراض نه راځی په حیات دعیسی علیه السلام په اسمان کښې ځکه چه هغه په طریقه دخرق عادت سره دي

يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ قَدْ اَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُّوَارِيْ سَوْاٰتِكُمْ وَرِيْشًا ؕ

ای اولاده د آدم [1] په تحقیق سره مونږ پیدا کړیدی ستاسو لپاره لباس چه پټوی عورتونه ستاسو او لباس د ښائست.

وَلِبَاسُ التَّقْوٰى ۙ ذٰلِكَ خَيْرٌ ؕ ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ۝

او لباس د تقوی دا خو ډیر غوره دي . دا د نشانو د الله تعالی نه دی د دي لپاره چه دوئ نصحت قبول کړی

يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ لَا يَفْتِنَنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ كَمَآ اَخْرَجَ اَبَوَيْكُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ

ای اولاده د آدم [2] دهوکه دي نکړی تاسو لره شیطان لکه چه راوباسلی ئي ووْ مور اوپلار ستاسي د جنت نه

يَنْزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوْاٰتِهِمَا ؕ اِنَّهٗ يَرٰىكُمْ

ویستلي ئي د هغوئ نه جامي دهغوئ. د دي لپاره چه ښکاره کړی هغوئ ته عورتونه د دوئ. بیشکه دی وینی تاسو لره.

هُوَ وَقَبِيْلُهٗ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ ؕ اِنَّا جَعَلْنَا الشَّيٰطِيْنَ اَوْلِيَآءَ

دي او اولاد د ده . په داسې طریقې چه نه وینئ تاسو دوئ لره . بیشکه مونږ گرزولی دی شیطانان دوستان

لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝

دهغه خلقو لپاره چه ایمان نه راوړی

﴿ يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ قَدْ اَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا ﴾ دتمهیدنه پس دَ امرمقصودی یعنی نفی دترک فعلی ذکردي. دلته خطاب په ((یابنی ادم)) سره څلور واري شویدي دااول ځل خطاب دي مطلب ئی دادی چه لباس الله تعالی ددي دپاره پیداکړي دي چه تاسوبه دي سره ستردعورت اوکړئ. لهذابربنډطواف مه کوئ .((انزلنا)) په معنی د (خلقنا) سره دي اوتعبیر په (انزلنا) سره یاددي

[1] د تمهید نه بعد د اول امر مقصودی ذکر
[2] دوهم امر مقصودی

وجې نه اوشو چه اسباب دپيداكيدلو دلباس اسمانې دی. لكه باران ورول اودهغې په ذريعې سره بوټبه اوريښم .اوربړ. وغيره پيداكيدل نولباس صرف مصنوعې شئ نه دې يادذی وجې نه چه دزمكې هربركت منسوب كيږی آسمان ته. دلته دلباس دوه فائدې ذكرشويد اوله فائده ستردعورت دې. اوداډيراهم اوضروری دې نوددې وجې نه اول ذكرشو اوپه صيغه دفعل سره ذكرشو. نوكوم جديد لباس اوفيشن دنارينو يادزنانو چه په هغې كښې داعضاؤ .هينت ظاهركيږی نواگركه جلد،څرمن، په نظرنه راځی خوپه دې سره ستر د عورت مكمل نه حاصليږی نوداقسم لباس. لباس شرعی نه دې، اودويمه فائده دلباس دباقی بدن پټول دزينت دپاره. زينت تجمل چه دكبرپه وجې نه وی نومسنون اوموجب دثواب دې.لقوله تعالى ﴿خُذُوا زِينَتَكُمْ﴾ اوپه روايت دبخاری وغيره كښې دی چه نبی صلی الله عليه وسلم فرمائی ((كُلْ ماشئت والبس ماشئت ما اخطأتک خصلتان سرف ومخيلة))

**ترجمه** چه زړه دې څه غواړی هغه خوره اوچه زړه دې څه غواړی هغه اغونده په شرط ددې چه ددوؤ خبرونه ځان بچ ساتې يواسراف اوبل تكبراوپه بل روايت كښې دی ((انّ الله تعالى اِذا انعمَ عَلى عبدٍ احبَّ اَنْ يَّرٰى اَثَرُنِعْمَتِهِ عَلَيْهِ)) .

**ترجمه** الله تعالى چه كله په بنده انعام اوكړی نوپه دې خوشحاليږی چه دخپل نعمت اثرپه هغه اووينی. په بل روايت كښې دی : ((ان الله جميل يحب الجمال)) الله جميل دې جمال خوښوی

﴿وَرِيشًا﴾ دامنصوب دې عطف دې په ﴿يُوَارِي سَوْءَاتِكُمْ﴾ باندې نودلباس دوه صفته بيان شو چه يوستردې اوبل زينت دې، يا دا بيان دلباس ثانی دې، نومعنی داده چه ((انزلناعليكم لباسين)) نولباسين مقدردې، احدهما لباسًا يواری سواتكم، وثانيهما لباسًا ريشا، ای ذاريش)) ولفظ د ((ريش)) مصدر هم مستعمليږی اواسم هم مستعمليږی داپه اصل كښې ريش الطير .دمرغۍ وزر، نه وانی مرادترينه زينت دې لكه چه ريش الطير دهغه دپاره زينت وی. اودمجاهد رحمه الله اوسدی رحمه الله نه مروی ده چه مرادترينه مال دې، راشی، مرتشی. مال وركونكې اخستونكې. راشن چه ديونه مال اخلی اوبل ته ئ وركوی دلال، چه په حديث كښې مذكوردی هغه هم ددينه ماخوذ دی

﴿وَلِبَاسُ التَّقْوَىٰ﴾ ماقبل دحسی لباس بيان وو. اودلته دمعنوی لباس ذكردی. دالفظ سه

نصب سره هم راغلیدې، عطف دې په لباس باندې، اوو په رفع سره هم راغلیدې نو دامبتداء ده ﴿خَيْرٌ﴾ ورته خبردې اولفظ د ﴿ذَٰلِكَ﴾ رابط دې ځکه چه اسم اشاره په شان دضمیرده نو رابط کیدې، شی یاصفت دلباس دې، دلباس التقوی په معنی کښې مختلف اقوال دی. (۱) عمل صالح(۲) خشیة دَ الله تعالی. (۳) حیاء(۴) ایمان(۵) خه اخلاق عادات. معنی داده چه دالتقوی والالباس خودیر غوره دې دحسی لباس نه، ځکه چه دظاهری لباس په لرې کیدلو سره کشف دصرف عورت حسی رازی اودمعنوی لباس په لرې کیدلو سره کشف دعورت حسی اومعنوی دواړو رازيي، اوپه ظاهری لباس سره عارضی حسن وجمال رازی خوپه معنوی لباس سره دائمی حقیقی حسن اوجمال رازی. (شعر)

اذا انت لم تلبس ثیابا من التقی	عریتَ وان واری القمیصَ قمیصُ

(وقال ایضا)

لیس الجمال باثواب تزیّنها	بل الجمال جمال العلم والادب

اوبعض وائی چه لباس التقوی هغه جامه ده چه دشرع مطابق وی. چه شریعت دهغې داستعمال اجازت ورکړې وی لکه په احادیثو کښې اودفقه په کتابونو کښې په تفصیل سره ئ ذکرراغلیدې اوستردعورت پرې هم راځی.

﴿يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ لَا يَفْتِنَنَّكُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ﴾ دا دویم خطاب اوامرمقصودی دې. خطاب اولاً مشرکین عربوته دې اوبالواسطه تمام اولاددادم ته دې چه شیطان دې تاسوپه فریب اودهوکې سره گمراه نه کړی، ستاسو ،نیا ،نیکه، ته ئی په جنت کښې دهوکه ورکړه اوجامې ئ ترینه اوباسلې. اوس ستاسونه دلته په خانه کعبه کښې جامې اوباسی. مشرکین به چه حج له راغله نوپه خپلوجامو کښې به ئی دبیت الله طواف نه کوو. دابه ئی وئیل چه دادگناه جامې دی نو په دې کښې مونږ طواف نه کوو. قریشودمکې به ورته جامې ورکولې اوپه هغې کښې به ئ طواف کولو. لیکن ظاهره خبره ده چه هغه ټولوخلقودپاره نه کافی کیدلې نودوئ به بربنډ طواف کوو. اوخپلې جامې اغوستل به ئی حرام گڼړل ، نارینۀ اوزنانۀ ټولوبه عریاناً دخانه کعبی نه طواف کولو. اوداشعربه ئی وئیلو

الیوم یبدو کله اوبعضه	فما بدا منه فلا احـــــله

احلال معنی بی حرمتی قابل عذاب گڼړل. یعنی نن ورځ به یاټول عورت ځکاره ک

ـ بعض. لیکن عورت بربنډول بی حرمتی نه ګنړو. اوددې وجې نه نبی صلی الله علیه وسلم دحجة الوداع نه قبل حضرت ابوبکرصدیق رضی الله تعالی عنه امیرکړواواوئی لیګلو چه په مواسم الحج کښې څواعلانات اوکړی، منجمله دهغه اعلاناتونه داوؤ. ((ولایطوفن بالبیت عریان)). چه دانئنده دپاره څوک عریانًا طواف اونه کړی ، داخراج نسبت اود (ینزع) او (یری) نسبتونه مجازاً دی په طریقه دسببیت سره ﴿وَقَبِيلُهُ﴾ نه مراد (جنوده، ذریته) دې اوددې نه معلومه شوه چه دابلیس اولاداونسل شته دې.

﴿مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ﴾ یعنی شیطان اودهغه ذریت تاسووینئ په داسې طریقې سره .یا داسې ځائ نه چه تاسوئی نه وینئ نوددغسې دشمن نه ډیراحتیاط پکاردې. دشمن چه لیدې شی نودهغه دضررنه دحفاظت او بچ کیدلوفکر هم وی انسان سره اوطریقه ئی هم سوچ کولې شی لیکن چه نشی لیدلې نوانسان سره فکر هم کم وی او د بچ کیدلو طریقه ورته هم نوی معلومه. او شیطان لیدلې هم نشی اوضررئ هم ډیرخطرناک دې، چه دایمان په مرکزباندې حمله کوی. ﴿يُوَسْوِسُ فِي صُدُورِ النَّاسِ﴾ نودبچ کیدلو صرف یوصورت دې چه هغه تعوذ.او دالله تعالی په پناهئ کښې راتلل دی. اودائ چه فرمائیلی دی.

﴿لَا تَرَوْنَهُمْ﴾ (قضیه مطلقه عامه) ددینه مرادادې چه په عام عادت کښې نشی لیدې یاپه خپل اصلی شکل سره ئ عام خلق نشی لیدلې، اودامرادنه دې چه بالکل نه شی لیدلې لکه دامذهب دمعتزلودې ځکه چه دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله تعالی عنه جناتولره لیدل په صحیح رواياتوکښې ثابت دی اودحضرت ابوهريرة رضی الله تعالی عنه جنی لره لیدل درې شپې اوکلام کول په صحیح بخاری کښې مذکوردی .اودغه شان په صحیح روایت کښې دی ((ان عفریتا من الجن تفلت علیّ البارحة - الی آخره)) نودنبی دپاره په طریقه دخرق عادت سره لیدل ددوئ په اصل شکل سره ممکن دی. اودعامو خلقو دپاره ئی لیدل په بل شکل سره واقع اومشاهددی. ﴿أَوْلِيَاءَ﴾ دوستان اوملګری دګمراه خلقو. اوددینه معلومیږی چه مراددااولیاء نه په اول ددې سورت کښې. ﴿وَلَا تَتَّبِعُوا مِنْ دُونِهِ أَوْلِيَاءَ﴾ شیاطین مراددی

وَإِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً قَالُوا وَجَدْنَا عَلَيْهَا آبَاءَنَا وَاللَّهُ أَمَرَنَا

او کله چه وکړی څه بد کار. وائی دوئ چه موندلی دی مونږ پدې باندې خپل مشران. او الله تعالی امر کړیدی مونږ ته

بِهَا ۖ قُلْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَأْمُرُ بِالْفَحْشَاءِ ۖ أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ

ـه دي باندي. وه وايه چه بيشكه الله تعالى حكم نكوي چاته د بد كار. آيا جوړوئ تاسو په الله تعالى باندي

مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٢٨﴾ قُلْ أَمَرَ رَبِّي بِالْقِسْطِ ۖ وَأَقِيمُوا وُجُوهَكُمْ

هغه خبري چه تاسو ئې علم نه لرئ وه وايه چه حكم كړيدي رب خما په انصاف سره. او برابر كړئ مخونه خپل

عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ۚ

نلي ته په وخت د هر مونځ كښي او دعا غواړئ د هغه نه چه خالص كوونكي يئ هغه لره عبادت.

كَمَا بَدَأَكُمْ تَعُودُونَ ﴿٢٩﴾ فَرِيقًا هَدَىٰ وَفَرِيقًا

لكه چه الله اول پيدا كړي يئ نو دغه شان به دوباره پيدا كيږئ تاسو يوې ډلې ته ئې هدايت كړي دي او بله ډله

حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلَالَةُ ۗ إِنَّهُمُ اتَّخَذُوا الشَّيَاطِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ اللَّهِ وَيَحْسَبُونَ

ثابته شوي ده په دوئ باندي گمراهي. بيشكه دوئ نيولي دي شيطانان دوستان سوى د الله تعالى نه او گمان كوي دوئ

أَنَّهُمْ مُهْتَدُونَ ﴿٣٠﴾ يَا بَنِي آدَمَ خُذُوا زِينَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا

چه لار موندونكي دي دوئ اې اولاده د آدم : ونيسئ ښائست خپل په هر مانځه كښي او خورئ او سكئ

وَلَا تُسْرِفُوا ۚ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ ﴿٣١﴾

او د حد نه زياتي مه كوئ. بيشكه الله تعالى محبت نكوي د حد نه زياتي كوونكو سره

﴿وَإِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً﴾ داشكوي ده مراددفاحشه نه بربنډ طواف كول دي چه دوئ به ناريښو اوزنانو عريانًا طواف كوو. اوپه عورت خاصه به ئې لاس كيخودلي وو. اوجامي اغوستل به ئې حرام گنړلي. اوددې قبيح فعل دپاره ئې دوه دليلونه ونيل اول اتباع دمشرانو ﴿وَجَدْنَا عَلَيْهَا آبَاءَنَا﴾ دويم نسبت كول الله تعالى ته. دَ اول دليل رد په نورو آياتونو كښي مذكور دي ﴿أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ﴾ اوددويم دليل رد دلته مذكوردې. اول دا ﴿قُلْ إِنَّ اللَّهَ﴾ دويم داچه ﴿أَتَقُولُونَ﴾ دريم داچه ﴿قُلْ أَمَرَ رَبِّي بِالْقِسْطِ﴾ قسط عدل انصاف ته واني دلته نرينه

مراد .توحيددي. ﴿وَأَقِيمُوا﴾ داعطف دي په امربانديِ اوقال پکښې مقدردي ((اى امرربي وقال اقيموا)) .مخونه برابر اوسيدها کړئ قبلي ته په وخت دهرسجده کښې، ياخالص کړئ سجده خپله دپاره دالله تعالى،﴿وَٱدْعُوهُ﴾ دارددشرک فى الدعاء دي﴿كَمَا بَدَأَكُمْ﴾ تخويف دي. اودتشبيه مطلب دادي چه لکه څه رنګه انسان بربنډناسنته پيداشويدي نودغه شان به ئ حشرکيږى کمافى الحديث يادتشبيه مطلب دادي چه اعاده يعنى دوباره پيداکول الله تعالى ته اسان دى لکه اول پيداکول. يادتشبيه معنى داده چه لکه تاسوفريقين(دوه ډلي) وئ په دنياکښې.اهل شقاوت، اهل سعادت نودغه شان به ستاسواعاده وى په آخرت کښې. ياداچه دچاابتداء دخلق په شقاوت باندې وى نوهغه به عودکوى عمل داهل شقاوت ته اګرکه په درميان کښې عمل داهل سعادت وى ځکه چه اعتبارخاتمى لره وى. ادچاچه خلق په سعادت سره وى نوهغه به عودکوى عمل داهل سعادت لره.بناپه دي باندې جمله د ((فريقاً هدى)) حال دي دضمير د ((تعودون)) (اى تعودون حالة كونكم فريقين)، او ((فريقاً)) منصوب دي په اضمارعلى شريطة التفسيرسره.

﴿إِنَّهُمُ ٱتَّخَذُوا ٱلشَّيَـٰطِينَ أَوْلِيَآءَ﴾ دادروستوفريق سره متعلق دي ، ددينه معلومه شوه چه د ((ولاتتخذومن دونه اولياء)) نه مرادشياطين دى.﴿يَـٰبَنِىٓ ءَادَمَ خُذُوا زِينَتَكُمْ﴾ دا دريم خطاب اوامرمقصودى دي. اودمشرکينودعقيدى رددي چه ددوئ به په حالت دطواف کښې جامى نه اغوستلي اوبعض اهل عربو(بنوعامر) به په ايامودحج کښې طعام نه خوړلومګرپه قدردقوت اوبچ کيدلوسره دهلاکت نه. نوددوئ رداوشو﴿وَكُلُوا وَٱشْرَبُوا﴾ سره. خوراك سكاك په دومره مقدارسره فرض دي چه سرې پرې دَ هلاکت نه بچ کيږى او طاقت پرې حاصليږى په عبادت باندې. د ﴿مَسْجِدٍ﴾ نه مراد صلوة اوطواف دي. اود﴿زِينَتَكُمْ﴾ نه مرادثياب دى اوپه دې تعبيرکښې اشاره ده ديته چه دمونځ دپاره حتىٰ الوسع ثياب حسن اغوستل افضل دى. دحضرت حسن رضى الله عنه عادت وو چه دمونځ دپاره به ئې بهترلباس اغوستلواوفرمائيل به ئ چه الله تعالى ته جمال محبوب دي

﴿وَلَا تُسْرِفُوٓا﴾ اسراف په درې قسمه دي يودحاجت نه زياتې کول. په خوراک سکاک باندې کښې. دويم دحرام څيزخوړل يااغوستل. دريم حلال څيزپه خپل ځان حرامول اوپه دى

...یه‌برد﴿ وَلَا تُسْرِفُوٓا ﴾ معنی (لاتشرکوا) ده علامه شربینی لیکی ((ولاتسرفوابتحریم الحلال ...بالتعری فی الطواف اوبالفراط الطعام والشرب وعن ابن عباس، کل ماشئت واشرب ماشئت والبس ...ماشئت مااخطاک خصلتان، سرف ومخیلة))

قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللّٰهِ الَّتِىٓ اَخْرَجَ لِعِبَادِهٖ وَالطَّيِّبٰتِ مِنَ الرِّزْقِ ؕ

...ووایه چا حرام[1] کړې دي ښائست د الله تعالی. هغه چه پیدا کړې ئې دي لپاره د بندګانو خپلو او پاک حلال رزق.

قُلْ هِىَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ

...ووایه. دا نعمتونه په اصل کښې د مؤمنانو لپاره دي په ژوند د دنیا کښې. خالص به وی دوئ لره په ورځ د قیامت

كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ۝ قُلْ اِنَّمَا حَرَّمَ

...کښې به تفصیل سره آیتونه (احکامات) بیانوو مونږ دهغه قوم لپاره چه پوهیږی وه وایه بیشکه حرام کړیدی

رَبِّىَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَالْاِثْمَ وَالْبَغْىَ بِغَيْرِ الْحَقِّ

...رب خما بې حیا کارونه هغه چه ښکاره د دینه اوهغه چه پټ وی او هرګناه اوظلم کول په ناحقه سره

وَاَنْ تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا وَّاَنْ تَقُوْلُوْا

...او دا چه تاسو شریک وګرزوئ د الله تعالی سره هغه څوك چه ندې نازل کړې الله تعالی په هغې څه دلیل او دا چه تاسو ووایئ

عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ وَلِكُلِّ اُمَّةٍ اَجَلٌ ۚ فَاِذَا جَآءَ

به الله تعالی باندې هغه خبرې چه تاسو ئې علم نه لرئ او لپاره د هرې ډلې نیټه وی د عذاب. پس هرکله چه راشی

اَجَلُهُمْ لَا يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّ لَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ۝

...نیټه د دوئ (دعذاب به ورکړې شی) نو نه به روستو کیږی یو ساعت او نه به مخکښې کیږی د خپل اجل نه

﴿ قُلْ مَنْ حَرَّمَ ﴾ دابیان دتحریمات غیرالله دې مراددی﴿ زِينَةَ ﴾ نه ثیاب دی چه په هغې سره زینت حاصلیږی اوددې په عموم کښې تمام انواع دلباس داخل دی. سوای دهغې نه چه حرام

[1] - د تحریمات غیرالله بیان

دی په نص سره لکه ريښم اوسره زردناريئوډپاره اود ﴿وَالطَّيِّبٰتِ مِنَ الرِّزْقِ﴾ نه مراد تمام مستلذات،مزيدار،خوراکونه اومشروبات دی سوی دهغې نه چه نص وارد وی دهغې په حرمت

﴿قُلْ هِيَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ (هی) ضمیرطیبات یازینة ته راجع دې.اوددې آیت په تشریح کښې دوه احتماله دی اول داچه کلام په دې خائې باندې تام شو .چه ((قل هی للذین آمنوافی الحیوة الدنیا)) یعنی طیبات اوارزاق الله تعالی په دنیاکښې دمؤمنانوډپاره پیداکړیدی نوداحق دمؤمنانودې اوکفارخوغاصبان دی. یادوئ ته چه ملاویږی داختلاط اوجواردوجې نه ملاویږی. په دنیاکښې مؤمنان اوکافران د یوبل سره مخلوط دی او گاونډیان دی. نو کفارونه چه په دنیا کښې څه ملاویږی نودمؤمنانوپه وجه .اوداسې نه دہ چه مؤمنانونه دکفاروپه وجه ملاویږی، اوهرکله چه په آخرت کښې اختلاط.اوجوارختم شی نوبیابه داطیبات خالص دمؤمنانوډپاره شی اوکفاروته به هیڅ نه ملاویږی.﴿خَالِصَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾دا منصوب دې په فعل مقدرسره ((ای اخلصهاالله خالصة یاتصیرخالصة یوم القیمة للمؤمنین)) اویه دې تقدیرسره ماقبل کلام تام شو په دې خائې باندې ((هی للذین آمنوا)) دویم احتمال دادې چه خالصةً حال دې دجارمجرورنه یعنی دضمیرډمتعلق نه اوحال قیدوی دذوالحال ډپاره نومعنی داشوه چه دانعمتونه په داسې طریقه اوحال سره چه خالص وی دعقوبت اوعذاب نه په آخرت کښې . نوداپه دې طریقه سره خالص دَ مؤمنانو دپاره دی په دنیا کښې او دَ کافرانو دپاره په داسې طریقه ندی چه خالص وی. دعقوبت اوعذاب نه په آخرت کښې بلکه دوئ ته به په دې سره عقوبت اوعذاب ورکولې شی ، ((هذه الطیبات الموجودات فی الدنیاهی خالصةً یوم القیمة للمؤمنین فی الدنیا وخلوصها انهم لایعاقبون علیهاولایعذبون)) .(قرطبی)

﴿قُلْ إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ﴾یعنی جامی اغوستل په وخت دطواف کښې الله تعالی نه دې حرام کړی بلکه دا أمور ئې حرام کړیدی. (۱) هرفواحش. لکه زنا . اونوره بی حیائ. ښکاره وی اوکه په پټه وی. (۲) اواثم. تمام گناهونه یانظر کول بدن د اجنبیه ته (۳) اوبغی یعنی ظلم په خلقواوتکبر (۴) ﴿وَأَنْ تُشْرِكُوْا﴾ اوشرک (۵) ﴿وَأَنْ تَقُوْلُوْا﴾ په الله تعالی دروغ جوړول .لکه تحریم دحلال چه داشرک فعلی دې .

﴿وَلِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ﴾جواب دسوال دې چه کفارهرکله چه دخپل طرف نه تحریم تحلیل کوی

اونیري نافرمانئ کوی نوپه دوئ باندې فوراً عذاب ولې نه راځي نوجواب اوسو چه
هرچاعذاب دپاره یوخاص تاریخ دالله تعالی په علم کښې مقرردي ترڅوچه دغه نیټه نه وی
راغلې نوعذاب نه راځي لیکن هرکله چه هغه نیټه راشي نوبیاپه کښې ناخیرنه کیږي. او دا
آیت علماؤ دعلم کلام دلیل گرځولیدي په دې خبره باندې چه ((المقتول میت باجله)) . یعني
مقتول په خپل اجل سره مړدې اوقاتل ورته اجل نه دي مخکښې کړې حتی که چرې قاتل قتل
نه وې کړې نوبیابه هم مقتول په دغه وقت معین کښې مړکیدلو. البته قاتل نه سزاحه
ملاویږي نوهغه دهغه دکسب اودالله تعالی دحکم دخلاف کولوپه وجه ملاویږي.دلته اوپه
سورت نحل نمبر ۶۱ کښې په جزاباندې فاء نه ده داخله شوې خکه چه فاپه اذاباندې داخله
شوې ده نوپه جزاورته ضرورت نشته دي اوپه سورت یونس نمبر۴۹کښې په ((اذا)) باندې ف.
نه ده داخله شوې نوپه جزاء باندې داخله شوه. دلته **مشهورسوال** دي چه اجل چه راسي
نوناخیرامکان فی نفسه عقلاً لرې نونفی دتاخیرمفید ده. لیکن درانلونه بعدتقدیم
متصورنه دې. اوتقدیم امکان نه لرې عقلاً نوپه نفی دتقدیم کښې ﴿وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ﴾ ذکر
کولو کښې څه فائده نه معلومیږي. **جواب** (۱) د ((لایستقدمون)) عطف په جزاء نه دې حتی چه
: ((فاذاجاءاجلهم)) ماتحت شي اوداسې معنی شي چه کله اجل راشي نونه مخکښې کیږي.
بلکه داعطف دې په شرط باندې. نومعنی داده چه ((لکل امة اجل لایستقدمون عن اجلهم
واذاجاءلایستاخرون)) (۲) جزاء مقدره ((ای اذاجاء اجلهم یعذبون ولایستاخرون عن اجلهم
ولایستقدمون)) (۳) د ((اذاجاء)) نه مرادقرب داجل دې(۴) حضرت مولانا شبیر احمد عثماني
رحمه الله فرمائ چه دغیرمحتمل شئ نفی دمبالغې دپاره کیږي په محاورد کښې .لکه چه
خوک دیودکاندارنه دیوشیزدقیمت تپوس اوکړی اوهغه ئ اوخائ نوچه خریداردقیمت
دکموالی طلب اوکړی نودوکانداروائ. چه په قیمت کښې هیڅ کمې بیشي. لاندې باندې.
نشته . نودلته چونکه خریداردزیادت مطالبه نه ده کړې خونفی دزیادت صرف دحسین
الکلام ،اومبالغې دپاره ده

يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ إِمَّا يَأۡتِيَنَّكُمۡ رُسُلٞ مِّنكُمۡ يَقُصُّونَ عَلَيۡكُمۡ ءَايَٰتِي

اې اولاده د آدم ! کچرې راغلل تاسوته رسولان ستاسو د جنس نه چه بیانوی به تاسو باندې آیتونه حما

فَمَنِ اتَّقٰى وَاَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۞

نو چا چه ځان وساته د شرك او مخالفت د رسولانو نه او نيك عمل ئې وكړو نو نه به وي هيڅ يره په دوئ باندې او نه به دوئ غمژن وي

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَاسْتَكْبَرُوْا عَنْهَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ

او هغه كسان چه تكذيب كوي د آيتونو زمونږ او تكبر كوي د هغې نه. دغه كسان به دوزخ كښې اوسيدلو والا دي

هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۞

دوئ به په دې كښې هميشه وي

﴿يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ اِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ﴾ داځلورم امر متفرع مقصودي دې. او په دې كښې بيان د معيار د استحقاق دجنت او دجهنم دې. چه تقوى اصلاح موجب د استحقاق دجنت دې او تكذيب او استكبار موجب د استحقاق دجهنم دې. قادياني دجال وائي چه ددې آيت نه معلوميږي چه د نزول دقرآن نه بعد هم داحكم دې، ((امايا تينكم رسل)) نو معلومه شوه چه اتيان د رسل بعد د حضور صلى الله عليه وسلم نه هم كيږي. **جواب**: (۱) دا متعلق دې د ماقبل سره ﴿قَالَ اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ﴾ او ((قلنا)) مقدر دې او مطلب دادې چه هركله ادم عليه السلام ته د هبوط حكم اوشو نو په دغه وخت ئ اولادته دا خطاب او حكم متوجه شو چه ﴿اِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ﴾ او سلسلهٔ رسالت جاري وه او په محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې ختمه شوه، حاصل دادې چه آدم عليه السلام ته په وخت د هبوط كښې څو خطابات اوشو اول د نعمت لباس متعلق، بيا د منع د اتباع د شيطان ((لايفتننكم الشيطان)) بيا د منع د شرك فعلى متعلق ((وكلوا واشربوا ولاتسرفوا)) د محرماتو بيان نو لكه څه رنګه چه دغه مذكور خطابات متعلق وو د هبوط آدم سره نو دارنګه دا خطاب هم متعلق دې د هبوط دَ آدم عليه السلام سره يعني اولاد د آدم عليه السلام ته د وخت د هبوط د آدم عليه السلام نه دا حكم او شو ((امايا تينكم)) لكه په سورت بقره كښې د حكم د هبوط نه بس متصل ذكر د هدئ دې (( آيت نمبر ۳۸ . سورة البقره)) ﴿قُلْنَا اهْبِطُوْا مِنْهَا جَمِيْعًا فَاِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ مِّنِّيْ هُدًى فَمَنْ تَبِعَ هُدَايَ﴾ داسې نه چه د نبي صلى الله عليه وسلم د زمانې نه دا حكم شروع شو ((امايا تينكم رسل)). (۲) ابن جرير د ابو يسار سلمى نه نقل كړيدى چه دغه خطاب

«يبنى آدم اماياتينكم» تولوبنی آدموته په عالم ارواح کښې شويدي (۳) بعض محققين وائی هرکله چه هرخطاب چه په هره زمانه کښې هرقوم ته شويدې مخکښې دسيدالکونين صلى الله عليه وسلم نه داد هغه نه حکايت دي.

﴿فَمَنِ اتَّقَىٰ﴾ «(اى الشرک و مخالفة الرسل)» په بشارت کښې فاء ذکرده اوپه تخويف کښې نه ده ذکرځکه چه فاء په تاکيد اومبالغه باندې دلالت کوی. اوبناء دبشارت هم په تاکيد او مبالغه وئ اودتخويف بناء په مسامحة وي نوهلته ترک دتاکيد مناسب دي

فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ ۚ

پس څوک دي زيات ظالم دهغه چانه چه جوړ کړی په الله تعالى باندې دروغ يا نسبت ددروغو وکړی آيتونو د الله تعالى نه.

أُولَٰئِكَ يَنَالُهُمْ نَصِيبُهُم مِّنَ الْكِتَابِ ۖ حَتَّىٰ إِذَا جَاءَتْهُمْ رُسُلُنَا

دغه کسان رسيږی به دوئ ته برخه ددوئ دليکلی شوی (عمر، رزق) نه. تردې چه کله راشی دوئ ته ملائک زمونږ

يَتَوَفَّوْنَهُمْ قَالُوا أَيْنَ مَا كُنتُمْ تَدْعُونَ

چه اخلی ساه د دوئ. وائی به ورته چه څه شول هغه کسان چه وئ به تاسو چه هغه به رابلل تاسو په مصيبتونو کښې

مِن دُونِ اللَّهِ ۖ قَالُوا ضَلُّوا عَنَّا وَشَهِدُوا عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ أَنَّهُمْ كَانُوا كَافِرِينَ ﴿٣٧﴾

سوئ د الله تعالى نه. دوئ به وه وائی چه ورک شول زمونږ نه او اقراربه وکړی په ځانونوخپلو چه بيشکه دوئ وو کافران

قَالَ ادْخُلُوا فِي أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِكُم مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ

وبه فرمائی الله تعالى چه داخل شئ دهغه ډلو سره چه ستاسونه مخکښې تيرې شوی دی د پيريانو او بنی آدمو نه

فِي النَّارِ ۖ كُلَّمَا دَخَلَتْ أُمَّةٌ لَّعَنَتْ أُخْتَهَا ۖ حَتَّىٰ إِذَا ادَّارَكُوا فِيهَا

په اور کښې، هر وخت چه داخله شی يوه ډله لعنت به کوی په ملګرو خپلو تر دې پورې چه کله راجمع شی په دې کښې

جَمِيعًا قَالَتْ أُخْرَاهُمْ لِأُولَاهُمْ رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ أَضَلُّونَا

ټول نو وه به وائی (روستني اتباع) ددوئ په باره دمخکنو (متبوعينو) کښې اې ربه زمونږ دې کسانو ګمراه کړی يو مونږ

فَآتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِّنَ النَّارِ ۖ قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَلَٰكِن لَّا تَعْلَمُونَ ﴿٣٨﴾

پس ورکړه دوئ ته عذاب دوچند د اُور نه . وبه فرمائی الله پاك چه هر یو لره دوچند عذاب دي لیکن تاسو نه پوهیږئ

وَقَالَتْ أُولَاهُمْ لِأُخْرَاهُمْ فَمَا كَانَ لَكُمْ عَلَيْنَا مِن فَضْلٍ

او وبه وائی مخکنی د دوئ (مشران روستنو ته (اتباعو ته) پس نشو تاسو لره په مونږ باندي څه غوره والي.

فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ ﴿٣٩﴾

پس وڅکئ عذاب په سبب د هغه عملونو چه تاسو کول

﴿فَمَنْ أَظْلَمُ﴾ دازجردي ﴿افْتَرَىٰ﴾ مرادترینه نسبت دشریک اودولددي الله تعالی ته ﴿نَصِيبُهُم مِّنَ الْكِتَابِ﴾ مرادهغه حصه ده چه دانسان په تقدیرکښې مقررشویده عمر. رزق. اعمال اودکتاب نه مرادکتاب دتقدیردي اوپه ﴿رُسُلُنَا﴾ کښې اشاره ده دیته چه په وخت دمرګ کښې ډیرملائک رازی. اګرکه قبض دروح یوه فرشته کوی اوبیائ نورو ملائکوته حواله کوی (کمافی الحدیث) ﴿قَالُوا أَيْنَ مَا﴾ فرشتې به سوال اوکړی چه چرته دی ستاسوهغه مزعومه الهه چه تاسوبه بلل په مصیبتونو کښې اوس ئ راؤبلئ نودوئ به اووائی ﴿ضَلُّوا عَنَّا﴾ هغوئ غائب اوورک شوزمونږ نه اواقراربه اوکړی چه دوئ په وجه دبلنی دغیرالله سره کافرو. اوددي آیت نه معلومه شوه چه بلنه دغیرالله کفردي.

﴿قَالَ ادْخُلُوا﴾ داتخویف اخروی دي ﴿فِي أُمَمٍ﴾ ((ای مع امم)) یا ((فی جملة امم)) یعنی هغه جماعت چه اقتداء ئ کړی وی بعضو د نوروبعضو. نودوئ ته به حکم اوشی چه دخپل مشابه اومثل جماعتونوسره په کفراوشرک کښې داخل شئ جهنم ته. ﴿فِي النَّارِ﴾ د (اُدخلو) سره متعلق دي. ﴿كُلَّمَا دَخَلَتْ﴾ یعنی کله چه یوه ډله داخله شی جهنم ته دبلې سره نوپه ځائ دمرحبا. اوسلام به په یوبل لعنت وائ. اواَتباع به دالله تعالی په حضورکښې داشکایت اوکړی په متبوعینو باندې چه دوئ مونږ ګمراه کړی وونودوئ لره دوچنده عذاب ورکړه یو دَضلال اوبل داضلال.

نوالله تعالی به اوفرمائ ﴿لِكُلٍّ ضِعْفٌ﴾ دمتبوعینودپاره هم دوه وجې دعذاب دی چه پخپله ګمراه وو. اونورخلق ئ هم ګمراه کړی وو- او د اَتباعو دپاره هم دوه وجې دعذاب دی

بو کفراو گمراهي. او بل تقليداو اتباع د گمراهانو. امام رازي رحمه الله وائي چه ضعف په اصل کښې زيادت غيرمحصورته وائي. يعني دپاره دهريوپه تاسوکښې عذاب بې انتهاء. غيرمتناهي. نه ختميدونکې دې

﴿وَقَالَتْ أُولَـٰهُمْ﴾ يعني متبوعين به اتباعوته اووائي چه هرکله فيصله داده نوستاسوپه مونږ باندې څه فضيلت اوغوره والي نشته دې اوتاسودتخفيف دعذاب مستحق نه يئ

| إِنَّ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُوا عَنْهَا لَا تُفَتَّحُ |
|---|
| بېشکه هغه کسان چه تکذيب ئې کړې دې زمونږ د آيتونو او تکبر ئې کړيدې د هغې نه. نه به شي پرانستلي کيدلې |
| لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَلَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّىٰ يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ ۚ وَكَذَٰلِكَ |
| دوئ ته دروازې د آسمان. اونه به شي داخل جنت ته تر دې چه داخل شي اوښ په سوم د ستنې کښې. او دغسې |
| نَجْزِي الْمُجْرِمِينَ ۝ لَهُم مِّن جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَمِن فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ ۚ |
| جزاورکوؤ مونږمجرمانوته لپاره د دوئ به وي د جهنم بسترې (تولاياني) او دپاسه د دوئ به پرستني د اور وي |
| وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ ۝ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ |
| او دغسې سزا ورکوؤ مونږ ظالمانو ته اوهغه کسان چه ايمان ئې راوړې دې اوعملونه ئې کړيدی نيک |
| لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا أُولَـٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ۝ |
| تکليف نه ورکوؤمونږ هيچاته مگر په قدر د وس د هغه. دغه کسان جنت والا دی دوئ به په هغې کښې همېشه وي |

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا﴾ ((اى بدلائل التوحيدفلم يصدقوا،ولم يتبعوارسلى)) ﴿لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ﴾ داکنايه ده، ددې نه چه په دوئ باندې رحمتونه اوبرکتونه نه نازليږي. يادامعنی ده چه ددوئ اعمال دعاګانې نه قبليږي، يادامعنی ده چه په دوئ کله مرګ راشي نودذوئ داروا حو دپاره به د اسمان دروازې نه پرانستې کيږي، لکه په حديث کښې دی چه دکافرروح چه دبدن نه خارج شي نوډيربدبويه وي لکه دمردارې په شان، نوچه داسمان دروازوته اورسي نو دروازې ورته بندې وي اوداروح دهغه ځائ نه سجيل ته ګذارکړې شي ﴿حَتَّىٰ يَلِجَ الْجَمَلُ﴾ داتعليق بالمحال دې لکه داوښ ننوتل په سوم دستنه کښې محال دې نودغه شان ددوئ جنت

ته داخليدل هم محال دى. دجمّل. په تشديداوفتح سره. يومعنى رصد السفينه ده. يعنى هغه رسئ دكيشتئ اودجهازچه دسمندرپه غاړه ئې په هغې سره تړی

﴿ لَهُمْ مِّنْ جَهَنَّمَ مِهَادٌ ﴾ مهادلاندې غوړولوو الابسترې ته وائى اوغواش دپاس نه اغوستلو والا بسترې ته. دا كنايه ده داحاطې دنارنه په دوئ باندې ﴿ غَوَاشٍ ﴾ داجمع دغاشية ده.پټوونكى-لكه كمبل-برستن ((اى ومن فوقهم غواش من جهنم)) ﴿ وَالَّذِينَ ﴾ دابشارت اخروى دې. وَالَّذِيْنَ موصول دخپلې صله سره مبتداء ده. ﴿ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ ﴾ورته خبردې او﴿ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ﴾ په درميان كښې جمله معترضه ده اوپه دې كښې بيان ددې خبرې دې چه ايمان اوعمل صالح دچادوس نه بهرنه دې، نوددې وجې نه دهغې په ترك استحقاق دجهنم رازى

وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ تَجْرِي مِن تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ ۖ

او وبه باسو مونږ هغه چه په سينو د دوئ كښې وى څه خفګان ، بهيږى به لاندې د بنګلو د دوئ نه نهرونه.

وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي هَدَانَا لِهَٰذَا

او وائى به دوئ چه ټول صفتونه «د الوهية» الله تعالى لره دى هغه ذات چه را وې رسولو مونږ دې ځائ ته.

وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَا أَنْ هَدَانَا اللَّهُ ۖ لَقَدْ جَاءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ ۖ

او مونږ نشو را رسيدلې دلته كه نه رارسولې مونږ لره الله تعالى، خامخا په تحقيق سره راغلى وو رسولان د رب زمونږ په حق سره

وَنُودُوا أَنْ تِلْكُمُ الْجَنَّةُ أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٤٣﴾

او آواز به وكړې شى دوئ ته چه دغه جنت په ميراث دركړې شوې دې تاسو ته په وجه د هغه عملونو چه تاسو به كول

﴿ وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ ﴾ ددې نه مراديادادې چه دجنتيانوپه مينځ به په جنتى نعمتونوكښې يوبل سره هيڅ قسم حسد ،كينه نه وى، دا دنئ درجې والاجنتى به اعلى جنتى سره حسدنه لرى بلكه ټول جنتيان چه جنت ته داخل شى نوعلى قلبِ رجلٍ واحدٍ. به وى. يامطلب دادې چه دصالحانوپه مينځ كښې په دنيوى ژوندكښې كه چرې په څه خبره ديوبل سره خفګان اواختلاف راغلې وى نوهغه ټول خفګان اوناراضګى به دجنت ددخول نه قبل زائله

کړي شي اوتول به ديوبل نه راضي وي رونړه به وي. حضرت علي رضي الله عنه فرمائيلي دي
څه اميد کوم چه زه او عثمان رضي الله عنه طلحه رضي الله عنه اوزبير رضي الله عنه به هم ددغه
خلقونه يو. ﴿هَدَىٰنَا لِهَٰذَا﴾ (هذا) کښې اشاره ده فوزعظيم ته چه جنت دي يعني شکر دې چه
الله تعالى مونږ جنت ته راؤرسولو. دلته رارسيدل ډير ګران وو. محض دالله تعالى په فضل
سره را اورسيدلو. اود ((هدانا)) نه مراد هدايت اوتوفيق دهغه اعمالو دي چه سبب د دخول دي
جنت ته. ﴿وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ﴾ يعني دالله تعالى په فضل اوتوفيق سره مونږ ته هدايت حاصل
شويدي زمونږ خپل ذاتي کمال نه وو. ﴿وَنُودُوٓا﴾ نداءکونکي به دالله تعالى دطرفنه فرښته
وي ﴿بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ باء سببيه ده. **سوال** د دي نه معلومه شود چه عمل سبب دي ددخول
جنت ته. ليکن په حديث کښې راغليدي. هيڅاره خپل عمل جنت ته نه شي داخلولي.
اصحابو اووئيل چه ، ،نه ته ، ،يعني تا لره هم خپل عمل جنت ته نشي داخلولي نونبي صلى الله
عليه وسلم اوفرمائيل. ((ولا انا)) (نه زه) ((الا ان يتغمدني الله برحمته)) . **جواب** دادي چه عمل سبب
ظاهري دي لکه ميراث چه ملک ګرځي په غيرد کسب نه اګر که نسب ورته مثلا سبب ظاهري
دي اوسبب باطني اوسبب حقيقي ورته دالله تعالى فضل اورحمت دي نوپه حديث کښې
دسبب حقيقي ذکردي اوپه آيت کښې دسبب ظاهري ذکردي. بعض حضرات وائي چه عمل
سبب دتفاوة ددرجاتو دجنت دي اوهرچه دي نفس دخول جنت ته نوددي سبب فضل اورحمت
الهي دي. په ﴿أُورِثْتُمُوهَا﴾ کښې اشاره ده ديته چه لکه څه رنګه چه مال موروثه وارث ته په
غير دڅه عوض نه ملاويږي نودغسې جنت، مفت، په ويړيا ملاؤشو. يادامطلب دي چه
دکافرانو برخه جنت هم تاسي ته درکړې شو ،بعض حضرات وائي چه د ((اورثتموها)) نه
مرادملکيت دي يعني داجنت تاسوته په ملکيت کښې درکړې شو . اوهرکله چه ميراث داسې
سبب وودملکيت دپاره چه الله تعالى په خپله دميراث حصص مقررکړيدي نو ارث ډيرقوي
اوډيرصحيح سبب دملکيت دي نوددي وجې نه د ارث ذکراوشو

وَنَادَىٰٓ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ أَصْحَٰبَ ٱلنَّارِ أَن قَدْ وَجَدْنَا مَا

او آواز به وکړي جنت والا اور ته (دوزخ والو) ته چه په تحقيق سره موندلي دي مونږ هغه (جنت)

وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدْتُّمْ مَّا وَعَدَ

چه وعده نې کړې وه زمونږ سره رب زمونږ په حقه ، پس ایا وه موندلو تاسو هغه (اُور) چه وعده نې کړې وه ستاسو سره

رَبُّكُمْ حَقًّا ۗ قَالُوا نَعَمْ ۚ فَأَذَّنَ مُؤَذِّنٌۢ بَيْنَهُمْ

رب ستاسو په حقه سره. وبه وائی چه هو ' پس اعلان به وکړې یو اعلان کوونکې به مینځ د دوئ کښې

أَنْ لَّعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ۝ الَّذِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا

چه لعنت د الله تعالی دې وی په ظالمانو باندې هغه چه منع کول نې خلق د لارې د الله تعالی نه او لټوی به هغی کښی

عِوَجًا ۚ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ كٰفِرُوْنَ ۝ وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ ۚ

کوږوالې (په شك اچولو سره) او دوئ د آخرت نه منکر وؤ او په مینځ د دوئ کښې به پرده وی.

وَعَلَى الْاَعْرَافِ رِجَالٌ يَّعْرِفُوْنَ كُلًّاۢ بِسِيْمٰهُمْ ۚ وَنَادَوْا

اوپه اعراف (اوچت ځائ ددې حجاب) به څه کسان وی چه پیژنی به هریولره په نشانو دهغوئ سره. او آوازونه به وکړی دوئ

اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ اَنْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ ۟ لَمْ يَدْخُلُوْهَا وَهُمْ يَطْمَعُوْنَ ۝

جنت والؤ ته. چه سلام دې وی په تاسوباندې، نه به وی داخل شوی دا اعراف والا جنت ته او دوئ به طمع لری د جنت

﴿وَنَادٰٓى اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ﴾ یعنی اوازبه اوکړی جنتیان دوزخیانوته چه ﴿أَنْ قَدْ وَجَدْنَا﴾ مقصود ددې آوازکولونه ،دجهنمیانوغم اوحزن زیاتول دی، چه مونږ خوابدې راحت خوشحالی اوموندله. اوتاسوپه ابدی عذاب بې انتهاتکلیف مصیبت کښې مبتلاء شوئ ﴿فَأَذَّنَ مُؤَذِّنٌ﴾ دا اعلان کونکې به فرشته وی. او د جنتیانودخوشحالئ زیاتولوډپاره اوددوزخیانودحسرت زیاتولو دپاره به اووائی چه دالله تعالی لعنت دې وی په ظالمانو چه ﴿الَّذِيْنَ يَصُدُّوْنَ﴾ دا صفت دظالمانو دې چه پخپله هم ایمان نه راوړی اونورخلق هم دایمان نه منع کوی ﴿وَيَبْغُوْنَهَا﴾ ((ای یبغون لهاعوجاً)) یعنی لټوی دالله تعالی په دین کښې کوګ والې. مرادترینه شکوک شبهات اچول دی دخلقوپه زړونوکښې، عوج په کسره دعین سره ،هغه نقصان اوعیب ته وئیلې شی چه معنوی وی په نظرنه رازی اوپه فتحه دعین سره هغه عیب اونقصان ته وئیلې کیږی چه

ـمی وی په نظر راځی

﴿ وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ ﴾ اوداهل جنت اودوزخ په مینځ کښې به یوحجاب(پرده وی) چه ددې حجاب په وجه به ددوزخ اثرجنت ته نه رارسی اودجنت اثربه دوزخ ته نه رسیږی. لکه په سورة ـدید کښې دی ﴿ فَضُرِبَ بَيْنَهُم بِسُورٍ ﴾ جوړبه کړیشي په مینځ ددوئ کښې یودیوال نوحجاب اوسُوریوشئ دې. اوددې حجاب په وجه اګرکه اثرددوزخ جنت ته اودجنت دوزخ ته نه رسیږی ـیکن ګفتګوبه دیوبل سره کولې شی یاپه دې وجه چه په دې دیوال کښې به دروازه وی ﴿ بِسُورٍ لَّهُ بَابٌ ﴾ نودباب په وجه به دیوبل خبرې اوری، یاپه غیرددې نه

﴿ وَعَلَى الْأَعْرَافِ رِجَالٌ ﴾ اعراف د (حجاب) اود (سور) پورته حصه ده په لغت کښې دمکان پورته حصې ته وائی ((المکان المشرف ومنه عرف الفرس وعرف الدیک)) (قرطبی) نواعراف والوته ځکه اهل اعراف وائی چه دوئ دحجاب اودسورپه پورته حصه باندې دی اوهرعالی اعرف وی دتحتانی نه. ابن عباس رضی الله تعالی عنه فرمائی : اعراف دصراط پورته حصه ده. اوبعض وائ چه اعراف جبل احددې چه دقیامت په ورځ به دغه ځائې کښې کیخودلې شی(قرطبی) سُدی وئیلیدی چه اعراف والاپیژنی اهل جنت اواهل دوزخ په علاموسره نوددې وجې نه ((سور)) او((حجاب)) ته اعراف اودوئ ته اهل اعراف وائی.

**داصحاب الاعراف په باره کښې دعلماؤمختلف اقوال دی** چه قرطبی وغیره ذکرکړیدی(۱) دعبدالله بن مسعودرضی الله عنه خذیفه رضی الله عنه ، ابن عباس رضی الله عنه وغیرهم نه مروی ده چه دا هغه مؤمنان دی چه نیک اعمال اوبداعمال ئ برابروی، حضرت عبدالله بن مسعودرضی الله عنه وائی چه حساب به کولې شی دخلقوسره په ورځ دقیامت کښې نوکه دچاحسنات زیات شو،دسیئاتونه اګرکه په یوه نیکئ سره ، نوجنت ته به داخل شی اوکه دچاسیئات زیات شو اګرکه په یوه ګناه سره نوجهنم له به ځی، بیائ دا آیت تلاوت کړو ﴿ فَمَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ ﴾ بیائ اوفرمائیل چه میزان خفیف کیږی اوثقیل کیږی په مقداردیودانې د..خردل.. سره هم ، اوکه دچاحسنات اوسیئات برابرشی نودې به په اعراف وی بیابه روستوجنت ته داخل شی. (۲) داهغه مؤمنان مجاهدین دی چه جهادته تللی وی په غیرداجازت دوالدینونه اوشهیدان شوی وی. بعض مفسرینووئیلی دی چه داهم داخل دی په

((من استوت حسناتهم مع سيئاتهم)) کښي څکه جهاد او شهادت حسنه دي. ليکن په غير د اجازت د والدينو نه تلل سيئه دی. ((وذکرالطبری فی ذلک حديثاعن النبی صلی الله عليه وسلم وانه تعادل عقوقهم واستشهادهم)) (قرطبي) (۳) داعُدول دقيامت دی چه شهادت کوی په خلقو په وجه داعمالو ددوئ سره (۴) دا انبياء دی (۵) هغه مؤمنان چه کبيره گناه ئی نه وی اوصغائر ئی نه وی معاف شوی په آلامو اومصائبو سره (۶) دا اولاد د مشرکانو دی (۷) دا اولاد د زناؤ دی (۸) دا هغه خلق دی چه په زمانه دفترت کښي مره دی (۹) داملائک دی او اطلاق درجال په ملائکوباندې هم کيدې شي (۱۰) داپه مؤمنانو او شهداؤ کښی فضلاء اوغوره خلق دی. ((فرغوامن شغل انفسهم. وتفرغوالمطالعة حال الناس)) ددوئ هيڅ شغل نشته دې. حساب کتاب يرې نشته دې اودنوروخلقوتماشه به کوی. ،راجح قول په نيزدجمهورواهل علمو قول اول دې اوپه نيزدبعض قول ثالث راجح دې. ﴿ يَعْرِفُوْنَ كُلًّا ﴾ اهل اعراف به پيژنی اهل جنت اواهل نارپه علامانو سره. داهل جنت علامې به داوی چه مخونه به ئ سپين وی خوشحاله به وی اواهل نارعلامه به داوی چه مخونه به ئ توروی پريشان حال واويلا. کونکی به وی. نودوئ چه جنتيانوته نظراوکړی نوسلام به ورته اووائ. ﴿لَمْ يَدْخُلُوهَا ﴾ يعنی اعرافيان به جنت ته داخل شوی نه وی ليکن طمع به لری. روايت کړيدې حاکم دحذيفه رضی الله عنه نه چه دوئ به په دې حالت باندې وی چه الله تعالی به طلوع اوکړی په دوئ اووبه وائ. ((قوموا ادخلوا الجنة فقدغفرت لکم)) اوچاچه وئيلی دی چه اصحاب الاعراف انبياء دی، ياملائک دی. ياعدول ددی امت دی ياعرفاء فقهاء صلحاء دی، نوددوئ په اعراف باندې اوسيدلو وجه داده چه ددوئ دفضيلت اوشرافت اظهاراوشی اوددوئ مطلع شی په حال داهل جنت اواهل ناربانديې. دايت دظاهرنه دجمهورودقول ترجيح معلوميږی.

وَاِذَا صُرِفَتْ اَبْصَارُهُمْ تِلْقَآءَ اَصْحٰبِ النَّارِ ۙ قَالُوْا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا

او کله چه واړولې شی نظرونه د دوئ طرف د اور والؤ ته . وه به وائی دوئ اې ربه زمونږ . مه گرزوه مونږ

مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ۝ وَنَادٰٓى اَصْحٰبُ الْاَعْرَافِ رِجَالًا يَّعْرِفُوْنَهُمْ

سره د قوم ظالمانونه په اور کښې او آواز به وکړی اعراف والا هغه کسانو ته (په جهنم کښې) چه پيژنی به هغوئ لره

بِسِيْمٰهُمْ قَالُوْا مَآ اَغْنٰى عَنْكُمْ جَمْعُكُمْ وَمَا

...ـه نښانو د هغوئ سره. وبه وائي هغوئ ته چه هيڅ فائده درنکړه تاسو ته جمعيت «دلي» ستاسي او هغه چه

كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُوْنَ ۞ اَهٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ اَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ

تاسو به هغې لوئي كوله «وبه وائي ملائك كافرانو ته» آيادا هغه كسان دي چه تاسو به قسمونه كول چه وبه نه رسوی دوئ ته

اللّٰهُ بِرَحْمَةٍ ؕ اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَلَآ اَنْتُمْ تَحْزَنُوْنَ ۞

الله تعالى هيڅ رحمت دوئ ته خو وه ويلې شو، چه داخل شئ جنت ته نه به وی هيڅ ويره په تاسو باندي او نه به تاسو خفه كيږئ

﴿ وَاِذَا صُرِفَتْ اَبْصَارُهُمْ ﴾ په صيغې دمجهولي ذكركولو كښې اشاره ده دي خبرې ته چه دوئ به په خپله رضا سره اهل جهنم طرف ته نه گوري. الله تعالى به د دوئ مخونه بغير د اختيار نه اهل جهنم طرف ته وگرځوی نو په دوئ به خوف راشي چه هسې نه چه جهنم ته بوتلې شو نو دعا به اوغواړی ((رَبَّنَا -الخ)) اوكه اصحاب الاعراف انبياء، ملائک يا عرفاء وی نو دوئ ته خوعلم دي چه دوئ اصحاب النارنه دی نوداقول علی سبيل التذلل والتشكر دي ﴿ رِجَالًا ﴾. ددې نه مرادهغه اهل جهنم دی چه مالدار،عظماء، متكبرين وو په دنياكښې نو اهل اعراف به دوئ ته پيغورورکړی چه ستاسو هغه جاه، مال. عهدی. هيڅ په فائدرانغلې چه تاسوبه په اهل دين پوری ددغې دوجې نه مسخرې كولې اوهغوئ به موذليل بې حيثية بې قدره گڼل اوس دهغوئ ددينی عهدو . قدروقيمت ،مقام دادې چه ﴿ اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ ﴾. ﴿ مَآ اَغْنٰى ﴾ مانافيه هم كيدي شی. اواستفهاميه هم كيدې شی. ﴿ جَمْعُكُمْ ﴾نه مرادجمع كول دمالونو اوعهدو. دگرياني. دی ياترينه مراددلې اوملگری دی. ﴿ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴾ ((ای ماغنی عنكم ماكنتم تستكبرون عن الايمان والدين)) يعنی په دنياكښې چه تاسوايمان اودين معمولی شئ گڼرلو اومال اوعهدی مو .لوئ شئ گڼرلونوداهيڅ په فائده رانغلې.﴿ اَهٰٓؤُلَآءِ ﴾دااشاره ده هغه ضعيف ،بی حيثيته مؤمنانوته چه هغوئ سره مال. دنيوی عهدې ،جاه اوجلال هيڅ نه وو.﴿ اَقْسَمْتُمْ ﴾تاسوبه قسمونه كول اوپه پوره ذمه واری سره به موونيل چه دوئ دهيڅ رحمت اوكاميابئ مستحق نه دی ﴿ اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ ﴾ ((ای قيل لهم ادخلوا الجنة)) دهغوئ دايمان قدراومقام معلوم شو. چه

دابشارت ورته ورکړي شو چه داخل شئ جنت ته، همیشه دپاره به بې غمه بې خوفه یئ

وَنَادٰۤى اَصْحٰبُ النَّارِ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ اَنْ اَفِيْضُوْا عَلَيْنَا مِنَ الْمَآءِ اَوْ مِمَّا

اوآوازبه وکړی أور والا جنت والؤ ته چه را توئې کړئ په مونږ باندې د أوبو د جنت نه یا را وه غورځوئ د هغې نه

رَزَقَكُمُ اللّٰهُ ؕ قَالُوْۤا اِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَهُمَا عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ۙ

چه درکړی دی تاسو ته الله تعالی. دوئ به وه وائی چه بیشکه الله تعالی حرام کړی دی دا دواړه په کافرانو

الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ لَهْوًا وَّلَعِبًا وَّغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ

دا هغه کسان دی چه دوئ نیولې دې خپل دین مشغله او لوبې او دهوکه کړې وؤ دوئ لره ژوند د دنیا. پس نن ورځ به

نَنْسٰىهُمْ كَمَا نَسُوْا لِقَآءَ يَوْمِهِمْ هٰذَا ۙ وَمَا كَانُوْا

مونږ پریږدو دوئ لره په عذاب کښې لکه چه دوئ هیر کړې وؤ ملاقات د دې ورځې خپلې. او پدې وجه چه وؤ دوئ

بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ۝

زمونږ د آیتونو نه انکار کولو.

﴿ وَنَادَىٰٓ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِ ﴾ دامکالمه ده داهل النار او دَ اهل جنت پس ددخول دهریونه دخپل خپل مقام ته. اوجنت دوزخ اگرکه دیوبل نه په ډیرنهایت بُعدکښې دی لیکن الله تعالی قادردې چه اورسوی اوازدهریوبل ته، اودامکالمه دهرجنتی اودوزخی په مینځ کښې به وی یابه دبعض اهل جنت اواهل نارپه مینځ کښې وی. لکه قرطبی وائی چه هرکله اهل اعراف جنت ته لاړشی نوطمع به اوکړی اهل نار اوابه وائ چه یاربه . زمونږ څه خپلوان په جنت کښې دی نومونږ ته اجازت راکړه چه مونږ ئ اووینواوکلام ورسره اوکړو، اواهل جنت به دوئ لره نه پیژنی ځکه چه ددوئ مخونه به په جهنم کښې دسوزیدلوپه وجه تک تور. اومغیرشوی وی نو جهنمیان به خپل تعارف اوکړی اوسوال به ورته اوکړی چه ﴿ أَنۡ أَفِيضُواْ عَلَيۡنَا مِنَ ٱلۡمَآءِ ﴾ مونږ ته داوبولګ ګټ راکړئ ډیرتګی یو﴿ أَوۡ مِمَّا رَزَقَكُمُ ٱللَّهُ ﴾ اویادروټئ یوه لقمه راکړئ. عطف د ((مما رزقکم الله)) په ((افیضو)) باندې دقبیلی دعطف د ((علفتهاتبناوماءً بارداً)) نه دې. ای علفتها (دابة) تبناوسقیتها ماءً بارداً. نودلته تقدیردعبادت داریګه دي ((اوالقوالینامما رزقکم الله)) .قرطبی

راځ چه ددې آیت نه معلومه شوه چه سقی الماء افضل عمل دې. دابن عباس رضی الله تعالی عنه نه تپوس اوشوچه کومه صدقه افضله ده. هغوئ اوفرمائیل چه اوبه. اوداآیت ئ تلاوت کړو. چه په دې کښې داوبوسوال مقدم دې. دحضرت سعدرضی الله عنه والده وفات شوه نو دوئ دنبی صلی الله علیه وسلم نه ئ تپوس اوکړوچه کومه صدقه ډیره غوره ده چه هغه زه په والده پسې ورکړم نونبی صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل چه اوبه . او وئیلی دی بعض تابعینوچه دچا گناهونه زیات وی نوپکارده چه د اوبو صدقه اوکړی. او په روایت دبخاری کښې دی چه یوسړې په لارې تللو ډیرتګې شو، نوکوهی ته کوزشونواوبه ئی اوسکلې نوچه بهرته راغلونو یو سپې چه ډیرتګې وو اوپه لمده خاوره ئی خوله لګوله. نوده اووئیل په زړه کښې چه په ده باندې هم داسې تنده راغلیده لکه چه په ماراغلې وه اوکوهی ته کوزشو . خپله موزه ئ داوبونه ډکه کړه سپی ته ئ اوبه ورکړې نوالله تعالی دده مغفرت اوکړو.اوپه بل روایت کښې دغه شان قصه دفاحشې خزې ده چه مغفرت ئ اوشوپه سبب داوبوورکولو سره. اودمسلم وغیره په روایت کښې دی چه یوې ښځې ته عذاب په دې وجه ورکړې شوچه یوه پیشوئ تړلې وه. اوبه اوخوراک ئ ورته نه ورکولو، ددې روایتونونه داخبره معلومه شوه چه داوبوصدقه ورکول سبب دنجات دې دعذاب نه اومنع کول ئ سبب ددخول دې جهنم ته. روایت کړیدې ابوداؤد، اوابن ماجه دحضرت عائشه رضی الله عنها نه چه چامسلمان ته اوبه ورکړې په داسې ځائ کښې چه اوبه عام په اسانئ سره ملاویږی نوداسې اجردې لکه چه غلام آزادکړی اوکه په داسې ځائ کښی وی چه اوبه په اسانئ سره نه ملاویږی نوداسې اجردې لکه چه جوندې ئ کړی

﴿قَالُوٓا﴾ نوهرکله چه دوزخیان دجنتیانونه سوال اوکړی نودوئ به ورته اووائی چه ﴿إِنَّ ٱللَّهَ حَرَّمَهُمَا﴾ بیشکه الله تعالی حرام کړیدی دادواړه یعنی طعام اوشراب،په کافرانو . تحریم نه مرادمعنی لغوی ده یعنی منع. ځکه چه په قیامت کښې تحریم اوتحلیل شرعی نشته دې.

﴿لَهْوًا وَلَعِبًا﴾ فرق په مابین دلهواولعب کښې بعضُ داسې کړیدې چه هغه کارچه مناسب نه وی نوهغې ته همت صرف کول دا«لهو» دې،اوخوشحالی طلب کول په داسې څیزچه په هغې سره خوشحالی نه حاصلیږی دا «لعب» دې، بعضِ وائی چه بې مقصده کارپه دې لحاظ سره چه څه فائده پرې مرتبه نه وی نودا «لعب»دې، اوپه دې لحاظ سره چه په دې سره مقصداصلی

فوب کیږي نو دا (لهو) ده ﴿نَنسَىٰهُمْ﴾ د نسيان نه مراد ترک دي په عذاب کښې يعني مونږ دوئ
لره په عذاب کښې پريږدو ځکه نسيان په معنی حقيقي سره محال دي په الله تعالی باندې

وَلَقَدْ جِئْنٰهُمْ بِكِتٰبٍ فَصَّلْنٰهُ عَلٰى عِلْمٍ هُدًى وَّرَحْمَةً

او په تحقيق سره مونږ راوړې دې دوئ ته کتاب چه مفصل کړيدې مونږ هغه په علم خپل سره. هدايت دې او رحمت دې

لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۞ هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا تَاْوِيْلَهٗ ؕ يَوْمَ يَاْتِيْ

لپاره دهغه قوم چه ايمان لري انتظار نکوی دوئ مګر د دې (وعدې د سزا) د عملی ظاهريدلو. کومه ورځ چه راشي

تَاْوِيْلُهٗ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ نَسُوْهُ مِنْ قَبْلُ قَدْ جَآءَتْ

ظاهريدل ددې (وعده، سزا) وائی به هغه کسان چه هير کړې ئی وؤ دا (قرآن) مکښې د دينه په تحقيق سره راغلی وؤ مونږ ته

رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ ۚ فَهَلْ لَّنَا مِنْ شُفَعَآءَ فَيَشْفَعُوْا لَنَآ

رسولان د رب زمونږ په حق سره (ليکن مونږ ونه منل) پس آيا شته مونږ لره څه سفارشيان چه سفارش وکړی مونږ لره

اَوْ نُرَدُّ فَنَعْمَلَ غَيْرَ الَّذِيْ كُنَّا نَعْمَلُ ؕ قَدْ خَسِرُوْٓا

يا واپس کړې شو دنياته پس عمل وکړو مونږ غير دهغه عمل نه چه مونږ کولو. په تحقيق سره زيان مند کړيدی دوئ

اَنْفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ۞

خپل نفسونه او ورک به شی د دوئ نه هغه چه دوئ دروغ جوړول

﴿وَلَقَدْ جِئْنٰهُمْ بِكِتٰبٍ﴾ داترغيب دې اتباع دقرآن ته ﴿فَصَّلْنٰهُ عَلٰى عِلْمٍ﴾الله تعالی ددې تفصيل کړې دې په خپل علم سره يعنی لکه څه رنګه چه دالله تعالی علم کامل دې اومنزه دې دنقصان اوخلاف واقع نه نو دغسې دا قرآن کامل دې اومنزه دې د خطاء او نقصان نه او د خلاف واقع نه.﴿هَلْ يَنْظُرُوْنَ﴾ داتخويف دنيوی دې.﴿اِلَّا تَاْوِيْلَهٗ﴾ دوئ انتظارنه کوی مګر د ظهور دوعيد دقرآن .تاويل داول نه مشتق دې، مرادترينه دوعدوعيد .عملی ظهوردې. ظهور صحة مانطق به من الوعدوالوعيد (شيربينی)﴿يَوْمَ يَاْتِيْ تَاْوِيْلُهٗ﴾مراددې نه ورځ دقيامت ده ﴿نَسُوْهُ﴾ (ہ) ضمير راجع دې قرآن ته او دنسيان د قرآن نه مراد ترک دايمان او دعمل دې په قرآن

باندې ﴿قَدْ جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ﴾ د تولو رسولانو ذکر موجود دې په قران کښې نو انکار د قرآن نه انکار دې د تولو رسولانو نه. نو د دې وجې نه منکرين د قرآن به اعتراف اوکړی چه رسولانو حه کوم پيغام راوړې وو هغه حق وو او زمونږ انکار د رسولانو غلط وو. ليکن دا اعتراف څه فائده نه ورکوی. ﴿فَهَل لَّنَا مِن شُفَعَآءَ﴾ دوئ ته به معلومه شی چه د نجات سبب يا شفاعت دې يا د نيک عمل کولو د پاره د نيا ته واپس کيدل دی، نو دوئ به تمنی وکړی د دې دواړو ((فهل)) استفهام د تمنی لپاره دې. ﴿قَدْ خَسِرُوٓا﴾ متعلق دې د ﴿فَنَعْمَلَ﴾ سره. يعنی دنيوی ژوند دغه يو واری وو اوهغه دوئ ضائع کړيدې ﴿وَضَلَّ عَنْهُم﴾ دا متعلق دې د ﴿شُفَعَآءَ﴾ سره. يعنی د مشرکانو چه کومه عقيده وه په باره د معبودانو خپلو کښ چه دوئ به زمونږ شفاعت کوی. دهغې غلطی ښکاره شوه او معبودان د دوئ نه ورک شو.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | رَبَّكُمُ | اللَّهُ | الَّذِي | خَلَقَ | السَّمَٰوَٰتِ | وَالْأَرْضَ | فِي | سِتَّةِ أَيَّامٍ |

بيشکه رب ستاسو الله تعالی دې[1] هغه ذات چه پيدا کړی ئی دی آسمانونه او زمکه په مقدار د شپږ ورځو کښې

ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ ۖ يُغْشِي الَّيْلَ

بيا برابر شو (جلوه افروز شو په تخت د سلطنت) يعنی عرش باندې (کما يليق بشانه العظيم) پټوی په تيرو د شپې سره

النَّهَارَ يَطْلُبُهُۥ حَثِيثًا ۙ وَالشَّمْسَ

رڼا د ورځې په داسې طريقې چه طلب کوی شپه ورځې لره او ورځ شپې لره په جلدئ سره. او پيدا کړی ئې دی نمر

وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ مُسَخَّرَٰتٍۭ بِأَمْرِهِۦٓ ۗ أَلَا لَهُ

او سپوږمئ او ستوری. په داسې طريقې سره چه دا ټول تابع دی د هغه د حکم تکوينی. خبردار! صرف الله تعالی لره دی

الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ ۗ تَبَارَكَ اللَّهُ رَبُّ الْعَٰلَمِينَ ﴿٥٤﴾

پيدا کول او امر کول. ډير لويو برکتونو او کمالاتو والا دې الله چه رب العالمين دې.

[1] - د سورت دريمه دعوه يعنې خالق، مالك، کارساز صرف يو الله تعالی دې. لهذا صرف د هغه عبادت کوئ او صرف د هغه نه خپل حاجات غواړئ.

﴿إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ﴾ دادسورة دريمه دعوه ده يعنى ستاسورب هغه ذات دي چه دآسمانونو او زمكې بلكه دتمام كائناتوخالق دي اومتصرف دي، نوهركله چه خالق فقط الله تعالى دي اومتصرف فقط الله تعالى دي نومعبوداو اله فقط الله تعالى دي لهذا﴿ اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا﴾ تاسوخپل حاجت صرف دهغه نه غواړئ، د ﴿سِتَّةِ اَيَّامٍ﴾ نه مراد مقدار دشپږو ورځو دي ځكه چه دامتعارفه ورځ اوشپه دطلوع شمس سره وابسته دى نوچه شمس نه وو پيدانوشپه اوورځ ‹عرفى› هم نه وو .يامراد داياموته دعالم شهود ايام نه دى مراد بلكه دعالم غيب ايام مراددي اوبناء په قول اول دعلماؤدوه قوله دى يوداچه چه دشپږ ورځونه زمونږ دشپږو ورځو مقدار مراد دي، دويم داچه هغه ورځ چه زركاله ده لكه ﴿وَاِنَّ يَوْمًا عِنْدَ رَبِّكَ كَاَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ﴾ . نواسمانونه زمكه .‹كارخانه عالم› په شپږوورځوكښې ياپه شپږزروكالو.نوكښې تيار شويدى لكه چه سلسله دتوليداوتخليق دانسانانواوحيواناتو.نباتاتو اوس تدريجًا چليږى . الله تعالى قادردي چه دامخلوقات ټول په يوه لمحه كښې پيداكړى خوپه شپږ ورځوكښې ياپه شپږزروكالوپيداكولوكښې تعليم دي مخلوقاتوته دتثبّت اوتأنّي اوپه حديث كښې راغليدى، ((التاني من الله والعجلة من الشيطن)) يعنى دمه دمه حوصله سره كاركول دالله تعالى مرضى اودالله تعالى دَ توفيق نه دي اوجلدى كول دشيطان نه ده،علماء وائى چه عجلت په كارونوكښې خه نه دي مګرپه څلوروامورو كښې چه ذكرئ په حديث كښې راغليدي ‹١› جنازه چه كله تياره شى،، ‹٢› مونځ چه وخت ئ راشى‹٣› بي نكاح زنانه چه كفو ورته برابرشى‹۴› دمسافروايسى خپل كورته چه كله خپل مقصدپوره كړى، اواختلاف كړيدي علماؤ چه ابتداء دخلق دكومې ورځې نه شوې ده اوانتهائ په كومه ورځ شويده، په روايت دمسلم كښې دحضرت ابوهريره رضى الله عنه دادى چه ابتداء دخلق ديوم السبت نه شوې ده، او اختتام ئ دجمعرات ‹زيارت› په ورځ شويده. ‹نوجمعه ازلى چهتى ده› اودجمعې په مازديګر باندې آدم عليه السلام پيدا شويدې، د دې دا مطلب نه دې چه د ټولو نه د اولې جمعې په مازديګر باندې آدم عليه السلام پيدا شوې دي حتى چه دا حديث مخالف شى دآيت نه ځكه چه دآيت نه معلوميږى چه خلق په ستته ايام كښې شويدې اوددې حديث نه معلوم شوه استيعاب دسبعة ايام . بل داچه داخوظاهره خبره ده چه آدم عليه السلام ډيره زمانه پس پيدا شويدي. لكه په بل روايت كښې چه مذكوردى، حضرت شاه انورشاه كشميرى رحمه الله دي قول ته راجع وائى

اوشربینی وائ چه داصواب دې،اودویم قول دادې چه ابتداء دخلق دیوم الاحد.اتوار نه
شویده اوددې وجې نه دې ته یوم الاحدوائی اوپیرته یوم الاثنین . دغه شان الثلثاء الاربعاء.
یوم الخمیس وائی ځکه چه دا خامسه ورځ ده ،اوددې وجې نه دهفتی ورځی ته په پښتو کښې
دخالی ورځ وائ ځکه داخالی ده، دخلق نه ،ابن کثیروغیره دې قول ته ترجیح ورکړې ده

﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ﴾ دسورت په دریمه دعوه کښې ددوؤخبروذکردې یوداچه دټول عالم
خالق صرف الله تعالی دې اودویم داچه ددې چلونکې،متصرف،صرف الله تعالی دې. نولهذا

﴿ادْعُوا رَبَّكُمْ﴾ په دې جمله کښې ددې دویمې خبرې ذکرمقصوددې علامه شیربینی رحمه الله
په السراج المنیرکښې لیکی، چه وئیلیدی اهل سنت. چه استواء علی العرش صفت دالله
تعالی دې بلاکیف واجب دې ایمان په دې . اوحواله کوؤعلم ددې الله تعالی ته نومعنی داشوه
چه دالله تعالی دپاره استوی علی العرش په هغې وجه سره ثابته ده چه اراده کړیده الله تعالی.
منزه دې داستقرارا وتمکن نه، دامام مالک رحمه الله تپوس اوکړې شو . دالرحمن علی العرش
استوی، په باره کښې ، نودوئ سر ښکته کړواوبیائ رااوچت کړو. پده خولې وې او وې وئیل
چه ((الاستواء غیرمجهول والکیف غیرمعقول والایمان به واجب والسوال عنه بدعت وما اظنک الاضالا
ثم امربه فاخرج)) روایت دې دسفیان ثوری، اوزاعی اودلیث بن سعدوغیرهم دعلماؤداهل
سنت نه په باره ددې آیاتونو کښې چه راغلیدی یعنی په باره دصفاتومتشابهؤکښې. ((امروها
کماجاءت، اقرؤها بلاکیف واجماع السلف منعقدعلی ان لایزیدواعلی قراءة الایة — انتهی)) ددې کلام
دشربینی نه دامعلومه شوه چه استواء علی العرش صفت دالله تعالی دې بلاکیف. اودامام
مالک دقول. الاستواء معلوم، یاغیرمجهول، ددی معنی داده چه دامعلومه ده چه استواء
علی العرش صفت دالله تعالی دې،معلوم دې اطلاق دده په الله تعالی باندې. دامعنی ئ نه ده
چه معلوم المراددې، دارنګه ید، ساق،وغیره، ددینه مرادصفات دی، اجزاءابعاض نه دی.
اوداهم معلومه شوه چه تفویض دعلم ددې الله تعالی ته دا دسلفو قول دې لکه دعلامه
شیربینی دا قول، ((واجماع السلف منعقدعلی ان لایزیدواعلی قراءة الایة)) واضح دلالت کوی چه
سلفو دمتشابهاتو معانی لغویه نه دی اراده کړی خصوصاً،تجزی،تبعیض. په ذات دالله
تعالی کښی. (تعالی الله عمایقولون علواکبیر) تفصیل دمتشابهاتوپه سورة ال عمران کښې تیر
شویدې چه سلف ددې معنی نه کوی بلکه تفسیرئ په لفظ منصوصی سره کوی اوداسی وائ

((استواء يليق بشانه)) اومتاخرين اهل سنت ددې داسې تفسيرکوی چه دنورونصوصو او قواعد شرعيو سره موافق وی نودلته داستواء علی العرش، تفسير په تصرف سره کوی اودآيت مطلب دادې چه ددې کارخانه عالم ،خالق صرف الله تعالی دې، اود دې چلونکې صرف الله تعالی دې بل څانه ئ ددې دچلولو تصرف اختيارنه دې حواله کړې. ﴿أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ﴾ . يعنی خبردار صرف دالله تعالی په قبضه کښې پيداکول دی اوصرف دالله تعالی په قبضه کښې تصرف چلول دی، په عام عرف کښې چه داسې اووئيلې شی چه فلانې بادشاه په تخت کيناستلو .يافلانې سړې دصدارت يا د وزارت په کرسئ کيناستلو، نوددينه مراد. اختيارات کنټرول وی يعنی دملک اختيارکنټرول ورسره دې، اګرکه په تخت اوپه کرسئ نه وی ناست، په زمکه ناست وی، دلته ترينه هم دامعنی مرادده يعنی تصرف اواختيارصرف دالله تعالی دې ځکه چه استواء علی العرش په قرآن پاک کښې، اوه ځايونوکښې ذکرشويدې (۱) دلته په اعراف کښې آيت نمبر ۵۴ (۲) سورت يونس، آيت نمبر ۳،(۳) سورت طه آيت نمبر ۵ ، (۴) سورت رعد، آيت نمبر ۲ ، (۵) سورت آلم سجده، آيت نمبر ۴ ، (۶) سورت فرقان ، آيت نمبر ۵۹ ، (۷) سورت حديد ، آيت نمبر ۴، اوتقريباً په هرځائ کښې داستوی علی العرش نه بعدمتصلاً دتصرفاتوذکرکيږی، لکه دلته ﴿يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ﴾ په سورت يونس کښې. ﴿يُدَبِّرُ الْأَمْرَ﴾ په سورت الم سجده کښې ﴿مَا لَكُم مِّن دُونِهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا شَفِيعٍ أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ ۝ يُدَبِّرُ الْأَمْرَ مِنَ السَّمَاءِ﴾ په سورت حديدکښې، ﴿يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ﴾، ﴿لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ . ددينه معلوميږی چه دغه تفسير د ((استوی علی العرش)) دې ،اوداسې تفسيرددې قسم متشابهاتو کول مخالف نه دې درائ. دسلفو سره بلکه دسلفونه تفسيردبعض متشابهاتومنقول دې ... وداقسم تفسيرغلط هم نه دې اوګمراهی هم نه ده اونه په دې سره دزمرې داهل سنت نه خروج ... ودسلفونه مخالفت رازی، بلکه دمتشابهاتوداسې معنی حقيقی لغوی اراده کول چه دهغې نه ... زميږی داخبره چه ذات دالله تعالی لره ،اجزاء، ابعاض، اعضاء دی داقسم تفسيرغلط دې ونسبت ئ سلفوته جهالت ياخيانت دې، والله الهادی الی سبيل الرشاد، اوبناء په دې ... فسير. ﴿ثُمَّ﴾ دتراخی فی الذکرده دې چه دهغې ترجمه حضرت الشيخ به داسې کوله (...) بيا داهم واوره ﴿يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ﴾ دادتصرفاتوبيان دې، فاعل ديُغشی ضميردې چه

...اجع دي الله تعالى ته او ((الليل)) مفعول اول دي چه معنٰی فاعل (غاشی پټونکي) دي ﴿النَّهَارَ﴾ مفعول ثانی دې يعنی پټوی الله تعالى په تيارې دشپې سره رڼرا دورځې. ﴿يَطْلُبُهُ﴾ طلب کوی شپه ورځې لره ياورځ شپې لره ﴿حَثِيثًا﴾ ای طلبًاحثيثًا په جلتئ سره يعنی په درميان کښې داسې وقت نه راځی چه هغه نه شپه وی نه ورځ. ﴿مُسَخَّرَاتٍ﴾ داټول نظامی شمسی قمری وغيره ټول دالله تعالى دحکم تکوينی ماتحت دې. طلوع، غروب، کسوف خسوف. ګرمی. يخنی تياره رڼرا، داټول دالله تعالى دحکم تکوينی ماتحت دی.

﴿أَلَا لَهُ الْخَلْقُ﴾ يعنی خالق صرف الله تعالى دې ﴿وَالْأَمْرُ﴾ يعنی متصرف اوچلونکې ددې نظام صرف الله تعالى دې بل چاته ئ هيڅ نه دی حواله کړی نودا په ماقبل مرتب دې لف نشرمرتب طورسره ،دعالم خلق ،اوعالم امر، تعريف، بعض داسی کوی چه عالم خلق هغه دې چه مادی وی اوعالم امرهغه دې چه مادی نه وی لکه روح. بعض وائ چه عالم خلق هغه ته وائ چه بالتدريج وجودته راغلې وی اوعالم امرهغه دې چه بالتدريج نه وی بلکه دفعةً وی اوبعض وائ چه ماتحت العرش عالم خلق دې اومافوق العرش عالم امردې، اوحضرت مولاناعثمانی رحمه الله تعالى اوبعض نورحضرات وائی چه خلق پيداکول ددې عالم دی. اوامر تصرف اوچلول ددی عالم دی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اُدْعُوْا | رَبَّكُمْ | تَضَرُّعًا | وَّخُفْيَةً ۚ | اِنَّهٗ | لَا يُحِبُّ |

دعا غواړئ د خپل رب نه په عاجزئ او په پټه سره (او د حد نه تجاوز مکوئ) بيشکه الله تعالى محبت نکوی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْمُعْتَدِيْنَ ۝ | وَلَا تُفْسِدُوْا | فِي | الْاَرْضِ | بَعْدَ | اِصْلَاحِهَا |

د حد نه تيريدونکو سره او فساد مکوئ (په شرک سره) په زمکه کښې. پس د اصلاح دهغې نه په توحيد سره

وَادْعُوْهُ خَوْفًا وَّطَمَعًا ۚ اِنَّ رَحْمَتَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِيْنَ ۝

او دعا غواړئ د الله تعالى نه په يرې او طمع سره، بيشکه رحمت د الله تعالى نزدې دې نيک عمل کوونکو ته

﴿اُدْعُوْا رَبَّكُمْ﴾ په دې کښې دحصرمعنی ده يعنی صرف دخپل رب نه سوال کوئ اوصرف دهغه نه خپل حاجات طلب کوئ، ﴿تَضَرُّعًا﴾ دامنصوب بنابرحاليت دې تضرعاً په معنی د

((متضرعين)) سره یاد ((ذی تضرع)) سره، دغه شان ﴿وَخُفْيَةً﴾ هم منصوب بنا برحالیت دي.
او دا دواړه د آدابو د دُعانه دی. تضرع ماخوذ دې د (ضرع) نه په معنی د (ذُل) سره ((یقال تضرع فلان لفلان اذا ذل له واستکان)) اوبعض وائی چه تضرع په معنی دتملق (چاپلوسی) سره دي اوبعض وائ چه تضرعاً په معنی دعلانیةً سره دي، اوخفیةً په معنی دسِراسره دي. اوچه تضرعاًپه معنی دعاجزئ سره شی نوددینه استدلال کړيدي علماؤچه اصل په دعاکښې اودارنګه په ذکرکښې اخفاء ده، اوالله تعالی دحضرت ذکریا علیه السلام مدح کړيده په دې سره چه ﴿إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥ نِدَآءً خَفِيًّا﴾، نومعلومه شوه چه اخفاء اولی ده، او ابعده ده د ریاء نه. اودحسن نه روایت دي ((ان الله یعلم التقی والدعاء الخفی)) یعنی الله تعالی عالم دې په تقی اوپه دعاخفی باندې اودسلفو عادت ووچه ټول قرآن به ئ یادوولیکن ګاونډیان به ترینه نه ووخبراوطویل مونځ به ئ کولو او ملاقات کونکوته به ئ علم نه وو، اودارنګه دحضرت حسن نه روایت دې چه خفی دعا ذکر دجهری نه اویادرجې زیات فضیلت لری، اودارنګه ددوئ نه روایت دې چه صحابؤ ،جُهد او کوشش کوؤ په دې کښې اوآوازدهغوئ به نه شواوریدلې مګرهمس، (نرې آواز،خُس کارې).

﴿إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلْمُعْتَدِينَ﴾ داهم دآدابو ددعانه ده چه اعتداء به نه کوی، اوداعتداء یعنی دحدنه تجاورکولودپاره هم مختلف صورتونه دی یوداچه غیرضروری شرطونه اوقیدونه ذکرکړی لکه په روایت دابوداؤدکښې دی چه حضرت عبدالله بن مغفل خپل ځوې اوکتلوچه دعائ کوله، ((اسئلک القصرالابیض عن یمین الجنة)) نودوئ هغه له لره منع کړوچه دااعتداء ده په دعا کښې، بل صورت داهم دې چه تکلف کوی دسجع اودقافیه په الفاظوکښې، اوبل صورت داهم دې چه سوال کوی دداسې څیزچه هغه دده، دشان سره مناسب نه وی لکه درجه دَ نبوت وغیره،یادعامومسلمانانودضرراونقصان سوال کوی.

﴿وَلَا تُفْسِدُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَـٰحِهَا﴾ داصلاح ،اضافت ((ها)).ته اضافت مفعول ته دې، اوفاعل مقدردې ((ای بعداصلاح الله تعالی ایاها)) یعنی تاسوفسادمه کوئ په زمکه کښې پس ددې نه چه الله تعالی ئ اصلاح کړيده په ارسال درُسلو اوانزال دکتبوسره، یاپه توحیدسره ، اوفسادعام دې،قتل دنفوسو، فساد دمالونو په غصب اوسرقه سره فساد دنسبونو په زناؤ سره اولواطت سره او دټولونه لوئ فساد کفر ،شرک دې اودارنګه بدعت دې ﴿وَٱدْعُوهُ﴾ داپ

معنی دعبادت سره دي ((ای اعبدوه)) یا په معنی دبلنی اوسوال کولو سره دي نو مکرر ذکر کول
نی یا د وجې داهتمام نه دي یا د دې وجې نه چه دلته ددعاآداب باطنیه ذکر کیږی چه هغه خوف
اوطمع دی. ﴿ خَوْفًا وَطَمَعًا ﴾ منصوب دي بناء په مفعول له یابنابرحالیت ((ای ذوی خوفٍ من
الرد لقصورکم عن اهلیة الاجابة وذوی طمعٍ فی الاجابة تفضلاً منه)).مطلب دادي چه دعا په دې
طریقه سره پکارده چه په زړه کښې داکیفیت وی چه خپل ځان قاصر گنړی دَ اهلیة داجابت نه
نو خوف ئی وی د رَدکیدلو د دعاء او د الله تعالی د لوئ فضل په وجه طمع لری د اجابت ددعاء
﴿ إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ ﴾ محسنین هغه دی چه عقیده صحیحه د توحید لری
اوعمل ئ موافق دسنت سره وی، اودرحمة نه مراد ثواب اوقبولیت ددعاء اودعبادت دې.
دلته (قریب) خبردې د ( رحمت الله) دپاره نوداسم دانّ اودخبرپه مینځ کښې مطابقت نشته دې
په تذکیر،تانیث کښ نوددی دپاره مختلف توجیهات دی، (۱) لفظ درحمت زایددې لکه
((سبح اسم ربک)) کښې اسم زاید دې په دلیل ددې سره چه ددې امر د تعمیل دپاره داسې
وئیلې شی ((سبحان ربی الاعلی)) اوداسې نشی وئیلې ((سبحان اسم ربی الاعلی)) (۲) رحمت په
معنی داحسان، اوثواب سره دې(۳) تذکیرد مضاف الیه په لحاظ سره دې(۴) تانیث درحمت
حقیقی نه دې نو تذکیرتانیث دواړه پکښې جائزدی.

| وَهُوَ الَّذِي يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ ۖ حَتَّىٰ |
|---|
| او الله تعالی هغه ذات دې چه رالیږی هواګانې زیرې ورکوونکې مخکښې د رحمت (باران) دهغه نه. تر دې پورې |
| إِذَا أَقَلَّتْ سَحَابًا ثِقَالًا سُقْنَاهُ لِبَلَدٍ مَّيِّتٍ فَأَنزَلْنَا |
| چه کله را پورته کړې وریزې درنې په اوبو سره روانې کړو مونږ هغه ، طرف د زمکې مړې (وچې) ته ، پس راوره وؤ مونږ |
| بِهِ الْمَاءَ فَأَخْرَجْنَا بِهِ مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ ۚ كَذَٰلِكَ نُخْرِجُ الْمَوْتَىٰ |
| په هغې باندې اوبه، پس راؤباسو مونږ په هغې سره هر قسم میوې، دغسې راؤباسو مونږ مړی د قبرونو نه. |
| لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ۞ وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهُ بِإِذْنِ رَبِّهِ ۖ |
| لپاره ددې چه تاسو نصیحت قبول کړئ . اوکلې پاکیزه(عمده زمکه) راؤزی بوټی دهغې نه په حکم درب دهغې. |

| وَالَّذِيْ خَبُثَ لَا يَخْرُجُ اِلَّا نَكِدًا ۭ كَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ |
|---|
| اوهغه زمكه چه خرابه (خوره ناكه) وى، نه راؤباسى مگر بې كاره بوټى. دغسې قسم، قسم بيانوؤ مونږ آيتونه |
| لِقَوْمٍ يَّشْكُرُوْنَ ۝ |
| هغه قوم لره چه شكر كوى |

﴿ وَهُوَ الَّذِيْ يُرْسِلُ الرِّيٰحَ ﴾ دادليل عقلى دې په توحيدباندې، اودتصرفاتوبيان دې چه لكه څه رنگه چه الله تعالى په علوياتوشمس. قمر.نجوم. كښې متصرف دې نودغه شان په مادياتوسلفياتوكښې متصرف دې، اومثال هم دې دقرآن اودتوحيددپاره چه قرآن په شان دباران رحمت دې لكه په حديث كښې دى ((مثل مابعثنى الله به من الوحى كمثل غيث اصابت الارض – الخ)) دباران نه مخكښې هواگانې خوشخبرى وركونكى وى دغسې دقرآن نه مخكښې كتابونوكښې دقرآن اودرسول الله صلى الله عليه وسلم بشارات وو، اولكه څه رنگه چه دباران نه مخكښې وريځې وى نودغسې په ابتداء كښې مشركينوسختى مقابلې اوتيارۍ جوړى كړې وى. اولكه څه رنگه چه زمكه يوقسمه هغه وى چه په باران سره ترينه فائده حاصليږى بل قسمه بې كاره وى نودغه شان دقرآن نه بعض خلق فائده حاصلوى اوبعضوته نقصان رسى، ﴿بُشْرًا﴾ داجمع دبشيرده يعنى خوشخبرى وركونكى، اوپه يوقراءت كښې نُشراً دې نوهغه په معنى دخوَرونكو،يا په معنى دژوندى كونكوسره دې﴿ اَقَلَّتْ ﴾ دا هواگانې دمشرق اومغرب طرف نه راشى اووريځې راؤچتى كړى نوبيادغه وريځې الله تعالى روانې كړى طرف دهغه كلى ته چه وچ وى اوپه هغې باران اوكړى.

**هواگانې څلورقسمه دى** (صبا) وريځى راؤچتوى (شمال) وريځې جمع كوى (جنوب) وريځى گرځوى (دبور) وريځې جداجداكوى، ﴿كَذٰلِكَ﴾ داجمله معترضه ده دپاره دبيان دنمونې دبعث بعدالموت،﴿ وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ ﴾دامثال دې دپاره دمؤمن اودكافر. قلب دمؤمن دعمده زمكې په شان دې په عمده زمكه چه باران اوشى نودهغې نه ميوې گلونه اونورنفع ولاخيزونه پيداشى نودمؤمن په زړه چه دقرآن رحمت راشى نودده بدن نه خائسته اعمال اخلاق پيداشى اودكافرقلب د، بې كاره ،اوښوره ناكې زمكې په شان دې باران پرې اوشى نوڅهٔ ترينه نه پيداكيږى اوكه پيداشى نوهغه بې كاره ناقص وى. نودغه شان كافرته كه قران

اورسی نوده ته هیڅ فائده نه ورکوی. ﴿لَا يَخْرُجُ﴾ ای نباته ﴿إِلَّا نَكِدًا﴾ ((ای قلیلاً لاخیر فیه)) (روح) منصوب بنابرحالیت دي ((ای ذانکد)) .

**فایده** ددی ځایه پورې درې دعوې پوره شوې، ددینه پس شپږ قصې ذکرکیږی چه دررې واړو دعوو سره متعلق دی اول درې قصې ددریمې دعوی سره متعلق دی څلورمه قصه ددویمې دعوې سره متعلق ده پنځمه قصه ددویمې اودریمې دعوې سره متعلق ده اوشپږمه قصه داولې دعوې سره متعلق ده .

لَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ فَقَالَ يَٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ

اوبه تحقیق سره لیږلې وو مونږ نوح[1] قوم دهغه ته . پس وې ویل چه اې زما قومه. خاص د یو الله عبادت کوئ.

مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥٓ ۖ إِنِّىٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ۝ قَالَ الْمَلَأُ

نشته تاسولره هیڅ څوك معبود، غیر دهغه نه، بیشکه زه یریږم په تاسو باندې د عذاب د ورځې لوئی نه وه ویل غټانو

مِن قَوْمِهِۦٓ إِنَّا لَنَرَىٰكَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ۝ قَالَ يَٰقَوْمِ لَيْسَ بِى

د قوم دهغه، بیشکه مونږ وینو تا لره په ګمراهئ ښکاره کښې . وه ویل هغه اې قومه څما نشته په ما باندې

ضَلَٰلَةٌ وَلَٰكِنِّى رَسُولٌ مِّن رَّبِّ الْعَٰلَمِينَ ۝ أُبَلِّغُكُمْ رِسَٰلَٰتِ رَبِّى

هیڅ قسم ګمراهي لیکن زه رسول یم د طرف د رب العالمین نه . رسوم تاسوته پیغامونه (حکمونه) د رب خپل.

وَأَنصَحُ لَكُمْ وَأَعْلَمُ مِنَ اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ۝

او خیر خواهی کوم ستاسو او پوهیږم د طرف د الله تعالی نه په هغه څه چه تاسو پرې نه پوهیږئ

﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا﴾ دااوله قصه ده. د دریمې دعوې سره متعلق ده یعنی داخبره چه ((اُعْبُدُوْا رَبَّكُمْ)) صرف دیورب عبادت کوئ داځه نوې خبره نه ده بلکه ډیره پخوانئ مسئله ده چه نوح عليه السلام خپل قوم ته بیان کړیده . لفظ د (نوح) علم عجمي دې چونکه ثلاثی ساکن الاوسط دې نوددې وجې نه منصرف دې اوظاهره داده چه نوح علَم دې مشتق نه دې دځه نه. اوچاچه

---

[1] . اوله قصه د دریمې دعوې سره متعلقه ده بطور لف نشر غیر مرتب .

ونیلی دی چه دالقب دې مشتق دنیاحة، نه اونوح ورته دکثرت نیاحت دوجې نه وائ. اواسم محض نی(سکن یا شاکریاعبدالغفار. یاعبدالجبار) وو. دا مرجوح دې، نوح علیه السلام اول هغه نبی دې چه دمشرکینودمقابلې دپاره رالیګلې شوې وو. دحضرت آدم علیه السلام نه پس دلس پُشتونوپورې اولاددآدم علیه السلام په توحیدباندې قائم وو. دشرک اودبت پرستئ ابتداء ددینه اوشوه، (کماهومروی عن ابن عباس رضی الله عنه) چه بعض صالحین وفات شوچه دهغوئ نومونه، (وُد ،سُواع، یغُوث، یعُوق، نسر) وؤ، نوخلقودهغوئ تصویرونه جوړ کړو. ددې دپاره چه دهغوئ داحوالواوعباداتویادتازه وی، نوبیاځه زمانه پس نورخلق چه پیدا شو. نوهغوئ ددغه تصویرونومطابق مجسمې جوړې کړې، ځه زمانه پس ددغه مجسموعبادت شروع شو نوهرکله چه بُت پرستی عامه شوه نوالله تعالی نوح علیه السلام رااولیګو. حضرت نوح علیه السلام قوم ته، نه نیم سوه(۹۵۰) کاله تبلیغ کړیدې، اونبوت ورته دیوقول مطابق دپنځوس کالونه پس ملاؤشویدې اودبل قول مطابق ورته دځلورسوه کالونه بعد ملاؤشویدې اوکل عمرئ ددې مشهورقول مطابق څوارلس نیم سوه کاله دې ،اطول الانبیاء عُمراً دې.

﴿إِلَىٰ قَوۡمِهِۦ﴾ ددې نه معلومه شوه چه بعثت ئ عام نه وو ،بلکه دخپل خاص شریعت په اعتبارسره صرف خپل قوم ته مبعوث وو. یعنی دنوح علیه السلام شریعت صرف ددغه زمانې دخلقودپاره وؤ. اګرکه اصول دټولوانبیاؤ مشترک دی، په دغه وخت کښې په ټوله زمکه کښې ټول خلق هم دغه ووچه نوح علیه السلام ورته رالیګلې شوې وو. لیکن دده شریعت صرف ددغه موجوده زمانې دخلقودپاره وو، دعامودپاره نه وو. نودده عموم بعثت ثابت نه شو،ځکه دعموم بعثت معنی داده چه دنبی شریعت دتماموانسانانودپاره وی، بلکه عموم بعثت دخواصودسیدالکونین حضرت محمدمصطفی صلی الله علیه وسلم نه دې چه شریعت ئ دتماموهغه انسانانودپاره دې چه موجودووپه زمانه دده کښې اودقیامت پورې پیدا کیدونکی ټول انسانان ،بلکه دټولوجناتودپاره،بلکه بناپه قول تحقیق باندې دملائکو او ټولو جماداتودپاره رسول دې،اوفائده دارسال معصومینوته اوجماداتوته اظهار دشرافت دې په ټولومخلوقاتو.

﴿يَٰقَوۡمِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ﴾په دې کښې دحصرمعنی ده یعنی صرف دیوالله عبادت کوئ، مالی عبادت وی اوکه بدنی عبادت وی اوکه قولی عبادت داټول صرف دالله تعالی دپاره خاص کړئ. ﴿مَا لَكُم مِّنۡ إِلَٰهٍ﴾ (من) زائددې دتاکیددنفی دپاره، معنی ئ داده نشته دې ستاسودپاره

هیڅوک اله غیرد الله تعالی نه، اودتوحیدنه په انکارکولوسره عذاب ددنیا او دعقبی راخی •
﴿قَالَ الْمَلَأُ﴾ د انبیاؤمخالفت اول دقوم رئیسانوکریدې، ملا. اشراف مالداران اومشرانو
دقوم ته وائی ، ((یملاالقلوب بجلالهم والعینون بجمالهم)) دوئ نوح علیہ السلام ته گمراه وائ
اودتوحیددعوت ته گمراهی وائ﴿لَيْسَ بِي ضَلَالَةٌ﴾ دا ابلغ دې د ضَلَالٌ نه څکه چه ضللة
دلالت کوی په جنس باندې نونفی دجنس ابلغ وی ﴿ وَلَكِنِّي رَسُولٌ ﴾ دادعوه درسالت ده
اودکفارودقول رددې علی سبیل الترقی یعنی زه گمراه نه یم بلکه دهدایت په لویه اعلی مرتبه
یعنی رسالت باندې فائزیم ﴿ أُبَلِّغُكُمْ ﴾ دمنصبِ نبوة ذمه واری تبلیغ دې په همدردئ
خیرخواهئ سره، هرنبی خیرخواه اوشفیق وی په امت، نبی چه دتوحیدواضح بیان کوی
اودلائل دتوحیدبیانوی نوپه زړه کښې ئ دقوم خیرخواهئ همدردی وی اودچادمغلوب کولو.
ساکت کولو، رسواکولواراده اواندازپکښې نه وی ﴿وَأَعْلَمُ مِنَ اللَّهِ﴾ دنبی علم دالله تعالی
دطرف نه وهبی علم وی په ذریعه دوحی سره اوزیات وی دعلم د امت نه نو حضرت نوح علیہ السلام
فرمائی چه ما ته د الله تعالی د طرف نه دا علم دې چه په انکار سره عذابِ دنیوی اواخروی
راخی

| أَوَعَجِبْتُمْ أَنْ جَاءَكُمْ ذِكْرٌ مِنْ رَبِّكُمْ عَلَى رَجُلٍ مِنْكُمْ |
|---|
| آیا تعجب کوئ تاسو چه راغې تاسوته نصیحت د طرف د رب ستاسو نه په واسطه د یو سړی سره ستاسونه، |
| لِيُنْذِرَكُمْ وَلِتَتَّقُوا وَلَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٦٣﴾ |
| د دې لپاره چه ویروی تاسو او چه بچ شئ تاسو د شرك نه او د دې لپاره چه په تاسو رحم وکړې شی |
| فَكَذَّبُوهُ فَأَنْجَيْنَاهُ وَالَّذِينَ مَعَهُ فِي الْفُلْكِ وَأَغْرَقْنَا |
| پس دوئ تکذیب کوؤ دهغه پس بچ کړو مونږ ده لره او هغه څوك چه دهغه سره وؤ په کشتئ کښې او غرق کړل مونږ |
| الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا عَمِينَ ﴿٦٤﴾ |
| هغه کسان چه تکذیب ئې کولو زمونږ دآیتونو، بیشکه وؤ دوئ قوم رانده |

﴿أَوَعَجِبْتُمْ﴾دمشرکینودشبهاتونه یوه لویه شبه داوه چه درسالت اوبشریت په مینځ کښې

منافات دي.لکه دوئ به وئيل ﴿لَوْ شَآءَ رَبُّنَا لَاَنْزَلَ مَلٰٓئِكَةً﴾ لکه موجوده اهل بدعت هم دغه شان گمان لري چه رسول وی نوبشربه نه وی، دَ دوئ او دَ هغوئ په مينځ کښې فرق دادې چه مخکنومشرکانونبی ليدلې وونودبشريت نه ئ انکارنشوکولې نودرسالت به ئ انکارکوو. اوموجودواهل باطلونبی نه دې ليدلې نودنبوت نه انکارنه کوی خودبشربيت نه انکارکوی. اوبنياد دټولو يو دې، نوحضرت نوح ﷺ فرمائی چه داڅه دتعجب خبره نه ده چه بشررسول شی ﴿عَلٰى رَجُلٍ مِّنْكُمْ﴾ په واسطه ديورجل سره،ستاسودجنس نه. بشرِ. رَجُلٍ مِّنکُمْ. نه واضحه معلومه شوه چه نبی بشراومذکروی اونسب ئ معلوم وی اوعمده اعلی نسب والاوی. ﴿لِيُنْذِرَكُمْ﴾ رسالت دپاره دانذاردې اوانذارسبب دتقوی دې ﴿وَلِتَتَّقُوْا﴾ اوتقوی سبب درحم دې ﴿وَلَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ﴾ اودلته لَعَلّ ذکرشونوپه دې کښې اشاره ده ديته چه په تقوی سره داجراوثواب لزوم وجوب نه راځی بلکه رحمت اوثواب محض فضل احسان دَ الله تعالی دې. اودارنګه اشاره ده ديته چه متقی دې اعتمادپه خپل تقوی نه کوی، اوبې خوفه کيدل ورته نه دی پکار﴿ فَكَذَّبُوْهُ﴾ صيغه دماضی ده دوام اواستمراردپاره ده ،يعنی دوئ مستمرووپه تکذيب باندې،نومونږ بچ کړل دلره اوهغه څوک چه دده سره ووپه کشتئ کښې چه دهغوئ په تعدادکښې مختلف اقوال دی داابن عباس رضی الله عنه قول دادې چه اتيا (۸۰) کسان وو، او د ﴿الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا﴾ نه معلوميږی چه طوفان صرف د نوح ﷺ د قوم په علاقه وؤ چه هغه عراق دې، اوکومه خبره چه طوفان په ټوله زمکه وؤ نو د هغې دا توجيه کيدې شی چه ټوله هغه زمکه چه انسانان پرې آباد وؤ. ﴿قَوْمًا عَمِيْنَ﴾ دزړونوړوندوالې ترينه مراددې.

| |
|---|
| وَاِلٰى عَادٍ اَخَاهُمْ هُوْدًا ۗ قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ |
| اوليږلې وؤ مونږ عاديانو ته[1] رور دهغوئ هود، وه ويل ده اې قومه څما ! صرف د يو الله بندګی کوئ نشته ستاسو لپاره |
| مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ۗ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ۞ قَالَ الْمَلَاُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖٓ |
| هيڅوک معبود غير د هغه نه، آيا پس بچ کيږئ تاسو د شرک نه. وه وئيل غټانو هغو چه کفر ئې کړې وؤ د قوم د ده نه، |

۱ - دويمه قصه د دعوی ثالثي سره متعلقه.

إِنَّا لَنَرَاكَ فِي سَفَاهَةٍ وَإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ﴿۶۶﴾

...ښکه مونږ خامخا وینو تا لره په کم عقلتیا کښې او بیشکه مونږ خامخا گمان کوو په تا باندې د دروغژنو نه

قَالَ يَا قَوْمِ لَيْسَ بِي سَفَاهَةٌ وَلَٰكِنِّي رَسُولٌ مِّن رَّبِّ الْعَالَمِينَ ﴿۶۷﴾ أُبَلِّغُكُمْ

وه ویل ده اې قومه ځما نشته په ما باندې هیڅ کم عقلتیا لیکن زه رسول یم د طرف د رب العالمین نه رسوم تاسو ته

رِسَالَاتِ رَبِّي وَأَنَا لَكُمْ نَاصِحٌ أَمِينٌ ﴿۶۸﴾ أَوَعَجِبْتُمْ أَن جَاءَكُمْ

پیغامونه (حکمونه) درب خپل اوزه ستاسولپاره خیرخواه ، امانت گریم آیا تعجب کوئ تاسو چه راغي تاسو ته

ذِكْرٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنكُمْ لِيُنذِرَكُمْ ۚ وَاذْكُرُوا

نصیحت (وحي) د طرف د رب ستاسونه په واسطه د یو سړي ستاسونه، د دې لپاره چه تاسو ویروی. او یاد کړئ دا نعمت

إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ مِن بَعْدِ قَوْمِ نُوحٍ وَزَادَكُمْ

کله چه وگرځولئ الله تعالی تاسو خلیفه گان د زمکې، وروستو د قوم د نوح نه او زیات نې کړو تاسو لره

فِي الْخَلْقِ بَسْطَةً ۖ فَاذْكُرُوا آلَاءَ اللَّهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿۶۹﴾

په پیدایش (جسمونو) کښې فراخي (قوت) پس یاد کړئ نعمتونه د الله تعالی د دې لپاره چه کامیاب شئ تاسو

قَالُوا أَجِئْتَنَا لِنَعْبُدَ اللَّهَ وَحْدَهُ وَنَذَرَ مَا كَانَ يَعْبُدُ

وه ویل دوئ . آیا ته مونږته راغلې نې ددې لپاره چه مونږ بنده گي وکړو دیو الله او پریږدو هغه چه دهغوئ عبادت به کولو

آبَاؤُنَا ۖ فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴿۷۰﴾

زمونږ مشرانو. پس راوړه مونږ ته هغه عذاب چه ته یروی مونږ دهغې نه کچرې نې ته درښتیا ویونکو نه

﴿وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا﴾ دا دویمه قصه ده، اوددریمې دعوې سره متعلق ده ،عاد دحضرت نوح علیه السلام په نسل کښې په پنځم پُښت کښې دددوئ دځوئ سام په اولادکښې دي اودوئ ته عاداولی اوعادارم وئیلې شی،ارم دعادیانواوثمودیانودواړوجدااعلی دې اودعاد سره اولی ذکرکول دتمیزدپاره دی دثمودیانونه، ځکه چه عاداوثموددواړه د ،،ارم،،دوه شاخونه دی چه

یو ته عاداولی وئیلې شي اوبل ته ثمودوئیلې شي، اوبعض مفسرین وائ چه په قوم عادچه هرکله عذاب راغلونودوئ یو وفدمکې معظمې ته راغلې ووهغوئ دعذاب نه محفوظ وو، نودوئ ته عاد اُخری وئیلې شي، اوقوم عاددیارلس قبیلې وې سکونت ئ په احقاف کښې وو دعمان نه دحضرموت اویمن پورې آبادوو، ددوئ کلی، علاقی، ډیرآبادوو، سرسبز باغونه زمکې ئې لرلې اوډیرقوی الجثه وواوپه ټول خلقوباندې غالب وو، دالله تعالی دطرف نه په دوئ باندې مالی جسمانی انعامات ډیرپه کثرت سره وولیکن دوئ دخپل قوت وشوکت په نشه کښې مست وو، اود ﴿مَنْ اَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً﴾ نعرې ئې لګولې، اوپه شرک اوبُت پرستئ کښې مبتلاء وونوالله تعالی په دوئ باندې خپل بل روحانی انعام اوکړو چه نبی ئ ورته مبعوث کړو. حضرت هود عليه السلام هم دحضرت نوح عليه السلام په نسل کښې په پنځم پشت کښې. بعض حضرات مفسرین اتم پشت وائ دسام په اولادکښې وو،اوددې وجې نه ئې ورته ((اخاهم هودا)) اووئیل، حضرت هود عليه السلام خوې دیعرب، ابن قحطان، دې، چه په یمن کښې آبادوواویمنی قوم ددوئ په نسل کښې دې، دوئ ته قحطانی وئیلې شي، په حدیث دبخاری اوابوداؤدکښې ((مَلِکٌ من قحطان)) راغلیدې، په یمن کښې دعربی لسان ابتداء دیعرب نه شویده، دامخکنی عرب ووچه دوئ ته عربِ عارِبَه وئیلې شي، اودحضرت اسمعیل عليه السلام نه پس والاؤته ، عربِ متعرِّبه وئیلې شي، حضرت هود عليه السلام خپل قوم ته تبلیغ شروع کړو

﴿يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ﴾ دنوح عليه السلام په قصه کښې فاء ذکرده، ((فقال)) دلته نشته دې، ددې **یوه توجیه** داده چه په فاء ذکرکولوکښې اشاره ده اتصال اودوام ته یعنی دبعثت سره متصل همیشه دعوت شروع کړو چه دادهغه خصوصی فضیلت وو، **دویمه توجیه** داده چه هغلته فاء دپاره دتفصیل دماقبل ده اودلته ((قال)) جمله مستانفه ده جواب دسوال دې چه څه ئ اووئیل نوجواب اوشوچه ((قال ـ الخ)) اودنوح عليه السلام په قصه کښې ، ﴿قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهٖ﴾ دې

﴿الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ ورسره نشته دې اودلته شته دې نوددی وجه داده چه په قوم دهودعلیه السلام کښې بعض غټان داسې ووچه کفرئ نه ووکړې، لکه مرثدبن سعدنوددې وجې نه ((الذین کفرو)) ذکرشو. چه اشاره شي چه اعتراضونه اوطعنونه صرف هغه غټانوکړی ووچه کافران وو. اودحضرت نوح عليه السلام قوم تمام غټان کافرووهیڅ یوپه کښې ایمان نه وو راوړې نوځکه ((الذین کفروا)) ذکرنشو ﴿فِيْ سَفَاهَةٍ﴾ سفاهت دعقل کمزورئ ته وائ، اوفی. ذکرکول

ومبالغې دپاره دی ((ای متمکنا راسخا فی سفاهة)) په هرنبی باندې جدا جدا طعن لګیدلې دې.
دنوح عليه السلام په قصه کښې «ضللة» دې او دلته «سفاهة» دې.

﴿لَيْسَ بِي سَفَاهَةٌ﴾ رسول کم عقل کم علم نه وی، بلکه رسول ته درب العلمین دطرفه دواړه اکمل ورکړې شوی وی. ﴿وَأَنَا لَكُمْ نَاصِحٌ﴾ د نوح عليه السلام په قصه کښې ((أنصح)) په صیغه دفعل سره مذکوردې چه دلالت کوی په تجددباندې ځکه چه دنوح عليه السلام دعوت په نوې نوې طریقوسره وو، لیلاً، نهاراً سراً وجهراً وغیره لکه په سورت نوح کښې مذکور دی اودعوت دهود عليه السلام دغه شان نه وونو دلته صیغه داسم فاعل ذکرشو﴿أَمِينٌ﴾ ذکر کول دخپل ذات دمدح دپاره نه دی بلکه مقصود رد دقول دکافرانودې چه وئیل ئې ﴿وَإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكَاذِبِينَ﴾ نودسوال واردنه شو چه مدح دخپل ذات کول ممدوح نه دی﴿خُلَفَاءَ مِنْ بَعْدِ قَوْمِ نُوحٍ﴾ یعنی دنوح عليه السلام دقوم دهلاکت نه پس ئې تاسوته دزمکې خلافت اوتصرف درکړواوجسمانی قوت ئې درکړونوددې نعمتونوشکریه داده چه ایمان راوړئ.﴿فِي الْخَلْقِ﴾ په جسمونوکښې ((فيماخلق من اجرامکم)) «کشاف» ﴿بَصْطَةً﴾ قوة، زیات والې، دقران دظاهر نه معلومیږی چه ددوئ جسمونه دعاموانسانانودجسمونونه زیات اوقوی وو، په بعض روایاتو کښې دی چه څلورسوه ګزه دبعضُ طول وو، اواونی طول به ئې سل ګزه وو، نوکه دغه روایات صحیح وی نوبیامراددزیادت دجسم نه زیادت دې په مقداردطول چه دحضرت آدم عليه السلام په زمانه کښې وو، نودحدیث صحیحه نه مخالفت نه راځی چه بخاری وغیره روایت کړیدې چه دآدم عليه السلام قد شپیته ذراعه وو، اواولادبه ئې دهغې نه نه کمیږی ځکه چه ددی آیت نه معلومه شوه چه دعادیانوقددآدم عليه السلام دقدنه هم زیات وو. والله اعلم. ﴿أَجِئْتَنَا﴾ استفهام انکاری په معنی د ((لاینبغی)) سره دې یعنی داستادعوت بالکل نامناسب او غلط دې چه ته وائې چه صرف دیوالله تعالی عبادت اوبندګئ کوئ اوزمونږ آباؤاجدادوچه د کوموعمبودانوعبادت کوو هغه ترک کړو﴿فَأْتِنَا﴾ دضداوعناددوجې نه ئې طلب دعذاب اوکړو.

قَالَ قَدْ وَقَعَ عَلَيْكُمْ مِّن رَّبِّكُمْ رِجْسٌ وَغَضَبٌ ۖ أَتُجَادِلُونَنِي

(وا) ویل ده په تحقیق سره ثابت شویدې په تاسو باندې د طرف د رب ستاسو نه عذاب او غضب. آیا جګړه کوئ تاسو خما سره

| |
|---|
| فِيْٓ اَسْمَآءٍ سَمَّيْتُمُوْهَآ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ مَّا نَزَّلَ اللّٰهُ |
| په باره د الوهيت، دنومونوكښې چه هغه ايخودلي دی تاسو اوستاسو مشرانو.ندې نازل کړې الله تعالی |
| بِهَا مِنْ سُلْطٰنٍ فَانْتَظِرُوْٓا اِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ ۝ فَاَنْجَيْنٰهُ |
| دهغې په الوهيت څه دليل. پس تاسوانتظار کوئ بيشکه زه ستاسوسره دانتظار کوونکونه يم. پس بچ کړو مونږ دهٔ لره |
| وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَقَطَعْنَا دَابِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا |
| اوهغه کسانو لره چه د دهٔ ملګری وو په سبب د رحمت خپل، او پرې کړې مونږ جرړې دهغه کسانو چه تکذيب ئې کولو |
| بِاٰيٰتِنَا وَ مَا كَانُوْا مُؤْمِنِيْنَ ۝ |
| د آيتونو زمونږ او نه وو دوئ مؤمنان |

﴿ قَالَ قَدْ وَقَعَ ﴾ اووئيل هود عليه السلام دعذاب طلب کولوته ضرورت نشته دې، عذاب ستاسودپاره واجب شويدې په سبب دکفراوشرک ستاسوسره نوطلب ته ئ حاجت نشته طلب خودهغه شئ پکاروی چه دنه راتلواحتمال پکښې وی﴿ فِيْٓ اَسْمَآءٍ ﴾ددينه مرادهغه بې حقيقته اومن ګهرت صفات دی چه دوئ خپلومعبودانولره ثابتول ، مشکل کشا، حاجت رواخالق رازق وغيره صفات، يامراددااسماؤنه خودمسميات اواصنام دی اوځوک چه ديواسم لائق نه وی نوهغه ته اسم وئيلې شی، نومعنی داشوه چه آياتاسوځماسره جهګړه کوئ په هغه مسمياتوکښې چه تاسوورته هغه نوم وضع کړيدې چه لائق نه دې ورسره نوګوياکښې دغه مسميات په منزله دصرف اسماؤدی، حاصل داچه داسماء نه مراداصفات دی يامسميات دی چه لائق داسم نه دی ددې مثال په موجوده دورکښې دادې چه بعض خلق بعض اولياؤته ، بادو بابا. ګوزن بابا، واڼ، وغيرذالک ﴿مَّا نَزَّلَ اللّٰهُ﴾ يعنی تاسوپه خپله مدعی دشرک باندې هيڅ دليل نه لرئ اوځمامدعی دتوحيدردهم نشئ کولې ﴿ فَانْتَظِرُوْٓا ﴾ يعنی جدال ختم کړئ اوانتظاردنزول دعذاب اوکړئ،﴿ فَاَنْجَيْنٰهُ ﴾ دنجات اوعذاب نسبت الله تعالی خپل ځان ته اوکړو ﴿وَقَطَعْنَا﴾ اوسبب دعذاب ئ تکذيب ذکرکړواوسبب دنجات ئ رحمت ذکرکړو نو معلومه شوه چه نجات دمؤمينوواجب نه دې په الله تعالی باندې بلکه صرف تفضل اواحسان

ی. اود﴿ وَقَطَعْنَا دَابِرَ الَّذِينَ ﴾ نه معلومیږی چه ددوئ نسل ختم شویدې اوبعض وائ چه کفاربالکل هلاک شویدی اودمؤمنانونسل پاتی شویدې. اوداهم ممکنه ده چه دکفارونابالغ بچی پاتې شوي وی اوددوئ نسل ته عادِ اُخریٰ وئیلې شی. اوهلاکت ددوئ په سیزې اوګرمې هوا سره شویدې. ﴿رِيحٌ فِيهَا عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍ بِأَمْرِ رَبِّهَا﴾ . اوتفصیل دهلاکت ددوئ اهل سیروداسې ذکرکړیدې چه هرکله دوئ دحضرت هود علیه السلام تکذیب اوکړونوالله تعالی ددوئ نه باران بندکړو درې کاله حتی چه دوئ په ډیرتکلیف کښی شو . اوپه دغه زمانه کښې طریقه داوه چه کله به په دوئ څه بلاء اوتکلیف راغې نودوئ بهٔ مسجدحرام ته حاضریدل اودتکلیف رفع کیدلودعاء ئ غوختله دمشرکانو اومسلمانانو ټولو دغه طریقه وه. په دغه زمانه کښې په مکه باندې عمالقه وو ، نودعادیانووفدډخپل عادت مطابق حرم ته رواں شوچه اوياکسان وو اوپه دوئ کښې مرثدبن سعدهم وو چه مسلمان ووليکن خپل اسلام ئ پټ کړې وو. هرکله چه دوئ مکې ته قریب شونودحرم نه باهرنه دعمالقوسردار معاویه بن بکر اوسیدلو، چه هغه ددغه وفددیوکس، جلهمه، خال،ماما،وو. نودوئ معاویه سره ډیره شول اوهغه ددوئ ډیرقدراحترام کولو، نودوئ یوه میاشت تیره کړه، شراب به ئ سکل اودده وینزې ،غزل ویونکی، ورده او جراده، نه به ئی غزلې اوریدلې، نومعاویه بن بکر.سوچ اوکړو چه داخلق چه دکوم مقصدډپاره راغلی ووهغه ترینه هیرشو ، لیکن دعربودعام عادت مهمان نوازئ په وجه ئ ورته داسې وئیلې نه شو چه لاړشئ حرم ته دخپل مقصدډپاره. چه دوئ ګمان اونکړې چه زمونږ نه تنګ شویدې نوغزل ویونکی وینزې ته ئې اووئیل چه په خپل غزل کښې داسې خبری اوکړه چه دوئ ته خپل مقصدیاد راشی نوهغې چه دغه شان اشعاراووئیل نودوئ بوهه شو اویوبل ته ئی اووئیل چه مونږ خوخپل قوم ددې ډپاره رالیږلی وو چه دهغوئ ډپاره دعاء اواستغاثه اوکړو. زمونږ نه دخپل مقصدپه حصول کښې ډیرتاخیراوشوراځئ چه حرم ته لاړشو اودخپل قوم ډپاره دباران سوال اوکړو ،نومرثدبن سعدخپل اسلام ظاهرکړواودوئ ته ئ اووئیل چه په خدائ مې دې قسم وی چه ستاسوپه دعاسره باران نه کیږی لیکن که چری دخپل نبی تابعداری اوکړئ اوخپل رب ته انابت اورجوع اوکړئ نوپه تاسوبه باران اوشی. نووفدوالاؤمعاویه ته اووئیل چه مرثددلته دخپل ځان سره حصارکړه چه زمونږ سره مکې ته لاړنه شی ځکه ده اتباع کړیده ددین دهود علیه السلام اوزمونږ دین ئ پریښودلې دې. نوبیادغه وفدمکې ته داخل شو، دباران دعائ کوله نومرثددمعاویه دکورنه خارج شو اوددې وفدسره

ملاؤشواوهغوئ لاتراوسه پورې دعانه وه کړې، نومرثد دعا اوکړه چه یاالله دوئ چه څه دعا غواړي ماپه هغې کښې مه داخله وه بیا د وفد مشر «قَیل» دعاشروع کړه. «اللهم اسق عاداماکنت تسقیهم» باقی ملګروئ اووئیل «اللهم اعط قلیلاً ماسئلک واجعل سؤلنامع سؤله» .
نو الله تعالی درې قسمه وریځې پیداکړې، یوقسم سپینه اوبله سره وه اوبله توره وه. نو بیا د آسمان نه آوازراغې چه اې قیل غوره کړه دخپل ځان اودخپل قوم دپاره په دې درې واړوقسمونو کښې یوقسم.نوقیل..توره وریزغوره کړه ځکه چه په دې کښې اوبه ډیرې وی.
نو داسمان دطرفه نه ندا راغله، «اخترت رماداًرمدًالاتبقی من ال عادٍ احداً»، اودغه توره وریځ، الله تعالی روانه کړه قوم عاد طرف ته ،نودوئ ته ظاهره شوه د«وادی مغیث» دطرفه، نودوئ چه اولیدله نو اوئ وئیل ﴿هَٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا﴾ ددې وریځې نه هواراغله، اول داوریخ یوې ښځې اولیدله چه نوم ئ «مهدر» وو نوهغه بې هوشه اوغورزیده نوکله چه په هوش شوه نوخلقوترینه تپوس اوکړو چه څه دې اولیدل هغې اووئیل داسې هوامې اولیدله چه په هغې کښې داُورلمبې دې اومخکښې ترینه څه کسان ووهغوئ راښکله، نوالله تعالی داهواپه دوئ باندې اوه شپې اواته ورځې مسلطه کړه اوټول هلاک شو، اوحضرت هود عليه السلام اودده ملګری مؤمنان هم په دغه علاقه کښې په یوځپرکښې وو، دوئ ته به یخه متعدله « فرحت بخش» هواراتله. دقوم دهلاکت نه پس حضرت هود عليه السلام اومؤمنان مکې ته لاړل چه دالله تعالی عبادت ئ کووحتی چه وفات شو اودفن شو بین الرکن والمقام ،ابن عساکردعبدالرحمن بن سابط نه روایت کړیدې چه په مابیّن د«رکن» اود«مقام» کښې ددرې اویا انبیاؤقبوردی، هود عليه السلام ، نوح عليه السلام ، شعیب عليه السلام ، صالح عليه السلام ، اسمعیل عليه السلام ، اوروایت دې چه دنبی قوم به چه کله هلاک شو نوبیابه نبی اومؤمنانومکې ته هجرت اوکړو اوهغلته به ئ دمرګ پورې دالله تعالی عبادت کولو، روایت کړیدې بخاری په تاریخ کښې اوابن جریروغیرهما دحضرت علی رضی الله عنه نه چه قبر دهود عليه السلام په حضرت موت کښې دې کثیب احمرسره،«روح المعاني، سراج المنیر»

| وَإِلَىٰ | ثَمُودَ | أَخَاهُمْ | صَٰلِحًا | قَالَ | يَٰقَوْمِ | اعْبُدُوا | اللَّهَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او لیږلې وو مونږ ثمودیانو ته [1] | | رور د دوئ صالح ، | | وه وئیل هغه | اې قومه څما ، | بندګی کوئ صرف د | یو الله |

[1] ـ دریمه قصه د دریمې دعوې سره متعلق.

مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ قَدْ جَآءَتْكُمْ بَيِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ

نشته دي تاسو لره هيڅ معبود غير د هغه نه. په تحقيق سره راغلېده تاسو ته واضحه معجزه د طرف د رب ستاسو نه.

هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ لَكُمْ اٰيَةً فَذَرُوْهَا تَاْكُلْ فِيْٓ اَرْضِ اللّٰهِ وَلَا تَمَسُّوْهَا

دا ده اوښه د الله تعالى تاسو لره معجزه پس پرېږدئ دا چه خوراك كوي په زمكه د الله تعالى كښې او مه رسوئ دېته

بِسُوْٓءٍ فَيَاْخُذَكُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ وَاذْكُرُوْٓا اِذْ جَعَلَكُمْ

هېڅ تكليف، «كني» پس وبه نيسي تاسو لره عذاب دردناك. اوياد كړئ «دا» كله چه وګرځولئ الله تعالى تاسو

خُلَفَآءَ مِنْۢ بَعْدِ عَادٍ وَّبَوَّاَكُمْ فِي الْاَرْضِ تَتَّخِذُوْنَ مِنْ سُهُوْلِهَا قُصُوْرًا

خليفه ګان روستو دعاديانو نه اوځاى ئې دركړوتاسوته په زمكه كښې، جوړوئ تاسو د نرمې زمكې نه بنګلې.

وَّتَنْحِتُوْنَ الْجِبَالَ بُيُوْتًا ۚ فَاذْكُرُوْٓا اٰلَآءَ اللّٰهِ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ۝

او كني تاسو غرونه جوړوئ ترينه كورونه، پس ياد كړئ نعمتونه د الله تعالى او مه ګرځئ په زمكه كښې فساد كوونكي

قَالَ الْمَلَاُ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لِلَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا

او ويل غټانو هغه چه تكبر ئې كولو «د مال د وجه نه» د قوم د هغه نه، هغه چا ته چه كمزورى ګڼلې كېدل.

لِمَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ اَتَعْلَمُوْنَ اَنَّ صٰلِحًا مُّرْسَلٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ

يعني هغه چاته چه ايمان ئې راوړې وؤ د دوئ نه آيا تاسو يقين كوئ چه صالح رسول دې د طرفه د رب د ده نه.

قَالُوْٓا اِنَّا بِمَآ اُرْسِلَ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ ۝ قَالَ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا

دوئ وه ويل بيشكه مونږ په هغه څيزچه دوئ پرې راليږلې شوى دى ايمان راوړې دې. وه ويل هغه چاچه تكبر ئې كړې وؤ

اِنَّا بِالَّذِيْٓ اٰمَنْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ۝

بيشكه مونږ په هغه څه چه تاسو پرې ايمان راوړې دې انكار كوونكي يو.

﴿وَاِلٰى ثَمُوْدَ﴾ دادريمه قصه ده ددريمې دعوې سره متعلق ده، ثمودنوم دقبيلې دې په

اصل کښې دانوم ددوئ دجداعلی دې، چه ثمودبن عابربن ارم بن سام بن نوح عليه السلام . نوقبیله مسمی شوه په اسم دجداعلی سره، اودوئ دعربوپه شمال مغرب کښې دحجاز اوشام په مینځ کښې په لاره دتبوک باندې آبادوو. ددوئ لوئ مرکزی شهرحجروو -اوس هغه ځائ ته مدائن صالح وائ داهغه کنډرات دی چه نبی صلی الله علیه وسلم غزوه تبوک ته دتشریف وړلوپه موقع ددوئ په علاقه تیرشواواوئ فرمائیل ((لاتدخلواعلی هؤلاء المعذبین الاان تکونوا باکین – الخ)) ثمودیان دعادیانوپه شان قوی اوبهادردولتمند ،اوپه تعمیراتوکښې ډیرماهروو. ددوئ تعمیری یادګارونه تراوسه پورې باقی دی، چه په هغې باندې ارمی. ثمودی کتبی منقوش دی. ﴿بَيِّنَةٌ﴾ دتوحیداورسالت واضح دلیل.

﴿هَٰذِهِ نَاقَةُ اللَّهِ﴾ دابیان د ((بینة)) دې، اضافت دناقه لفظ د الله ته دپاره دتشریف دې. اوبله وجه داده چه دناقې پیدائش په غیرداسبابو عادیؤ نه ووځکه ئې اضافت الله تعالی ته اوشو. حضرت صالح عليه السلام خپل قوم ته ډیره طویله زمانه دعوت دتوحیدپه ډیرواضح دلائلوورکړولیکن دوئ انکارکولواودصالح عليه السلام نه تنګ هم شواوملامت هم، نومشوره ئې اوکړه چه مونږ دده نه داسې مطالبه کوو، چه دې ئې نشی پوره کولې، نو دانکار کولو دپاره به عذرجوړشی اودملامتئ نه به بچ شو، هغه داچه د وچ کلک غر نه دې حامله اوښه پیدا شی، نوصالح عليه السلام ددوئ نه عهدواخست چه که دا مطالبه ستاسوپوره شی نوبیابه ایمان راوړئ نوتولووعده اوکړه دایمان، نوصالح عليه السلام دعااوکړه نواوښه پیداشوه، اوبیالنګه شوه بچې ترینه پیداشو، دمعجزې په لیدلو سره څه خلق مسلمانان شو، اونورخلقوهم دایمان راوړلواراده وه خویوڅوسردارانومنع کړل، حضرت صالح عليه السلام ته خطره اوشوه چه دوعده خلافئ په وجه به په قوم عذاب راشی نو دشفقت دوجې نه ئې اووئیل چه ددې ناقې حفاظت کوئ اوتکلیف ورته مه رسوئ کیدې شی چه دعذاب نه بچ شئ د ﴿تَأْكُلْ فِي أَرْضِ اللَّهِ﴾ نه مراد .دانه دې چه څوک دئ دخپل فصل وغیره نه، نه منع کوی بلکه مراددادې چه کومه عامه مرعی ده، نودهغې نه ئې مه منع کوئ، دا اوښه عظیم الخلقت اوښه وه نوخوراک به ئې ډیرزیات کولو. اوپه مرعی کښې به نورحیونات ددې دلیدلو نه پریدل او اوبه به ئې هم ډیرې زیاتې سکلې او ددوئ داوبودسکلوکوهی دفرشتوپه نګرانئ کښې تقسیم وویوه ورځ به د قوم وؤ اوبله ورځ به دناقې وه نوتولې اوبه به ناقې سکلې، لیکن پئ پکښې دومره ډیروو چه

نه به خلاصیدل . اخر دوئ د ناقې نه تنگ راغلل هغه ئ قتل کړه نو عذاب پرې راغلو .﴿خُلَفَآءَ مِنۢ بَعۡدِ عَادٍ﴾ یعنی دمخالفت په وجه دتباه شوؤ خلقونمونه ستاسو وړاندې ده دهغې نه عبرت واخلئ﴿وَبَوَّأَكُمۡ﴾ داتذکیربالاء الله دې. ﴿اسۡتُضۡعِفُواْ﴾ کمزوری گڼړلی کیدل دغریبئ دوجې نه یا د نسب د وجې نه. اودبخاری په حدیث دهرقل کښې دی چه ضعفاء اتباع درسولانووی﴿لِمَنۡ ءَامَنَ مِنۡهُمۡ﴾ دابدل دې د ((استضعفوا)) نه او اشاره ده چه ټولوضعفاؤ ایمان نه ووراوړې ﴿أَتَعۡلَمُونَ﴾ داقول په طریقه تخویف اوددهمکئ سره وو . اوهغوئ ددینه خوف اونکړوبلکه علی سبیل الترقی ئ ووئیل ﴿إِنَّا بِمَآ أُرۡسِلَ بِهِۦ﴾ یعنی صرف په صالح علیه السلام باندې نه بلکه په مسئله توحید هم ایمان لرو.

فَعَقَرُواْ ٱلنَّاقَةَ وَعَتَوۡاْ عَنۡ أَمۡرِ رَبِّهِمۡ وَقَالُواْ يَٰصَٰلِحُ ٱئۡتِنَا

پس دوئ هلاکه کړه اوښه او نافرمانی ئې وکړه د حکم د رب خپل نه او وه ویل دوئ اې صالح : راوړه مونږ ته

بِمَا تَعِدُنَآ إِن كُنتَ مِنَ ٱلۡمُرۡسَلِينَ ۝ فَأَخَذَتۡهُمُ ٱلرَّجۡفَةُ فَأَصۡبَحُواْ

هغه عذاب چه ته یروې مونږدهغې نه که ئې ته د رسولانو نه . پس ونیول دوئ لره زلزلې پس وگرځیدل دوئ

فِي دَارِهِمۡ جَٰثِمِينَ ۝ فَتَوَلَّىٰ عَنۡهُمۡ وَقَالَ يَٰقَوۡمِ لَقَدۡ

په خپلو کورنو کښې پرمخې پراته . نو واپس روان شو صالح د دوئ نه او وې ویل چه اې قومه خما . خامخا په تحقیق سره

أَبۡلَغۡتُكُمۡ رِسَالَةَ رَبِّي وَنَصَحۡتُ لَكُمۡ وَلَٰكِن لَّا تُحِبُّونَ ٱلنَّٰصِحِينَ ۝

ما رسولې دې تاسوته پیغام د خپل رب او ستاسو خیر خواهی مې کوله، لیکن نه خوښوئ تاسو نصیحت کوونکی

﴿فَعَقَرُواْ ٱلنَّاقَةَ﴾ عقرپه اصل کښې دخپوپریکولوته وائ مرادترینه نحردې یعنی اول ئ ورته خپې پرې کړې بیائ ذبح کړه، داکاریوکس کړې وولیکن ټول پرې راضی وونوټولوته ئ نسبت اوشو، نوم ددغه کس قدارابن سالف دې په حدیث کښې راغلیدې چه ددغه قوم ډیرشقی کس هم دغه کس وو. نوهرکله چه داکارئ اوکړونوصالح علیه السلام ورته اووئیل چه اوس به دالله تعالی عذاب راځی علامه ئ داده چه صبابه ستاسومخونه زیړشی. اوبله ورځ به ستاسو مخونه (چهرې) سرې شی اوبله ورځ به توری شی، نودوئ اراده اوکړه چه صالح علیه السلام قتل کړو نو

څوکسان وریسي لاړل، نو الله تعالى دوئ هلاك کړل آخر پرې عذاب راغې چه بیان ئ دادي ﴿ فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ ﴾ اوپه سورة هود کښې دصیحه ذکردي نو صیحه پرې دبره نه راغلې ده او رجفه یعنی زلزله دلاندې نه راغلی ده. یامراد د رجفې نه حرکت القلب دې چه په سبب دصیحه سره راغلې وو﴿ فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ ﴾ په دې کښې دوه قوله دی یو دا چه داتولی (یعنی واپس تلل د صالح علیه السلام دَ دوئ نه) په حالت دحیات کښې وه قبل دهلاک ددوئ نه. نوپه آیت کښې تقدیم تاخیردې، دویم قول دادې چه داپس دهلاکت ددوئ نه ده خومقصوددخطاب نه افهام. اسماع نه ده بلکه اظهار دحسرت دې.اونداء،خطاب همیشه دافهام اسماع دپاره نه وی کله داظهارحسرت دپاره هم وي

وَلُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖۤ اَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ مَا سَبَقَكُمْ

او لیږلې وؤ مونږ لوط [1] کله چه ده وه ویل خپل قوم ته، آیا تاسو راتله کوئ بدکارئ ته مخکې والې ندې کړې ستاسونه

بِهَا مِنْ اَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ۞ اِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّنْ دُوْنِ النِّسَآءِ ؕ

دې کار ته هیڅا دخلقو نه بیشکه تاسو راتلل کوئ نارینو ته په شهوت سره. پغیر د ښځونه .

بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُوْنَ ۞ وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖۤ اِلَّاۤ اَنْ قَالُوْۤا اَخْرِجُوْهُمْ

بلکه تاسو قوم یئ د حد نه تیریدونکی (مشرکان) او نه وؤ جواب د قوم د هغه مگر دا چه وه ویل دوئ وباسئ دوئ لره

مِّنْ قَرْيَتِكُمْ ۚ اِنَّهُمْ اُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوْنَ ۞ فَاَنْجَيْنٰهُ وَاَهْلَهٗۤ

د کلی ستاسونه. بیشکه دوئ داسې خلق دی چه ځان پاك ساتل غواړی. پس بچ کړو مونږ ده لره او اهل د ده لره

اِلَّا امْرَاَتَهٗ ۖ كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ۞ وَ اَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ؕ

مگر ښځه د ده، وه هغه د پاتې کیدونکو نه په عذاب کښې او را وه ورولو مونږ په دوئ باندې نا آشنا باران یعنی کاڼی

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِيْنَ ۞

پس وګوره څنګه وؤ انجام د مجرمانو

١ - خلورمه قصه متعلق د دعوی ثانیی سره .

﴿ وَلُوطًا إِذْ قَالَ ﴾ داځلورمه قصه ده ددویمي دعوې سره متعلق ده. چه ﴿ اتَّبِعُوا مَا أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ وَلَا تَتَّبِعُوا مِن دُونِهِ أَوْلِيَاءَ ﴾ . دماانزل تابع شئ دشياطينو اتباع مه کوئ. لوط عليه السلام قوم دشيطان داتباع نه منع کړوليکن هغوئ منع نه شو نوعذاب پرې راغلو. اوپه دې قوم کښې دشرک بيماري هم وه اوډخلاف فطرت قبيح عمل (لواطت) بيماري هم وه الله تعالى دوئ ته لوط عليه السلام مبعوث کړو. لوط عليه السلام ددې قوم دنسب نه نه ووبلکه دحضرت ابراهيم عليه السلام وراره وو. لوط بن هاران بن تارخ(آزر) دلوط عليه السلام اوابراهيم عليه السلام اصل وطن بابل – مغربى عراق بصرې ته قريب وؤ ، ملك شام ته د هجرت کولو نه بعد حضرت ابراهيم عليه السلام په علاقه د کنعان کښې مقيم شو اولوط عليه السلام الله تعالى دسدوم دخلقو دپاره مبعوث کړو. په هغوئ کښې دشرک نه علاوه ، خلاف فطرت قبيح عمل (لواطت ) هم عام وو، چه ددوئ نه مخکښې هيچا اعمل نه ووکړې نولوط عليه السلام دوئ ته تبليغ شروع کړو﴿إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ ﴾ قوم ئ ورته صرف په دې لحاظ سره وئيلى دى چه هغوئ ته ليګلې شوې وو، اودهغوئ دنسب نه. نه وو ﴿ أَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ مَا سَبَقَكُم ﴾ ددوئ دعمل دقباحت ته اشاره ده په دوؤوجهوسره يوه داچه دا فاحشه ده او فاحشه هغه ګناه ته وائ چه عقل، عرف. شرع ئ قبيح ګنړي. بله وجه داچه تاسو ددې ګناه ايجاد اوابتداء اوکړه نوروستوخلق چه په دې ګناه کښې مبتلاء کيږي نوسبب ورته تاسو يئ. مفسرينوليکلى دى چه ددې قبيح عمل تعليم دې قوم ته ابليس ورکړې وو چه په شکل دامرد ( بې ګيرې) هلک کښې خکاره شواوددې فعل دعوت ئ ورکړو. (فکان اول من نکح فى دبره) (شربينى) اوبعض اهل تاريخ وائ (والله اعلم) چه حلق اللحية (ګيره خريل) هم دوئ نه په مشوره دشيطان شروع شوې دى، په دوئ کښې به چه دچاګيره اوشوه اودقبيح فعل عادت به نې وو. ليکن دچاميلان بۀ ورته نه کيدو، ميلان به ئ بې ګيرې هلک ته کيدو نو شيطان به ورته مشوره ورکړه چه ګيره اوخريه نو(شاب، امرد)، هلک به جوړشې (والله اعلم)

﴿ قَوْمٌ مُّسْرِفُونَ ﴾ تاسوداسې قوم يئ چه تجاوزکوئ دحلالونه حراموته. ياقوم ئ مشرکين . يعنى ستاسو عمل اوعقيده دواړه ډيرقبيح دى يادامطلب دې چه ددې خلاف فطرت فعل ارتکاب په وجه تاسو دانسانيت دحد ودو او دائرې نه وتلى يئ.

﴿ وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ ﴾ يعنى آخرى خبره ددوئ صرف داوه چه هرکله لوط عليه السلام مونږ نولوته ګنده اوقبيح وائ اوخپل خان پاک ګنړي، نوپاک اوناپاک خويوخائ نشى جمع کيدې نوراشئ چه دوئ دخپل وطن نه جلاوطن کړو، چه دوئ زمونږ دخواهشاتوپوره کولودپاره

رکاوټ جوړنشي. الله تعالى فرمائ چه دوئ خولوط علیه السلام اودهغه ملګري جلاوطن کول غوختل ليکن مادوئ لره دمخ دزمکې نه جلاوطن کړه اولوط علیه السلام اودهغه اهل مې بچ کړل مګردده هغه ښځه چه مشرکه وه اوددغه قوم نه وه، اودخپل قوم دپاره به ئ جاسوسي کوله چه کله به دلوط علیه السلام ميلمانه راغله نودې به خپل قوم ته خفيه اطلاع ورکوله. ﴿الْغٰبِرِيْنَ﴾ په دوه معانيوسره راځي تيرشوي ،باقي پاتې شوي، دلته دويمه معنى مراده ده. ﴿وَاَمْطَرْنَا﴾ مرادترينه باران دکاڼودي، اوپه سورة حجرنمبر ۷۴ اوهودآيت نمبر ۸۱۴کښې ددوئ کلي الټه کيدل. اوصيحه هم مذکوردی نوپه دوئ ددرې قسمه عذابونه جمع شويدي. اوبعض وائ چه کوم خلق په سفرکښې ووپه هغوئ کاڼي راغليدي اوکوم چه مقيم وونوپه هغوئ صيحه اوعلاقه الټه کيدل راغليدي

وَاِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ شُعَيْبًا ؕ قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ

اوراليږلې وؤ مونږ مدين والؤ ته[1] روردروئ شعيب . وه وئيل ده اې قومه څما ! صرف د الله تعالى بندګي کوئ

مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ قَدْ جَآءَتْكُمْ بَيِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ

نشته دې تاسو لره هيڅوك معبود غير دهغه نه. په تحقيق سره راغليده تاسوته واضح معجزه د طرف د رب ستاسو نه

فَاَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيْزَانَ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ اَشْيَآءَهُمْ وَلَا تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ

پس پوره کوئ پيمانه (جوك) او تول. او مه کموئ د خلقو نه مالونه دهغوئ او فساد مکوئ په زمکه کښې

بَعْدَ اِصْلَاحِهَا ؕ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۚ

پس د اصلاح د هغې نه، دا کارونه فائدې والا دی تاسو لره که يئ تاسو ايمان والا

﴿وَاِلٰى مَدْيَنَ﴾ داپنځمه قصه ده، ددويمې اودريمې دعوې سره متعلق ده. ﴿اَعْبُدُوا اللّٰهَ مَالَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ﴾ ددريمې سره متعلق دې ﴿فَاَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيْزَانَ﴾ ددويمې دعوى سره متعلق دې، قوم دشعيب علیه السلام په تجارت کښې دخپل طرف نه ايجادات اوکړه اومحرمات ئ حرام اونه ګڼړل . په دې قصه کښې اول دعوت دتوحيددې بيااثبات درسالت دې. بياپه باره داحکاموماليؤکښې داصلاح حکم اودافسادنهى ده.﴿مَدْيَنَ﴾ خوئ

[1] . پنځمه قصه د دويمې او دريمې دعوې سره متعلق

حضرت ابراهيم عليه السلام دي اوکوم قوم ته چه حضرت شعيب عليه السلام مبعوث شويدي هغوئ
اولاددمدين دى نودوئ په نوم دجداعلى سره ياديږي اوپه كوم شهركښې چه حضرت شعيب
عليه السلام سكونت كولودهغه شهرنوم هم مدين دي لكه په بل آيت كښې په قصه دموسى عليه السلام
كښې راغليدى ﴿ وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدْيَنَ ﴾ په دې آيت كښې كه چرې دمدين نه قوم مرادشى
نوتقديرته حاجت نشته دې اوكه شهرترينه مرادشى نوبيامضاف مقدردي. ((اى الى اهل مدين))
يا ((سكان مدين)) اوحضرت شعيب عليه السلام په دريم پُشت كښې دمدين په اولادكښې دي. شعيب
بن ميكيل بن يشجربن مدين . نوشعيب عليه السلام دخپل قوم نسبي روروو. اوده ته خطيب الانبياء
ويلې كيږي په وجه ددې چه بيان ئ ډيراحسن اوواضح وو. حضرت شعيب عليه السلام چه كوم قوم
ته مبعوث شوي وونوهغوئ په قرآن كښې په اهل مدين اصحاب مدين سره هم ذكركيږي اوكله
اصحب الايكه سره هم ذكركيږي نودبعض مفسرينو (كماقال قتادة) رايه داده چه دادواړه
جداجداقومونه دى اول حضرت شعيب عليه السلام يوقوم ته مبعوث شوې وواوچه هغوئ هلاك
شونوبيابل قوم ته مبعوث شو، وجه داده چه په دې دواړوقومونوباندې چه كوم عذاب
راغليدې نوهغه په قرآن پاک كښې مختلف ذكرشويدې، صيحه، رجفه، داهل مدين په باره
كښې مذكوردى، او ((عذاب يوم ظله)) داصحب الايكه په باره كښې ذكرشويدې. بله وجه داده
چه داهل مدين په باره كښې دحضرت شعيب عليه السلام سره ((اخوهم، اخاهم)) ذكردې اوداصحب
الايكه په باره كښى ورسره نشته دې نومعلومه شوه چه دادواړه جدا جدا قومونه دى، او اكثر
مفسرين د دو دې قائل دى چه اصحاب مدين اواصحاب الأيكه دواړه ديوقوم نوم دې
خومدين ئ نسبي نوم دې، اوحضرت شعيب عليه السلام ددوئ سره په نسب كښې شريک وونوددې
وجې نه اخاهم، اخوهم، ورسره ذكركيږي اواصحب ايكه ددوئ مذهبي نوم وو، ځكه چه ايكه
ځنګل (بن) ته وائى، دوئ ونې خپل معبود ګرځولې وې ، اوشعيب عليه السلام ددوئ سره په مذهب
كښې شريک نه وو نوددې وجې نه ورسره اخ نه ذكركيږي ، اومختلف عذابونه په مجرمانو
راتلل څه مستعبدنه دى نوپه دوئ باندې مختلف عذابونه راغليدى لكه روح المعاني وغيره
مفسرينودابن عباس رضي الله عنه نه نقل كړيدى چه دحضرت شعيب عليه السلام په قوم باندې اول داسې
سخته ګرمي مسلطه شوه چه ګوياكښې چه دجهنم دروازه په دوئ كولاؤشوې وه، چه نه دوئ ته
په سُورى باندې آرام راتله اونه په اوبوكښې. دګرمئ نه چه ډيرتنګ شو نوپه ته خانو . كښې
ننوتل خوهلته زياته ګرمي وه، بياقريب ځنګل ته لاړل،(چه دوئ به هلته داشجاروعبادت كوو)

وریخ راغله یخه هواترینه چالوشوه نودوئ ټول هلته جمع شو. اوخدائ مجرمان په غیردپولیس. سپاهي نه دهلاکت مقام ته جمع شو، نوددغه وریځې نه په دوئ اُور. هم راغلو اوددې نه تعبیرشویدې په یوم الظلّه سره. اوصیحه پرې هم راغله، اودزمکې نه زلزله پرې هم راغله اوتباه شو.﴿ بَيِّنَةٌ ﴾ ددې نه مرادمعجزه ده خوپه قرآن کښې ئ تعین نشته دې،لکه داکثرو انبیاؤ دمعجزاتواودنبی صلی الله علیه وسلم دډیرومعجزاتو ذکرهم په قرآن کښې نشته دې. لیکن دمدعی دنبوة دپاره معجزه خامخاوی، اوبعض وائ چه د ((بینه)) نه دشعیب علیه السلام واضح بیان اووعظ مراددې. ﴿الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ ﴾ تول، ناپ، دحقوق العبادنه دی اوپه قوم دشعیب کښې داجرم زیات وو﴿وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ ﴾ بخس کموالی اونقصان دحق ته وائ په دې کښې دناپ، تول نه علاوه په نوروحقوقُ کښې دکمی اونقصان کولونه منع ده. برابره خبره چه دمال متعلق وی لکه غلا، غصب، دهوکه، اوکه دعزت آبرومتعلق وی، دهرذی حق. حق اداکول ضروری دی اوکوتاهی پکښې کول حرام دی، چه دچاتعظیم تکریم ضروری وی نودهغه تعظیم نه کول دهغه په حق کښې بخسس،اوکمی دې. ﴿ وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ ﴾ دفسادنه کفراومعاصی مراددی﴿بَعْدَ إِصْلَاحِهَا ﴾ اصلاح بعثت دنبی اواعطاء دشریعت ده. ﴿ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ ﴾ دا اشاره ده ماقبل مذکور احکاماتو ته ،چه توحیدرسالت، حقوق العبادپوره کول ، ترک دبخس اوترک افساد دې او د خیر نه مراد نافع دې یعنی خیراونفع په دغه مذکوره اموروکښې ده اوتاسوته چه په کومه امورو کښې ګټه خکاری، دهوکه بخس وغیره دغه دخیراودنفع امورنه دی﴿إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ دکلام په آخرکښې چه شرط راشی اوجزاء ئ صراحةً مذکوره نه وی نوددینه مرادتاکیدوی، نوددینه دماقبل مضمون تاکید مقصوددې.

وَلَا تَقْعُدُوا بِكُلِّ صِرَاطٍ تُوعِدُونَ وَتَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِهِ

او مه کینئ په هره لاره کښې چه یره وئ خلق او منع کوئ د لارې د الله تعالی نه هغه څوك چه ایمان راوړی په الله تعالی.

وَتَبْغُونَهَا عِوَجًا ۚ وَاذْكُرُوا إِذْ كُنتُمْ قَلِيلًا فَكَثَّرَكُمْ ۖ وَانظُرُوا

او لټوئ تاسو پدې کښې کوږوالې، او یاد کړئ هغه وخت چه وئ تاسو لږ پس ډیر ئې کړئ تاسو. او وګورئ تاسو

كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِينَ ۝ وَإِن كَانَ طَائِفَةٌ مِّنكُمْ آمَنُوا بِالَّذِي أُرْسِلْتُ

چه څرنګه وو انجام د مُفسدانو . او کچرې وی یوه ډله له تاسونه چه ایمان لری په هغه څه چه رالیږلې شوې یم زه

وَطَآئِفَةٌ لَّمْ يُؤْمِنُوا فَاصْبِرُوا حَتَّىٰ يَحْكُمَ اللَّهُ بَيْنَنَا

او بله ډله وي چه ایمان نه لري پس انتظار وکړئ تر دې چه فیصله وکړي الله تعالی په مینځ زمونږ کښې

وَهُوَ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ ﴿٨٧﴾

او هغه غوره فیصله کوونکې دې

﴿ وَلَا تَقْعُدُوا بِكُلِّ صِرَاطٍ ﴾ په لاروکښې کیناستل ددوؤ. وجهونه وو. یو داچه ځوک مسافرین به تیریدل نو دوئ به دهغوئ نه ،،شوکه،، لوټ مارکول یاناجائزټیکس به ئې ترینه اغستلو بل داچه ځوک به دحضرت شعیب علیه السلام حضورته راتلل دایمان په نیت نو دوئ به هغه دایمان نه منع کول اوظلم زیاتې به ئ پرې کولو،﴿ تُوعِدُونَ وَتَصُدُّونَ ﴾ دوئ به خلق دایمان نه په دوؤطریقوسره منع کول یو دهمکی ورکول اودباؤ اچول او بل هغوئ ته شبهات اچول اوپه حضرت شعیب علیه السلام باندې طعنونه کول نوپه دې آیت کښې ددواړو طریقوذکردې ﴿ وَتَبْغُونَهَا ﴾ ((ای تبغون لها)) لټوئ په دین د الله تعالی کښې شکوک شبهات. عوج په کسره دعین سره مستعملیږي په هغه عیب کښې چه حسی نه وي بلکه معنوی وي اوپه فتح دعین سره مستعملیږي په هغه عیب کښې چه په نظرراځي. (بکسرالعین لایدرک بفتح العین وبفتح العین مایدرک بفتح العین). ﴿ وَاذْكُرُوا ﴾ داترغیب دې اوتذکیربالاء الله دې ﴿ قَلِيلًا ﴾ کم والې په اعتبار داشخاصو سره هم مراددې اوپه اعتباردمال سره یعنی فقر. غربت. هم مراددې. روایت دې چه مدین بن ابراهیم علیه السلام نکاح کړې وو. دلوردحضرت لوط علیه السلام سره نوالله تعالی په دوئ ډیربرکت نازل کړو نودوئ ډیرزیات شودمال اوعددپه اعتبارسره. ﴿ وَانْظُرُوا ﴾ داترهیب دې دوئ ته روستودترغیب نه ،اودادواړه خبرې یعنی ترغیب اوترهیب خطیب اوداعی لره پکاردي اوددې وجې نه حضرت شعیب علیه السلام ته خطیب الانبیاء لقب ورکړې شویدې ﴿ وَإِنْ كَانَ طَائِفَةٌ مِنْكُمْ ﴾ داخطاب دکفارو سره دې اومقصودترینه توبیخ دې ﴿ فَاصْبِرُوا ﴾ د صبرنه مراد انتظاردفیصلې دې یعنی که تاسوایمان نه راوړئ نودالله تعالی دفیصلې انتظاراوکړئ، اوکلک والې ترینه نه دې مراد، ځکه چه نبی حکم نه کوی په غلط دین باندې دصبر. یاداخطاب مؤمنانوته دې، اومقصودترینه تلقین دصبراواستقامت دې په حق اوپه ایذاء دکفاروباندې.

اتمه پاره ختمه شوه ولله الحمد اولاً واخراً

قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِن قَوْمِهِ لَنُخْرِجَنَّكَ يَا شُعَيْبُ وَالَّذِينَ

وه ويل غټانو هغو چه لوئي ئي كړې وه د قوم د ده نه خامخا وبه باسو مونږ تا لره اې شعيبه او هغه خلق

آمَنُوا مَعَكَ مِن قَرْيَتِنَا أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا ۚ قَالَ

چه ايمان ئې راوړي دې ستاپه ملګرتيا كښې دكلي زمونږ نه، يابه واپس شئ په دين زمونږكښې . وه ويل شعيب

أَوَلَوْ كُنَّا كَارِهِينَ ﴿٨٨﴾ قَدِ افْتَرَيْنَا عَلَى اللَّهِ

آيامونږ به واپس شو اګركه يومونږ بد ګڼرونكي ستاسو دين لره په تحقيق سره جوړ كړې به وي مونږ په الله تعالى باندې

كَذِبًا إِنْ عُدْنَا فِي مِلَّتِكُم بَعْدَ إِذْ نَجَّانَا اللَّهُ مِنْهَا ۚ

دروغ كچرې واپس شو مونږ په دين ستاسو كښې، پس دهغې نه چه بچ ساتلي يو مونږ الله تعالى دهغې نه.

وَمَا يَكُونُ لَنَا أَن نَّعُودَ فِيهَا إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّنَا ۚ

او هرګز جائز او لائق ندې مونږ لره چه واپس شو دين ستاسو ته ، ليكن دا چه څه وغواړي الله تعالى چه زمونږ رب دې (نو هغه كيږي)

وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ۚ عَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْنَا ۚ رَبَّنَا

راګيركړيدې رب زمونږهرشي په علم خپل كښې،خاص په الله تعالى باندې زمونږتوكل دې، اې ربه زمونږ

افْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَأَنتَ خَيْرُ الْفَاتِحِينَ ﴿٨٩﴾

فيصله وكړې په مينځ زمونږ كښې او په مينځ د قوم زمونږ كښې حقه فيصله اوته ډير غوره فيصله كوونكې ئې

﴿قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ﴾ په دې كښې بيان دتكذيب دكفارودې چه دوئ دحق دعوت قبول نه كړوبلكه داعى دحق اودهغه ملګروته ئ اووئيل چه ستاسودبقاء اودزندګئ تيره ولوصرف دوه صورته دى يوداچه زمونږ په دين كښې داخل شئ بل داچه..جلاء وطن.. او..ملك بدر.. شئ. ليكن الله تعالى فيصله داوه چه مؤمنان به جلاوطن كيږي نه بلكه مخالفين به ئ دمخ دزمكې نه جلاوطن كيږى كما قال تعالى ﴿فَأَوْحَىٰ إِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ الظَّالِمِينَ ﴿١٣﴾ وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْأَرْضَ مِن بَعْدِهِمْ﴾ (ابراهيم : ١٣ - ١٤)، ﴿أَوْ لَتَعُودُنَّ﴾ عودواپس كيدلونه واى

مخکنی حالت ته نودالفظ دحضرت شعیب علیه السلام دملګروپه نسبت سره حقیقه صادقیږی اوشعیب علیه السلام خوددوئ په ملت کښې مخکښې نه وونوددوئ په اعتبارسره دالفظ پاتغلیبا مستعمل دې،یادکفارودخپل ګمان اوزعم مطابق ئ وئیلي دي څکه حضرت شعیب علیه السلام دبعثت نه قبل خپل قوم ته دعوت نه ووشروع کړې اودمدین دخلقودکفریاتومتعلق ئ سکوت کولونودوئ ګمان اوکړ(چه حضرت شعیب علیه السلام زمونږ په ملت کښې داخل دې یاعود په معنی دصیرورت اودداخلیدلوسره دې. اولفظ د﴿إِنْ عُدْنَا﴾ چه په مابعدآیت کښې دې هغه هم یا تغلیبًا دې یامشاکلةً دې یاپه معنی دداخلیدلوسره دي.﴿قَالَ أَوَلَوْ كُنَّا كَـٰرِهِينَ﴾ دا جواب دحضرت شعیب علیه السلام دې، مدخول دهمزه مقدردې ((ای اندخل فی ملتکم ولوکنا- الخ)) او استفهام انکاری دې په معنی دنفی سره دې یعنی داسې هرګزکیدې نه شی چه مونږ ستاسوپه باطل ملت کښې داخل شو. داخوپه الله تعالی باندې افتراء ده څکه چه دنبی هرقول فعل دالله تعالی دامرمطابق وی نودنبی داخلیدل په یوملت کښې، ددې مطلب داوی چه الله تعالی ددې امرکړیدې، نودا افتراء علی الله شوه نوددینه بل زیات ظلم اوګناه نشته دې﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا﴾.

﴿وَمَا يَكُونُ لَنَا أَن نَّعُودَ فِيهَا﴾ یعنی داسې هرګزنشی کیدې چه مونږ ستاسوپه ملت کښې داخل شو په خپلې رضاسره یاستاسوپه اکراه اوجبرسره ﴿إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ﴾ استثناء متصله ده.یعنی که بالفرض دالله تعالی مشیت دیوکس په باره کښې اوشی نوهغه هیڅوک نشی بدلولې. یادااستثناء منقطع ده او ((الآ)) په معنی دلکن سره دې اوخبر د ((لکن)) محذوف دې چه ((فهو کائن)) مطلب دادې چه مونږ خوهرګزستاسوپه ملت کښې نه داخلیږو . هرڅه چه کیږی هغه د الله تعالی په ارادې سره کیږی. نو که زمونږ دَ اخراج یا دَ هلاکت اراده الله تعالی کړی وی نو هغه به کیږی. مونږ هغې ته تیاریو . په هغې کښې به دالله تعالی حکمت اومصلحت وی اود الله تعالی علم په ټولومصالحواوحکمتونومحیط دې. ستاسوددباؤنه مونږ مرعوب نه یو .زمونږ اعتماد په یوالله تعالی جل جلاله دې، غرض داچه دباطل قبلولوته مونږپه هیڅ صورت کښې نه یوتیار .

﴿رَبَّنَا افْتَحْ﴾ حضرت شعیب علیه السلام چه دقوم دایمان نه مایوس شونودعائ اوکړه چه یاالله زما اودقوم په مینځ کښې فیصله اوکړی. په حق یعنی عدل سره یعنی عذاب پرې نازل کړې څکه مجرم نه

سزاور کول عدل دي، دا بد دعاده په لهجه د دعاء خير کښې،

**لطيفه** بعض امامان د دعاء اختتام په دې آيت سره په بالجهر کوي، حالانکه دا دعا نشر ده. نو گويا چه دوئ نه پوهيږي يادخپلو مقتديانو نه ډير ناراض او تنگ دي

وَقَالَ الْمَلَاُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لَىِٕنِ اتَّبَعْتُمْ شُعَيْبًا اِنَّكُمْ

او وه ويل غټانو هغو چه کفر ئې کړې وؤ د قوم د ده نه، قسم دې کچرې تاسو تابعداري وکړه د شعيب بيشکه تاسو به

اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ۝ فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَاَصْبَحُوْا فِيْ دَارِهِمْ

به دغه وخت کښې خامخا د تاوان والؤ نه شئ. پس ونيول دوئ لره زلزلې پس شول دوئ په کلي خپل کښې

جٰثِمِيْنَ ۝ۚۖ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا شُعَيْبًا كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا ۚ اَلَّذِيْنَ

پرمخې پراته (مړه) هغه کسان چه دروغژن ئې گنړلو شعيب، گويا که نه وؤ اوسيدلي په هغې کښې. هغه کسان

كَذَّبُوْا شُعَيْبًا كَانُوْا هُمُ الْخٰسِرِيْنَ ۝ فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰقَوْمِ

چه دروغژن ئې وگنړلو شعيب شول هم دوئ تاوان والا. نو واپس روان شو د دوئ نه او وې ويل اې قومه خما

لَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ وَنَصَحْتُ لَكُمْ ۚ

خامخا په تحقيق سره رسولی دی ما تاسوته پيغمانونه د رب خپل او خير مې لټولي دې ستاسو

فَكَيْفَ اٰسٰى عَلٰى قَوْمٍ كٰفِرِيْنَ ۝ؑ

پس څنگه به زه خفه شم په (هلاکت) دقوم کافرانو

﴿وَقَالَ الْمَلَاُ﴾ هرکله چه شعيب عليه السلام او دده ملگري دکفارو ددباؤنه مرعوب نه شونودوئ يوبله طريقه اختيار کړه، اوئ ويل چه که چرې تاسو دشعيب عليه السلام اتباع اوکړه او ايمان تقوی خو اختيار کړه نو ستاسو ملکي معيشت، ملکي ترقي به تباه شي، لکه دموجوده دوُرباطل پرست .ترقي يافته.. هم داسې وائي چه دين اسلام دترقي دپاره رکاوټ دې. حضرت شعيب عليه السلام لکه څه رنگه چه خپل قوم ته دتوحيد، رسالت او حقوق الله تاکيد کولو نو دغه شان ئې ورته دحقوق العباد او دمعاملاتو ددُرست کولو هم ډيرتاکيداواهتمام ئې کولو. اودده هوکې او ناجائز طريقه تجارت نه ئې خلق منع کولو، نو دکفارو مشرانو خلقوته داسې قسم وسوسې

اجول شروع کړل، چه دشعیب علیه السلام په اتباع سره زمونږ ملکی معیشت ته ډیرنقصان رسی. لکه په موجوده دورکښې هم داطریقه باطل پرستانوخپل معمول ګرځولې دې. په جمله د ﴿لَئِنِ اتَّبَعْتُمْ شُعَيْبًا إِنَّكُمْ إِذًا لَّخَاسِرُونَ﴾ کښې ډیرتاکیدات دی، دکلام په صدرکښې لام مؤطئه للقسم راغلیدې اوشرط راغلیدې اوجواب په لفظ کښې دقسم دپاره دې اوپه معنی کښې جواب دقسم اوجزاء د شرط دواړه دی اوتاکیدئ په «انّ» او «لام» سره شویدې. یعنی داخبره په قسم سره کووچه که چرې تاسودشعیب علیه السلام اتباع اوکړه نویقینًا تاسوبه خامخاپه نقصان کښې راشئ اوملکی معیشت اوترقی به ختم شی، ﴿الرَّجْفَةُ﴾ په دوئ باندې دلاندې نه زلزله راغلیده اودبره نه صیحه، یعنی ډیرسخت آواز، چعه، دجبرئیل، پرې هم راغلیده، اودوریځې نه اُور، پرې هم نازل شویدې ((عذاب یوم الظلة)) اوپه قول دقتاده رحمه الله باندې عذاب یوم الظلة په جداقوم راغلیدې اورجفة، صیحه، په بل قوم راغلیدی، ﴿فِي دَارِهِمْ﴾ نه مرادشهرددوئ دې ﴿جَاثِمِينَ﴾ پرمخې، نسکورپراته.

﴿الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا﴾ دامبتداء ده خبرئ محذوف دې، ((ای فنوا)) ختم اونیست نابودشو ﴿كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا﴾ لکه چه دوئ بالکل نه وی اوسیدلی په دې کښې ﴿الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا﴾ داپه مقابله دقول دکفاروکښې دې چه هغوئ وئیل چه تابعداری دشعیب علیه السلام سبب دخسران دې نوالله تعالی فرمائ چه تکذیب دشعیب علیه السلام سبب دخسران دې ﴿هُمُ الْخَاسِرِينَ﴾ داحصراضافی دې په نسبت سره اتباع دشعیب علیه السلام ته دې یعنی صرف دوئ خاسرین وو، نه اتباع دشعیب علیه السلام ﴿فَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ وَقَالَ﴾ یعنی هرکله چه په قوم باندې عذاب شروع شو نودې ترینه واپس شواواوئ وئیل چه ﴿أَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَاتِ رَبِّي﴾ ما دپیغمبرئ حق اداکړیدې ﴿وَنَصَحْتُ لَكُمْ﴾ اوستاسوخیرخواهی مې کړیده اوپه تاسومې ډیرشفقت کړیدې. نوپه تاسوباندې عذاب داتمام حجت نه بعدراغلیدې نوپه تاسوباندې دعذاب راتللوافسوس نه کوم، ستاسودکفرپه وجه سره ﴿عَلَىٰ قَوْمٍ﴾ ((ای علی عذاب قوم)) په کافرانو چه عذاب راشی نوپه هغې غم اوخفګان نه دې پکار، البته دهغوئ په کفرخفګان جائز دې.

وَمَآ اَرْسَلْنَا فِيْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّبِيٍّ اِلَّآ اَخَذْنَآ اَهْلَهَا بِالْبَاْسَآءِ

او نه دي لیږلي مونږ[1] په هیڅ یو کلي کښې هیڅ یو نبی مګر مبتلا کړی مو وو اهل د دې په سخت فقر

وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَضَّرَّعُوْنَ ﴿٩٤﴾ ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ السَّيِّئَةِ الْحَسَنَةَ

او مرضونو سره د دې لپاره چه دوئ زارئ وکړی (الله تعالی ته) بیا بدل راوړه مونږ په ځائ د سختئ باندې خوشحالی

حَتّٰى عَفَوْا وَّقَالُوْا قَدْ مَسَّ اٰبَآءَنَا الضَّرَّآءُ وَالسَّرَّآءُ

تردې چه دوئ زیات شول (ترقی ئ وکړه) اووه ویل دوئ په تحقیق سره رسیدلی وؤ مشرانو زمونږ ته تنګدستی او خوشحالی

فَاَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿٩٥﴾ وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰٓى اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا

پس ونیول مونږ دوئ لره ناڅاپه اودوئ نه پوهیدل اوکچرې بیشکه اهل د کلو ایمان راوړې وې او تقوی ئې کړې وې

لَفَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ وَلٰكِنْ كَذَّبُوْا فَاَخَذْنٰهُمْ

نو خامخا به پرانستې وؤ مونږ په دوئ برکتونه د آسمان او د زمکې نه لیکن دوئ تکذیب وکړو پس ونیول مونږ دوئ لره په عذاب سره

بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿٩٦﴾ اَفَاَمِنَ اَهْلُ الْقُرٰٓى اَنْ يَّاْتِيَهُمْ بَاْسُنَا

په سبب د هغه عملونو چه دوئ به کول آیا بې خوفه دی دا کلو والا، د دینه چه را به شی دوئ ته عذاب زمونږ

بَيَاتًا وَّهُمْ نَآئِمُوْنَ ﴿٩٧﴾ اَوَاَمِنَ اَهْلُ الْقُرٰٓى اَنْ يَّاْتِيَهُمْ بَاْسُنَا

په وخت د شپې کښې او دوئ به اوده وی آیا بې خوفه دی دا کلو والا د دینه چه راشی دوئ ته عذاب زمونږ

ضُحًى وَّهُمْ يَلْعَبُوْنَ ﴿٩٨﴾ اَفَاَمِنُوْا مَكْرَ اللّٰهِ ۚ فَلَا يَاْمَنُ

په وخت د سحت کښې اودوئ لوبې کوی (غافل وی) آیا بې خوفه دی دوئ دعذاب د الله تعالی نه. پس نه بې خوفه کیږی

مَكْرَ اللّٰهِ اِلَّا الْقَوْمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿٩٩﴾

دعذاب د الله تعالی نه مګر قوم تاوانیان

1 الیغت اهل مکې ته

﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا فِى قَرْيَةٍ ﴾ دامتعلق دي دتيرشوؤپنځه واقعاتوسره .دقوم داصلاح دپاره
الله جل شانه نبی راليږی اوچه هغوئ دنبی خبره نه منی نوبياالله تعالی دهغوئ داصلاح دپاره
دوه قسمه ابتلاء امتحان راولی، ددې دپاره چه ددوئ هيڅ معذرت پاتې نه شی . يوابتلا.
بالنقم ده اوبله ابتلاء بالنعم ده،دانسان فطرت دې چه دمصيبت په وخت کښې ئ الله تعالی
يادراځی اوالله تعالی ته رجوع کوی اوتوبه کوی اودارنګه انسانی فطرت دادې چه دراحت په
وخت کښې شکرګذاروی اودمحسن ذات داحساناتوشکريه اداکوی. نوکوم قومونه چه تباه
شوی ووهغوئ ته الله تعالی نبی راليګلې وو . نبی په ډيرشفقت خيرخواهئ .همدردئ سره
دوئ ته دعوت ورکړونوچه دوئ دنبی دعوت قبول نه کړونوالله تعالی په دوئ اول امتحان
اوابتلاء بالنقم اوکړو-﴿بِالْبَأْسَآءِ﴾ مالی تکليف فقر. فاقه﴿وَالضَّرَّآءِ﴾ بدنی تکليف .بيماری
مصيبتونه، نوچه دوئ په دې سره رجوع الی الله اونه کړه نوبل امتحان پرې راغلو. مالی
وسعت، صحت سلامتيا ،﴿حَتَّىٰ عَفَوا﴾ دوئ زيات شواوترقی ئ اوکړه. عفويه معنی دزيادت
سره دې ((عفاالنبات ،عفاالوبر)) يعنی ددواړوقسموامتحاناتونه ئ عبرت حاصل نه کړاوئ
ونيل چه داانقلابات اومختلف قسم حالات راتلل داعمالونتيجه نه ده بلکه عادت دزمانې دې
اودالوئ قسوت قلبی «دزړه سخت والې» دې چه په هيڅ حالت کښې الله تعالی ته رجوع نه
کوی اوداعلامه دبدبختئ اوسبب دعذاب دې نوالله تعالی ددوئ ګرفت اوکړو﴿بَغْتَةً﴾
ناڅاپه، بغتةً،هغه عذاب ته وائ چه تاريخ اومخصوص وخت دنزول ئ معلوم نه وی. سره
دغفلت داهل نه . اګرکه علامات ئ راغلی وی خومعذبين غافل وی، عبرت نه اخلی

﴿وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْقُرَىٰٓ﴾ داهم دماقبل سره متعلق دې اومطلب دادې چه کفرشرک اومعاصی
سبب دنزول دعذابونواومصيبتونودې اوايمان تقوی سبب دنازليدودبرکتونودې. داسمان
برکتونه، بارانونه دی په وخت دضرورت کښې اورحمتونه نازليدل دی. اودزمکې برکات.
دزمکې پيداوار. اوپه خپل مينځ کښې اتفاق اواتحاددې، تقوی ددې امورودپاره سبب دې
دتقوی په وجې سره داراځی. بعض اساتذوفرمائيلی دی چه اسمانی برکات علوم فيضانيه
دی اواراضی برکات علوم کسبيه دی،په تقوی سره په دواړه قسمه علوموکښې ترقی
راځی.دعلم برکت دمادی نعمتونودبرکاتونه زيات لوئ نعمت دې، ((اللهم ارزقنا بفضلک
وکرمک يا ارحم الراحمين)) ﴿ أَفَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَىٰٓ ﴾ همزه دپاره داستفهام انکاری په معنی

دلاينبغي سره دي اوفادتعقيب دپاره ده. اوداهل قرٰی نه مراداهل مكه اوتمام موجوده خلق دی. ﴿ أَفَأَمِنَ ﴾ په معنی دبې خوفه كيدل بې غمه كيدلو سره دي يعنی بې خوفه كيدل اوغفلت نه دې پكار، دغفلت وخت يودخوب وخت دي بل دمشغوليت دې په لعبو يامعاملاتو ددنياكښې اول ته اشاره ده په دې قول كښې چه﴿ بَيَٰتًا ﴾ دامنصوب بناء برظرفيت دې ((ای وقت الليل)) ياحال دې په معنی د بائتين سره ﴿ وَهُمْ نَآئِمُونَ ﴾ حقيقةً خوب ترينه مراددې يادغفلت ترينه مراد دې، اودويم ته اشاره ده په دې قول كښې ﴿ ضُحًى وَهُمْ يَلْعَبُونَ ﴾ ﴿ أَفَأَمِنُوا مَكْرَ اللَّهِ ﴾ مكرخفيه تدبيرته هم وائي. اوالله تعالی چه بنده ته مهلت وركوی هغې ته هم وائي. ((قال الراغب، مكرالله امهال العبدوتمكينه من اعراض الدنيا))، دلته دا دويمه معنی زياته مناسبه ده، ((فالمراد به استدراجه العبد العاصی حتی يهلكه فی غفلته)) ،(روح) حضرت تهانوی رحمه الله دمكرالله ترجمه په (ناگهانی پكڑ) سره كړيده.﴿ فَلَا يَأْمَنُ مَكْرَ اللَّهِ إِلَّا الْقَوْمُ الْخَٰسِرُونَ ﴾ د ((خاسرون)) نه مرادكفاردی نواحنافوددينه استنباط كړيدې چه دعذاب الهی نه قطعاً بې خوفه كيدل كفردې اوشوافع وائي چه گناه كبيره ده(روح).

أَوَلَمْ يَهْدِ لِلَّذِينَ يَرِثُونَ الْأَرْضَ مِنْ بَعْدِ أَهْلِهَآ

آيا نده ښكاره شوې هغه كسانو ته چه وارثان شويدی د زمكې، پس د هلاك د مخكنو اوسيدونكو د هغې نه

أَن لَّوْ نَشَآءُ أَصَبْنَٰهُم بِذُنُوبِهِمْ ۚ وَنَطْبَعُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ

دا خبره كه وغواړو مونږ عذاب به ورسوؤ مونږ دوی ته په سبب د گناهونو د دوی، او مهر لگوؤ مونږ په زړونو د دوی

فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ ۝ تِلْكَ الْقُرَىٰ نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنۢبَآئِهَا ۚ وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ

پس دوی نه آوری دغه كلی بيانوؤ مونږيه تاباندې بعضې د خبرونودهغوی نه، اوخامخا په تحقيق سره راغلی وو دوی ته

رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَٰتِ فَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا بِمَا كَذَّبُوا

رسولان د دوی په واضحه معجزاتو سره، پس نه وو هغوی چه ايمان ئې راوړې وې په سبب د دې چه انكار كړې وو دوی

مِن قَبْلُ ۚ كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِ الْكَٰفِرِينَ ۝ وَمَا وَجَدْنَا لِأَكْثَرِهِم

دمخكښې نه. د دې وجه نه مهر لگوی الله تعالی په زړونو د كافرانو اونه وو موندلی مونږ د ډېرو خلقو لپاره

﴿مِّنْ عَهْدٍ ۚ وَإِن وَجَدْنَا أَكْثَرَهُمْ لَفَاسِقِينَ ﴿١٠٢﴾﴾

وعده پوره كول، او په تحقيق سره مونډلي دي مونږ ډير خلق خامخا فاسقان

﴿أَوَلَمْ يَهْدِ لِلَّذِينَ﴾ دا زجر اوتخويف دې منكرينوته ، د ((يهد)) په صله كښې چه لام راشي نوپه معنى د ((يَسْتَبِينُ)) سره وى نودلته ترينه مرادواضح كيدل اوخكاره كيدل دى د ﴿يَرِثُونَ الْأَرْضَ﴾ نه مرادسكونت كونكي دى، مرادترينه كفارمكه وماحولها دى چه په وخت دنزول دآيت كښې ژوندى وو . يعني آيا دوئ ته دمخكينوقومونودحالاتونه داخبره نه ده واضحه شوې چه كه چرې مونږ اوغواړونودوئ به هم دهغوئ په شان هلاك كړوځكه كوم سبب دهلاكت دهغوئ وونوهغه جرم په دوئ كښې هم موجوددې ﴿أَن لَّوْ نَشَاءُ﴾ داجمله په تاويل دمفردسره فاعل دې د (يَهْدِ) دپاره﴿أَصَبْنَاهُم﴾ عذاب به وركړودوئ ته په سبب دګناهونودوئ سره ﴿وَنَطْبَعُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ﴾ داجمله مستانفه ده، مطلب ئې دادې چه دكوم قوم ضداوتعصب داسې ځائ ته اورسى چه هغه نه دنبى دوعظ اوارشادنه متاثركيږى اونه دحالاتونه عبرت اخلي نوددغه شان ضديانو ، معاندينوپه زړونوالله تعالى مهرجباريت لګوى اودقبول دحق صلاحيت او استعدادوالانعمت ترينه سلب كوى نودوئ بيانه اورى په سماع قبول سره

﴿تِلْكَ الْقُرَىٰ﴾ داهم دمخكينوقومونوذكردې دپاره دتذكيردموجودؤكفارويعنى مخكينو كفاروته چه رسولان راغلل اوواضحه معجزات ئې ورته ښكاره كړل نوهغوئ انكاراوتكذيب اوكړواوضدعنادئ شروع كړواوپه كوم شئ باندې چه ئ اول تكذيب كړې وونوپه خپله رايه باندې مضبوط اودريدل اګركه واضح دلائل په حق باندې موجودوو نودضداوعنادپه وجه به په هغوئ مهرجباريت لګيدلو﴿كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ﴾ دغه شان دټولوكافرانو ، مخكيني روستني ټولوپه زړونوباندې الله تعالى مهرلګوى دضداوعنادپه وجه. ﴿وَمَا وَجَدْنَا﴾ دامتعلق دې دټولوكافرانودحال سره چه سبب دعذاب ارتكاب دخلاف عهدوو . د﴿مِّنْ عَهْدٍ﴾ نه مراد وفا د وعدې دتوحيداوداقراردربوبيت دالله تعالى ده چه په عالم ارواح كښې اخستې شوې ده او دانبياؤ په ذريعه دهغې ياددهانى تجديدپه هردوركښې شوې دې. ﴿وَإِن وَجَدْنَا﴾ ان مخفف من المثقل دې اسم ئ ضميرشان مقدردې، ﴿لَفَاسِقِينَ﴾ اى خارجين عن دائرة العهد.

| |
|---|
| ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ مُّوسَىٰ بِآيَاتِنَا إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِيهِ |
| بيا ولېږلو مونږ روستو د دغه پيغمبرانو نه [1] موسیٰ په معجزاتو زمونږ سره فرعون ته او غټانو د قوم دهغه ته |
| فَظَلَمُوا بِهَا ۖ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِينَ ۝ وَقَالَ مُوسَىٰ |
| پس هغوئ عناداً انکار وکړو دهغې نه، پس وګوره چه څرنګه شو انجام د فساد کوونکو او وه ویل موسی |
| يَا فِرْعَوْنُ إِنِّي رَسُولٌ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝ حَقِيقٌ عَلَىٰ أَنْ لَا أَقُولَ عَلَى اللَّهِ |
| اي فرعونه بېشکه زه رسول یم د رب العالمین د طرف نه کلك یم [2] په دې چه نه به وایم په الله تعالی باندې |
| إِلَّا الْحَقَّ ۚ قَدْ جِئْتُكُمْ بِبَيِّنَةٍ مِنْ رَبِّكُمْ فَأَرْسِلْ مَعِيَ بَنِي إِسْرَائِيلَ ۝ |
| سوا دحق نه، په تحقیق سره راوړې مې ده تاسو ته واضحه معجزه د طرف د رب ستاسو نه، پس پرېږده خما سره بنی اسرائیل |
| قَالَ إِنْ كُنْتَ جِئْتَ بِآيَةٍ فَأْتِ بِهَا إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ۝ فَأَلْقَىٰ |
| وه ویل فرعون کچرې راوړې وې تا څه معجزه [3] نوښکاره کړه هغه که ئې ته د رښتنو نه . پس وغورځوله موسی |
| عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُبِينٌ ۝ وَنَزَعَ يَدَهُ فَإِذَا هِيَ |
| همسا خپله پس ناګهانه هغه ښامار وو [4] ښکاره. او را وې ويستلو لاس خپل د ګريبان نه پس ناګهانه هغه |
| بَيْضَاءُ لِلنَّاظِرِينَ ۝ |
| تك سپين وو [5] لپاره د نظر کوونکو |

﴿ ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ مُوسَىٰ ﴾ داشپږمه قصه ده، دامتعلق ده دعوه اولی سره يعنی لکه څه رنګه چه حضرت موسی علیه السلام داستقلال اوصبرمظاهره په تبليغ کښې کړېده نوته هم صبرکوه

---

۱ . شپږمه قصه د اولي دعوې سره متعلق ده .
۲ . د اته واقعاتونه اوله واقعه
۳ . د نبوت ګواه
۴ اول ګواه
۵ دويم ګواه

اوزړه کښې تنګی مه راوله ﴿فَلَا يَكُن فِي صَدْرِكَ حَرَجٌ مِّنْهُ﴾ داقصه ددې ځائ نه شروع ده اود.ع.۲۰آیت نمبر۱۲۲باندې ختمیږی په دې کښې دحضرت موسی عليه السلام دزندګئ. مختلف انه واقعات ذکرشویدی هره واقعه دحضرت موسی عليه السلام عزیمت اواستقلال تصویردې اوله واقعه دموسی عليه السلام فرعون ته تلل اودتوحیددعوت ورکول اودخپل قوم بنی اسرائیلو دآزادئ مطالبه کول اومعجزات ښکاره کول اوبیادفرعون جادوګر جمع کول وغیره په دې کښې مذکوردی.﴿فَظَلَمُوا﴾ ای کفروا ﴿بِهَا﴾ ای بالمعجزات یادامعنی ده چه باوجود درؤیت دمعجزاتونه ئ کفراوکړو. دې ته کفرعنادی وئیلې شی. ﴿حَقِيقٌ﴾ داصفت دې درسول یاخبربعدخبرد ((إِنَّ)) دې یاخبردمبتداء مخذوف دې ((ای اناحقیق)) .حقیق په معنی د جدیر. یا حَرِيصٌ .سره دې یادامبالغه ده په حق کښې ای ثابت مستمر. یعنی زه په حق باندې کلک اومستمر یم﴿إِنِّي رَسُولٌ﴾ بیان درسالت دې،﴿حَقِيقٌ عَلَىٰ﴾ بیان دتوحید دې

﴿قَدْ جِئْتُكُم﴾ اثبات درسالت اودتوحیددې﴿فَأَرْسِلْ﴾ مطالبه دآزادئ دقوم ده. دارسال معنی داده چه دوئ پریګده چه وطنِ اصلی شام ته لاړشی. بنی اسرائیل په زمانه د یوسف عليه السلام کښې مصرته راغلی وو، نوبیافرعون اوقبطیانودوئ خپل غلامان ګرځولی وو.اوسخت سخت کارونه به ئ پرې کول، دحضرت موسی عليه السلام په ذریعه الله تعالی دوئ آزادکړل. ذوهب رحمه الله نه روایت دې چه په مابین دزمانې دیوسف عليه السلام اودموسی عليه السلام کښې څلورسوره کاله وو،﴿فَأْتِ بِهَا﴾ فرعون دموسی عليه السلام نه درسالت دلیل اوګواه طلب کړو، نوحضرت موسی عليه السلام دوه ګواهان پیش کړل، په یوکښې اشاره تخویف ته وه اوپه بل کښې بشارت وو، یعنی ددعوت دانکارانجام مصیبتونه اودائمی عذابونه دی اوددعوت دقبول انجام نوراودائمی خوشحالئ دی،﴿ثُعْبَانٌ﴾ اژدها. بناماړته وائ په بل آیت کښې ((جان)) راغلیدې یعنی وړوکې مار. اوپه بل ځائ کښې «حیة» راغلیدې یعنې مطلق مار. نوبعض حضرات وائ چه اول وړوکې وواوبیاترینه لویه اژدهاجوړه شوه اوبعض وائ چه دحرکت په اعتبارسره ئ ورته «جان» وئیلې دې اودجُوثی په اعتبارسره ئ ورته ثعبان وئیلې دې. اود﴿مُّبِينٌ﴾ نه معلومه شوه چه حقیقةً ماړوو ،نظربندی نه وه علامه شیربینی په السراج المنیرکښې وئیلی دی مارچه خوله کولاؤکړه نوددواړوجامو په مینځ کښې ئ اتیاګزه فاصله

وه يوه جامه ئ په خمكه اوبل دفرعون دبنګلې په ديوال وه. اوپه لګئ باندې نيغ اودريدو ديوميل په مقدارئ طول وو. اوفرعون ته ئ رامخ کړو نوفرعون په تيختته روان شو اودستونه پرې شروع شو نوڅلورسوه وارى دستونه اوشو. اوپه خلقوئ حمله اوکړه نوپنځويشت زره ترينه مړه شو. اوفرعون په چغوسرشو. موسى عليه السلام ته زارى ئ شروع کړه چه ماخلاص کړه نوزه په تاايمان راوړم اوبنى اسرائيل آزادوم. نوچه موسى عليه السلام په لاس اونيولو نوعصا ترينه جوړه شوه. نوفرعون اووئيل چه څه بله معجزه هم شته دې نوموسى عليه السلام ورته لاس دترخ نه رااوباسلو نوداسې رنړائ کوله لکه نمر. اودزمکى اسمان درميان ئ رنړاکړو نوچه بيائ په ګريبان کښې داخل کړونودخپل مخکينى حالت په شان شو. ﴿لِلنّٰظِرِيْنَ﴾ دبيضاسره متعلق دې اوپه دې کښې اشاره ده ديته چه رنړادلاس داسې عجيبه غريبه اودعام عادت خلاف وه چه خلق به ئ تماشى ته جمع کيدل.

قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ ۙ يُّرِيْدُ اَنْ يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ ۚ

وه ويل غټانو د قوم د فرعون نه بيشکه دا موسى جادو ګر دې ډير پوهه غواړى چه وباسى تاسو د ملك ستاسو نه

فَمَاذَا تَاْمُرُوْنَ ۞ قَالُوْٓا اَرْجِهْ وَاَخَاهُ وَاَرْسِلْ فِى الْمَدَآئِنِ

پس څه حکم (مشوره) کوئ تاسو وه ويل هغوئ مهلت ورکړه ده لره او ورور د ده لره او وليږه په ښارونو کښې

حٰشِرِيْنَ ۙ يَاْتُوْكَ بِكُلِّ سٰحِرٍ عَلِيْمٍ ۞ وَجَآءَ السَّحَرَةُ فِرْعَوْنَ قَالُوْٓا

راجمع کوونکى چه راولى تاته هرجادوګر پوهه، ماهر او راغلل جادوګران فرعون ته. نو وه ويل دوئ،

اِنَّ لَنَا لَاَجْرًا اِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ ۞ قَالَ نَعَمْ وَاِنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ۞

بيشکه وى به مونږ لره څه أجرت (انعام) که چرې شو مونږ غالب وه ويل فرعون آو، اوبيشکه تاسو به خامخا د مقربينو. خواصو نه يئ

﴿قَالَ الْمَلَاُ﴾ فرعون دموسى عليه السلام دمعجزاتونه ډيراووېريدلواوخپل درباريان اوخواص ارکان مملکت ئ جمع کړل اول ئ په خپله اووئيل (کمافى السورة الشعراء) چه داخولوئ ساحردې اوبيادده، په تائيدکښې نوروميشرانودخپلورايواظهاراوکړو چه ﴿اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ﴾ فرعون دموسى عليه السلام ددعوت نه په شدت سره انکارکوو. ليکن ددوئ دکمال نه ئ

انکارنه شوکولي. نواقراریٔ اوکړو لیکن تعبیریٔ ترینه په داسې الفاظوسره اوکړوچه څوک برئ دحق گمان اونه کړی.اوددویٔ دجدجهدمقصدیٔ په داسې اندازکښې خلقونه پیش کړوچه څوک ورته مائل نه شی . اوداطریقه داهل باطل په هردورکښې ده. نواوئ ونیل چه داموسی علیه السلام ساحردې خودعاموساحرانونه زیات ماهردې اودده. دتحریک اوجدوجهد مقصد دادې چه خلق خپل ځان ته مائل کړی اوبالآخرپه اقتدارقبضه اوکړی اودقبطیانو،بنی اسرائیلو، دازادیٔ اوحمایت په نامه ټول قبطیان چه ددی وطن. اصلی اوسیدونکی دی اوباسی اودملک په خزانوقبضه اوکړی. ﴿ فَمَاذَا تَأْمُرُونَ ﴾ داکلام دفرعون دې چه سردارانوته یٔ اووئیل چه حالات ستاسوپه مخکښې دی نوددې په باره کښې ستاسو څه مشوره ده، ﴿ قَالُوٓا أَرْجِهْ ﴾ ارجاء تاخیرته وائ، داصیغه دامرده په اصل کښې (ارجئه) .دې لکه په قرءت دابن کثیراوابوعمروکښې دغه شان دې، ارکانواومشیرانوددربارمشوره ورکړه چه دموسی علیه السلام اوهارون علیه السلام چیلنج اومقابله دې فی الحال مؤخره شی اوددویٔ دمقابلې دپاره دې ماهرین دفن راجمع کړې شی اودهغویٔ په ذریعه سره دې مقابله اوکړې شی نودویٔ زبردست کوشش شروع کړو اودملک داطرافواکنافونه یٔ جادوگران طلب کړل. په دغه دورکښې په مصرکښې دسحردیره چرچه وه اودسحردتعلیم دپاره سکولونه. کالجونه وو. اوماهران استاذان وو، اوعادت الهیه دادې چه هرنبی له معجزه دهغې زمانې سره مناسب ورکوی، نودویٔ دسحرپه تعلیم مزیدتوجه ورکړه اوبیایٔ ډیرساحران راجمع کړل. په مقدارکښې یٔ دمفسرینومختلف اقوال دی یوقول داتیازرودې. هرکله چه دویٔ جمع شونوپه رومبنی مجلس کښې یٔ داخبره اوکړه ﴿ إِنَّ لَنَا لَأَجْرًا ﴾ فیس اومعاوضه، یٔ طلب کړه دباطل پرست خلقوهرعمل ددنیاوی مقصددپاره وی، اودانبیاؤاوله خبره داوی ﴿ مَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ﴾ هزکاراگرکه دَ دین وی خو چه ددنیادنفع دپاره اوشی اوبنیادیٔ دنیوی نفع وی نوهغه دین نه وی په حقیقت کښې اگرکه په ظاهرصورت کښې ددین لویٔ خدمت لیدلې شی.

نوفرعون دویٔ ته اووئیل چه ﴿ نَعَمْ وَإِنَّكُمْ لَمِنَ ٱلْمُقَرَّبِينَ ﴾ یعنی تاسوخوصرف مال غواړیٔ اوزه به مال هم درکړم اوعُهدې به هم درکړم،(لکه په موجوده دورکښې په اسمبلیانوکښې په دی دواړوځیزونوسره ممبرانوخریدفروخت کیږی) علامه شیربینی وائ چه مددغوختل دفرعون دساحرانونه واضح دلیل دې په دې چه دې عاجزذلیل بنده دې اودارنگه طلب داجرت

دساحرانو دفرعون نه دليل دي په دي چه هغوئ قادرنه ووپه دي چه داعيانونه سره سپين زرجوړکړي. گني نودفرعون نه به ئ طلب دمال نه کوؤپخپله به ئ داحجارونه ذهب فضه جوړکړي وو. نوپه دي آياتونوکنبي تنبيه ده انسان ته په دي دقانفو. اوچه دهوکه نه شي په خبروداهل باطلو اوپه دروغودهغوئ آه ، اکثرسلاطين ،ليډران، ساحران ډيري لوئى دعوي کوي اوډيردروغ واي. په دوئ دهوکه کيدل اوددوئ نه متاثره کيدل نه دي پکار

قَالُوا يَٰمُوسَىٰٓ إِمَّآ أَن تُلْقِيَ وَإِمَّآ أَن نَّكُونَ نَحْنُ ٱلْمُلْقِينَ ﴿١١٥﴾ قَالَ أَلْقُوا

وه ويل دوئ اي موسى ، يا نه وغورزوه يا به شو صرف مونږ غورزوونکي اولاً وه ويل موسى وغورزوئ تاسو اول

فَلَمَّآ أَلْقَوْا سَحَرُوٓا أَعْيُنَ ٱلنَّاسِ وَٱسْتَرْهَبُوهُمْ

پس هرکله چه وغورزولي هغوئ خپلي همساگانې نو جادو ئې وکړو په سترگو د خلقو باندې او وې يرول دوئ

وَجَآءُو بِسِحْرٍ عَظِيمٍ ﴿١١٦﴾

او راتي وړلو جادو لوئ

﴿ قَالُوا يَٰمُوسَىٰٓ ﴾ دساحرانوپه خپل سحرډيره بهروسه اواعتمادوونوموسى عليه السلام ته ئ اووئيل چه ياته خپل عصاواچوه يابه مونږ،﴿وَإِمَّآ أَن نَّكُونَ نَحْنُ ٱلْمُلْقِينَ ﴾ (نحن) ضميرفصل دي په مابين داسم دكان اوخبركنبي اوخبر﴿ ٱلْمُلْقِينَ ﴾ معرف باللام دي نوحصرفائده کوي. مطلب دادي چه زمونږسحردومره عظيم دي چه صرف مونږ به القاء کونکي شواوتاته به موقعه ملاؤنه شي. ساحرانودموسى عليه السلام ادب اوکړوچه مقدم ئ کړو په القاء کنبي په خپلونفسونو. نوپه دي وجه باندي ورته الله تعالى توفيق دايمان اودهدايت ورکړو، نوموسى عليه السلام ورته اوفرمائيل﴿ قَالَ أَلْقُوا ﴾مقصوددنه حکم يااذن دالقاء دسحرنه دي خکه سحرحرام دي اوکفردي خصوصاً چه دحق په مقابله کنبي هم راشي اونبي دحرام حکم اواذن نه کوي بلکه مقصوداختياردااحدالشقين دي خکه چه ساحرانوددوؤخبرواختيارورکړوچه ياته القاء اولاً اوکړه يائ مونږ کوؤ نوموسى عليه السلام ورته اوفرمائيل چه زه دادويم شق اختياروم چه تاسواولاًالقاء اوکړئ، ددي دپاره چه حق واضح شي.﴿سَحَرُوٓا أَعْيُنَ ٱلنَّاسِ ﴾ داسحردنظربندئ وو، دعاموخلقواودموسى عليه السلام په قوت خياليه باندي ئ کړي وو.

اودانبياؤپه قوة عاقله باندې سحراثرنه شی کولې ﴿وَٱسۡتَرۡهَبُوهُمۡ﴾ سين زايد دې په دمبالغې دپاره دې يعنې خلق ئې ډيرووېرول اورعب هيبت ئې پرې غالب کړو. ﴿بِسِحۡرٍ عَظِيمٍ﴾ دومرد لوئ سحرووچه ساحرانواودهغوئ استاذانونه داعلم وو چه ددينه لوئ سحرنشته اوکه چرې په دې باندې څوک غالب شو نوهغه به ساحرنه وی بلکه نبی به وی. دساحرانودسحرپه وجه عام خلق اوويريدل. اودموسی علیه السلام په نفس کښې هم په دې وجه خوف اوخطره راغلد حه اظهاردحق به اونه شی. څکه چه دوئ ډيرماران جوړکړل اوخما دعصانه به پوهارجوړېسې. نودحق وضوح اوغلبه به رانه شی. ﴿فَأَوۡجَسَ فِي نَفۡسِهِۦ خِيفَةٗ مُّوسَىٰ﴾ هم دامعنی دد. اودامطلب نه دې چه موسی علیه السلام دسحردساحرانونه ويريدو

وَأَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنۡ أَلۡقِ عَصَاكَۖ فَإِذَا هِيَ تَلۡقَفُ مَا يَأۡفِكُونَ ﴿١١٧﴾

او وحي وکړه مونږ موسی ته چه وغورزوده همـــا خپله پس ناګاهه ئې تير کړل هغه حه حه دوئ جوړول په سحر سره

فَوَقَعَ ٱلۡحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ﴿١١٨﴾ فَغُلِبُواْ هُنَالِكَ

پس ښکاره شو حق او بې کاره (فيل) شو هغه عملونه چه دوئ کول پس مغلوب شو دوئ په دغه ځائ کښې

وَٱنقَلَبُواْ صَٰغِرِينَ ﴿١١٩﴾ وَأُلۡقِيَ ٱلسَّحَرَةُ سَٰجِدِينَ ﴿١٢٠﴾ قَالُوٓاْ ءَامَنَّا

اوواپس شوذليل. شرميدلي اووه غورزولې شو ساحران سجده کوونکی وه وئيل دوئ ايمان راوړې دی مونږ

بِرَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿١٢١﴾ رَبِّ مُوسَىٰ وَهَٰرُونَ ﴿١٢٢﴾ قَالَ فِرۡعَوۡنُ ءَامَنتُم بِهِۦ

په رب العالمين باندې چه رب د موسی او دهارون دې وه ويل فرعون آيا ايمان راوړو تاسو په دد باندې

قَبۡلَ أَنۡ ءَاذَنَ لَكُمۡۖ إِنَّ هَٰذَا لَمَكۡرٞ مَّكَرۡتُمُوهُ فِي ٱلۡمَدِينَةِ لِتُخۡرِجُواْ

مخکښې د اجازت خما نه. بيشکه دا يو چل ول دې چه تاسو جوړ کړې دې په دې ښار کښې لپاره د دې چه وباسی تاسو

مِنۡهَآ أَهۡلَهَاۖ فَسَوۡفَ تَعۡلَمُونَ ﴿١٢٣﴾ لَأُقَطِّعَنَّ أَيۡدِيَكُمۡ وَأَرۡجُلَكُم مِّنۡ خِلَٰفٖ

د دينه اوسيدونکی د دې. پس زرده چه پوهه به شئ تاسو خامخا به پريکړم لاسونه ستاسي اوخپې ستاسي اړول

ثُمَّ لَاُصَلِّبَنَّكُمْ اَجْمَعِيْنَ ۝ قَالُوْٓا اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا مُنْقَلِبُوْنَ ۝

بیا به خامخا په سولئ کړم تاسو ټول وه وئیل دوئ بیشکه مونږ خپل رب طرف ته ګرځیدونکي تلونکي یو

وَمَا تَنْقِمُ مِنَّآ اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا بِاٰيٰتِ رَبِّنَا لَمَّا جَآءَتْنَا ؕ

او ته بد نه ګڼرې زمونږ نه مګر دا خبره چه ایمان راوړي دي مونږ په آیتونو د رب خپل هرکله چه راغلل مونږ ته

رَبَّنَآ اَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَّتَوَفَّنَا مُسْلِمِيْنَ ۝

اې ربه زمونږ راتوئی کړه په مونږ ډیر صبر او وفات کړه مونږ په حالت داسلام

﴿ وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى ﴾ په میدان کښې باطل په زوراوقوت سره ښکاره شو. عادت الهی دادې چه ترڅوپورې چه حق دباطل په مقابله کښې په حرکت کښې نه وی راغلې نوباطل نه ختمیږی. اوکله چه حق په حرکت کښې راشی نوباطل لاړشی، موسی علیه السلام چه حق.عصا. ته حرکت ورکړونوباطل ورک شو ﴿ تَلْقَفُ ﴾ ای تبتلع، کوم شئ چه آسانئ سره ، بې تکلفه په مرئ کښې تیریږی لکه اوبه،حلوا ، نوپه هغې کښې دامستعمليږی نودوئ چه کوم ماران جوړکړی وونوعصاهغه اوخوړل ختم ئ کړه، اوبعض وائ چه هغوئ درسُو اوعصاګانونه ماران جوړکړی ووپه سحرسره نوپه عصاسره دسحراثرختم شو، نودتلقف(تیرول) مطلب دادې چه دسحراثرترینه ختم شو، ﴿ يَأْفِكُوْنَ ﴾ افک اړولوته وائ داصل نه او دروغ اوباطل ته اِفك ځکه وائی چه په هغې کښې اړؤل اوتبدیل وی داصل نه ﴿ فَوَقَعَ الْحَقُّ ﴾ ای ظهر ﴿ فَغُلِبُوْا ﴾ فرعونیان په دې عظیمه مقابله کښې مغلوبه شواوشرمیدلی واپس شو، ﴿ وَاُلْقِيَ السَّحَرَةُ سٰجِدِيْنَ ﴾ دحق دظهورنه بعدساحرانوایمان راؤړواوپه سجده پریوتل، اُلقِیَ دمجهول صیغه ده. اوغورخولې شوساحران سجده کونکی، په دې کښې اشاره ده چه دالله تعالی دطرفه دهدایت نورپه دومره ډیرمقدارسره راغې چه ګویاکښې دوئ بې اختیاره په سجده پریوتل. اوکوم خلق چه فرعون دموسی علیه السلام دمغلوب کولودپاره اودمقابلې دپاره راوستې ووهغوئ دفرعون دمغلوب کولوسبب شو . اودده مقابلې ته راغله، ساحرانودحضرت موسی علیه السلام ادب اوکړونو الله تعالی ورته نعمت دایمان ورکړو، ((من اتانی یمشی اتیته هرولة)) د بنده لګ عمل کله دلوئ خیرسبب

اوکړنی، ساحرانوچه دانعره بلنده کړه ﴿ءَامَنَّا بِرَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ﴾ نو فرعون اوویل ((ایای تعنون))
مانه وایئ رب العلمین؟، نوهغوئ اوویل چه نه. ﴿رَبِّ مُوسَىٰ وَهَٰرُونَ﴾ فرعون هم خان نه رب
موسی.ونیل خکه چه دموسی عليه السلام تربیت دده په کورکښې شوې وو. نوهغوئ ورسره داهم
ضم کړو ﴿وَهَٰرُونَ﴾ فرعون چه داخبره واؤریده نوالزام ئ شروع کړو. ﴿ءَامَنتُم بِهِۦ﴾ دلته همزه
داستفهام مقدر ده یعنی آیا؟ تاسوایمان راؤړوپه موسی عليه السلام پغیرداجازت زمانه داسې
معلومیږی چه داستاسواستاذدې تاسوئ شاګردان یئ اوپه شریکه باندې.خوخه خلاف
ځمادحکومت ختمولوخفیه منصوبه تیاره کړې ده. لیکن زه ستاسودامنصوبه کامیابیدلو نه
نه پریګدم بلکه تاسوته سزادرکوم اول به ستاسو لاسونه خپې ادل بدل پریکړم چه شکل
اوهیئت ستاسو خراب شی اوبیابه تاسوپه سُولئ،،(پهانسی) کړم هغوئ ددې نه ګبراؤنه
خوبلکه اوئ ونیل ﴿إِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا مُنقَلِبُونَ﴾ چه مونږ به دشهادت په وجه رحمت دخپل رب ته
لاړشو. اوزاعی رحمه الله روایت کړیدې چه جنت دوئ ته ښکاره کړې شوحتی چه دوئ ورته
نظرکولو. فرعون ددوئ دقتل دهمکی ورکړیده ، لیکن ددوئ دشهادت تصریح نشته.البته
دقتاده نه روایت دې ((کانوااول النهار کفاراًسحرة وفی آخره شهداء بررة)) دروستو آیت نه هم
معلومیږی چه دوئ ته شهادت ملاؤ شویدې چه ((افرغ علیناصبراً وتوفنامسلمین)) دابن عباس
رضی الله عنه اوکلبی اوسدی نه هم داسې روایت دې چه فرعون دوئ قتل کړی دی اوبعض
وائ چه فرعون نه دې قادرشوې په قتل ددوئ لقوله تعالی ((لایصلون الیکما انتماومن
اتبعکماالغلبون)). ﴿وَمَا تَنقِمُ مِنَّآ﴾ یعنی کوم شئ چه سبب داکرام اعزازدې هغه ستاسوپه
نیزجرم اوعیب دې. ﴿أَفۡرِغۡ عَلَيۡنَا صَبۡرًا﴾ راتوئ کړه په مونږصبر،یعنی صبرکامل راکړه. ﴿وَتَوَفَّنَا
مُسۡلِمِينَ﴾ مونږ ته مرګ په حال داسلام نصیب کړه.

﴿وَقَالَ ٱلۡمَلَأُ مِن قَوۡمِ فِرۡعَوۡنَ أَتَذَرُ مُوسَىٰ وَقَوۡمَهُۥ لِيُفۡسِدُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ﴾

اووه ویل غټانودقوم دفرعون نه [1] آیا پرېږدې ته موسې اوقوم د هغه د دې لپاره چه فساد وکړی په زمکه کښې

---

[1] - دویمه واقعه

وَيَذَرَكَ وَاٰلِهَتَكَ ۭ قَالَ سَنُقَتِّلُ اَبْنَآءَهُمْ وَنَسْتَحْيٖ

او دوئ بریږدي بندګی ستا او د معبودانو ستا. وه ونیل فرعون زر ده چه قتلوو به خامن د دوئ او جوندئ به بریږدو

نِسَآءَهُمْ ۚ وَاِنَّا فَوْقَهُمْ قٰهِرُوْنَ ﴿۱۲۷﴾ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهِ اسْتَعِيْنُوْا بِاللّٰهِ

جنکئ د دوئ. او بیشکه مونږ په دوئ باندې زوررور یو وه ونیل موسی قوم خپل ته مدد غواړئ د الله تعالی نه

وَاصْبِرُوْا ۚ اِنَّ الْاَرْضَ لِلّٰهِ ۙ۫ يُوْرِثُهَا مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۭ

او صبر کوئ. بیشکه زمکه د الله تعالی په اختیار کښې ده. ورکوی ئې هغه چا ته چه خوښه ئې شی د بندګانو خپلو نه

وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۲۸﴾ قَالُوْٓا اُوْذِيْنَا مِنْ قَبْلِ اَنْ تَاْتِيَنَا وَمِنْۢ بَعْدِ مَا جِئْتَنَا ۭ

او ښه انجام دمتقیانو دې وه ونیل دوئ تکلیفونه راکړې شویدی مونږ ته مخکښې د راتلو ستا نه او روستو د راتلو ستانه.

قَالَ عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِي الْاَرْضِ

وه ونیل موسی نزدې ده چه رب ستاسو هلاک به کړی دښمن ستاسې. او خلیفه ګان به وګرزوی تاسو په زمکه کښې

فَيَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۲۹﴾

پس ګوری به چه څرنګه عمل کوئ تاسو

﴿ وَقَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ ﴾ دادویمه واقعه او حال دې داحوالو دموسی علیه السلام نه. په دې کښې دنورو مصیبتونو بیان دې په موسی علیه السلام او دده په قوم، او ددوئ دتثبت بیان دې. بعض درباریانو دفرعون دته دامشوره ورکړه چه موسی علیه السلام او دده ملګری ختمول پکاردی ځکه چه دوئ فساد پیدا کوی په بیان دحق سره او مخالف پارټی جوړه وی ﴿اَتَذَرُ﴾ استفهام انکاری په معنی دلاینبغی سره دې یعنی ددوئ پریخودل نه دی پکار ځکه چه دې باغی دې او دحکومت باغی ته سزا ورکول پکاروی نو فرعون دامشوره قبوله کړه او سزائ تجویز کړه. قتل داولاد دبنی اسرائیلو. ﴿وَاٰلِهَتَكَ﴾ اکثر مفسرین وائ چه ددینه مراد هغه معبودان دی چه په مصر کښې دهغې عبادت په امر د فرعون سره کیدلو، چه هغوئ ته ئ، رب ادنی. ونیل او خپل خان ته ئ (ربکم الاعلی) ونیل اوددغه معبودانو صورتونه ،بعض دغوایی. بعض د ګډ او بعض دنمر

...بوګمې وو، فرعون دیته رب ادنی وئیل اوداخبره چه ئ کړې وه ﴿مَا عَلِمْتُ لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرِي﴾ نوددینه ئ مقصودانکارووددوجوددالله تعالی نه چه معبود حقیقی برحق هې اوادنی معبودانونفی مقصودنه وه، بعض مفسرین لکه شاه عبدالقادر رحمه الله وائی چه فرعون په دربارکښې دده عبادت کیدلو، اوباهرئ خپل تصویرونه مجسمې تقسیم کړې وې. اوخلقوته ئ دهغې دعبادت کولوحکم کړې وونود ((الهتک)) نه دغه مراد دی. ﴿قَالَ فِرْعَوْنُ﴾ فرعون اووئیل چه زه دخپل مخکینی دستورمطابق دبنی اسرائیلو ځامن قتلول دوباره شروع کړم. ددې دپاره چه زمونږ غلبه برقرارپاتې شی. ﴿وَإِنَّا فَوْقَهُمْ قَاهِرُونَ﴾ یعنی فرعون اووئیل چه بنی اسرائیل کمزوری دی نودوئ فسادنشی کولې. اګر که وقتی طورډوئ به یوه مناظره کښې غالب شو، بلکه مونږغالب یواودوئ ترقئ ته نه پریګدو. ﴿قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ اسْتَعِينُوا﴾ موسی علیه السلام خپل قوم ته تسلی ورکړه، اودمصیبت ددفع کولودپاره ئ ورته دوه علاجه اوخودل چه یوصبردې، چه مفتاح الفرج دې اودویم استعانت بالله دې. مصیبتونه راوستل اوزائل کول دالله تعالی په قدرت کښې دی نو ددې وجې نه هغه طرف ته متوجه کیدل اودهغه نه مددغوختل دکامیابئ ذریعه ده، اودوه بشارتونه ئ ذکرکړل یودنیوی چه ﴿إِنَّ الْأَرْضَ لِلَّهِ﴾ دویم اخروی چه ﴿وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ﴾ ﴿قَالُوا أُوذِينَا﴾ دادبنی اسرائیلوشکوه ده اودتثبت بیان هم دې،بنی اسرائیلودخپلو مصیبتونو شکایت اوکړوچه مخکښې هم فرعون زمونږ اولادونه قتلول اوذلت کارونه بیګاراخستلو اوستا دراتللونه بعدبیاداسلسله شروع شوه نوموسی علیه السلام دوئ ته داد، تسلی ورکړه، ﴿عَسَىٰ رَبُّكُمْ﴾ یعنی دالله تعالی مرسته اومددزردررسیدونکې دې، تاسوبه اووینئ چه دغه دشمن به موهلاک شی اودوئ داموالواملاکومالکان به تاسوشئ، لیکن داخبره یاده لرئ چه لکه نن په سختئ اوغلامئ کښې ستاسوامتحان اخستې کیږی نودغسې به په خوشحالئ اوآزادئ کښې هم ستاسې ازمینت کیدې شی، چه دکوم حدپورې تاسودالله تعالی دنعمتونو قدر. اوشکرګذاری کوئ

وَلَقَدْ أَخَذْنَا آلَ فِرْعَوْنَ بِالسِّنِينَ وَنَقْصٍ مِّنَ الثَّمَرَاتِ

او په تحقیق سره نیولی وو [۱] مونږ فرعونیان په کلونو د سوکړې (قحط) سره او په کموالی د میوو سره

لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ ۝ فَإِذَا جَاءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ قَالُوا لَنَا هَٰذِهِ

لپاره د دې چه دوئ نصیحت واخلی پس هرکله چه به راغله دوئ ته خوشحالی ویل به دوئ دا حق زمونږ دی

وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَطَّيَّرُوا بِمُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُ ۗ أَلَا

اوکه وبه رسیدو دوئ ته څه تکلیف نو بدفالی به نیوله دوئ په موسی او په ملګرو د ده سره. خبردار

إِنَّمَا طَائِرُهُمْ عِندَ اللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝

بیشکه سپیره والی د دوئ مقرر وو په نزد د الله تعالی لیکن ډیر د دوئ نه نه پوهیږی

﴿ وَلَقَدْ أَخَذْنَا آلَ فِرْعَوْنَ ﴾ دادریمه واقعه اوحال دې، په دې کښې دبنی اسرائیلوسره امداداوپه فرعونیانو د اوو(۷) عذابونوذکردې. سنت الله دادې چه مخالفینودحق ته اولاً خفیفه سزاورکولې شی. ددې دپاره چه دوئ حق قبول کړی لیکن کله چه دوئ دضداوتعصب نه واپس نه شی نوبیا ورته عذاب استیصال روکولې شی،نوپه فرعونیانوباندې هم ددې سنت مطابق اولاً خفیف عذابونه شروع شو، نوچه دوئ ته به کله آرام، خوشحالی ملاؤشوه نوونیل به ئ چه دازمونږخوبی اوکمال دې اوچه عذاب اوتکلیف به ورته اورسیدونودوئ به په موسی علیه السلام اوپه قوم دده بدفالی نیوله چه داعذابونه ددوئ په وجه راغلیدی حالانکه داددوئ دخپلوبداعمالونتیجه وه،اوآخردوئ دخپل مسخ شوی فطرت مطابق فیصله اوکړه حضرت موسی علیه السلام ته ئ اوونیل چه هرقسم معجزه سزاچه ته مونږ ته پیش کړې خو مونږ ایمان نه راوړو. نودحفیف عذابونونه بعدپه دوئ عذاب استیصال راغلو. ﴿ بِالسِّنِينَ ﴾ دااول عذاب دې داجمع د ((سَنَةٌ)) ده په معنی دمطلق کال سره لیکن په محاوره کښې ددې اطلاق دقحط په کال باندې کیږی اودلته هم دامعنی مراده﴿ وَنَقْصٍ مِّنَ الثَّمَرَاتِ ﴾ دادویم عذاب ووچه باغونوبه ئ میوې نه کولې حتی چه په اونه کښې به صرف یوه دانه یادوه پیداکیدلې. ثمرات

---

۱ - دریمه واقعه

ميوزنه اونورآمدني اوتجارتي منافعوته هم شامل دي. قتاده ﷫ وائي چه عذاب دسنين
بانده واوصحراوالوڈ پاره وو، اونقص من الثمرات دکلو اوښارونو دپاره وو. ﴿لَعَلَّهُمْ﴾ يعنى
دعذابونه راوستل ددي دپاره وو چه دوئ ترينه عبرت اونصيحت حاصل کړي. حضرت
سعيدبن جبير رضى الله تعالى عنه نه روايت دي چه فرعون څلورسوه کاله عمرتيرکړيدي.
اودري سوه شل کالونوکښي په ده هيڅ تکليف بيماري نه ده راغلي اوکه چرې به ده باندې
دردبالوگه يابخار، راغلي وې نوده بهٔ دخدائ دعوه نه وې کړې

﴿فَإِذَا جَاءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ﴾ يعنى عذاب راوستل خوددې دپاره ووچه دوئ عبرت حاصل
کړي ليکن دوئ عبرت حاصل نه کړوبلکه چه کله بهٔ په دوئ باندې خوشحالي اوخه حالت
راغلونوهغه به ئ خپل کمال گڼرلو اوچه تکليف به راغلو نوپه موسى اوده په ملگروبه ئ
بدفالي نيوله. ﴿الْحَسَنَةُ﴾ معرف باللام اوپه ﴿فَإِذَا﴾ سره چه دقطعية دپاره دي ذکرشو. په
دې کښې اشاره ده کثرت اوقطعية ته. او ﴿سَيِّئَةٌ﴾ منکر او په «إنْ» سره چه دشک دپاره دي
ذکرشودپاره داشارې قلت اوعدم اصالت ته ﴿يَطَّيَّرُوا﴾ بدفالي به ئ نيوله. دادطيرنه مشتق
دې هغوئ به په مرغه سره فال اچولو، چه خى طرف ته به والوتلو، نو دا نيک فال وواوچه
چپ طرف ته به ئ هوااوکړه نودابدفال وو.

وَقَالُوا مَهْمَا تَأْتِنَا بِهِ مِنْ آيَةٍ لِّتَسْحَرَنَا

او وه وئيل فرعونيانو اې موسى! هر هغه څه چه ته راوړې مونږ ته هغه، څه معجزه د دې لپاره چه جادو وکړې په مونږ

بِهَا ۙ فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ ۝ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوفَانَ وَالْجَرَادَ وَالْقُمَّلَ

په هغې سره پس نه يو مونږ په تا ايمان راوړونکي پس راوليږو مونږ په دوئ باندې طوفان او ملخان او سرې

وَالضَّفَادِعَ وَالدَّمَ آيَاتٍ مُّفَصَّلَاتٍ فَاسْتَكْبَرُوا وَكَانُوا قَوْمًا مُّجْرِمِينَ ۝

او چندخې او وينې نښانې وې جدا جدا پس دوئ تکبر وکړو او وؤ دوئ قوم مجرمان

﴿وَقَالُوا مَهْمَا﴾ دوئ دخپل مسخ شده فطرت مطابق واضحه جواب ورکړوچه هرقسم
معجزه چه مونږ ته ښکاره شي مونږ ايمان نه راوړو، په لفظ د «مهما» کښې درې قوله دي
**يوداچه** داپه اصل کښې «ماما» دې اول الف په هاء سره بدل شويدې. **دويم داچه** داپه اصل

کنبي مرکب دي «دمَهٔ» نه چه په معنی دکف اومنع سره دي اود(ما) شرطیه نه. **دریم داچه** دا کلمه براسها ده. موضوع ده دپاره دزیادت عموم «هرهغه شئ» او دَدي وجه نه داسُوردقضیه موجبه کلیه واقع کیږی. ﴿مِنْ ءَايَةٍ﴾ بیان دمهمادي، ﴿مَهْمَا﴾ مرفوع محلاً دي مبتداده. اسم شرط دي ﴿تَأْتِنَا﴾ په ده سره مجزوم دي فعل شرط دي او په نیز دبعض نحاتو فعل شرط خبر د «مهما» دي اوپه نیزد بعضُ جزاء ده یعنی ﴿فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ﴾ خبر دي اوپه نیز دبعضو مجموعه دفعل شرط اوجزاء خبردي. ﴿لِتَسْحَرَنَا﴾ دضددوجهِ نه هرآیت اومعجزي ته جادووائ. ﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوفَانَ﴾ دادریم عذاب وو. طوفان په اصل کنبي مطلق هرهغه شئ ته وائ چه احاطه ئ کړي وی، چاپیره شوي وی دلته ترینه مرادیاموت کثیردي لکه دارِوایت دي دابن عباس رضی الله عنه نه یاترینه طاعون مراددي لکه داروایت دي دحضرت عائشه رضی الله عنهانه اودابوقلابهٔ رحمه الله نه روایت دي چه مراد ترینه جُدری (ننکی. چیچك) دي چه دا عذاب اول په دوئ شروع شوي وؤ ، اومشهوره داده چه مراد طوفان داوبودي. سعید بن جبیر وائ چه هرکله ساحرانوایمان راؤړواوفرعون مغلوب واپس شوپه خپل کفرباندي محکم شونوالله تعالی په دوئ مسلسل عذابونه شروع کړل، اول پري سنین. قحطونه راغلل، اونقص الثمرات راغلل اوددینه قبل ئ ورته یدبیضا، عصاء والامعجزه ښکاره کړي وه. اودوئ ایمان نه وړواوړي نوبیاالله تعالی په دوئ طوفان نازل کړوچه داسمان نه ډیرباران اوشونودقبطیانو په کورونواوفصلونوکنبي دومره اوبه اووریدي چه په ولاړي به ئ مرئ ته رسیدلي اودوئ به شپه اوورخ ولاړوونه خوب وو، نه ارام، اوواړه ماشومان به ئ په اوچتوخایونوکینولی وو. اودسبطیانو(بنی اسرائیلو) کورونه ورسره پیوست وو لیکن په هغې یوقطره اوبه هم نه وي ننوتي، داطوفان په دوئ باندي یوه هفته وو. دیوم السبت «دهفتي ورخ» نه دبل سبت پوري، نودوئ گبراؤشوچه جان، مال موهلاکیږی نودموسی علیه السلام سره ئ عهداوکړو چه ته دعاء اوکړه چه داعذاب دفع شی نوموږ به ایمان راؤړو .اطاعت به کوؤ. نوالله تعالی ددوئ نه طوفان بندکړو، اوهواراغله اوزمکه وچه شوه اودزمکي نه داسي گیااوفصلونه پیداشوچه دهغې مثال نه وونودوئ اووئیل چه دکوم څیزنه چه موږ یریدلی وو هغه خوزموږ دپاره لوئ نعمت وو، نوبیائ سرکشی نافرمانی شروع کړه اووئ وئیل چه موږ نه ایمان راؤړو اونه بنی اسرائیل آزادوو، نوالله تعالی په دوئ باندي څلورم عذاب راؤلیږه

﴿وَالْجَرَادَ﴾ ملخانو ددوئ فصلونه اومیوې اوخوړلې. په بعضُ روایانو کښې دې چه ددوئ کورونو هغه دروازې چه دلرګووی هغه اودارنګه چهتونه اوکیږې اونورد کورسامانونه ئې وخوړل. داصرف دقبطیانو په فصلونواوکورونومسلط وو. دبنی اسرائیلوکورونه مالونه زینه محفوظ وو، نو دوئ بیاګبراؤشو، اوعهدئ اوکړو اوموسی علیه السلام ته ئې اوونیل چه ته دعااوکړه چه دا عذاب دفع شي. مونږ به ایمان راوړو. نوموسی علیه السلام دعااوکړه اوباهر راغی بهخیله عصاسره ئې اشاره اوکړه مشرق اومغرب طرف ته نوملخان .ټول روان شو مشرق مغرب ته اوچه کوم طرف ته بهٔ ئې اشاره کوله په عصاسره نوملخان به دغه طرف ته تلل اوددوئ نه عذاب دفع شواودوئ مطمئن شو، نوبیائ وعده خلافي اوسرکشي شروع کړه. نوالله تعالی په دوئ باندې. پنځم عذاب دامسلط کړو﴿وَالْقُمَّلَ﴾ قمل هغه سپګوته هم وائې چه په بدن اوبښتوکښې پیداکیږي اوچیچل کوي اوهغې ته هم وائې چه په غله کښې پیداکیږي اودغلې نه مغزاوخوري،هغې ته سپږئ وائیلې شي ،اودارنګه هغې ته هم ونیلې شي چه په حیوان توبوږې اوشي چه هغې ته کُنې ونیلي شي، دلته داټول قسمونه مرادکیدې شي اودارنګه .وروګې. بروږې،داټول په کښې داخل دی،ددینه بعدبیاشپږم عذاب داوؤ چه.

﴿وَالضَّفَادِعَ﴾ چندخې ئې په کورونوکښې اوپه لوخوکښې اودخوراک سکاک په څیزونو کښې دومره ډیرې پیداشوې چه هیڅ شئ ترینه نه شویچ کیدلې. لوخی. بسترې .هرځائ دچندخو انبار لګیدلې وو، دخوراک اوخبروکولوپه وخت کښې به په خوله کښې ننوتلې. په بستروباندې دومره په کثرت سره وې چه خوب ارام ترینه نه شو کیدلې. بیااوم عذاب داوؤ چه

﴿وَالدَّمَ﴾ دقبطیانوپه اوبوکې وینی وې اودبنی اسرائیلواوبه به صفاوې. اوبنی اسرائیلو به چه په څه لوخی کښې اوبه رواغستلې نوصفابه وې اوچه قبطی له به ئې ورکړې نوبیابه په کښې وینه وه، بلکه په یولوخی کښې به ئې اوبه راواخستلې او په یو وار به چه ترینه سبطی اوقبطی سکلې نو د سبطی خولې ته به صفا اوبه راتلې اودقبطی خولې ته بهٔ وینه ورتله .په دې عذابونوکښې هرعذاب اوه ورځې وو، اودیوعذاب اوبل عذاب په درمیان کښې به یوه میاشت وقفه اومهلت وو،دااوه عذابونه آیات بینات دی اودوه مخکښې ذکرشویدی، عصا ،یدبیضاء. دامجموعه نهه شو، دیته ئې تسع آیات بینت وئیلی دی په سورت بنی اسرائیل کښې

﴿ءَايَٰتٍ مُّفَصَّلَٰتٍ﴾ داحال دې د «مفصّل» نه ،معنی داده چه دلالت ئې واضح وو. شک نه

کووعاقل په دې کښې چه داآیات الهیه دی اوسحرجادونه دې، یادامعنی ده چه جداجداوې په زمانه کښې دهریواودبلی په درمیان کښې یوه میاشت مهلت اووقفه وه. په بعض روایاتوکښې دی چه داتسع آیات په تسع سنین کښې وو

وَلَمَّا وَقَعَ عَلَيْهِمُ الرِّجْزُ قَالُوْا يٰمُوْسَى ادْعُ لَنَا رَبَّكَ

اوهرکله چه به راغې په دوئ باندې یوعذاب نو ویل به دوئ چه اې موسی دعاوکړه زمونږلپاره د خپل رب نه برګه کښې

بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ ۚ لَئِنْ كَشَفْتَ عَنَّا الرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ

په سبب د دې چه وعده ئې کړیده ستاسره ،کچرې لرې کړو تا (په دعاء سره) زمونږ نه دا عذاب خامخا به مونږ ایمان راوړو

لَكَ وَلَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۝۱۳۴ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الرِّجْزَ

په تا باندې او خامخا به پریږدو ستاسره بنی اسرائیل . پس هرکله چه لرې کړو مونږ د دوئ نه عذاب.

اِلٰٓى اَجَلٍ هُمْ بٰلِغُوْهُ اِذَا هُمْ يَنْكُثُوْنَ ۝۱۳۵ فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ

د یو نیټې پورې چه دوئ به رسیدونکی وو هغې ته نو دغه وخت به ماتوله دوئ وعده پس بدل واخست مونږ د دوئ نه

فَاَغْرَقْنٰهُمْ فِى الْيَمِّ بِاَنَّهُمْ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَكَانُوْا عَنْهَا غٰفِلِيْنَ ۝۱۳۶

پس غرق کړل مونږ دوئ په دریاب کښې په سبب ددې چه دوئ تکذیب کولوزمونږ د آیتونو او وو دوئ د هغې نه بې پروا

وَاَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِيْنَ كَانُوْا يُسْتَضْعَفُوْنَ مَشَارِقَ الْاَرْضِ وَمَغَارِبَهَا

اوبه میراث سره ورکړه مونږ هغه قوم ته چه کمزوری کړې شوی وو مشرقی طرفونه د زمکې او مغربی طرفونه د دې

الَّتِىْ بٰرَكْنَا فِيْهَا ۚ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنٰى عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ

هغه زمکه چه برکتونه اچولی دی مونږ په هغې کښې، او پوره شوه ښائسته وعده د رب ستا د بنی اسرائیلو سره

بِمَا صَبَرُوْا ۚ وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهٗ وَمَا كَانُوْا

په سبب د دې چه دوئ صبر کړې وؤ، او هلاک کړل مونږ هغه چه جوړول به فرعون او قوم د ده او هغه چه دوئ

يَعْرِشُوْنَ ﴿۱۳۷﴾ وَجٰوَزْنَا بِبَنِيٓ إِسْرَآءِيْلَ الْبَحْرَ فَأَتَوْا عَلٰى قَوْمٍ

...ـمن غورول به خيرونو) اوپوري ويستل مونږ بنی اسرائيل[۱] د درياب نه نو راغلل دوی په يو داسي قوم باندې

يَّعْكُفُوْنَ عَلٰٓى أَصْنَامٍ لَّهُمْ ۚ قَالُوْا يٰمُوْسَى اجْعَلْ لَّنَآ إِلٰهًا كَمَا لَهُمْ اٰلِهَةٌ ۚ

...عبادت ئي كولو د بتانو خپلو، وه وئيل دوئ چه اې موسى ! جوړ كړه زمونږ لپاره يو بت لكه چه د دوئ لپاره دي بتان.

قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ ﴿۱۳۸﴾

وه وئيل موسى: بيشكه تاسو داسي قوم يئ چه جهالت كوئ

﴿ وَلَمَّا وَقَعَ عَلَيْهِمُ الرِّجْزُ ﴾ ددې نه مراد هغه عذابونه دي چه په ماقبل كښې ذكرشو دسعيد بن جبيرنه روايت دې چه ددېنه مراد طاعون دې چه په قبطيانومسلط شوې وو، اوپه يوه ورځ كښې ترينه اويازره كسان مړه شوی وو، امام رازی رحمه الله وائ چه اول قول صحيح دې ځكه چه الرجزمعرف بلام العهد دې معهود هغه عذاب دې چه مذكورسابقاً دې، ﴿ يٰمُوْسَى ادْعُ لَنَا رَبَّكَ ﴾ يئنا ئي اونه وئيل دتكبردوجي نه ﴿ بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ ﴾ بما، جارمجرور متعلق دی د اُدع سره يعني اوغواړه، اوسوال اوكړه دخپل رب نه د هغه څه چه تاسره ئ وعده كړې ده. هغه داچه په توبه اوايمان راوړلوسره به عذاب دفع كيږی يعنی دعذاب ددفع كيدلو دعا اوكړه نومونږ به ايمان راوړو يا «باء» سببيه ده، اومامصدريه دې يعنی په سبب دعهد د تا سره. دعهدنه مرادنبوت دې باجابت ددعادې اونبوت ته عهدځكه وائ چه الله تعالى عهد كړيدې چه اكرام دنبی كوی

﴿ لَئِنْ كَشَفْتَ ﴾ كه ستاپه دعاسره عذاب دفع شو. ﴿ إِلٰٓى أَجَلٍ ﴾ داجل نه مراد هغه حدد زمانې دې چه په هغې كښې به دعذاب وقفه وه يا ترينه مرادوخت دغرق دې. ﴿ فَأَغْرَقْنٰهُمْ ﴾ مخكښې عذابونه داستيصال دپاره نه وو، بلكه دعبرت دحاصلولودپاره وو چه رجوع الى الله اوكړی. ليكن هركله چه دوئ عبرت حاصل نه كړو اورجوع الى الله ئ اونه كړه نوپه دوئ عذاب استيصال راغي اوپه درياب كښې غرق شوتباه شو. په دې آيت كښې سبب دغرق دوه ذكرشو. تكذيب اوغفلت، اګركه د دوئ نورهم ډيرګناهونه ووچه هغه ټول سبب دغرق دپاره وو.

---

۱- خلورمه واقعه

خودادواړه دنوروګناهونودپاره بنیاداوجړوو، نوددوئ ذکراوشو، اودنورونفی نه ده شوې. اوکه
خوک **سوال** اوکړی چه غفلت خوغیراختیاری امردې نوداخه رنګه سبب دعذاب کیدې شی ، نو
**جواب** دادې چه دغفلت نه مراداعراض دې دآیاتونو نه اوالتفات نه کول دی اودانوهین دې،
نودااختیاری امردې، ﴿ٱلْقَوْمَ ٱلَّذِينَ﴾ بنی اسرائیل ترینه مراددی﴿يُسْتَضْعَفُونَ﴾ کمزوری
کړې شوی وو په مصرکنبې، غلامان ئ ترینه جوړکړی وو، اوخامن ئ ورته ذبح کول اوسخت
کارونه ،بیګارنی پرې کولو، ﴿مَشَـٰرِقَ ٱلْأَرْضِ وَمَغَـٰرِبَهَا﴾ کنایه ده دټولواطرافو . جوانبونه ،
او د ﴿ٱلْأَرْضِ﴾ نه زمکه دشام یادمصر ده یادواړه دی لکه داقول دجمهوردې. په شام کنبې
برکتونه باطنی هم دی چه مسکن اومدفن دانبیاؤ علیهم السلام دې اوظاهری هم دی. کثرت
دارزاقواوثمارو، اومصرهم محل دبرکاتواوثماروده حضرت عمرفاروق رضی الله عنه فرمائی
چه دمصردریائ نیل سیدالانهاردې حضرت عبدالله بن عمررضی الله عنه فرمائ چه دبرکاتوپه
لسوحصوکنبې نهه حصې برکتونه په مصر کنبې دی اوباقی یوه حصه په ټوله زمکه کنبې ده
(بحر) ﴿وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ ٱلْحُسْنَىٰ﴾ (الحسنی) صفت د (کلمة) دپاره دې یعنی پوره شوه ښکلی
وعده درب ستا ،چه دنبی اسرائیلوسره ئ کړی وه چه ﴿عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَن يُهْلِكَ عَدُوَّكُمْ﴾ هلاک
ددشمن اودغلامئ نه آزادیدل اوددشمن دملک اومال مالکان ګرځیدل دی ﴿بِمَا صَبَرُوا۟﴾ په
دې کنبې اشاره ده چه صبر دَ انعام او دَ ترقئ او کامیابئ دپاره سبب دې

﴿وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ﴾ دمارهلاکت ته وائ، یعنی کوم مظاهر، مناظرچه
فرعونیانو دکبراونخوت داظهاردپاره جوړکړی وو هغه پخې پخې مانړۍ ،ښکلې خرابې، ورانې
شوې په سورت الشعراء کنبې دی ﴿فَأَخْرَجْنَـٰهُم مِّن جَنَّـٰتٍ وَعُيُونٍ ۝ وَكُنُوزٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ۝ كَذَٰلِكَ
وَأَوْرَثْنَـٰهَا بَنِىٓ إِسْرَـٰٓءِيلَ ۝﴾ ، آیت نمبر : ۵۷-۵۸- ۵۹ ، **سوال** دسورت اعراف دآیت نه
معلومیږی چه دفرعونیانوښکلې کارخانې وغیره تباه شویدی اودسورت شعراء آیت نه
معلومیږی چه صحیح سالمې وې، چه لفظ د کذلك وربانديي دلالت کوی . **جواب** (۱) حضرت
تهانوی رحمه الله فرمائی چه کیدې شی چه بنی اسرائیلو دفرعون په عمارتونواوښکلوکنبې
رڈوبدل، تغیرراوستې وی لکه داعادت دې چه دویم سلطنت داول سلطنت انتظامات متغیرل
اومتبدل کوی نودیته ئ ((دمرنا)) وئیلی وی، (۲) دهلاکولونه مراددادې چه فرعون چه دموسی

علیه السلام خلاف کومې منصوبې اوحيلې جوړولې هغه فيل اوناکام شوی. اودامراد نه دې چه آبادی نابود شوه. (ابوحيان) (۳) هلاکت دمال، اودمکان يوصورت دادې چه مالک ترينه نفع وانه خلی اومر شی. (ابوحيان) (۴) دا هم کيدې شی چه الله تعالی بنی اسرائيلوته دغه عمارتونه کارخانې صحيح سالم ورکړی دی اوبيائې روستوهلاک اوتباه کړی وی (مسائل الرازی) ﴿يَعْرِشُونَ﴾ يعنی هغه مکانات اوعمارتونه چه دوئ به بلاضرورته دتکبرپه طورسره دنگ دنگ جوړ کړی وو. ياهغه دانگوروزيلې چه په ديوالونو اوڅپرونو ئی غوړولی وی يعنی باغونه ئې هم تباه شو. ((يرفعون الابنية المشيدة فی السماء)) ، او ((ماکانويعرشون من الجنات)) (کبير)

﴿فَأَتَوْا عَلَىٰ قَوْمٍ﴾ داخلورمه واقعه اوحال دې په دې کښې دبنی اسرائيلو دعقيدې دکمزورئ بيان دې، بنی اسرائيل دفرعون نه خلاص شو، اوصحيح سالم ددرياب نه پورې شونوتيريدل ئې اوشوپه يوقوم باندې چه دبُتانوعبادت ئې کوو، دغه بُتان په شکل دغوابا ندې ووادوغه قوم څوک وائې چه د«لَخُم».، دقبيلې نه وواوڅوک وائې چه دهغه کنعانيانونه وو چه امرشوې وو موسی علیه السلام ته دهغوئ دقتال، نوبنی اسرائيل چونکه مخکښې دمصری بت پرستانو سره اوسيدلی وو نودغه غلط صحبت اثروو چه دوئ ددومره واضحه معجزاتو ليدلو باوجود د داسې جليل القدرجلالی پيغمبرنه داسې نامناسب اوناجائزمطالبه اوکړه چه

﴿اجْعَل لَّنَا إِلَٰهًا﴾ اوددې کلام نه ددوئ کفرياارتدادنه ثابتيږی خکه چه دوئ دغيرالله عبادت نه دې کړې، نه ئې غيرالله ته معبودونيلی دی صرف دومره ده چه دوئ دخپل نبی نه دجهالت په وجه دامطالبه اوکړه چه مونږ له يومعبود مجسم اوګرزوه چه هغه زمونږ قبلة التوجه شی يابه ددوئ دازعم وو چه حلول داله ممکن دې اوداسې جهل د (نوی مسلمان) دپاره عذرکيدې شی حضرت شاه عبدالقادر رحمه الله ليکی،جاهل انسان ته دغيرمرئی اوبې صورته معبود دعبادت نه تسکين نه حاصليږی، هرکله چه دوئ داسې قوم اوليده چه دغواشکل ته ئې عبادت کوونودوئ ته هم داخواهش پيداشو، او دَ دی نظير هغه دې چه بعض نَو مسلم. اعرابو په جنګ حنين کښې دنبی صلی الله عليه وسلم نه سوال اوکړو : ((اجعل لناذات انواط کمالهم ذات انواط)) مشرکينوبه ديو ونې تعظيم کوو چه دهغې نوم ذات انواط وو، په کال کښې به يو وارې هغې ته راتلل دهغې تعظيم به ئې کولو، (ګوياکه دادونی عرس وو) نونبی صلی الله عليه وسلم دوئ ته اوفرمائيل چه تاسوداسې خبره اوکړه لکه موسی علیه السلام ته چه قوم ئې کړې وه اوموسی

عليه السلام ورته ونيلي وو ﴿إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ﴾

| |
|---|
| إِنَّ هٰؤُلَاءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِيهِ وَبٰطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٣٩﴾ |
| بېشکه دا خلق هلاك به کړې شی هغه چه دوئ مشغول دی دهغې په عبادت کښې اوباطل دی هغه عملونه چه دوئ ئې کوی |
| قَالَ أَغَيْرَ اللّٰهِ أَبْغِيكُمْ إِلٰهًا وَّهُوَ فَضَّلَكُمْ |
| وه ونيل موسی آيا سوی د الله تعالی نه طلب کړم تاسو له بل معبود. او حال دا چه هغه غوره والي در کړېدی تاسو ته |
| عَلَى الْعٰلَمِينَ ﴿١٤٠﴾ وَإِذْ أَنْجَيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ سُوٓءَ الْعَذَابِ |
| په خلقو د دې زمانې او کله چه مونږ خلاص کړئ تاسو د فرعونيانو نه چه رسول به ئې تاسو ته سخت عذاب. |
| يُقَتِّلُونَ أَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَآءَكُمْ ۚ وَفِي ذٰلِكُمْ بَلَآءٌ |
| قتلول به ئې خامن ستاسې او ژوندئ به ئې پرېښودلې جينکئ ستاسې او په دې کښې احسان وو |
| مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ ﴿١٤١﴾ |
| د طرف د رب ستاسو نه لوئ |

﴿إِنَّ هٰؤُلَاءِ﴾ يعنی دابت پرستان چه په کوم کارکښې دی ددې انجام هلاکت دې اوباطل دې هغه عمل چه دوئ ئې کوی چه عبادت دَ بُتانودې، اګرکه دوئ په هغې سره تقرب الی الله قصد کړيدې خوداباطل دې ﴿هٰؤُلَاءِ﴾ اسم د (انَّ) دې ﴿مَا هُمْ فِيهِ﴾ موصول صله مبتداء مؤخره ده ﴿مُتَبَّرٌ﴾ خبرمقدم دې اوداجمله خبرد (انَّ) دې، ﴿قَالَ أَغَيْرَ اللّٰهِ أَبْغِيكُمْ إِلٰهًا﴾ حضرت موسی عليه السلام خپل قوم ته وائ چه آياتاسودالله تعالی عظيم احساناتوته نه ګورئ؟ چه دمعبودباطل دعبادت خواهش لرئ ، معبودباطل خوتاسوته هيڅ نه دی درکړی، اوالله تعالی تاسوته په ټول جهان والاؤ باندې فضيلت درکړيدې اونجات ئ درکړيدې دداسې ظالم دشمن نه چه ستاسو اولادئ قتلول نودداسې ذات نه علاوه دبل چاعبادت کول ،دعقل اونقل دتقاضی خلاف دې.

| |
|---|
| وَوٰعَدْنَا مُوسٰى ثَلٰثِينَ لَيْلَةً وَّأَتْمَمْنٰهَا بِعَشْرٍ فَتَمَّ |
| اووعده کړې وه مونږ د موسی سره د ديرشو شپو اوپوره کړې وو مونږ دغه ميعاد په لسو نورو سره. پس پوره شو |

مِيقَاتُ رَبِّهٖٓ اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ۚ وَقَالَ مُوْسٰى لِاَخِيْهِ هٰرُوْنَ اخْلُفْنِيْ

وخت مقرر د طرفه د رب دده نه څلویښت شپې، او وه وئیل موسی خپل ورو هارون ته چه خلفه او نائب سه خما

فِيْ قَوْمِيْ وَاَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيْلَ الْمُفْسِدِيْنَ ۝

په قوم خما کښې او اصلاح کوه او مه زه په لار د فساد کوونکو

﴿وَوٰعَدْنَا مُوْسٰى ثَلٰثِيْنَ لَيْلَةً﴾ داپنځمه واقعه ده په دې کښې ذکر دمیقات اول اودنزول د تورات، اوکلام دالله تعالی دموسی علیه السلام سره، اوطلب درویت وغیره اموردی، بنی اسرائیل چه دفرعون نه خلاص شونوموسی علیه السلام ته ئ درخواست اوکړو چه مونږ له یوقانون اودستور پکاردې چه دهغې تحت مونږ خپل ژوندتیروو، موسی علیه السلام دالله تعالی په بارګاه کښې درخواست پیش کړو نوالله تعالی ورته اوفرمائیل چه څلویښت ورځې په کوه طورکښې چله اوکړه چه دعالم ناسوت دمعاملاتونه انقطاع راشی اواستعداددملکیت حاصل شی اوداسمانی کتاب داخذصلاحیت پیداشی، دحضرت موسی علیه السلام دطرف نه دمعتکف کیدلووعده وه اودالله تعالی دطرف نه دَ تورات دورکولووعده وه نودډې وجې نه ﴿وَوٰعَدْنَا﴾ باب مفاعله ذکرشو، په سورت بقره کښې ددې واقعی ذکرداسې دې ﴿وَاِذْ وٰعَدْنَا مُوْسٰى اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً﴾ دهغې نه معلومیږی چه دابتداء نه دڅلویښت شپووعده وه اوددې آیت نه معلومیږی چه ابتداء ددیرشوشپو وعده ده بیاروستوڅلویښت شپې شوې، نوبعض علماء وائ چه دلته هم دهغه څلویښت شپوبیان دې لیکن په بل اسلوب سره اواسلوب بیان ددې دپاره بدل شو چه معلومه شی چه څلویښت شپې په دې طریقه سره وې چه یوه میاشت دذی القعده مکمله وه اولس شپې ورسره دذی الحجه وې اویه دغه لسوشپوکښې ورته تورات ملاؤشوې دې اوبعض علماء وائ چه اول وعده دیوې میاشتې وه اوبیاپرې لس ورځې نورې زیاتې شوې، اودلس ورځودزیاتولونه .کیدې شی، چه دامقصدوی چه دریاضت په اثناء کښې، دعبودیت په وظائفواوتقرب دآدابواداء کولوکښې که چرې کمې تقصیررانه شی نوبیایوه میاشت پوره ده اوکه راشی نوبیازیاتول پکاردی، لکه بعض مفسرینووئیلی دی چه موسی علیه السلام دیرش ورځې اعتکاف اوکړو اودیرش روژې ئ داسې او ساتلې چه افطارئ پکښې نه ووکړې او دیرشمې روژې پوره کیدلونه بعدئ افطاراوکړو او مسواک ئ استعمال کړو نوچه په کوه طور کښې په مقررمقام کښې حاضری اوکړه نوالله تعالی

ورته اوفرمائيل چه دروژه داردخولي نه چه تبخيرمعده په وجه کومه بدبوئ رازی هغه ماته دمشکودخوشبوئ نه زياته محبوبه ده اوتاهغه زائله کړه نو ددې وجې نه لس روژې نورې اوساته اوپه بعض رواياتوکښې ددپرشمې روژې نه بعدصرف دمسواک د استعمال ذکر دې.ليکن د دې واقعې نه دا استدلال نشی کيدې چه د صائم لپاره مسواك مکروه يا ممنوع دې ځکه چه ددې مذکوره واقعې دپاره قوی سندنشته دې اوداهم کيدې شي چه دادې دموسی عليه السلام يا د شريعت موسوی خصوصيت وی اوزمونږپه شريعت کښې دصائم دپاره استحباب دمسواک ثابت دې په حديث دعائشه رضی الله عنها سره چه روايت ئ کړيدې بيهقی ((خير خصائل الصائم السواک)). په آيت کښې د ﴿لَيْلَةً﴾ ذکردې اګرکه موسی عليه السلام څلويښت ورځې هم تيرکړيدی نوتخصيص دليلة ياددې وجې نه شويدې چه عبادت دشپې زيات لذيذوی.يادوی وجې نه شويدې چه اشاره ده ديته چه په احکاموشرعيؤکښې تاريخ قمری معتبردې چه ابتداء ئ درؤيت دقمرنه کيږی اوداپه شپه کښې وی اوبياهرتاريخ قمری، دغروب شمس نه شمارلې کيږی. امام قرطبی دابن عربی رحمه الله په حواله نقل کړيدی ، ((حساب الشمس للمنافع وحساب القمر للمناسک)) يعنی شمسی حساب ددنيوی منافعودپاره دې اوقمری حساب دعباداتودپاره دې

﴿وَأَتْمَمْنَاهَا بِعَشْرٍ﴾ يعنی پوره کړې مونږ دغه ديرش شپې چه دذی القعده مياشت ده په نورولسودذی الحجې سره ﴿فَتَمَّ مِيقَاتُ رَبِّهِ﴾ نوپس پوره شو هغه وخت چه رب مقررکړې وو، داعطاء دتورات دپاره څلويښت شپې، په سبب دضم کولودلسوشپو، ديرش شپوسره ،داخبره دماقبل نه معلومه شوه چه اتمام دثلثين په عشره سره اوشو نوڅلويښت پوره شوې، ليکن بياذکرکول ئ چه ﴿فَتَمَّ مِيقَاتُ رَبِّهِ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً﴾ ددې دپاره دې چه څوک داتوهم اونه کړی چه عشربه جزء دثلثين وی اوداتمام دثلثين په عشرسره به دامطلب وی چه عشره به دعشرين سره ضم وی نوثلثين به تام شوې وی، نوپه دې جمله کښې ددې توهم ازاله اوشوه چه اتمام د، ثلثين په عشر،، سره ددينه متعارفه معنی مرادده يعنی ضم دعشر د ثلاثين سره ،اوفرق په مابين دميقات اووقت کښې دادې چه وقت مطلق زمانې ته وئيلې شی اوميقات هغه زمانه ده چه دځه کاراوعمل دپاره مقرروی.

﴿وَقَالَ مُوسَىٰ لِأَخِيهِ﴾ حضرت موسی عليه السلام کوه طورته دتللوپه وخت کښې هارون عليه السلام ته اووئيل چه ته ځماخليفه شه په قوم کښې، **سوال** وارديږی چه هارون عليه السلام په خپله نبی دې اونبی

خودبل چاخلیفه نه وی اونه په نبوة کښې خلافت راخی. **جواب** دادې چه داخلافت په نبوة کښې نه دې بلکه په انتظامی امورواوسیاسی امورو کښې خلافت دې. حضرت موسی علیه السلام صرف نبی نه وو بلکه دقوم اعلی سرداراودانتظامی اوسیاسی امورو متولی اوذمه دارهم وو. حضرت موسی علیه السلام چونکه دبنی اسرائیلو داعتقادی کمزورئ اودتلوّن مزاجئ پوره تجربه لرله نوځکه ئ په زیات تصریح اوډیرتاکیدسره اوفرمائیل ﴿وَأَصْلِحْ﴾ دقوم اصلاح کوه ﴿وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيلَ الْمُفْسِدِينَ﴾ یعنی په قوم کښې که څوک فساد کوی نودهغوئ دحوصله افزائ اوهمت افزائ کارمه کوه. اوددې وجې نه چه هرکله سامری فسادشروع کړو نوهارون علیه السلام ورته علی الرغم داسې اوونیل ﴿يَٰقَوْمِ إِنَّمَا فُتِنتُم بِهِۦ﴾ الاية.

وَلَمَّا جَآءَ مُوسَىٰ لِمِيقَٰتِنَا وَكَلَّمَهُۥ رَبُّهُۥ قَالَ رَبِّ

او هرکله چه راغې موسی نیتې مقررې زمونږ ته او خبرې وکړې د ده سره رب د ده. وه ونیل ده اې ربه خما

أَرِنِىٓ أَنظُرْ إِلَيْكَ ۚ قَالَ لَن تَرَىٰنِى وَلَٰكِنِ ٱنظُرْ إِلَى ٱلْجَبَلِ

وښایه ماته خپل ذات چه نظر وکړم تاته، وفرمائیل الله تعالی چه ته ما هرګزنشې لیدې لیکن ګوره غر ته.

فَإِنِ ٱسْتَقَرَّ مَكَانَهُۥ فَسَوْفَ تَرَىٰنِى ۚ فَلَمَّا تَجَلَّىٰ رَبُّهُۥ لِلْجَبَلِ

نوکه هغه ټینګ شو په خپل ځائ نو پس زرده چه وینې ته ما، پس هرکله چه خپل نور ښکاره کړو رب د ده. غر ته

جَعَلَهُۥ دَكًّا وَخَرَّ مُوسَىٰ صَعِقًا ۚ فَلَمَّآ أَفَاقَ قَالَ سُبْحَٰنَكَ

وئ ګرزولو هغه هموار او پرېوتو موسی بې هوشه، پس هرکله چه په هوش شو. وې ونیل پاکی ده تا لره.

تُبْتُ إِلَيْكَ وَأَنَا۠ أَوَّلُ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿١٤٣﴾ قَالَ يَٰمُوسَىٰٓ إِنِّى ٱصْطَفَيْتُكَ

توبه کړېده ما تاته او خه د ټولونه اول یقین کوونکې یم وه وفرمائیل الله تعالی چه اې موسی بیشکه ما غوره کړې ئې ته

عَلَى ٱلنَّاسِ بِرِسَٰلَٰتِى وَبِكَلَٰمِى فَخُذْ مَآ ءَاتَيْتُكَ

په خلقو باندې په پیغامونو خپلو سره او په (بلا واسطه) کلام کولو سره. پس ونیسه هغه کتاب چه درکړو ما تاته.

وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ۝

او شه د شکر کوونکو نه

﴿وَلَمَّا جَآءَ مُوسٰى لِمِيقَاتِنَا﴾ موسى علیه السلام په کوه طورکښې په هغه وخت چه موعود وو دپاره داعطاء دتورات دڅلویښت ورځونه بعدمخصوص مقام ته حاضرشو،چه دیته ،،میقات اولى ،،ونیلې شی، اوالله تعالى ورسره په یومخصوص اوممتازاندازکښې مکالمه اوکړه چه ده ته نې ډیرخونداومزه ورکړه نودرؤیت اودیدارمطالبه ئ اوکړه ﴿وَكَلَّمَهُ رَبُّهُ﴾ نه مرادبلاواسطه اوپه مخصوص اندازکښې کلام دې چه دهغې دوجې نه موسى علیه السلام ته کلیم الله ونیلې شی، داسې کلام یووارې دنبوت ملاویدلوپه وخت کښې شوې وو، اوبل وارې دتورات ملاویدلو په وخت کښې شوې وودلته دادویم مراددې، اوددې مخصوص کلام تفصیل الله تعالى ته معلوم دې اوهرکله چه موسى علیه السلام ته دکلام الله اوریدلونه ډیرخونداولذت حاصل شونوتمنائ ددیداراوکړه اودرخواست ئ اوکړو، شعر:

نه تنها عشق از گفتار خیزد بسا که این دولت از گفتار خیزد

﴿رَبِّ أَرِنِي﴾ څماودخپل ذات ددرمیان نه حجاب لرې کړه خپل دیدار بلاحجابه راؤخایه،داسوال دموسى علیه السلام دشوق اومحبت دوجې نه وواودبنی اسرائیلوسوال ﴿أَرِنَا اللّٰهَ جَهْرَةً﴾ دعناداوانکاردوجې نه وؤ نوځکه هغه موجب دعقاب شو ﴿أَنْظُرْ إِلَيْكَ﴾ دا مجزوم دې جواب امر(ارنی) دې که څوک سوال اوکړی چه رؤیت (لیدل) مرتب کیږی په نظرباندې اودلته خونظرمرتب شو په رؤیت باندې حال داچه نظراول وی اورویت روستووی، **جواب** دادې چه د ((ارنی)) نه مراددادې چه ماقادرکړه په خپل دیدار، په دې شان چه حجاب ددرمیان نه لرې کړه، اوظاهره ده چه نظرددینه بعدکیږی،﴿قَالَ لَنْ تَرٰىنِي﴾ یعنی ته مانه شی لیدلې ، یعنی قدرت نه لرې چه په دې عالم ناسوت کښې په دې مادی، فانی کیدونکی حواسوسره ماووینی، تعبیرپه ،لن ترانی،، سره شویدې، اوپه لن أُرٰی (زه نه شم لیدې کیدې،) سره نه دې شوې نوپه دې کښې اشاره ده دې ته چه رؤیت ناممکن نه دې لیکن ته ئ په دې موجوده حالت سره طاقت نه لرې، معتزله وائ چه دالله تعالى دیدارنه شی کیدې، دوئ منکردی درؤیت دالله تعالى، دلیل نیسی په دې آیت سره لن ترانی ،دوئ وائ چه ((لن)) دنفی تابیدی دپاره دې، اهل سنت والجماعت وائ چه لن دنفی دتاکیددپاره دې اودتابیددپاره نه

دي،دليل ئ داقول دالله تعالى دي، ﴿فَلَنْ أُكَلِّمَ الْيَوْمَ إِنسِيًّا﴾ ، مريم ۲۶. كه ((لن)) دتابيد دپاره
نى نود((اليوم)) سرئ تناقض راخى،بل داقول دالله تعالى ﴿وَلَن يَتَمَنَّوْهُ أَبَدًا﴾ البقره ۹۵، كه لن
دتابيددپاره وي نوابداً ذكركول به تكرارشى، اوداقول دالله تعالى ﴿ فَلَنْ أَبْرَحَ الْأَرْضَ حَتَّىٰ يَأْذَنَ لِي
أَبِي﴾ ،يوسف ۸۰، كه لن دتابيددپاره وى نودغايه ذكركول ورسره منافات لرى. اوپه ﴿لَن يَخْلُقُوا
ذُبَابًا﴾ كښې تابيددليل خارجي نه معلوم دي مدلول دلن نه دي

اهل سنت والجماعت وائي چه رؤيت دالله تعالى په آخرت كښې واقع دي نصوص صريحه
احاديث متواتره په دې دال دى ،مؤمنانوته به دانعمت عظمى وركولې شي په جنت كښې اوپه
دنياكښې ممكن دي عقلاً او واقع نه دي، دامكان عقلاً دليلونه دادى(۱) ((لَنْ تَرَانِي)) سره
تعبيرشويدي ((لَنْ أُرٰى)) ئ نه دي وئيلي نو دا تعبيرمشعردي په امكان درؤيت (۲) موسى عليه
السلام ددې طلب كړيدې اوكوم شئ چه ممتنع وى په شان دالله تعالى كښې نوانبياء دهغې
طلب نه كوى، طلب دممتنع جهل دې اوانبياء دجهل نه پاک دى اوحضرت موسى عليه السلام چه ((إِنِّي
تُبْتُ)) وئيلى دى نوداتوبه دگناه نه ده بالاجماع بلكه داتوبه دتواضع اوعبديت دوجې نه ده،
باددې وجې نه چه بې اجازته ئ دعاكړې وه، اودانبياؤ شان ډيرلوئ دې نوددوئ توبه درفع
ددرجاتودپاره وى نه د ازاله دسيئاتودپاره(۳) تعليق درؤيت شويدې په استقرارالجبل پورې
اودامكن امردې اومعلق په ممكن پورې ممكن وى.

﴿وَلَٰكِنِ انظُرْ إِلَى الْجَبَلِ﴾ دموسى عليه السلام ددرخواست جواب په ((لن تراني)) باندې پوره شوو
اوس الله تعالى حضرت موسى عليه السلام ته، دتشفى اوتسلئ اواطمينان قلب دپاره دَيو عملى تجربه
حكم وركوى، چه گوره، غرچه دظاهرى مادې اعتبارسره دانسان نه ډيرزيات قوت اوطاقت لرى
په هغه باندې زه دخپل تجلئ يوذره ښكاره كوم نوكه هغه برداشت كړه نوته به هم خمادتجلئ
ليدل برداشت كړى، ليكن كه غربرداشت نه كړه نوكمزورې وجوددانسان به څنګه طاقت
دبرداشت كولواولرى.

﴿فَلَمَّا تَجَلَّىٰ رَبُّهُ﴾ موسى عليه السلام جبل ته كتل شروع كړل الله تعالى خپله تجلى په دغه
غرباندې واچوله نوغربرداشت اونه كړوټكړې ټكړې اوذرې ذرې شو، يعنى دغرهغه حصه چه
تجلى چه تجلى پرې راغلې وه، او موسى عليه السلام صرف دغه غر ته په كتلو سره بې هوش پريوت،
(تجلى) په لغت كښې ظهوراوانكشاف ته وائ، ((تجليتُ العروس، اذا اظهرتها، تجليت السيف))

دصوفيه كرامو په نيزتجلي دځه ځيزبالواسطه ليدلو ته وائ لکه يوځيزچه په واسطه دائينه سره اوليدلې شي. نوتجلي رؤيت نه دې په دې آيت کښې درؤيت نفي اودتجلي اثبات مذکوردې نوداهم په دې دلالت کوی چه تجلي اورؤيت جداجداددی. روايت کړيدې احمد او ترمذي اوعبدبن حميداوبيهقي (اوحاکم اوترمذی دې سندته صحيح وئيلی دی) دحضرت انس رضی الله عنه ((ان النبي صلى الله عليه وسلم قرء هذه الاية (فلماتجلى ــ الايه) قال هكذاواشارباصبعيه ووضع طرف ابهامه على انملة الخنصر، وفي لفظ على المفصل الاعلى من الخنصرفساخ الجبل)) . ((وعن ابن عباس رضى الله عنه قال ماتجلى منه سبحانه الاقدرالخنصرفجعله ترابًا))، يعنى نبى صلى الله عليه وسلم ددې آيت په تفسيرکښې دتجلي بيان داسې اوکړو چه ابهامه ګوته (غټه ګوته) ئ ده خنصرګوتی (کچه ګوته) په سرباندې کيخودله اشاره وه قلت اوکموالی دنُورته چه دومره لګه حصه دنُورظاهره شوه نوغرټکړې ټکړې شو. صاحب دروح المعاني وائ چه دا (حديث) دهغه متشابهاتونه دې چه علم به ئ حواله کولې شی الله تعالی ته اويابه په کښې تاويل کولې شی په داسې طريقه چه لائق وی دشان دلوئ ذات سره. (روح) نوددينه اعضاء، اجزاء، اراده کول، زيغ دې. الله تعالی منزه دې داعضاء ،جوارحو، اوتجزی اوتبعض نه.ليس كمثله شئ. ﴿دَكًّا﴾ په معنى د مدكوكًا سره دې، دک، دق، قريب المعنى دی. ﴿صَعِقًا﴾ په معنى دصاعقًا. سره دې بيهوش. ((اى مغشيا عليه)) عن ابن عباس والحسن، وقال قتادة ميتًا. حضرت موسى عليه السلام په دې حالت باندې يوه هفته وو يايوه ورځ شپه وو. ﴿وَخَرَّ﴾ دخرورنه مشتق دې په معنى دسقوط سره دې اوبعض وائ چه خرورهغه سقوط (راپريوتل) دې چه دهغې سره آواز، خرارې، وی په سبب دازله دفهم سره اوسقوط مطلق پريوتلوته وائ.

﴿فَلَمَّآ أَفَاقَ﴾ هرکله چه موسى عليه السلام په هوش شونواوئ وئيل ياالله پاکی ده تالره دعيب نه اوددينه چه دافانی سترګی ستا د ذات دتجلياتو متحمل شی. ﴿تُبْتُ إِلَيْكَ﴾ په خپل درخواست معذرت غوارم. قرطبی وائ چه اجماع کړيده امت په دې خبره چه داتوبه دمعصيت نه ده. ﴿وَأَنَا۠ أَوَّلُ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾ په دې خبره چه ستارؤيت په دنياکښې نشی کيدې په دې باندې زه دټولونه اول اوزيات يقين کونکې يم. ﴿قَالَ يَٰمُوسَىٰٓ﴾ داتسلی ده. دطرفه دالله تعالی نه موسى عليه السلام ته چه رؤيت اوديداراګرکه اونه شو ليکن دغه نورامتيازاوشرف خوځه لګ شئ نه دې هغه داچه ته مې غوره کړې ئ ستادموجوده زمانې په خلقو. يعنى په اُمتيانواودارنګه هارون عليه السلام باندې خکه

هغه اګرکه نبي وو ليکن صاحب شرع نه وو بلکه مامور وو په اتباع د موسى عليه السلام بل دا چه د تاسره مي بلاواسطه کلام کړيدي، او په عطف ﴿وَبِكَلَامِي﴾ کښې په ﴿بِرِسَالَتِي﴾ باندې اشاره ده دې ته چه دا دواړه جدا جدا مستقل منصبونه ، او عزتونه دي او دشکرنه مراد عمل کول دي په تورات اشاعت دتورات دي، امام رازی رحمه الله وئيلي دي چه دا تسلي ورکول هم يو دليل دې په امکان د رؤيت باندې، ځکه چه د تسلي ذ يوممکن شئ په عدم حصول ورکولې شي نو که رؤيت ممتنع وې نو حاجت به نه وو تسلئ ورکولو ته. ابن ابی شيبه ،،روايت کړيدي د کعب نه چه او وئيل موسى عليه السلام اې ربه، ماته او ښايه يوداسې عمل چه زه ئ اوکړم نو هغه شکروی ستاد احساناتونو الله تعالى ورته اوفرمائيل چه : ((لااله الاالله وحده لاشريک له له الملک وله الحمدوهوعلى کل شئ قدير)) وايه نو ګويا ، چه موسى عليه السلام يوداسې عمل اراده کړې وو چه هغه زيات شاق اودروندوی په بدن باندې، نو الله جل جلاله اوفرمائيل چه اې موسى که چرې اوه اسمانونه او دوئ آبادونکی علاوه ځمانه، اووه زمکې، دميزان په يوطرف کښې کيخودلې شي نو دا به ثقيل شی په هغه تولو باندې(روح) رويت دې چه موسى عليه السلام بعد ددې نه چه الله تعالى ورسره کلام اوکړو کوم چه دلته مذکوردې، نودده په مخ، چهره باندې انوارات دومره غالب شو چه هيچا به طاقت نه لرلو چه ده ته اوګوری او په مخ به ئ حجاب ، برقع وه، اوترمرګ پورې وه، ددوئ بي بي دوئ ته اووئيل چه ((اَنَا لَمْ اَرَکَ منذکَلَّمَکَ رَبُّک)) يعنی دکوم وخت نه چه تاسره ستارب کلام کړيدې نوماستامخ، ځهره، نه ده ليدلې، نوموسى عليه السلام دمخ نه حجاب لرې کړو نو چه بي بي ئ ورته اوکتل نودنورپه شان چمک اوبرق ئ وهلو. نو په خپلو سترګوئ لاسونه کيخودل، او په سجده پريوته، اوئ وئيل : ((اُدْعُ الله ان يجعلنی زَوْجَتک فی الجنة)) يعنې دعا اوکړه د الله تعالى نه چه زه ستا بي بي يم په جنت کښې،نوموسى عليه السلام اووئيل . چه بس دغه شان خبره ده، يعنی ته به ځماسره ئ په جنت کښې، خو په شرط ددې چه ځمانه روستوبل خاوندا ونه کړې ځکه ښځه دروستني خاوندسره وي، (والله اعلم) ، (السراج المنير)

**وَكَتَبْنَا لَهُ فِي الْأَلْوَاحِ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَّوْعِظَةً وَتَفْصِيلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ**

او ليکلی وو مونږ دده لپاره په تختو کښې د هر قسم ضروری وعظ [1] او تفصيل د هر ضروری حکمونو.

---

١ - ((موعظة)) مفعول له دې يا بدل دې د ((من کل شئ)) نه .

| فَخُذْهَا | بِقُوَّةٍ | وَأْمُرْ | قَوْمَكَ | يَأْخُذُوا | بِأَحْسَنِهَا ؕ |
|---|---|---|---|---|---|

نو پس ونیسه دا په کلکه سره او حکم کوه قوم خپل ته چه عمل کوی په ډیر ښائسته خبرو د دې.

سَأُورِيكُمْ دَارَ الْفٰسِقِينَ ۝

زرده چه وبه ښائم تاسوته ملك د نافرمانانو

﴿ وَكَتَبْنَا لَهُ فِي الْأَلْوَاحِ ﴾ اکثرمفسرین وائ چه تورات شریف په الواحوکښې لیکلې شوې وو، نوددغه الواحومجموعه تورات دې اوبعض وائ چه دغه، ألواح دتوارت نه علاوه وې چه دتورات دنزول نه مخکښې موسی علیه السلام ته مرحمت کړې شوې وې، اود﴿ مِن كُلِّ شَيْءٍ ﴾ نه مرادهرهغه شي دې چه ددوئ دپاره ضروری وو، او ﴿ مَّوْعِظَةً ﴾ نه مراد، نصائح، تخویفات بشارات دی او د ﴿ وَتَفْصِيلًا ﴾ نه مراداحکام دتورات دی، دالواحوتفصیل بعض مفسرینو کړیدې، چه الواح دڅه شئ نه جوړوو، زبرجد،زمرود، سدره، وغیره اقول دی اودارنګه دعدد، اومقدار، اولیکونکی دالواحوڅوک وو، محققین وائ چه په صحیح روایت سره ددې امورو تفصیل نه دې راغلې نوسکوت ترینه پکاردې، ﴿ فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ ﴾ ضمیرراجع دې الواحوته یعنی په خپله هم په دې دعمل کولواهتمام کوه اوقوم ته هم ددې حکم کوه، پیغمبردقانون شرعی نه مستثنی نه وی، د﴿ فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ ﴾ نه مراددعمل کولواهتمام دې یاترینه مرادپه کلکه اواحتیاط سره نیول دی چه دغه الواح دلاس نه اونه غورځیګی، لکه دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې‌ذکره القرطبی، چه موسی علیه السلام چه هرکله الواح اوغورزولې، ‹دډیرې غصې دوجې نه› نوشپږمه حصه ئ پاتې شوباقی رفع شوې اوپه بل روایت کښې دی چه اومه حصه ئ پاتې شوه، ﴿ بِأَحْسَنِهَا ﴾ اضافت بیانیه دې اوپه دې کښې تنبیه ده په دې باندې چه په دغه الواحوکښې ماسوا داحسن نه بل هیڅ نه وو، نومعنی داشوه چه امرکوه خپل قوم ته چه په دې باندې عمل کوی ځکه په دې کښې چه څه دی هغه ټول احسن دی ،یااحسن نه عزیمتونه مراددی ځکه چه عزیمت احسن وی اورخصت حسن وی لکه مثلاً دظالم نه انتقام اخستل حسن دی لیکن صبرکول اومعاف کول ئ عزیمت اواحسن دی نوګویا چه بنی اسرائیلو ته ئ دعزیمتونو او مندوباتو داهتمام حکم ورکړو، ﴿ سَأُورِيكُمْ دَارَ الْفٰسِقِينَ ﴾ په دې آیت کښې خطاب بنی اسرائیلو

سره دي اودفاسقینونه مرادعمالقه دی چه بې دینه وو اود ((دارالفاسقین)) نه مرادشام، کنعان دی چه عمالقه په هغې قابض وو،اویاترینه مصرمراددې نویه دې کښې بشارت دې بنی اسرائیلوته چه تاسوته به په دشمن غلبه حاصله شی اودهغوئ ملک به تاسوقبضه کړئ. ((ای سیورثهم ارض اعداء هم ودیارهم)) (کبیر) اودارنګه په دې کښې بنی اسرائیلو ته دعبرت حاصلولو ترغیب دې چه دفسق اوسرکشۍ انجام هغه وی چه تاسوبه ئ اووینئ چه دنافرمانو عمالقو فرعونیانوکوم انجام وو، یامراد د﴿دَارَ الْفٰسِقِیْنَ﴾ نه جهنم دې چه لیدل ئ کیږی په ورځ دقیامت باندې نوبیادا آیت تخویف دې.

| |
|---|
| سَاَصْرِفُ عَنْ اٰیٰتِیَ الَّذِیْنَ یَتَکَبَّرُوْنَ فِی الْاَرْضِ بِغَیْرِ الْحَقِّ ؕ وَاِنْ یَّرَوْا |
| خامخا به اړوم زه د آیتونو خپلو نه هغه کسان چه تکبر کوی په زمکه کښې په ناحقه سره. اوکه وه وینی دوئ |
| کُلَّ اٰیَةٍ لَّا یُؤْمِنُوْا بِهَا ۚ وَاِنْ یَّرَوْا سَبِیْلَ الرُّشْدِ لَا یَتَّخِذُوْهُ سَبِیْلًا ۚ وَاِنْ یَّرَوْا |
| هرقسم معجزه نو ایمان نه راوړی په هغې، او که وه وینی دوئ لار د هدایت نه نیسی هغې لره لار. او که وه وینی دوئ |
| سَبِیْلَ الْغَیِّ یَتَّخِذُوْهُ سَبِیْلًا ؕ ذٰلِکَ بِاَنَّهُمْ کَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَا وَکَانُوْا عَنْهَا غٰفِلِیْنَ ۝ |
| لار د ګمراهۍ نیسی هغې لره لار، دا په سبب د دې سره چه دوئ دروغ ګڼړی آیتونه زمونږ او دوئ د هغې نه غافل دی |
| وَالَّذِیْنَ کَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَا وَلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ ؕ هَلْ یُجْزَوْنَ |
| او هغه کسان چه دروغ ګڼړی زمونږ آیتونه او ملاقات د آخرت، برباد دی عملونه د دوئ، بدله نشی ورکیدې دوئ ته |
| اِلَّا مَا کَانُوْا یَعْمَلُوْنَ ۝ |
| مګر دهغه عملونو چه دوئ ئې کوی. |

﴿ سَاَصْرِفُ عَنْ اٰیٰتِیَ ﴾ یعنی په الواحوکښې خومفصل احکام هدایت وو لیکن متکبرین ترینه فائده نه شی حاصلولې، اودالله تعالی په بارګاه کښې ددوئ هیڅ قدرنشته دې اودوئ ته به ددوئ دبدواعمالوبدله ورکولې شی، اوپه دې کښې تنبیه ده په دې چه دعناداواستکبارانجام دیربدوی اوتکبرکونکوته دقبول دحق توفیق نه ملاویږی، قتادة د﴿ سَاَصْرِفُ عَنْ اٰیٰتِیَ ﴾ ترجمه کوی ، سامنعهم فهم القرآن، متکبردفهم دقرآن اودایمان بالقرآن نه محروم وی، ،صرف، ، اړول

اومنع کولوته ونیلي شی، اومرادترینه محروم ساتل دی په ذریعه دمهرجباریت سره.
﴿يَتَكَبَّرُونَ﴾ چه خان لوئ گنړی په خلقو، ﴿بِغَيْرِ الْحَقِّ﴾ داظرف متعلق دې دمخذوف سره اوهغه حال دې دفاعل د ((يتكبرون)) نه، ((اى يتكبرون متلبسين بغيرالحق)) خکه تکبرپه حقه سره صفت خاصه دالله تعالی دې لکه په حدیث قدسی دابوداؤدکښې دی ((عن ابى هريرة رضى الله عنه الكبرياء ردائ والعظمة ازارى فمن نازعنى فى واحدمنهماقذفته فى النار)) یاداظرف متعلق دې دیَتَکَبَّرُوْنَ سره اودبغیرالحق نه مراددوئ دین باطل دې، اوبعض وائ چه ددینه مرادتکبردې په هغه چاباندې چه تکبرنه کوی لکه انبیاء، نوداتکبربغیرحق دې اوتکبرپه متکبرباندې، حق دې، حرام نه دې اوپه اثرکښې راغلیدی چه ((التكبرصدقة)) لیکن تکبربحق ،درحقیقت تکبرنه دې صرف صورةً ظاهراً تکبردې نو بنا په دې قول د ((بغيرالحق)) قیدلگولوکښې اشاره ده چه دوئ دحقیقةً دتکبرارتکاب کوی

﴿وَإِن يَرَوْا﴾ یعنی دعنادپه وجه دوئ دتوفیق دخیرنه محروم شو. اومهرجباریت پرې اولگیدو نوکه دوئ هرقسم معجزه اووینی نوایمان نه راوړی اوکه رُشد اودحق لاراووینی نو باوجود ددینه چه هغه واضحه اوواسعه لارده، خودوئ په هغې نه ځی، اوکه دگمراهئ او دباطل اونفسانی خواهشاتو، لاره اووینی نوباوجودددینه چه هغه تنگه اودهلاکت وی خودوئ په هغې په منډوروان وی اوداحالت ددوام دتکذیب اوغفلت نه پیداکیږی،چه انسان همیشه په تکذیب او غفلت کښې وی نوزړه ئ مسخ شی(اعاذناالله بفضله) ﴿وَالَّذِينَ كَذَّبُوا﴾ داتخویف اخروی دې

| |
|---|
| وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوسَىٰ مِنْ بَعْدِهِ مِنْ حُلِيِّهِمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهُ خُوَارٌ ط |
| او جوړ کړو قوم د موسې پس د تلو د ده نه (طورته) د کالو د دوئ نه سخې، یوه جُثه چه هغې لره آواز وو . |
| أَلَمْ يَرَوْا أَنَّهُ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَلَا يَهْدِيهِمْ سَبِيلًا م |
| آیا دوئ سوچ نه کولو چه دا سخې خبرې نشی کولې د دوئ سره او نشی ښودلې دوئ ته څه لاره د فائدې. |
| اتَّخَذُوهُ وَكَانُوا ظَالِمِينَ ﴿١٤٨﴾ وَلَمَّا سُقِطَ فِي أَيْدِيهِمْ وَرَأَوْا |
| دوئ ونیوو سخې په خدائی سره او وو دوئ ظالمان او هرکله چه پښیمانه شو دوئ او پوهه شو |

أَنَّهُمْ قَدْ ضَلُّوا ۙ قَالُوا لَئِنْ لَّمْ يَرْحَمْنَا رَبُّنَا

چه بیشکه دوئ په تحقیق سره گمراه شوی دی دوئ. نو وه ونیل دوئ کچیري رحم ونکړی رب زمونږ

وَ يَغْفِرْ لَنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ

او ببنښه ونکړی مونږ ته نو خامخا به شو مونږ د تاوانیانو نه

﴿ وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوسَىٰ ﴾ داواقعه دهغه وخت ده چه کله موسی علیه السلام کوه طورته لاړ دمیقات اول دپاره اودَ راوړلودتورات دپاره، نوسامری ته یو موقعه ملاؤشوه، اودمخکښې نه ورته دبنی اسرائیلو مزاج معلوم شوې وو، چه کله دوئ دموسی علیه السلام نه طلب اوکړو چه ﴿اجْعَل لَّنَا إِلَٰهًا كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ﴾ ددینه ورته معلومه شوې وه چه ددې قوم مزاج دبُت پرستئ دې. بنی اسرائیلو سره څه زیورات دقبطیانونه پاتی شوی وو ځکه چه بنی اسرائیلو دهجرت کولوپه وخت دقبطیانونه زیورات په عاریت سره په دې بهانه اخستې وو چه په مونږ کښې ښادی ‹واده› دې. نوفرعونیان چه تباه شو نودغه زیورات دوئ سره پاتی وو، سامری اوونیل بنی اسرائیلو ته چه داخوزمونږ دپاره حلال نه دی، په دغه زمانه کښې دکفارونه حاصل شده مال غنیمت دمسلمانانودپاره جائزنه وو. بنی اسرائیلو دده دحکم مطابق هغه ټول زیورات راوړل، اوسامری سره ئ جمع. کیخودل. اوده ترینه دسخی مجسمه جوړه کړه اوهغه خاوره چه دجبرئیل علیه السلام داسپ دخپو د لاندې نه ئ راغستې وه هغه ئ په کښې واچوله اودهغې نه دسخی دآواز په شان آوازراوتلو.

﴿جَسَدًا﴾ بدل دې د ((عجلاً)) نه یعنی دغه عجل چه سامری جوړکړې وو هغه صرف جسد وو، روح په کښې نه وو، دحیات نه معرّی وو، بس صرف یواوازبه ترینه وتلو لکه سخی چه ‹با. با› کوی. ددې آیت نه معلومیږی چه حقیقةً سخی نه وو، غوخه، وینه په کښې نه وه. اوداقول غوره دې اوبعضوونیلی دی چه حقیقةً سخې وو، غوخه وینه ترینه جوړه شوې وه. د﴿مِنْ حُلِيِّهِمْ﴾ اضافت د ‹حلی› بنی اسرائیلوته شویدې نومعلومیږی چه دا دَ دوئ ملکیت گرځیدلې وو. ځکه چه دهلاکت دفرعونیانونه روستودهغوئ میراث ملکیت دبنی اسرائیلوگرځیدلې وو. لکه ﴿كَذَٰلِكَ ۖ وَأَوْرَثْنَاهَا قَوْمًا آخَرِينَ﴾ حم دُخان ٢٥-٢٨،اوددی نه فقهاء دامسئله مستنبطه کړیده چه مسلمان چه کله دکافرپه مال قبضه استیلا، حاصله کړی نودده ملکیت گرځی. ﴿أَلَمْ يَرَوْا﴾ دادبنی اسرائیلو دحماقت بیان دې، چه داسې څیزئ خپل معبودگرځولې ووچه نه ئ په کلام

قدرت وو، اونه ئ دوئ ته څه لاره خودلې شوه ﴿اتَّخَذُوهُ﴾ ((اى اتخذوه الها)) مفعول ثانى محذوف دې. دا ((اتخذ)) په معنى دمعبود ګرځولوسره دې اواول

﴿وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوسَىٰ﴾ په معنى دجوړولوسره دې، په دې کښې اختلاف شويدې چه علاوه دهارون عليه السلام نه ټولوبنى اسرائيلو عبادت دعجل ارتکاب کړې ووياڼه؟ دحسن نه روايت دې چه ټولوکړې وو سوى دهارون عليه السلام نه، ځکه چه موسى عليه السلام دعاء داسې کړيده ﴿قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَلِأَخِي﴾ نومعلومه شوه چه نورڅوک مستحق ددعادمغفرت نه وونوکه چرې څوک په کښې مؤمن وې نودهغوئ دپاره به ئ هم دعادمغفرت کړې وه، اوجمهورواىٔ چه دهارون عليه السلام نه علاوه نورهم ډيرخلق په ايمان پاتى وو، په دليل ددې قول دالله تعالى سره ﴿وَمِن قَوْمِ مُوسَىٰ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهِ يَعْدِلُونَ﴾.

﴿وَلَمَّا سُقِطَ فِي أَيْدِيهِمْ﴾ دحضرت ابن عباس رضى الله عنه اونوروحضراتونه مروى ده چه ددې معنى ندامت بلکه سخت ندامت دې ځکه چه څوک چه ډيرنادم شى نوپه خپل لاسونوباندې چکونه لګوى لکه ﴿وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيْهِ﴾ ،نوسرئ په لاسونوکښې ارتاؤشى، اوداکلام په اصل کښې ((سقط فوه فى يده)) وو، نوفاعل حذف شو اودفعل معروف نه مجهول جوړشو، اوچاونيلى دى چه نادم دندامت په وجه سرټيټ کړى نوځکه ترينه تعبيراوشو په ((سقط فى ايديهم)) سره، اوواوپه ﴿وَلَمَّا سُقِطَ فِي أَيْدِيهِمْ﴾ کښې دمطلق جمع دپاره دې اودترتيب دپاره نه دې ځکه چه ندامت ددوئ روستو دواپس کيدلودموسى عليه السلام دکوه طورنه وو، ځکه چه دواقعى ترتيب داسې دې چه حضرت موسى عليه السلام چه کله دميقات اولى نه واپس راغلو اوقوم ئ په شرک کښې مبتلاء اوليدل نوقوم ئ ملامت کړواواوئ ونيل ورته ﴿أَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا﴾ اودقوم دجواب نه روستوبياهارون عليه السلام ته متوجه شو اوئ ونيل چه ﴿قَالَ يَا هَارُونُ مَا مَنَعَكَ إِذْ رَأَيْتَهُمْ ضَلُّوا﴾ اوبياىٔ سامرى ته خطاب اوکړو، ﴿قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يَا سَامِرِيُّ﴾ ، اوبياىٔ ددينه روستو، هغه عجل اوسيزه ، دقوم په مخکښې نودوئ پوهه شو چه سامرى مونږ غلط کړى وو اوبه خپل شرک کولوډيرنادم شو، ﴿وَرَأَوْا﴾ يعنى پوهه شودوئ چه بيشکه مونږ ګمراه شوى يو، دامقدم دې

﴿ وَلَمَّا سُقِطَ فِيٓ أَيۡدِيهِمۡ ﴾ نه، يعنى اول دوئ پوهه شو چه مونږ گمراه شو نوبياناد م شو. وجه د تاخيرفى الذكرداكيدې شي چه ﴿وَرَأَوۡا ﴾ په معنى دجزم اويقين سره دې اوندامت كيدې شي چه په شك ياظن سره راغلې وى نوجزم په گمراهئ باندې متاخردې دندامت نه (والله اعلم)

﴿قَالُواْ لَئِن لَّمۡ يَرۡحَمۡنَا ﴾ دااعتراف دې دخپل جرم اوطلب دتوبه دې په ډيرعاجزانه لهجه سره چه دالله تعالى درحمة اومغفرت نه علاوه زمونږدپاره دخسارې اونقصان نه دبچ كيدلو هيڅ ذريعه اواسره نشته دې، اودالله تعالى درحمت اومغفرت استحقاق نه لروبلكه دابه محض دالله تعالى فضل اوكرم وى چه زمونږ مغفرت اوكړى، حضرت آدم عليه السلام هم دغه شان سوال كړې وو. ﴿وَإِن لَّمۡ تَغۡفِرۡ لَنَا وَتَرۡحَمۡنَا ﴾ مغفرت په منزله دتخليه دې اورحمت په منزله دتحليه دې نودحضرت آدم عليه السلام په كلام كښې مغفرت مقدم ذكرشويدې ځكه چه تخليه مقدم وى په تحليه باندې اودلته رحمت مقدم ذكرشويدې يادې وجې نه چه دامقصود اصلى دې اومغفرت ئ وسيله ده، نوپه تقديم كښې اشاره ده چه دامقصوداصلى دې يادې وجې نه چه رحمت په معنى دقبول دتوبې سره دې نوهغه مقدم دې په مغفرت باندې اوكله رحمت په معنى دمزيد احسان اوبچ كيدلوسره وى دگناه نه نوهغه روستووى دَمغفرت نه اوپه دعادآدم عليه السلام كښې هم دامعنى مراد ده

| |
|---|
| وَلَمَّا رَجَعَ مُوسَىٰٓ إِلَىٰ قَوۡمِهِۦ غَضۡبَٰنَ أَسِفٗا قَالَ بِئۡسَمَا خَلَفۡتُمُونِي |
| او هركله چه واپس راغې موسى خپل قوم ته ډير په غُصه او غمژن، وې وئيل چه بد نيابت دې نيابت چه تاسو كړې دې |
| مِنۢ بَعۡدِيٓۖ أَعَجِلۡتُمۡ أَمۡرَ رَبِّكُمۡۖ وَأَلۡقَى ٱلۡأَلۡوَاحَ وَأَخَذَ بِرَأۡسِ أَخِيهِ |
| ځمانه وروستو، آيا جلتى وكړه تاسو، د امردرب ستاسې نه، او كيښودلى، ئى تختئ، او وې نيولو سر د ورو خپل |
| يَجُرُّهُۥٓ إِلَيۡهِۚ قَالَ ٱبۡنَ أُمَّ إِنَّ ٱلۡقَوۡمَ ٱسۡتَضۡعَفُونِي وَكَادُواْ |
| چه راښكلو ئى ځان ته، وه وئيل هارون اې ځويه د مور ځما ؛ بيشكه قوم كمزورې گڼرلې وم زه او قريب وؤ |
| يَقۡتُلُونَنِي فَلَا تُشۡمِتۡ بِيَ ٱلۡأَعۡدَآءَ وَلَا تَجۡعَلۡنِي مَعَ ٱلۡقَوۡمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ۞ |
| چه زه ئې قتل كړې وې، پس مه خوشحاله وه ځما په سپكولو سره دشمنان اومه شماره ما د قوم ظالمانانو سره |

قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَلِأَخِي وَأَدْخِلْنَا فِي رَحْمَتِكَ

وه وئیل موسی اي ربه ځما ! ببښنه وکړه ماته او ورو ځما ته او داخل کړه مونږ په خپل خاص رحمت کښې

وَأَنتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ ﴿١٥١﴾

او ته ئې زیات مهربان د رحم کوونکو نه

﴿وَلَمَّا رَجَعَ مُوسَىٰ﴾ داشپږمه واقعه ده موسی علیه السلام ته په کوه طور کښې تورات ملاؤشو ،اوالله تعالی ورته اوونیل چه ﴿فَتَنَّا قَوْمَكَ مِن بَعْدِكَ وَأَضَلَّهُمُ السَّامِرِيُّ﴾ ، نودې ډیر په غصه اوناراضګئ سره واپس شو،﴿غَضْبَانَ﴾ غضبناک ،ناراض﴿أَسِفًا﴾ شدیدالغضب، دا دواړه قریب المعنی دی، منصوب دی حالین مترادفین دی دضمیرد رَجَعَ نه یاحالین متداخلین دی چه ثانی حال دې دضمیرمستترنه په اول کښې،﴿بِئْسَمَا خَلَفْتُمُونِي﴾ معنی ئ داده چه بددې هغه فعل چه تاسو کړیدې ځمادتلونه بعد ، چه عبادت دعجل دې نوداخطاب دقوم هغه کسانو ته دې چه دعجل عبادت ئ کړې وو لکه سامرې وغیره شو ، یاداخطاب حضرت هارون علیه السلام اومؤمنانو ته دې چه تاسوځمادتلونه بعدځمادخلافت حق نه دې آداکړې ،موسی علیه السلام وصیت کړې وو، ﴿اخْلُفْنِي فِي قَوْمِي وَأَصْلِحْ﴾ نوتاسوچه داقوم دعبادت دغیرالله نه نه دې منع کړې نوحق دخلافت مونه دې پوره کړې،﴿أَعَجِلْتُمْ أَمْرَ رَبِّكُمْ﴾ داخطاب قوم ته دې چه تاسوتلواراوکړوپه شرک سره اوپریخود تاسې امر د رب یعنی انتظارکول ځمادراتلو.

﴿وَأَلْقَى الْأَلْوَاحَ وَأَخَذَ بِرَأْسِ أَخِيهِ﴾ دلته دحضرت موسی علیه السلام دوه عملونه ذکردی چه دواړه په ظاهرکښې دنبی دشان سره مناسب نه معلومیږی یوداچه موسی علیه السلام هغه تختئ اوغورځولې چه تورات ئ پرې لیکلې شوې وو ، دادکتاب الله توهین دې چه ممکن نه دې دشان دنبی نه، بل داچه هارون علیه السلام چه نبی هم دې اودموسی علیه السلام روردې اودرې کاله ترینه مشردې هغه ئ دسراودګیری نه اونیولو ، اوخان ته ئ راښکلوو دخپل داسې مشررور چه نبی هم وی توهین دې اولوالعزم نبی دشان سره مناسب نه دی،نود﴿وَأَلْقَى الْأَلْوَاحَ﴾ توجیه داده چه د﴿وَأَلْقَى﴾ نه مرادغورزول نه دی مرادلکه په دې قول دالله تعالی کښې ﴿فَلَمَّا أَن جَاءَ الْبَشِيرُ أَلْقَاهُ عَلَىٰ وَجْهِهِ﴾

ددي نه دامرادنه دي چه په مخ ئ ورته راؤويشت. نودلته د ﴿وَأَلْقَى الْأَلْوَاحَ﴾ نه مراد كيخودل
دی په ادب سره . ليكن هر كله چه داكيخودل په عجلت اوجلتئ سره وونوتعبيرترينه په الفاء سره
اوشو. اوعجلت اوجلتئ كول له وجې دحميت اوغيرت للدين نه وه. اواشاره وه تفظيع دعمل
دبني اسرائيلوته چه ددوئ دافعل ډيربد . اوخطرناک دي نوددي په منع كولوكښې ډيره جلتي
وكاره. اوبعض وائ چه موسى عليه السلام دوجې دشدت غضب لله،نه دخپلواعضاؤ جوارحونه بې
اختياره شو. نوالواح ترينه بې اختياراوغورزيدل . اوهرچه دي هغه روايت دابن عباس رضي
الله عنه چه دالقاء په وجه بعض اولواح منكسرمات، شو اوشپږسبع ۲۱۷مرتفع شو اويوسبع
۱۱۷پاتي شوه. نوبعضو ددينه انكاركړيدي. وئيلي دي امام رازي چه نشته دي په قرآن كښې
مگرذكرد «ألقى» دي اوهرچه دي كسراورفع نو دا نشته دي په قرآن كښې ((ومثله لايليق
بالانبياء))، اوكه دارروايت صحيح تسليم كړې شي نوكسر. يارفع كيدل دموسى عليه السلام فعل نه
دي، دموسى عليه السلام فعل خوصرف وضع بعجلة (په جلتئ سره كيخودل) وواودافعل ماذون فيه.
اوجائزبلكه مستحسن دي،من باب ﴿وَعَجِلْتُ إِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضَىٰ﴾ نوكسر او رفع نه دموسى عليه السلام
غرض وواونه ئ په زړه كښې ددي تصوروو اونه ئ په خيال اوگمان كښې داسې وه چه په جلتئ
كيخودلوسره به كسريارفع رازي، او د ﴿وَأَخَذَ بِرَأْسِ أَخِيهِ﴾ توجيه داده چه دا په نيت دتوهين سره
(معاذالله، نه وو بلكه دعتاب اوكيلې په طرزسره وو. خكه موسى عليه السلام دتللوپه وخت كښې
حضرت هارون عليه السلام ته ډېرتاكيداووصيت كړې وو چه دقوم اصلاح كوه نوپه واپسى كښې ئ چه
هركله دقوم گمراهي اوليده نوگمان ئ اوكړو. اوپه خيال كښې راغله چه هارون عليه السلام به دقوم په
اصلاح كښې پوره كوشش نه وی كړې. اوسستي تساهل به ئ كړې وی اودتبليغ په فرائضو
كښې به ئ تقصير كړې وی، نوددی مظنون تقصيرپه نسبت يوقسم عمل عتاب ئ وركړو،
اوشكايت ئ ترينه اوكړو. ﴿مَا مَنَعَكَ إِذْ رَأَيْتَهُمْ ضَلُّوا ﴿٩٢﴾ أَلَّا تَتَّبِعَنِ ۖ أَفَعَصَيْتَ أَمْرِي ﴿٩٣﴾﴾ اوهارون عليه السلام
بيشكه چه نبي وواوپه عمركښې هم دحضرت موسى عليه السلام نه مشروو. ليكن په رتبه كښې موسى
عليه السلام دده نه لوئ وو اوپه مذهبي اوشرعي اموروكښې هارون عليه السلام دده تابع اودده وزيرحيثيت
ئې لرلو، نوپه دغه موقعه كښې دموسى عليه السلام دطرفه عمل عتاب، اوشديده پوښتنه. سوء ادب
اونامناسب عمل نه دي

﴿قَالَ ابْنَ أُمَّ﴾ حضرت موسى عليه السلام اوهارون عليه السلام ، حقيقي اعياني. (دموريلار دواړوكښې

شریک نه ورونړه دی دلته ذکر د مورد پاره د ترحم دې ځکه چه د مورد طرفه رحم زیات وی. حضرت هارون علیه السلام حقیقت الحال بیان کړو چه ما د تبلیغ او د اصلاح په فرائضو کښې کوتاهی نده کړې. او په ډیر وضاحت سره مې ورته د توحید بیان کړیدې حتی چه دوی ځما قتل ته تیار شول. ﴿فَلَا تُشْمِتْ بِيَ الْأَعْدَاءَ﴾ اوپس ته مه خوشحاله وه په ما باندې دشمنان یعنی داسې کار مه کوه چه دشمنان خوشحاله شی هغه دا چه ته ځما سره په جهګړه او اختلاف شی، د اهل حق په خپل منیځ کښې اختلاف او جهګړه سبب د خوشحالئ د اهل باطل وی. شماتت هغه خوشحالئ ته وائی چه حاصله شی په سبب د تکلیف رسیدلو سره دشمن ته

﴿قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي﴾ موسی علیه السلام ته چه حقیقت الحال ښکاره شو نو مغفرت ئې طلب کړو چه که ځما نه په حالت د غصه کښې کوتاهی شوې وی یا د هرون علیه السلام نه څه کوتاهی شوې وی نو یاالله مونږ معاف کړه او په خپل رحمت کښې مونږ داخل کړه. یعنی مزید انعام او کړه او په خپل قرب کښې ترقی را کړه

| إِنَّ الَّذِينَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ سَيَنَالُهُمْ غَضَبٌ مِّن رَّبِّهِمْ |
|---|
| بیشکه هغه کسان چه نیولې ئې دې سخې په خدائی سره زرده چه وبه رسی دوئ ته غضب د طرف د رب د دوئ نه |
| وَذِلَّةٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُفْتَرِينَ ﴿١٥٢﴾ وَالَّذِينَ عَمِلُوا السَّيِّئَاتِ |
| او ذلت په ژوند د دنیا کښې. او دغسې سزا ورکوؤ مونږ دروغ جوړونکو ته. او هغه کسان چه عملونه کوی ناکاره |
| ثُمَّ تَابُوا مِن بَعْدِهَا وَآمَنُوا إِنَّ رَبَّكَ مِن بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٥٣﴾ |
| بیا توبه وباسی پس د دې عملونو نه او ایمان ئې راوړو بیشکه رب ستا پس د دې توبې نه خامخا ښنونکې . رحم کوونکې دې |
| وَلَمَّا سَكَتَ عَن مُّوسَى الْغَضَبُ أَخَذَ الْأَلْوَاحَ ۖ وَفِي نُسْخَتِهَا هُدًى |
| او هر کله چه په آرام شوه (سره شوه) د موسی نه غصه . را وانی خستلې تختئ. او په (نسخو) لیکلې شوې دهغی کښې هدایت وؤ |
| وَرَحْمَةٌ لِّلَّذِينَ هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُونَ ﴿١٥٤﴾ |
| او رحمت وؤ د هغه خلقو لپاره چه دوئ خاص د رب نه ویریږی |

﴿إِنَّ الَّذِينَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ﴾ دا تخویف او زجر دې او مراد د دینه هغه خلق دی چه د عجل عبادت

ئ کړې وو او توبه ئ نه وه کړې لکه سامری او دهغه ملګری نوهغوئ ته په دنیا کښې ذلة رسیدلې وو. لکه په سورت طه کښې دی ﴿فَإِنَّ لَكَ فِي الْحَيَوٰةِ أَن تَقُولَ لَا مِسَاسَ﴾ باتړینه مراد هغه یهود دی چه په زمانه دنبی صلی الله علیه وسلم کښې دی یعنی په دوئ دالله غضب دې اودوئ لره ذلت دې. ﴿وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ﴾ (بقرة) او ﴿اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ﴾ ((تعییر الابناء بفعل الاباء)) دې. خکه چه دوئ راضی وو په فعل دآباؤ باندې. ﴿وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُفْتَرِينَ﴾ یعنی کوم خلق چه په الله تعالی باندې افتراکوی په هغوئ به هم غضب الهی اوذلت راځی. دسفیان بن عیینه اوامام مالک رحمهماالله نه روایت دې چه هرهغه څوک چه په دین کښې دځپل طرفه بدعات ایجادکړی نوهغه مفتری دې او په هغه به په آخرت کښې غضب اودنیاکښې ذلت نازلیږی

﴿وَالَّذِينَ عَمِلُوا السَّيِّئَاتِ﴾ داترغیب دې توبې ته اوبشارت دې توبه کونکوته. ﴿وَلَمَّا سَكَتَ عَن مُّوسَى الْغَضَبُ﴾ هرکله چه دموسی علیه السلام غصه سړه شوه نوهغه الواح چه ایخودلې ئ وو هغه ئ رواغستل ﴿الْأَلْوَاحَ﴾ ددینه ظاهراً سالم الواح مراددی نوځکه امام رازی وائی چه ظاهر د دې دلالت کوی چه تختئې نه وې ماتې شوې. ﴿وَفِي نُسْخَتِهَا﴾ یعنی په لیکلی شوؤ دالواح کښې. یعنی تورات کښې. تورات ته نسخه وئیل یاپه دې وجه دی چه موسی علیه السلام ته لیکلې شوې کتاب (تختئې) ورکړې شوې وو. اونبی صلی الله علیه وسلم ته قرآن په کتابی شکل اوتختئې کښې لیکلې شوې نه دې ورکړې. یاپه دې وجه. چه نسخ ((نقل مافی کتاب الی کتاب آخر)) ته وئیلې شی. نومنقول ته نسخه وئیلې شی لکه چه منقول عنه ته هم نسخه وئیلې شی اوتورات نقل شویدې دلوح محفوظ نه ﴿هُدًى وَرَحْمَةٌ﴾ ددینه احکام مراددی ځکه چه څوک چه عمل اوکړی په احکامو نوهغه موصوف ګرځی په هدایت سره اوموعودوی په رحمة سره. ﴿هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُونَ﴾ اسمانی کتاب، هدایات، دهغه چادپاره ذریعه دهدایت اورحمت وی چه په زړه کښې ئ خوف الهی وی اواخلاص وی. لکه په ﴿هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ﴾ کښې یوتوجیه داده چه دمتقین نه مراددالله تعالی خوف کونکی دی، نوپه ((یرهبون)) کښې د خوف الهی ذکر دې او ((لربهم)) کښې اخلاص ته اشاره ده

وَاخْتَارَ مُوسٰى قَوْمَهٗ سَبْعِيْنَ رَجُلًا لِّمِيْقَاتِنَا ۚ فَلَمَّآ اَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ

او غوره کړل موسی د قوم خپل نه[1] اویا سړي. لپاره د وخت مقرر زمونږ. پس هرکله چه ونیول دوی لره زلزلې.

قَالَ رَبِّ لَوْ شِئْتَ اَهْلَكْتَهُمْ مِّنْ قَبْلُ وَاِيَّايَ ؕ

وه ونیل موسی اې ربه خما که ناغوښتې وې نو هلاک کړې به وې تا دوی لره مخکښې د دې نه او ما لره.

اَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ السُّفَهَآءُ مِنَّا ۚ اِنْ هِيَ اِلَّا فِتْنَتُكَ ؕ تُضِلُّ

آیا هلاکوې نه مونږ لره په سزا د هغه کار چه کړیدې کم عقلو زمونږ نه. ندې دا مګر امتحان ستا دی. ګمراه کوې ته

بِهَا مَنْ تَشَآءُ وَتَهْدِيْ مَنْ تَشَآءُ ؕ اَنْتَ وَلِيُّنَا فَاغْفِرْ لَنَا

پدې سره هغه چا لره چه وغواړې ته او هدایت کوې هغه چاته چه وغواړې . ته مددګار زمونږ نې پس ښښنه وکړې مونږ ته

وَارْحَمْنَا وَاَنْتَ خَيْرُ الْغٰفِرِيْنَ ۞ وَاكْتُبْ لَنَا فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا

او رحم وکړې په مونږ او ته غوره د ښښونکو نه ئې او ولیکه (یعني مقرر کړه او توفیق راکړه) مونږ ته پدې دنیا کښې

حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ اِنَّا هُدْنَآ اِلَيْكَ ؕ قَالَ عَذَابِيْٓ

نیکی او په آخرت کښې هم ښائسته بدله. بیشکه مونږ رجوع کړیده تاته. اوفرمائیل الله تعالی عذاب خما

اُصِيْبُ بِهٖ مَنْ اَشَآءُ ۚ وَرَحْمَتِيْ وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ ؕ فَسَاَكْتُبُهَا

رسوم ئې هغه چاته چه وغواړم. او رحمت خما. رسیدلې دې هر شی ته. پس خامخا به دا رحمت ولیکم

لِلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِاٰيٰتِنَا يُؤْمِنُوْنَ ۞

خاص هغه چا لره چه یره کوی دالله تعالی نه اوورکوی زکوة اوهغه کسان چه هغوئ په آیتونوزمونږایمان راوړی

﴿ وَاخْتَارَ مُوسٰى قَوْمَهٗ ﴾ دا اومه واقعه ده په دې کښې دمیقات ثانی بیان دې اومیقات اولی چه هغې ته میقات کلامی ونیلې شی دهغې ذکرمخکښې تیرشویدې (قومَهٗ) منصوب بنزع

[1] اوومه (۷) واقعه

الخافض دي ((اى من قومه)) يا دا چه ﴿سَبْعِينَ رَجُلًا﴾ بدل ياعطف بيان دي د ((قومه)) نه نوتقديرته حاجت نشته دي .حضرت موسى عليه السلام چه دعجل دمعاملې نه په اطمينان سره شو. نوتورات ئې رواخستواوبني اسرائيلو ته ئې احكام بيان كړل نودوئ اوويل چه داخو ډېرسخت احكام دي. اومونږ ته څه معلومه ده چه دادطرفه دالله تعالى نه دي اوكه نادخپل طرفه مقرركړيدي. البته چه مونږ په خپله دالله تعالى كلام واورو نويقين به اوكړو چه دادطرفه دالله تعالى نه دى. نوموسى عليه السلام دالله تعالى په بارګاه كښې عرض اوكړو نوحكم ورنه اوشو چه ددوئ ديوځو مشرانو كسانو وفدمنتخب كړه كوه طورته ئې راوله چه خماكلام واورى. نوموسى عليه السلام اويا كسان منتخب كړل اودهغوئ سره كوه طورته لاړ. اوبعض حضرات وائي (كساف الكبير والروح وغيره) چه دااوياكسان كوه طورته. دحضرت موسى عليه السلام په نګرانى كښې دعبادت العجل دګناه نه دمعذرت غوښتلو دپاره تلى وو. نوچه دوئ كوه طورته اورسيدل نوالله تعالى دخپل رحمت سپينه وريخ په غرباندې رواچوله اودوئ ټول پكښې پټ شو اوموسى عليه السلام اووفد ټول په سجده شو. نودوئ دالله تعالى هغه كلام واوريدو چه دموسى عليه السلام سره ئې كوو. يعنى هغه احكامات چه په تورات كښې وو. نوچه وريخ لرې شوه نوموسى عليه السلام دوئ ته رامخ كړو نودوئ بيابل شك پيداكړو چه مونږ ته خويته اونه لګيده چه داكلام دالله تعالى وو. مونږ به هله يقين اوكړو چه الله تعالى عيانًا اووينو ﴿حَتَّىٰ نَرَى ٱللَّهَ جَهْرَةً﴾ نوددې ګستاخانه اومعاندانه سوال په وجه سره الله تعالى په دوئ باندې داسمان نه صاعقه (تندر) نازل كړو اودلاندې نه پرې زلزله شروع شوه. نوهلاک شول. جمهورمفسرين وائ چه دوئ مړه شو اودحضرت وهب نه روايت دي چه حقيقةً مړه نه وو. دمرويه شان بى حسه بې هوشه وو.نوموسى عليه السلام ددوئ دهلاكت نه دبچ كيدلو. يا د بيا جوندى كيدلو دپاره دعااوكړه اوئ ونيل چه ﴿رَبِّ لَوْ شِئْتَ﴾ اې الله كه چرې ستااراده وې ددوئ دهلاكت، نودوئ اودارنګه زه به دمخكښې هلاک كړې وو. فرعون دلاسه .ياپه درياب كښې.ياپه هغه وخت كښې چه دوئ دعجل عبادت كوو. داټولې دهلاكت موقعې وې ليكن چه په دغه موقعوكښې دې دهلاكت نه بچ كړى دى نواوس پرې هم رحم اوكړه دهلاكت نه ئې بچ كړه. ياى جوندى كړه. ګنې بنى اسرائيل به وائ چه تادقوم مشران بوتلل اوهلاک دې كړل . اوخمادقتل اومقابلې دپاره به تيارشى. ﴿أَتُهْلِكُنَا﴾ دا استفهام دطلب دپاره دې. يعنى مونږ مه هلاكوه. يادااستعظام دپاره دې.يعنى داسې خونشى كيدې چه ته مونږ هلاک كړې په

فعل دَ سفهاؤ سره، دسفهاؤ نه مراد هغه کسان دی چه عبادت دعجل ئ کړې وو. یائي نه مراد هغه کسان دی یه اویاکسانو کښې چه طلب درؤیت ئ کړې وو، یعنی یا الله . مونږ داتوقع نه لرو چه ځوبې وقوفه کسان به غلط فعل اوکړی. اوزه اوتول بنی اسرائیل به هلاک شو هرکله چه ستانه زمونږ داامیدې چه دسفهاؤپه فعل سره به مونږ نه هلاکوې نومعلومه شوه چه ﴿إِنْ هِيَ﴾ نه ده دارجفه ، صاعقه، ﴿إِلَّا فِتْنَتُكَ﴾ مګر یو امتحان دې .عذاب نه دې اودامتحان په وجه بعض خلقوته هدایت ملاؤشی اوبعض ګمراه شی ،موسی علیه السلام دُعاوکړه چه یاالله ته زمونږ مددګارئ، مونږ ته مغفرت اوکړه اورحم راباندې اوکړه اوپه دنیاکښې هم حسنه راکړه یعنی دنیکو اعمالو توفیق راکړه اوپه آخرت کښې هم، یعنی نیک اعمال زمونږ محفوظ کړه اواجرثواب پرې راکړه،نو ددې دعانه روستو بیادغه خلق جوندی شو (کماف البقرة) ﴿إِنَّا هُدْنَا إِلَيْكَ﴾ ای تبنا. هودرجوع برفق ته وائ اوهودجمع دهائدده په معنی دتائب سره ﴿قَالَ عَذَابِيَ﴾ الله جل جلاله حضرت موسی علیه السلام ته تسلی ورکړه چه اول خوځمارحمت غالب دې په غضب باندې ځکه چه زه عذاب هغه چاته ورکوم چه مې خوخه شی اګرکه مستحق دعذاب هرنافرمان وی خوزه هرنافرمان ته عذاب نه ورکوم اورحمت مې دومره عام دې چه هرچاته وسیع دې، نافرمان، سرکش ته هم په دنیاکښې دالله تعالی رحمت رسیدلې دې، نودالله تعالی رحمت خومطلقًا غالب دې په غضب باندې ،چه غیرمستحق ته هم رسیدلې دې نوبیاچه کوم خلق درحمت مستحق دی حسب وعده نو ﴿فَسَأَكْتُبُهَا﴾ سین دتاکیددپاره دې یعنی دمستحیقینو دپاره به زه خامخاپل رحمت مقررکړم، اودمستحقینودرحمت الهی صفات دا دی (١) ﴿يَتَّقُونَ﴾ (٢) ﴿وَيُؤْتُونَ الزَّكَوٰةَ﴾ (٣) ﴿بِآيَاتِنَا يُؤْمِنُونَ﴾ (٤) ﴿الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ﴾ دا آیت چه چه ﴿قَالَ عَذَابِيَ﴾ حضرت موسی علیه السلام ددعاپه جواب کښې مذکوردې . موسی علیه السلام دعاوکړه ﴿أَنتَ وَلِيُّنَا فَاغْفِرْ لَنَا﴾ الی ....﴿فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ﴾ ددې دعا دوه حصی دی یوه حصه اوجزء ددعا دادې چه په کوموخلقوعتاب اوعذاب راغلیدې نودوئ ته دې معافی اوشی اورحمت دې پرې اوشی اودویم جزء ددعا دادې چه ځما دپاره اوځما دامت دپاره دې په دنیا او آخرت دواړو کښې رحمت حسنه اولیکلې شی، نود اول جزء ددعا جواب داسې اوشوچه ځما عادت دادې چه هرمجرم ته عذاب نه ورکوم بلکه هغه چاته عذاب ورکوم چه دډیرې سرکشئ په وجه ورته عذاب ورکول غواړم نو لهذادغه کسان چه ته ورته معافی غواړې دوئ ته به هم عذاب

نه وركوم ٠ د دويم جزء دعا جواب داسې اوشوچه رحمت خماخويه دنياكښې عام دې هرڅه ته شامل دې. اوپه آخرت كښې د رحمت مستحق هغه څوك دې چه په دې صفتونو باندې متصف وي.

حضرت مولاناشاه انورشاه صاحب فرماي چه د ﴿وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ﴾ معنى داده چه د رحمت دائره تنګه اومحدوده نه ده ليكن دامعنى ئ نه ده چه په هرشئ باندې بالفعل رحمت راغليدې اوبالفعل هرشئ مرحوم دې. لكه ابليس ديوبزرګ صوفي عبدالله تستري سره دغه شان مناظره كړې وه اوهغه ئ لاجواب كړې وو

«في فيض البارى ص٢ج۴ ((حاج ابليس مع عبدالله التسترى انك تقول انى اعذب في النار وكيف يكون ذلك لانّ الله تعالى يقول ورحمتي وسعت كل شئ فاجاب التسترى ان الرحمة للذين يقيمون الصلوة ويؤتون الزكوة وبربهم يؤمنون ولست منهم فضحك منه وقال كنت ارى انك عالم عارف فاذا انت ممّن لايعرف شيئا قيدت صفاته المطلقة فان الله قادرعلى الاطلاق وانت تقيدها وخالق على الاطلاق فكذا هو رحيم على الاطلاق فانت تقيدها فلم يدر التسترى ما يقل له. قلت ولا ادرى ماذا افحم التسترى واين اللعين من قوله تعالى فانه ليس فيهاالابيان سعتها لاحكم بالرحمة على حد قولك هذه الدارتسع الف رجل ولولم يدخل فيها واحد ـــــ الخ)) دحضرت قتاده نه روايت دې چه هركله دا آيت نازل شو ﴿وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ﴾ نوابليس اووئيل چه زه هم يوشى يم داشياؤ نه .نويه ما به هم رحم كيږى نوالله تعالى اوفرمائيل ﴿فَسَأَكْتُبُهَا لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ﴾ نونا اميده شوابليس نوبيائي يهوديانو اونصارى ؤ اووئيل چه مونږ هم تقوى كوو اوزكواة وركوؤ اوداالله تعالى په آيتونو ايمان راؤړو. نومونږ به هم مرحومينو في الاخرة كښې يو. نوالله تعالى اوفرمائيل چه

الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ الَّذِي يَجِدُونَهُ مَكْتُوبًا عِنْدَهُمْ

دا هغه كسان دى چه تابعدارى كوى د رسول، نبى، أمّي. هغه چه مومى دوئ ذكر دهغه ليكلي شوي د دوئ سره

فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ يَأْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَاهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ

په تورات او انجيل كښې. حكم كوى دوئ ته د نيكئ اومنع كوى دوئ لره د بدئ نه او حلالوى د دوئ لپاره

الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ وَالْأَغْلَالَ الَّتِي

پاك څيزونه او حراموى په دوئ باندې ګنده څيزونه او لرې كوى د دوئ نه درانه حكمونه د دوئ او هغه سختي سزاګانى

كَانَتْ عَلَيْهِمْ ۚ فَالَّذِينَ آمَنُوا بِهِ وَعَزَّرُوهُ وَنَصَرُوهُ

چه وې په دوئ باندې. پس هغه کسان چه ايمان راوړې په ده باندې او تعظيم ئې کړې وې د ده او مدد ئې کړې وې د ده

وَاتَّبَعُوا النُّورَ الَّذِي أُنْزِلَ مَعَهُ ۙ أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿١٥٧﴾

او تابعدارې ئې کړې وې د هغه نور چه نازل کړې شويدې د ده سره. نو دغه کسان خاص دوئ کامياب دې

﴿ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ ﴾ نو دوئ ترينه خارج شو، په دې آيت کښې دنبي صلى الله عليه وسلم لس صفات ذکر دى (۱) ﴿ الرَّسُولَ ﴾ په اعتبار د پيغام راوړلو سره د طرف دالله تعالى نه (۲) ﴿ النَّبِيَّ ﴾ په اعتبار د انباء. يعنى خبرور کولو سره خلقوته او په اعتبار د رفعت او دلوئ مرتبى سره (۳) ﴿ الْأُمِّيَّ ﴾ يعنى نالوستونکې اوناليکونکې. دا د بل چا دپاره صفت دمدح نه دې اونبى صلى الله عليه وسلم دپاره عين کمال اومعجزه ده چه بې لوستلو ليکلوئ علمى عملى اخلاقى کمالات لامحدود دئ. دلوستونکى.ليکونکى سړى کمالات دهغه دتعليم نتيجه وى ليکن چه څوک ليکونکې نه وى اوعلوم. فيوضات او کمالات ئ لامحدود وى نو دا ښکاره معجزه ده. دأمى. يوه معنى داده چه ليکونکې لوستونکې نه وى. منسوب «ام» ته. بچې چه دمورنه پيداشى نو په دغه وخت کښې دچاشاګردنه وى، نوليکل . لوستل نه شى کولې. اونبى صلى الله عليه وسلم په ټول عمر کښې دهيچانه نه څه زده کړيدى اونه دچاشاګرشويدې. ليکن دکومو علومو اومعارفو اوحقائقو اواسرارو افاضه چه ئ فرمائيلى ده، نوهيڅ مخلوق دهغې عُشر عشير ته نه شى رسيدلې نوددې وجه نه اُمى لقب، صفتِ مدحه اوافتخار دې، دويمه معنى دأمى منسوب اُم القرى يعنى مکى معظمى ته په دې وجه چه هغه مولد دې. (۴) ﴿ يَجِدُونَهُ مَكْتُوبًا ﴾ يعنى دنبى صلى الله عليه وسلم نوم اوصفات په تورات انجيل کښې موجوددى. سره ددينه چه يهودونصارى ډېرتحريفات کړيدى اوکوشش ئ کړيدې چه نبى صلى الله عليه وسلم صفات پټ کړى. بيهقى په دلائل النبوة کښې نقل کړيدى چه انس رضى الله عنه وائ چه ديويهودى بچې وو چه دنبى صلى الله عليه وسلم خدمت به ئ کولو. اتفاقًا هغه بيمارشو نونبى صلى الله عليه وسلم دهغه تپوس له تشريف فرماشو. اوددغه بچى سر طرف ته ئ پلار ولاړووتورات ئ لوستلو. نونبى صلى الله عليه وسلم هغه ته اوفرمائيل چه اې يهودى ستادې په هغه الله قسم ږى چه تورات ئ په موسى عليه السلام نازل کړيدې اووايه چه په تورات کښې خما حالات صفات.

وخداظهوربيان تاسوموندلي دي ؟ نوهغه انكاراوكړو. نوهغه بچي اوونيل چه يارسول الله دې غلط واي په تورات كښې ستاسو ذكر اوصفات مونږ موندلى دى اوكلمه دشهادت ئې اوونيله نونبى صلى الله عليه وسلم صحابوته اوفرمائيل چه دابچى مسلمان دې اودوفات كيدونه بعدد ده تكفين اوتجهيزاوكړئ

﴿٥﴾ ﴿يَأْمُرُهُم بِالْمَعْرُوفِ﴾ ﴿٦﴾ ﴿وَيَنْهَىٰهُمْ عَنِ الْمُنكَرِ﴾ دمعروف نه مرادتوحيدسنت اوټول اعمال صالحه اخلاق حسنه دى اودمنكرنه مراد شرك بدعة اوتمام اعمال قبيحه دى. دمعروف لغوى معنى ده پيژندلې شوې (آشنا) اود منكر معنى لغوى ده (نا آشنا) . نيكوعملو نه معروف ځكه واي چه دامشهوراومعلوم دى په شرع كښې اوپه دوردصحابوتابعينويعنى خيرالقرون كښې، اوكوم كارچه په خيرالقرون كښې نه وونوهغه معروف اونيک كارنه دې بلكه منكردې دكوم كاراصل چه په كتاب الله اوسنت كښې نه وى اونمونه ئې په خيرالقرون كښې نه وى نوهغه بدعت اوګناه وى اګركه په ظاهره كښې نيک عمل معلوميږى. امربالمعروف اونهى عن المنكراګركه دهرنبى صفت دې ليكن حضرت محمدصلى الله عليه وسلم ته په دې كښې خاص امتياز اوخصوصيت حاصل وو ځكه چه دنبى صلى الله عليه وسلم بعثت عام دې تمام اقوامو اوطبقاتو ته دې، تعليم يافته غيرتعليم يافته بادشاهان. رعايا. غرباء. مالداران. هرزبان. اومزاج والامخلوق دنبى صلى الله عليه وسلم ددعوت ددائرى ماتحت دى. اودټولوبوهه كول په داسې طريقه سره چه ټول ترينه متاثره اومستفيدشى، داامتيازصرف نبى صلى الله عليه وسلم ته حاصل وو ﴿٧﴾ ﴿وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَٰتِ﴾ ددينه مرادهغه پاكيزه اشياء دى چه په بنى اسرائيلوباندې په طوردسزاسره حرام شوى وولكه وازده وغيره كماقال تعالى ﴿ذَٰلِكَ جَزَيْنَٰهُم بِبَغْيِهِمْ﴾ اودارنګه بحيره سائبه چه جاهلانوپه خپل خان حرام كړې وې. ﴿٨﴾ ﴿وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَٰٓئِثَ﴾ لكه نذرلغيرالله ،خنزير، دم مسفوح،﴿٩﴾ ﴿وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ﴾ اصرهغه ثقيل اودرانه بوجونه ووچه په بنى اسرائيلو مقررشوى وو. لكه دقبوليت دتوبى دپاره خپل خان قتلول، جلاوطن كيدل. شرط وو. اودارنګه دهغه اندام پريكول چه ګناه به ترينه صادرشوې وو. اوپريكول دځاي دنجاست دجامې نه.﴿١٠﴾ ﴿وَالْأَغْلَٰلَ﴾ جمع دَ غُل ده اوغُل هغه زنځيراوطوق ته واي چه دمجرم په غاړه كښې اچولې شى. دلته ترينه مرادهغه سخت احكامات دى چه په بنى اسرائيلو لازم كړې شوى وو په منزله دطوق په غاړه دمجرم كښې لكه په دوئ باندې په قتل

عمداوخطـ ... روكښې قصاص وو او اومعافي اوديت نه وؤ. او دارنگه مال غنيمت دوئ لره حلال نه وؤ چه دا سخت سخت حكمونه زمونږ په ملت كښې نشته دې. منسوخ شويدي

﴿فَالَّذِينَ ءَامَنُوا بِهِۦ﴾ په دې كښې دفلاح كامل شرائط مذكوردي چه ايمان دې په نبي صلى الله عليه وسلم اوبه صرف ايمان راوړلو سره كامل فلاح نه حاصليږي بلكه تعظيم اواحترام هم ضروري دې اوبياصرف احترام هم كافي نه دې بلكه اتباع ضروري ده چه په اتباع دقرآن اوسنت سره راخي. نوبه ﴿يَتَّبِعُونَ ٱلرَّسُولَ ٱلنَّبِىَّ﴾ كښې داتباع سنت ذكراوبه ﴿وَٱتَّبَعُوا ٱلنُّورَ ٱلَّذِىٓ﴾ كښې داتباع دقرآن ذكردې. قرآن ته نورونيلې شي چه په نورسره ظلمات ختميږي. اودخپل واجداونورانيت دپاره په خپله دليل وي څه بل دليل ته ئې حاجت نه وي نودغه شان په قرآن سره دظلم اوجهالت ظلمات ختميږي اودخپل حقانيت دپاره په خپله دليل دې

آفتاب آمد دليل آفتاب گردليلې بايدت زورومتاب

قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنِّى رَسُولُ ٱللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا ٱلَّذِى لَهُۥ مُلْكُ

وه وابه اې ټولو خلقو بيشكه زه رسول د الله تعالى يم تاسو ټولو ته. هغه الله چه خاص هغه لره ده بادشاهي.

ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْىِۦ وَيُمِيتُ فَـَٔامِنُوا

د آسمانونو او د زمكې. نشته دې لائق د بندگئ څوك بغير د ده نه. ژوندى كول او مړه كول كوي. پس ايمان راوړئ تاسو

بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِ ٱلنَّبِىِّ ٱلْأُمِّىِّ ٱلَّذِى يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَكَلِمَٰتِهِۦ

په الله تعالى باندې او په رسول دهغه چه نبي . امي دې. هغه چه ايمان لرى په الله تعالى او دهغه په ټولو كلامونو باندې

وَٱتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿١٥٨﴾ وَمِن قَوْمِ مُوسَىٰٓ أُمَّةٌ يَهْدُونَ

او تابعداري وكړئ دهغه د دې لپاره چه هدايت ومومئ او بعضې د قوم د موسى نه يوه ډله ده چه ښودنه كوي

بِٱلْحَقِّ وَبِهِۦ يَعْدِلُونَ ﴿١٥٩﴾

دحق. او په حق فيصلې كوي

﴿قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ﴾ درسول الله صلى الله عليه وسلم ذكربه تورات كښې وو اوحضرت موسى عليه السلام ئې بشارت وركړې وو اوبه انجيل كښې هم وو حضرت عيسى عليه السلام ئې بشارت

ورکړې وو، کماقال تعالی ﴿يَجِدُونَهُ مَكْتُوبًا عِندَهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ﴾ اويه دې آيت کښې دحضورصلی الله عليه وسلم درسالت عامه اعلان اوبشارت په قرآن کښې دحضورصلی الله عليه وسلم په ژبه آورولې کيږی ﴿جَمِيعًا﴾ دَ هرملك. دَ هرې طبقې او د هرې زمانې د ټولو انسانانو جناتو دپاره رسول يم. ﴿لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ درسالت اهم مقصدبيان دتوحيددې نودا دا هم مقصدبيان دې. ﴿فَآمِنُوا﴾ يعنی په توحيدسنت باندې مضبوط شئ نوهدايت به اوموندلې ﴿وَمِن قَوْمِ مُوسَىٰ﴾ اکثريهوديان سرکش اونافرمان وو ليکن په دوئ کښې ملغلرې، اوداسې مخلصين ، حق بين. خلق هم شته دې چه نوروخلقونه دحق خودنه اوبيان کوی اوپه خپله هم په حق باندې فيصله اوعمل کوی لکه عبدالله بن سلام وغيره شو

وَقَطَّعْنَاهُمُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ أَسْبَاطًا أُمَمًا ۚ وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ مُوسَىٰ إِذِ اسْتَسْقَاهُ

وتقسيم کړل مونږ دوئ لره[١] دولس خاندانونه. جدا جدا ډلې. او وحې وکړه مونږ موسی ته کله چه اوبه وغوښتې د ده نه

قَوْمُهُ أَنِ اضْرِب بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ۖ فَانبَجَسَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ۖ قَدْ عَلِمَ

قوم د ده. چه ووهه په همسا خپلې سره دغه ګټه. پس راووتې د دينه دولس چينې. په تحقيق سره وپيژندلو

كُلُّ أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ۚ وَظَلَّلْنَا عَلَيْهِمُ الْغَمَامَ وَأَنزَلْنَا عَلَيْهِمُ الْمَنَّ

هرې ډلې ګودر خپل. او سورې کړې وو مونږ په دوئ باندې د وريځې. اورا ليګلې وو مونږ په دوئ باندې ترنجبين

وَالسَّلْوَىٰ ۖ كُلُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ ۚ وَمَا ظَلَمُونَا

اومرزان،«ووئيل مونږ،خورئ د پاك هغه څيزونونه چه درکړيدی مونږ تاسونه او دوئ زمونږ هيڅ تاوان ونه کړو

وَلَٰكِن كَانُوا أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿١٦٠﴾

ليکن وو دوئ چه خپل تاوان ئې کولو

﴿وَقَطَّعْنَاهُمُ﴾ دااتمه واقعه ده په دې کښې دځلوروانعاماتو ذکر دې.اول ددوئ داصلاح

١ - اتمه واقعه

او د نظم وضبط برابرولو دپاره دولس حصوته تقسيمول خكه چه دحضرت يعقوب عليه السلام دولس خامن وو نوپه دي دولسورونړوكښي دهريورواولادپوره قبيله وه. دويم انعام دګټې نه دولس چينې داوبو راويستل. دريم انعام دوريځې سوري كول. څلورم انعام من اوسلوى. ﴿أَسْبَاطًا﴾ جمع دسبط ده. په لغت كښې ((والدالولد)) يا ((ولدالبنت)) يا ((القطعة من الشئ)) ته واى. اوپه عرف كښې دبنى اسرائيلويوجماعت، خاندان ته واى نوسبط. په بنى اسرائيلوكښې داسې دي لكه قبيله په بنى اسماعيل اوعربوكښې (روح). ﴿وَقَطَّعْنَاهُمُ﴾ كله متعدى كيږى يومفعول ته اوكله متعدى كيږى ددؤومفعولينو ته. نوبناء په اول باندې، دلته ((هُم)) مفعول دې او ﴿اثْنَتَيْ عَشْرَةَ﴾ حال دې اوبناء په ثانى ﴿اثْنَتَيْ عَشْرَةَ﴾ مفعول ثانى دې. اوپه تميز كښې ئې دوه قوله دى يوقول دادې چه محذوف دې چه ((فرقة)) دې مثلاً اى اثنتى عشرة فرقة. او﴿أَسْبَاطًا﴾ تميزنه دې بلكه بدل دې د ﴿اثْنَتَيْ عَشْرَةَ﴾ نه يوددې وجې نه چه ددې قسم عددتميزمفردمنصوب وى اواسباط جمع ده اوبله داچه كه داتميزشى د ﴿اثْنَتَيْ عَشْرَةَ﴾ دپاره نودا خو جمع ده اواقل افراددجمع دپاره ثلاثة وى نودوئ به شپږ ديرش قبيلې شى. اودويم قول دادې چه اسباطاً تميزدې اوداسباط اطلاق په يوه قبيله هم كيږى نودامفرددې اګركه صورةً جمع ده لكه انصار. اوتانيث ئې په اعتباردتاويل سره دې په ((امة)) يا ((جماعة)) سره ﴿أُمَمًا﴾ منصوب دې بدل دې داسباطاً نه په دې تقديرچه هغه تميزشى اوبدل نه شى څكه چه بدل عن البدل جائزنه دې اوكه اسباطاًبدل شى د ﴿اثْنَتَيْ عَشْرَةَ﴾ نه نوبيادانعت دې يابدل بعدبدل دې د ﴿اثْنَتَيْ عَشْرَةَ﴾ نه. (روح) اوپه ذكرداُمماً كښې اشاره ده دېته چه هرسبط جماعت كثيرة، اومستقل مقتدى وو. دبل تابع نه وو

﴿وَأَوْحَيْنَآ﴾ دادويم انعام دې، ﴿فَانبَجَسَتْ﴾ انبجاس لږ اوبو راوتلوته واى او انفجار ډيرو اوبوته واى. په سورة بقرة كښې، ((فانفجرت)) دې نواول اوبه لږ لږ راوتلې بياډيرې شوې اوبعض واى چه انفجاراوانبجاس په يوه معنى سره دى نوددواړو آيتونوپه معنى كښې فرق نشته دې اود ﴿فَانبَجَسَتْ﴾ نه مخكښې ((فضربه)) مقدردې اوهغه ذكرنه شودپاره ددې چه اشاره شى دېته چه موسى عليه السلام په حكم منلوكښې هيڅ توقف اوديرى نه ده كړې ﴿وَظَلَّلْنَا﴾ دادريم

انعام ذکردي. دغمام نه مراد سپینه وریخ ده چه دنمرگرمی به یٔ دفع کوله اوپرتپا به یٔ نه ختموله.﴿وَأَنزَلْنَا﴾ داخلورم انعام دي.من ترنجبین ته وایٔ چه سپین وودواوزی په شان اوخوګ وو. داسمان نه به دشپې اوریده. او﴿وَالسَّلْوَىٰ﴾ مرزان دی بناپه مشهورقول باندې

وَإِذْ قِيلَ لَهُمُ اسْكُنُوا هَٰذِهِ الْقَرْيَةَ وَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ

اوکله چه وه ویلې شو دویٔ ته او سیریٔ په دې کلی کښې . او خوریٔ پدې کښې چه کوم ځای کښې مو خوښه وی

وَقُولُوا حِطَّةٌ وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطِيئَاتِكُمْ ۚ

او وایئ چه مونږ ته بښنه وکړه او داخل شئ دروازې ته سجده کونکی. معاف به کړو مونږ تاسو ته ګناهونه ستاسو

سَنَزِيدُ الْمُحْسِنِينَ ﴿١٦١﴾ فَبَدَّلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ

خامخا به زیات ثواب ورکوو احسان کوونکو ته　پس بدل کړو هغه کسانو چه ظلم ئې کړې وؤ د دویٔ نه.

قَوْلًا غَيْرَ الَّذِي قِيلَ لَهُمْ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِجْزًا مِّنَ السَّمَاءِ

بل قول غیر دهغې نه چه ویلې شوې وؤ دویٔ ته . پس را ولیږلو مونږ په دویٔ باندې سخت عذاب د آسمان نه.

بِمَا كَانُوا يَظْلِمُونَ ﴿١٦٢﴾

په سبب د دې چه دویٔ ظلم کولو

﴿وَإِذْ قِيلَ لَهُمُ اسْكُنُوا﴾ دانعاماتو دذکرنه بعد دبنی اسرائیلو دسرکشئ اوکجرویٔ ذکردي دحضرت موسی علیه السلام دوفات نه بعد حضرت یوشع علیه السلام جانشین شو. اودده په قیادت کښې بنی اسرائیلوملک شام فتح کړو. الله تعالی ورته حکم اوکړو چه بیت المقدس ته لاړشئ اوهلته خما عبادت کویٔ. دباب نه د ، مسجدبیت المقدس، دروازه مراد ده اودښار دروازه نه ده مراد. نو دویٔ چه هلته لاړل نوتمسخریٔ شروع کړو نوعذاب پرې راغلو باقی قصه په سورة بقره کښې تیره شوې ده صرف دالفاظو اودتقدیم تاخیر دبعض کلماتوفرق دې لیکن دامخالفت نه دې

وَسْئَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ ۘ إِذْ يَعْدُونَ

او تپوس وکړه د دویٔ نه د حال دهغه کلی نه چه وؤ په غاړه د دریاب، کله چه دویٔ تجاوز کولو د حد شرعی نه

فِي السَّبْتِ اِذْ تَاْتِيْهِمْ حِيْتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا

په ورځ د خالي كښې كله چه راتلل به دوئ ته مهيان (كبان) د دوئ په ورځ د خالي ښكاره په سر د اوبو

وَّيَوْمَ لَا يَسْبِتُوْنَ لَا تَاْتِيْهِمْ كَذٰلِكَ نَبْلُوْهُمْ

او كله به چه ورځ د خالي نه وه په دوئ. نو نه به راتلل دوئ ته. دغسې. ازميښت كوؤ مونږ په دوئ باندې

بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ

په سبب د دې چه دوئ نافرماني كوله

﴿ وَسْـَٔلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ ﴾ دقصوپه اختتام باندې تخويف دنيوى ذكركيږى اودهغې نمونه بيانيږى.داواقعه په زمانه دداؤد عليه السلام كښې راغليده د «قريه» نه مراد «ايله» شهردې چه اوس هغې ته . . عقبهٔ داؤد عليه السلام وئيلې شى. چه دبحرقلزم په غاړه دمدين اوطور. په مينځ كښې واقع وو. چونكه دابنار ددرياب په غاړه وو. نواوسيدونكوئ دښكار ډيرعادت لرلو. دالله تعالى دطرفه په دوئ ابتلاء امتحان اوشو. په دې شان چه دخالي(هفته) ورځ دموسى عليه السلام په ملت كښې دتعظيم ورځ وه په دې ورځ كښې ښكاركول منع وو ليكن ددوئ دامتحان دپاره به په دې ورځ به داسې ډيرمهيان موجودوو چه داوبوپه سربه ځرګندګرځيدل اوپه نوروورځوكښې به غائب وو. نوښكاريانوچه به اوليدل نوصبرترينه اونه شو اودالله تعالى دصريح حكم خلاف كول ئ په حيلوسره شروع كړو اودرياب په غاړه ئ ډنډونه جوړكړل نوكله چه به دخالي په ورځ مهيان په دغه ډنډونوكښې داخل شو نودوئ به ورته دوتلولارى بندې كړې. اوپه بله ورځ يعنى داتوارپه ورځ به ئ نيول وئيل به ئ چه په دې باندې «صيديوم السبت» صادق نه راځى.نوګوياكښې دوئ الله تعالى ته دهوكه وركوله نوعذاب الهى پرې واقع شو

**فايده** مطلق حيلوته حرام وئيل صحيح نه دى جهمورعلماء وائ چه حيلى درې قسمه دى **يوقسم** حرام دى داهغه دى چه مقصودترينه ابطال دحق وى يااثبات دباطل وى ياترينه مقصود حاصلول دحراموى لكه په دې قصه داصحاب السبت كښې يالكه په حديث كښې دى چه په بنى اسرائيلو باندې شحوم (وازدې) حرامې شوې نودوئ حيلى اوكړې ((فجملوها وباعوها)) نوپه دې سره دوئ متسحق دلعنت شو. **دويم قسم** حيلى هغه دى چه ضرورى اوواجب دى داهغه دى چه مقصودترينه اثبات دحق ياابطال دباطل يااجتناب دحرامونه وى لكه په حديث دبلال رضى

الله عنه كښې چه نبي صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ((بع الجمع بالدراهم ثم ابتع بالدراهم الجنيب- الخ)) رواه البخاري وغيره. **دريم قسم** حيلې هغه دي چه مباح يامستحب دي چه مقصود

زينه تسهيل وي په احكاموشرعيو كښې لكه ﴿ وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا فَاضْرِب بِّهِ ﴾ بالكه چه نبي صلى الله عليه وسلم دزاني ضعيف دحد دپاره حيله كړې وه. (كمافي السنن) وفقهاؤ احنافو چه كومې حيلې ذكركړيدي نوهغه دواجب يامباح يامستحب دقبيلې نه دي اودناجائزوحيلو دجواز حكم فقهاؤ نه دي كړې البته دنفاذحكم ئې كړيدې اوفرق دې په مابين دجواز اودنفاذ كښې.

﴿شُرَّعًا﴾ دا جمع تكسيردشارع ده يعنى ځرګندپه سرداوبو

﴿وَيَوْمَ لَا يَسْبِتُونَ ﴾ اوهغه ورځ چه دوئ داخل في السبت نه وويعنى په غيردورځې د خالي ﴿لَا تَأْتِيهِمْ كَذَٰلِكَ ﴾ لفظ د ((كذلك)) دماقبل سره متعلق دې يعنى نه به راتلل دغه شان ځرګندبلكه غائب به وو، نووقف په ((كذلك)) باندې دې اوداهم احتمال دې چه وقف په ((لاتاتيهم)) باندې شي او ((كذلك)) د مابعد سره متعلق شي. ((اى كذلك نبلوهم)) دغه شان مونږ په دوئ ازميښت اوكړو

**فائده** په كوم ځائ كښې چه وقف په مخكښې لفظ اوروستنى لفظ دواړوباندې كيدې شي لكه په دې ځائ كښې نوهغې ته معانقه وئيلې شي،اودبعض قراء ويناده چه دقرآن مجيد په نصف اول كښې وقف په دويم ځائ باندې اولى دې اوپه نصف اخيركښې وقف په اول ځائ اولى دې. داقول صحيح دې

وَإِذْ قَالَتْ أُمَّةٌ مِّنْهُمْ لِمَ تَعِظُونَ قَوْمًا اللَّهُ مُهْلِكُهُمْ

اوكوه وخت چه وه ويل بوې ډلې ددوئ نه . ولې وعظ كوئ تاسو داسې قوم ته چه الله تعالى هلاك كوونكى دې هغوئ لره

أَوْ مُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا ۖ قَالُوا مَعْذِرَةً إِلَىٰ رَبِّكُمْ وَلَعَلَّهُمْ

يا ورله عذاب وركوونكي دې سخت عذاب. وه ويل هغوئ لپاره د عذر پيش كولو ستاسو رب ته او أميد دې

يَتَّقُونَ ﴿١٦٤﴾ فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ

چه دوئ بچ شي د دې ګناه نه پس هركله چه دوئ هيركړو هغه چه دوئ ته نصيحت وركړې شوې وو په هغې سره

أَنجَيْنَا الَّذِينَ يَنْهَوْنَ عَنِ السُّوٓءِ وَأَخَذْنَا الَّذِينَ ظَلَمُوا

نو بچ کړل مونږ هغه کسان چه منع ئې کوله د بدئ نه او ونیول مونږ هغه کسان چه ظلم ئې کړی وو.

بِعَذَابٍ بَئِيسٍ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ﴿١٦٥﴾ فَلَمَّا عَتَوْا عَن مَّا نُهُوا

په عذاب سخت سره په سبب ددې چه دوئ نافرمانی کوله. پس هرکله چه دوئ نافرمانی وکړه دهغه نه چه دوئ منع سوی وو

عَنْهُ قُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِينَ ﴿١٦٦﴾

د هغې نه. وه وئیل مونږ دوئ ته چه شئ تاسو شادوګان. ذلیل

﴿وَإِذْ قَالَتْ أُمَّةٌ مِّنْهُمْ﴾ قرطبی اونورمفسرین وائی چه بنی اسرائیل درې فرقې شو. یوه فرقه عاصیه. دویمه ناهیه چه دوئ ئې دګناه نه منع کول. دریمه فرقه ساکته وه. لیکن حضرت مولانا عثمانی رحمه الله فرمائی چه داسې معلومیږی چه دوئ څلورفرقې وو. (۱)یوهغه خلق چه دحکم الهی صریح مخالفت ئې کوو(۲) دویم هغه خلق وو چه په نصیحت کولواونهی عن المنکر کښې تر آخره پورې مشغول وو. (۳) دریم هغه خلق وو چه نصیحت اوتبلیغ ئې یوڅوورځې اوکړو خوبیامایوس شو اوستړی شو اوتبلیغ ئې بس کړو(۴) څلورم هغه خلق وو چه ساکتین وو چه نه په بدعملئ کښې شریک وو اونه ئې نهی عن المنکر کوله نودې رستنو ډلو. هغه دریمې ډلې ته یعنی نصیحت کونکوته اووئیل چه ددغه نافرمانو نه دحق دقبلولو امیدنشته دې نوتاسو ولې دوئ ته په نصیحت کولوسره خپل سرونه خوګوی. مغزان دَردَوئ دَدُوئ دکرداراوعادت نه خوداسې معلومیږی چه یاخوالله تعالی دوئ لره بیخی تباه اوهلاکوی یاورته ډیرسخت عذاب ورکوی. ﴿قَالُوا مَعْذِرَةً﴾ دامفعول له دې یامفعول مطلق دې ((ای نعتذر معذرة)) یعنی مونږ خپل عذراوصفائ دالله تعالی په بارګاه کښې پیش کوؤ چه مونږ په عمل دتبلیغ کښې قصور اوکوتاهی نه ده کړې. اوددې نه بعض علماء استدلال کړیدې چه نهی عن المنکرفرض ده اګرکه مبلغ ته علم وی چه په دې موقعه نهی عن المنکر. فائده نه کوی. جمهورعلماء وائی چه نهی عن المنکرچه چرته یقیناً مفیده نه وی نونصیحت کول واجب نه دې خو..عالی همتی..ده اوعزیمت دې اوترک ئې رُخصت دې. البته که چرې نصیحت کول بالکل عبث وو یاترینه توهین ددین راتلو نوبیاواجب الترک دې. دلته کښې هم یوه فرق مایوسه شویده نوعمل ئې په رخصت کړیدې اونصیحت ئې ترک کړیدې اوبله فرقه نه ده مایوسه شوې

باىٔ عمل په عزيمت کريدې نونصيحت اوتبليغ ئ جارى ساتلې دې ﴿وَلَعَلَّهُمْ﴾ دادويم جواب دې، نومصلحينومبلغينودوه جوابونه ورکړل. اول داچه په مرتکبينو دګناه باندې اتمام حجت اوشي اوزمونږ معذرت اوصفاىٔ دالله تعالى په بارګاه کښې پيښى شي. اودويم داچه کيدې شي دوئ نصيحت قبول کړى نومعلومه شوه چه دوئ بالکل مايوس نه وو. ﴿فَلَمَّا نَسُوا﴾ هرکله چه مجرمانو نصيحت دناصحينو داسې پريخودلکه چه هيرشوې وى ترينه ياىٔ بالکل آوريدلې نه وى نوالله تعالى دوئ لره هلاک کړل..اونصيحت کونکى ئ بچ کړل. ﴿أَنجَيْنَا الَّذِينَ يَنْهَوْنَ عَنِ السُّوءِ﴾ دالفاظو عموم په دې دلالت کوى چه هغه کسان چه اول ئ نصيحت کولواوبيامايوس شول نصيحت کول ئ پريخودل اوهغه کسان چه سلسله دنصيحت ئ جارى لرله دادواړه دلى نجات والادى اوهلاک شوى صرف ظالمان دى چه دالله تعالى نافرمانى ئ کوله لکه دامنقوله ده ، دحضرت عکرمه رضى الله عنه نه چه ابن عباس رضى الله عنه دده دفهم تحسين کريدې اوانعام ئ ورته ورکړې دې لکه حضرت عکرمه فرماىٔ چه ابن عباس رضى الله عنه اوفرمائيل چه ((اسمع الله يقول))يعنى الله تعالى فرمائى ﴿أَنجَيْنَا الَّذِينَ يَنْهَوْنَ﴾ . ﴿وَأَخَذْنَا الَّذِينَ ظَلَمُوا﴾ ، ((فلا ادرى مافعلت الفرقة الساكتة وجعل يبكى)) نوعکرمه فرمائى چه ما اووئيل چه ((جعلنى الله فداک)) لتانه قربان شم، ته نه ګورى چه دوئ بدګنړلې وو هغه عمل چه هغوئ کوو. ﴿وَإِذْ قَالَتْ أُمَّةٌ مِّنْهُمْ لِمَ تَعِظُونَ قَوْمًا اللَّهُ مُهْلِكُهُمْ﴾ ((ولم يقل الله انجيتهم لم يقل اهلکتهم قال فاعجبه قولى ورضى به وامرلى ببردين فالبسنيهما)) ، باقى هغه کسان چه پرله پسى ترآخره پورې ساکته پاتى وو نوالله تعالى هم ددوئ دذکرنه سکوت کړيدې ابن کثيرليکى((فنص)) چه الله تعالى تصريح اوفرمائيله په نجات دنصيحت کونکو اوپه عذاب دمعذبينو ظالمانو، اوسکوت ئ اوفرمائيلو دحال دهغه کسانو نه چه سکوت ئ کړې وو دوعظ نه ځکه چه سزادهرګناه مناسب دحال دګناه سره وى نودوئ نه مستحق دمدح وو چه مدحه ئ اوکړې شى او نه په ګناه کښې شامل وو چه مذمت ئ بيان شى، اوکه څوک **سوال** اوکړى چه ترک دوعظ هم معصيت دې نودوئ په کښې داخل دى، **نوجواب** دادې چه ترک دوعظ هله معصيت دې چه هيڅ څوک وعظ کولو والاموجودنه وى اودلته دارنګه نه ده.

﴿فَلَمَّا عَتَوْا﴾ (عَتَوْا) نافرمانئې سرکشئ انکارته وئيلې شى يعنى هرکله چه دوئ نافرمانى اوانکاراوکړو دترک دهغه کارنه چه دوئ ترينه منع کړې شوې وو نوپه دوئ عذاب راغلو مسخ شو، **په دې آيت کښې دوه توجيه دى** يوه داچه په دوئ باندې اولاً عذاب بئيس يعنى سخت

عذاب راغلي وو اودوئ ترينه عبرت نه وواخستي اودګناه نه نوؤ منع شوی نودوباره په دوئ باندي عذاب دمسخ راغي، **دويمه توجيه** داده چه په دوئ باندي يوعذاب راغليدي يعنى عذاب دمسخ او﴿ فَلَمَّا عَتَوْا ﴾ تفسيردي، د﴿ فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا ﴾ دپاره، روايت دي چه يهوديانوته امراوشو چه ورځ دجمعي دعبادت دپاره غوره کړئ، نودوئ ورځ دخالی (هفته) غوره کړه نوازميښت پري اوشو، چه الله تعالى په دوئ باندي حرام کړو ښکار کول په دي ورځ باندي اودوئ ته امراوشو دتعظيم ددي ورځي، پس مهيان به په ورځ دخالی باندي څرګند راتلل نوددوئ صبراونشو او د ابليس په مشوره ئې حيلي کول شروع کړل، نورو مصلحينو دوئ منع کول ليکن دوئ منع نه شو، نوهغوئ ترينه جدائ اوعليحدګی اختيارکړه اوپه مينځ کښي ديوال جوړکړو، استوګنه، خوراک، سکاک، هرڅه ئ ترينه جداکړه، اودواؤ عليه السلام به دي نافرمانو باندي لعنت اووايو يوه ورځ چه دا خلق باهرته رانه غلل نومصلحينو چه ددوئ کورونومکانونوته سرونه ښکاره کړل نوددوئ نه شادوګان (بيزوګان) اوخنزيران جوړشوی وو، نوچه دروازي ئ بيرته کړي ورداخل شو ، نودغه قردو اوخنازيرو به داخپلوان پيژندل اوراتلل به ددوئ په خپوکښي به پريواته اوجړل به ئ ، نودوئ به وئيل چه آيامونږ تاسونه وئ منع کړی، نوهغوئ به دسرپه اشاري سره وئيل چه هو، اوبعض وائ چه ځوانان شادوګان شوی وو اوبوډاګان خنزيران شوی وو، اواختلاف کړي شويدي چه آيا ، دامسخ شوی باقی پاتي شوی وو اوموجوده قرده، ددوئ نسل دي ياهلاک شوی دی اونسل ئ منقطع شويدي، په آيت کښي دلالت په هيڅ نشته (والتحقيق هوالثانی) روايت دي د حسن رحمه الله نه چه دي بنی اسرائيلو (په دي حيلو سره) داسي نوړئ اوخوړله چه ډيرناقابل هضم، مضرصحت وه اوډيردروند تاوان والاوه په دنياکښي اوډيرطويل عذاب والاوه په آخرت کښي ، اودجابررضی الله عنه نه روايت دي چه په مابين دبنده اودرزق دده کښي حجاب وی (چه دهغي په وجه رزق په نظرنه راځی) نوکه دابنده صبراوکړی نودارزق راوځی، دده طرف ته اوکه صبراونه کړی نوحجاب څيري شی اونه رسيږی بنده ته مګرهغه چه دده دپاره مقدروی(سراج المنير).

| عَلَيْهِمْ | لَيَبْعَثَنَّ | رَبُّكَ | تَاَذَّنَ | وَ اِذْ |
|---|---|---|---|---|

اويادکړه هغه وخت[1] کله چه خبر کړل رب ستا بنی اسرائيل، خامخا به راليږی (مسلط کوی به) په دوئ باندي

---

۱ - تخويف دنيوی.

إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَن يَسُومُهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ ۗ إِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيعُ الْعِقَابِ

تر ورځې د قيامت پورې هغه څوك چه رسوي به دوئ ته سخت عذاب. بېشكه رب ستا خامخا زر عذاب وركوونكي دي.

وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٦٧﴾ وَقَطَّعْنَاهُمْ فِي الْأَرْضِ أُمَمًا

او بېشكه دې خامخا بښونكې. ډېر مهربان دې او ټس نس كړل مونږ دوئ لره په زمكه كښې مختلفې ډلې.

مِّنْهُمُ الصَّالِحُونَ وَمِنْهُمْ دُونَ ذَٰلِكَ ۖ وَبَلَوْنَاهُم بِالْحَسَنَاتِ

بعضې د دوئ نه نيكان دي او بعضې د دوئ نه سوئ د دينه دي. او ازميښت كړې وو مونږ په دوئ په خوشحالو

وَالسَّيِّئَاتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿١٦٨﴾

او تكليفونو سره د دې لپاره چه دوئ را وګرځي د نافرمانۍ نه

﴿ وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكَ ﴾ داتخويف دنيوى دې، ((تَاذن)) په معنى د ((اَعْلَم)) سره دې. يعنى اعلان اوكړو، او دا كلمه جاري ده په مجرى دقسم اوددې وجې نه ئې په جواب كښې لام مؤطنه للقسم اونون تاكيدثقيله راغليدې ،يعنى دالله تعالى دطرفه په ذريعه دانبياؤ سره دا اعلان شوې وو چه كله چرې دايهودپه تورات عمل پرېږدى اوحيلې شروع كړى نوالله تعالى به دقيامت پورې وقتاً فوقتاً په دوئ باندې داسې خلق مسلط كوى چه دوئ به په سخت عذابونو كښې مبتلاء كوى نو كچرې دوئ دَ سركشئ نه واپس نشى نوالله تعالى سريع العقاب دې، او كه واپس شى نو هغه غفور الرحيم دې معاف به ئې كړى، سخت عذابونونه مرادمحكومانه ژوند ، جزيه وغيره مراددى، لكه مسلط شوى وو پدوئ كله يونانى، كشدانيين، بياكلدانيين بيانصارى بياامت دمحمد صلى الله عليه وسلم اوبه آخركښې به پرې عيسى عليه السلام مقررشى، د١٩٤٨ء نه دوئ ته په ظاهركښې څه آزادى ملاؤشويده، ليكن دانه ددوئ استقلالى حكومت دې اونه قوت دې بلكه داداسلام دُشمن دعناصرو، داسلام خلاف دسازش په نتيجه كښې يوه چهاؤنى ده، چه په ظاهرصورت كښې پرې يهود قابض دى اوبه دننه كښې، نصارى وغيره دى، دحقائقو نه باخرخلق په دې حقيقت خه پوهيږى ﴿وَقَطَّعْنَاهُمْ﴾ داهم تخويف دنيوى دې چه ديهوديانو دسركشئ په وجه ددوئ اجتماعيت ختم شو اوقوت اوشوكت ئې پاتى نه شو اومختلف مذاهب په دې كښې پيداشول، «دااحوال امتِ محمدى ته دعبرت حاصلولودپاره اوروليې شى» ليكن ددې

باوجودخني کسان په دوئ کښې نيکان وو اواکثر فاسقان سرکش وو اودغه اکثرو دپاره هم الله تعالى. درجوع اوانابت الى الله مواقع پيدا کړى دى چه کله ئ پرې انعامات کړيدى اوکله ئ په سختو اوتکليفونوکښې مبتلاء کړى دى، ددې دپاره چه دانعاماتو اواحسناناتو شکريه اداکړى اودتکاليفو اومصيبتونو نه او يريږى الله تعالى طرف ته رجوع اوکړى

| |
|---|
| فَخَلَفَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ خَلۡفٌ وَّرِثُوا الۡكِتٰبَ يَاۡخُذُوۡنَ عَرَضَ هٰذَا الۡاَدۡنٰى |
| پس د دوئ نه روستو راغلل نا اهل نائبان وارثان شو د کتاب (تورات) اخلى سامان د دې ادنى زندگانئ |
| وَيَقُوۡلُوۡنَ سَيُغۡفَرُ لَنَا ۚ وَاِنۡ يَّاۡتِهِمۡ عَرَضٌ مِّثۡلُهٗ يَاۡخُذُوۡهُ ؕ |
| او وائى دوئ [1] خامخا به بخښنه کولې شى مونږ ته، اوکه بيا راشى دوئ ته سامان دغسې (حرام) نور، نو هغه هم اخلى. |
| اَلَمۡ يُؤۡخَذۡ عَلَيۡهِمۡ مِّيۡثَاقُ الۡكِتٰبِ اَنۡ لَّا يَقُوۡلُوۡا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الۡحَقَّ |
| آيا ندې اغستې شوې [2] د دوئ نه کلکه وعده په کتاب کښې چه نه به وائى په الله تعالى باندې مگر حق. |
| وَدَرَسُوۡا مَا فِيۡهِ ؕ وَالدَّارُ الۡاٰخِرَةُ خَيۡرٌ لِّلَّذِيۡنَ |
| او لوستلى دى دوئ هغه حکمونه چه پدې کتاب کښې دى، او کور د آخرت (جنت) غوره دې هغه خلقو لره |
| يَتَّقُوۡنَ ؕ اَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ ۝ وَالَّذِيۡنَ يُمَسِّكُوۡنَ بِالۡكِتٰبِ |
| چه ځان بچ کوى د نافرمانى نه، آيا پس عقل نه لرئ تاسې. اوهغه کسان چه منگولې لگوى په کتاب د الله تعالى (عمل برې کوى) |
| وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ؕ اِنَّا لَا نُضِيۡعُ اَجۡرَ الۡمُصۡلِحِيۡنَ ۝ وَ اِذۡ نَتَقۡنَا الۡجَبَلَ |
| او پابندى کوى د مانځه، بيشکه مونږ نه برباد کوو ثواب د نيکئ کوونکو. اوکله چه پورته کړو مونږ غر، [3] |
| فَوۡقَهُمۡ كَاَنَّهٗ ظُلَّةٌ وَّظَنُّوۡۤا اَنَّهٗ وَاقِعٌۢ بِهِمۡ ۚ خُذُوۡا |
| دپاسه د دوئ نه، گويا کښې لکه دا چترئ وه اويقين وکړو دوئ چه دا راپرې وتونکې دې پدوئ، وه وئيل مونږ وه نيسئ |

۱ - د يهوديانو يوه مقوله او د هغې ترديد.

۲ - وجه اوله د ترديد

۳ - ترديد په وجه ثانى سره.

مَآ اٰتَیْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّاذْكُرُوْا مَا فِیْهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۱۷۱﴾

هغه کتاب چه درکړ یدي مونږ تاسو ته په کوښښ سره او یادوئ هغه څه چه بدي کښي دی ددي لپاره چه تاسو متقیان شئ

﴿ فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ ﴾ داپه آخر کښې دیهودیانو دیوباطلې مقولې تر دید دې خلف په سکون دلام سره نااهل نائب ته ونیلې شي اوپه فتح دلام خلف، سره صحیح نائب ته ونیلې شي. لکه سلف، چه صحیح پیشوا مقتدی ته ونیلې شي. مطلب دادې چه ددوئ په رومبنو پلرونو. نیکونوکښې څه صالحین هم وو. خوددوئ روستنی اولادخوخات. داسې نااهل نائبان شو چه هغوئ دکتاب تورات، وارثان او حاملان اوګرځیدل، لیکن ددنیادلګ اومعمولې سامان. منفعت دپاره ئې په آیاتوکښې تحریف اوکتمان شروع کړو. رشوتونه، نذرونه اخستل ئې شروع کړل، اودتعجب خبره داده چه دوئ داقبیح اورزیل حرکتونه دخپل ځان دپاره جائزاوقابل مغفرت ګنړل اوونیل به ئې چه مونږ دالله تعالی اولاد، اومحبوبان یو،نومونږ ته هیڅ خطره اوضررنشته،﴿ سَیُغْفَرُ لَنَا ﴾ خامخابه مونږ ته مغفرت کیږي.﴿ وَاِنْ یَّاْتِهِمْ عَرَضٌ مِّثْلُهٗ ﴾ اوکه چرې راشي دوئ ته دغسې مال حرام نورنوهغه هم اخلې. یعني په تیروناجائزوحرکاتوئ ندامت نشته او داسې عزم ئې نشته چه آئنده دپاره به داسې قبیح ،رزیل حرکتونه نه کوؤ

﴿ اَلَمْ یُؤْخَذْ عَلَیْهِمْ ﴾ دیهودو ددغه مذکورقول ردپه څلوروجوهاتو سره کیږي اودااوله وجه ده ﴿ مِّیْثَاقُ الْكِتٰبِ ﴾ اضافت د ، ،میثاق، ، کتاب ته بمعنی ، ،فی، ،دې کتاب نه مرادتورات دې. ﴿ اَنْ لَّا یَقُوْلُوْا ﴾ بدل دې دمیثاق نه یاتفسیردې، ﴿ اِلَّا الْحَقَّ ﴾ دقطعی مغفرت حکم. سره دارتکاب دمعصیت نه ، ناحق دې اوددوئ نه په تورات کښې وعده اخستې شوې وه چه په الله تعالی باندې ناحقه مه وایئ﴿ وَدَرَسُوْا مَا فِیْهِ ﴾په دې کښې دفع ددې توهم ده چه کیدې شی چه دوئ ته عهدمعلوم نه وی، پوهه شوی نه وی، یعني ددوئ نه عهداخستې شوې وو. اودوئ ته معلوم وو لوستلې او درس کړې ئې وو، اوددې باوجودئ، دیده ودانسته. . غلط. دروغ. الله تعالی ته منسوب کول. ﴿ وَالدَّارُ الْاٰخِرَةُ ﴾ یعني که دوئ تقوی اختیارکړې وې اوددنیافانی، عرضی لذاتو ته ئې ترجیح نه وې ورکړې نودابه ډیره غوره وې .خوداکارهغه څوک کوی چه دعقل نه کارآخلی، اودوهم، اودخواهشاتو دنفس مطابق نه وی روان. ﴿ وَالَّذِیْنَ یُمَسِّكُوْنَ ﴾ دابشارت دې هغه یهودیانوته چه په خپل عهدقائم وو. یعني په یهودوکښې چه کوم خلق په

خيل كتاب تورات باندي، منګولې لګوی. يعنى اعتقاد اوعمل ئ دتورات موافق دي چه دهغې سره ايمان په رسول الله صلى الله عليه وسلم ضروری دې نودغه خلق مصلحين دی نوددوئ اجرنه ضائع كيږی بلكه دوئ ته به دوچنده اجرملاويږی ﴿وَاِذۡ نَتَقۡنَا الۡجَبَلَ﴾ دادغه مقولې دترديددپاره وجه ثانى ده، حاصل داچه كه چرې ستاسو مغفرت خامخاويقينى وې نوولې ستاسو په مشرانوباندې، غرپورته كړې شو،، روايت دې چه كله بنى اسرائيلو دتورات داحكامو منلونه اعراض اوكړو نوپه دوئ باندې كوه طور راپورته كړې شو اودوئ ته اووئيلې شو كه دااحكامات نه منئې نوداغردرباندې راپريوځى اودلاندې نه چقيګئ.نودوئ مجبوره شو منلوته .اوجبرپه دين كښې اګركه نشته دې ليكن داجبر په اصولوكښې نه دې بلكه په فروعوكښې دې. داجائزدې، لكه داعام دستوردې چه څوك چه دچاحكومت تسليم كړى نوددغه حكومت دقواعدو اوضوابطو پابندئ ورته ضروری وی، ﴿كَاَنَّهٗ ظُلَّةٌ﴾ ددينه صريح معلوميږی چه غريه دوئ باندې په حقيقت كښې حسًا پورته كړې شوې وو، ﴿ظُلَّةٌ﴾ ((كل مااظلك)) ته وائ يعنى هرهغه څيزچه په تاباندې سُورې كوی، څپر، چت، چترئ ، وريځ. او ((نتق)) دويځ راؤباسلوته وائ دلته ترينه مرادپورته كول دی په دليل د((فوقهم)) او ((ظلة)) سره

وَاِذۡ اَخَذَ رَبُّكَ مِنۡۢ بَنِىۡۤ اٰدَمَ مِنۡ ظُهُوۡرِهِمۡ ذُرِّيَّتَهُمۡ وَاَشۡهَدَهُمۡ

اوكله چه راوباسل رب ستا [1] د بنى آدمونه يعني د شاه ګانو د دوئ نه اولاد د دوئ اوګواهان ئې كړل دوئ

عَلٰٓى اَنۡفُسِهِمۡ‌ۚ اَلَسۡتُ بِرَبِّكُمۡ‌ؕ قَالُوۡا بَلٰى‌ۛۚ شَهِدۡنَا‌ۛۚ

په نفسونو د دوئ ، آيا نه يم زه رب ستاسې؟ وه وئيل دوئ چه ولې نه ئې ګواهى كوو مونږ.

اَنۡ تَقُوۡلُوۡا يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ اِنَّا كُنَّا عَنۡ هٰذَا غٰفِلِيۡنَۙ

دا وعده د دې لپاره ده چه بيا تاسو ونه وائې په ورځ د قيامت چه بيشكه وو مونږ د دې توحيد نه بې خبره

اَوۡ تَقُوۡلُوۡۤا اِنَّمَاۤ اَشۡرَكَ اٰبَآؤُنَا مِنۡ قَبۡلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِّنۡۢ بَعۡدِهِمۡ‌ۚ

يادا سې ونه وائې چه بيشكه شرك كړې وو پلارانو.نيكونو زمونږ.مخكښې زمونږنه اووو مونږ اولاد روستو د هغوئ نه،

---

[1] - ترديد په وجه ثالث سره

أَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُونَ ۝ وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ

نو آيا پس هلاكوې ته مونږ په هغه كار چه كړي وو بدكارانو     او دغه شان مونږ په تفصيل سره بيانوو آيتونه.

وَلَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ۝

او د دې لپاره چه دوئ را وګرځي د كفرنه

﴿وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ﴾ دا د يهودو د دغه قول درد د پاره دريمه توجيه ده (أخذ) په معنى د (اخرج) سره دې، ليكن ذكرشو (أخذ) د پاره د تنبيه په اهتمام شان د ماخوذ خكه . اخذ.. يعنى اخستل د هغه شئ كيږي چه خوخ كړې شوې اوپسند كړې شوې وي، يعنى بنى ادم مهتم بالشان او غوره مخلوق وو، عندالله. او﴿مِن ظُهُورِهِمْ﴾ بدل دې د﴿بَنِي آدَمَ﴾ نه.﴿وَأَشْهَدَهُمْ﴾ او ګواهان ئ كړل هر يو د دغه اولادنه په خپل خان باندې، يعنى اقرار د ربوبيت خپل ئ ترينه واخستلو عقل ئ ورته وركړو، او سوال ئ ترينه اوكړو چه ﴿أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ﴾ نو دوئ جواب وركړو، ﴿قَالُوا بَلَىٰ﴾ چه بيشكه ته زمونږ رب ئ﴿شَهِدْنَا﴾ مونږ اقراركوو ستا د ربوبيت ،چه صرف ته رب ئ ((لارب لناغيرک)) ﴿أَن تَقُولُوا﴾ دامفعول له دې د فعل مقدر د پاره چه فهميږي د ماقبل نه، چه ((اخذنا منكم الاقرار لئلا تقولوا)) يعنى دا قرار او شهادت خكه واخسته چه بيا تاسو د توحيد د ترک او د اختيار د شرک د پاره داسې اونه وايئ چه ﴿إِنَّا كُنَّا﴾ مونږ خود توحيد نه بالكل بې خبره وو، يا داسې اونه وايئ، په عذر كښې چه زمونږ آباؤ شرک كړې وو، او مونږ ذريت، ناپوهه بچي وو بل خوک مربى زمونږ نه وو، او څه لار راته معلومه نه وه چه په هغې روان شوې وې، نو اصل مجرمان دغه مشران وو.﴿أَفَتُهْلِكُنَا﴾ آيا؟ ته مونږ ته عذاب راكوې په جرم د هغوئ سره ،نو د دې وعدې او اقرار اغستلو په وجه عذرختم شو، خكه چه په ازل كښې الله تعالى د هرچانه په مستقل طورباندې وعده اقرار اخستې دې، پلرونو، اولادونو نه، هريو يو ته ئ د عقل اوپوهې وركولو نه پس، اقرار وعده اخستې ده.

**فايده** په دې آيت كښې دوعدې ازلي ذكر دې يعنى هغه وعده او اقرار د توحيد او د ربوبيت دالله تعالى چه د انسانانو نه اخستې شوې وو، د دې موجوده نظام عالم. او دَ دې عالم مشاهده وجودنه قبل چه هغې ته عالم ارواح وئيلې شي.

**دلته يو څو امورقابل تحقيق دي.** (۱) د دې آيت په تفسير كښې ډيرا حاديث راغليدى منجمله

دهغې نه حديث مرفوع دابن عباس رضى الله عنه دې چه روايت ئ كړيدې، احمد،نساى، اوحاكم ورته صحيح ونيلى دى، اوغيرهم. ((عن ابن عباس رضى الله عنه انه عليه السلام قال اخذالله الميثاق فاخرج من صلبه كل ذرية ذراها فنثرها بين يديه، كالذرثم كلمهم قُبلاً قال الست بربكم قالوابلى)). اودغه شان روايت دحضرت عمررضى الله عنه نه مرفوعاً مروى دې اودارنګه دحضرت ابوهريره رضى الله عنه مروي دې مرفوعاً، دټولورواياتوحاصل دادې چه دحضرت آدم عليه السلام دشانه دهغه ټول اولادپه شكل دنروميږو كښې راؤيستلې شو اودالله تعالى دربوبيت اقرارترينه واخستې شو. نودلته **سوال** وارديګى چه دا حديث خودددې آيت نه مخالف دې، خكه چه دآيت معنى داده چه دبنى آدم نه دهغوئ اولادونه راؤيستلې شو اودحديث نه معلومه شوه چه دحضرت آدم عليه السلام دشا، نه اولاددهغه راؤيستلې شو، **جواب** دادې، چه دآيت نه دا معلوميږى دبنى آدمونه دهغوئ اولادراويستلې شويدې اودحديث نه چه دا معلوميږى چه دآدم عليه السلام نه دهغه اولادراويستلې شويدى نوددې دواړو په مابين كښ څه مخالفت خونشته بلكه دواړه مراددى خوپه حديث كښ ديوصورت ذكردې اوپه آيت كښې ديوصورت ذكرصراحةً دې اوبل صورة ضمنًا معلوميږى خكه بنى آدم په شا دآدم عليه السلام كښې وو، نودبنى آدم نه اخراج سره لازم دې اخراج دآدم عليه السلام نه لكه چه دراهم په تهيلئې كښې وى اوتهيلئې په صندوق كښې وى،نودراهم دتهيلئې نه راويستل،، ددى سره لازم دې راويستل دتهيلئې دصندوق نه لكه داظاهره ده، نوپه حديث كښې ددې صورت ذكرصراحةً شويدې چه دآيت نه ضمنًا معلوميدلو، نودآيت مطلب داشو چه دآدم عليه السلام نه دهغه صلبى اولادراؤيستلې شولكه،هابيل ، قابيل، اوددوئ نه بياددوئ اولاد ، دغه شان داسلسله، الى يوم القيمة پيداكيدونكى ټول په عالم ارواح كښې پيداشو

(۲) دآدم عليه السلام نه اودبنى آدمونه ذريت ددوئ نه په كوم ځاى كښې اوكله رااويستلې شو؟ **جواب** بعض واى چه په عالم ارواح كښې، لكه دامشهور اوراجح قول دې اوعندالبعض دآدم عليه السلام ،دجنت نه دنياته دراليګلو نه بعد ، اوبعض واى چه په عرفات كښې په وادى نعمان كښې، لكه په حديث دابن عباس رضى الله عنه كښې دى ((قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اخذالله الميثاق بنعمان يعنى عرفة))، (مشكوة)

(۳) راويستل په څه كيفيت سره وو؟ بعض واى چه په ظَهر (ملا) كښې سورې اوشو، نودهغې نه را اويستلې شو، بعض واى چه دسردوينتو دبيخ نه، ابوالطاهر قزوينى واى (كما

هوا لراجع) دشا د وینبتو دجرنه ، لکه څوله چه دوینبتو دجرنه، راوخی

(۴) بیضاوی اوبعض نورحضرات وایئ چه اشهاد ، اقرار ، حقیقةً نشته دې بلکه داپه طور دتمثیل اوتصویرذکرشویدې اومقصودترینه دادې چه الله تعالی دبنی آدمو پیداکولونه قبل دخپل ربوبیت **دلائل** قائم کړل لکه اسمانونه زمکې، اودوئ دپیداکولونه بعدئ ددوئ دپوهه کولودپاره دوئ ته عقل ورکړو، اودپوهیدلوصلاحیت ئ ورته ورکړو، دپاره ددې چه دقیامت په ورځ دوئ داعذراونه کړی چه.مونږ نه پوهیدلو. دیته علماء دبیان، مجازتمثیلی، وایئ، چه مشابه کړې شو حال دنوع انسانی بعددوجوداوبعددمکلف کیدلونه اوسره دنصب الدلائل نه داخذالمیثاق اواقرارسره، نوذکرشومشبه به اواراده شوترینه مشبه، لیکن تمام محدثین ، صوفیه ،اهل تحقیق وایئ،چه اخذالمیثاق اقرارمکالمه. سوال جواب حقیقةً بلسان القال شویدې لکه چه په حدیث دابن عباس رضی الله عنه کښې دی،((انه علیه السلام قال اخذالله المیثاق فاخرج من صلبه کل ذریة ثم کلمهم قُبلاً قال الست بربکم — الخ )) داروایت صریح دې چه اخرج اومکالمه، حقیقةً بلسان القال،وه.

(۵) څه حکمت وویه عهداخستلوکښې؟ اوخصوصًا چه یادهم پاتی نه شو اوبل داکه عهداخستلې شوې وې نو پکار ده چه یا د وې، **جواب** : حکمتونه د الله تعالی په کارونو کښې بې شماره وی، دلته دا حکمت کیدې شی چه داپه منزله دتخم شی دشجر الایمان دپاره، داتخم دانسانانو په ارواحوکښې واچولې شی اوبیائ دتحفظ دپاره اودنشو ونما دپاره،داوبواوصحیح ماحول انتظام اوکړې شی نوشجرایمان به،نشونما، ، اوکړی، اوبارآوره به شی، نوعهدازلی اجمال دې اوعقل سلیم، وحی ،الهام دهغې تفصیل دې اوکه تخم نه وی اچولې شوې یائ دتحفظ اوداوبو، اوذصحیح ماحول بندوبست اونه شی، نوشجرایمان نه پیداکیږی، اودالله تعالی دربوبیت اودتوحید مسئله به یونظری منطقی مسئله شی چه دعوام الناس فهم رسیدل به ورته مشکل شی فطری به نشی حالانکه داداسې فطری مسئله ده چه څوک چه اهلیت اوصلاحیت داستدلال نه لری هغوئ هم ددې قائل دی، اوپه حدیث کښې دی ((کل مولودٍ یولدعلی الفطرة)) دا دَ شجرِ ایمان هغه تخم دې، ((فابواه یهودانه اوینصرانه — الخ)) دائ دتحفظ دپاره دصحیح ماحول ذکردې باقی **داسوال** چه عهدازلی اګرکه یقینی اوصحیح دې لیکن یاد پاتی نه شو، **نوجواب** دادې چه بعض کاملینو ته خویاددې : ((قال علی رضی الله عنه انی لاَذْکُرُ العهد الّذِیْ عَهِدَ اِلَیَّ ربی واعرِف مَن کان هناک عَن یمینی وشمالی)) یعنی حضرت علی رضی الله

تعالی عنه فرماني چه ماته عهد ازلی یاددي اوداراته هم یاددی چه خما خی طرف ته څوک وو او چپ طرف ته مې څوک وو. ذون النون مصری واني ((کانه الان فی اذنی)) اوعوامو ته اواکثرو ته اګرکه یادنه دي لیکن دیادولو دپاره انبیاء راغلیدی بل دا چه یوشی کله چاته معلوم وی دیذیعه ذریعه سره، اوکله ورته معلوم وی داثرپه ذریعه سره اګرکه یادنه وی، لکه یومتعلم چه اعلی معیارته اورسی نودي داتسلیموی چه ددې منتهی بنیاد، ابتداء وه یعنی هغه وخت چه د ((الف.ب.ت.ث)) نوراني قاعده ، بغدادی قاعده، ویله، یاې په کچی، پهلی، جماعت کښې سبق ونیلو. اګرکه دخاص وخت ،مکان اودتعلیمی خصوصیاتوعلم ورته نه وی حاصل دغه شان دازلی تعلیم داثرپه وجه اولادآدم عليه السلام دربوبیت او دتوحید د عقیدې فطرت لری اګرکه بعض کسن دعقلي، روحاني، بیمارۍ په وجه منکرشویدی لیکن دادا صل فطرت سره منافات نه لری، په ازل کښې اقرارتماموخلقوکړیدي، روستنې انکاردعقلی اوروحانی بیمارۍ په وجه دي نو دا سوال هم وارد نه شو چه کله ټولو اقرارکړی دې نو بیا بعض څه رنګه منکرشو؟

﴿ وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ ﴾ یعنی مونږ دوئ ته دغه مخکښې واقعات په تفصیل سره ددې دپاره بیانوؤ چه دوئ پوهه شي اوخپله اصلاح اوکړی اودګمراهۍ اوغلطۍ لارئ نه واپس شي

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ الَّذِي آتَيْنَاهُ آيَاتِنَا فَانسَلَخَ مِنْهَا

او بيان کړه دوئ ته قصه[1] د هغه سړی چه ورکړې وو مونږ هغه ته علم د آیتونو زمونږ نو هغه پرېښودل ، را وه وتلو دهغې نه.

فَأَتْبَعَهُ الشَّيْطَانُ فَكَانَ مِنَ الْغَاوِينَ ۝ وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنَاهُ

نو پسې وربسې شو شیطان پس شو دې د ګمراهانو نه . او کچرې غوښتې وې مونږ نو خامخا پورته کړې به وه مونږ

بِهَا وَلَٰكِنَّهُ أَخْلَدَ إِلَى الْأَرْضِ وَاتَّبَعَ هَوَاهُ ۚ فَمَثَلُهُ

مرتبه د ده په سبب د دې آیتونو سره لیکن دې مائل شو زمکې ته، او روان شو په خواهش خپل پسې، پس مثال د ده

كَمَثَلِ الْكَلْبِ ۚ إِن تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ أَوْ تَتْرُكْهُ

داسې شو لکه د سپی. که ته بوج اچوې پده نو ژبه راؤباسی هوکیږی اوکه پرېږدې ده لره اوبوج پرې نه اچوې

---

۱ . د باطلې مقولې تردید په وجه رابع سره .

يَلْهَثْ ذٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا فَاقْصُصِ

نو بيا هم ژبه راوباسي هوكيږي. دا مثال د هغه قوم دي چه تكذيب كوي د آيتونو زمونږ. پس بيان كړه ورته

الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ ۝ سَآءَ مَثَلًا الْقَوْمُ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا

دا احوال، د دي لپاره چه دوئ فكر وكړي بد دي په مثال كښي هغه قوم چه تكذيب كوي د آيتونو زمونږ

وَاَنْفُسَهُمْ كَانُوْا يَظْلِمُوْنَ ۝ مَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ

او خاص په خپلو نفسونو دوئ ظلم كوي هغه څوك چه هدايت وكړي هغه ته الله تعالى پس هغه

الْمُهْتَدِيْ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝

لارموندونكي دي اوهغه څوك چه بې لاري كړي هغه لره الله تعالى پس هم دغه كسان تاوانيان دي

﴿وَاتْلُ عَلَيْهِمْ﴾ دادغه قول ديهودو درددپاره څلورمه وجه ده يعني كه چرې ستاسو مغفرت يقيني وې نوولې ستاسو يوعالم دبدعملئ په وجه په شان دسپي شو، پدې آياتونو كښې دَ يهودو دَ يوعالم دَ ملعون كيدو واقعه ده، ددې شخص په باره كښې دصحابو رضى الله عنه اوتابعينونه مختلف روايتونه مذكوردي په دې كښې زيات مشهوراوقابل اعتمادقول هغه دې چه دحضرت ابن عباس رضى الله عنه وغيره نه مروى دې، چه دده نوم بلعم بن باعوراء دې، داډېرمستجاب الدعوة اوصاحب كرامات ولي اولوئ عالم وو چه دولس زره شاگردان به دده په مجلس كښې حاضر وو. دفرعون دهلاك اودفتح دمصرنه پس چه هركله موسى عليه السلام بنى اسرائيلو ته دجبارينو سره دجهادكولوحكم اوكړو نوموسى عليه السلام چه لښكرتياركرو او دجبارينو مقابلې ته روان شو، نودوئ ته يقين اوشوچه دحضرت موسى عليه السلام په مقابله كښې خوفرعون تباه شويدې نومونږ ته به خامخا شكست ملاويږي،نودوئ جمع شواوبلعم بن باعوراء ته لاړل اوئ وئيل چه موسى عليه السلام سخت خويه سړې دې اوډيرلښكرئ ددې دپاره جمع كړيدې چه مونږدخپل ملك نه اوباسي، ته دعااوكړه چه موسى عليه السلام زمونږ د مقابلې نه واپس شي، بلعم بن باعوراء مستجاب الدعوات وو، اسم اعظم ورته معلوم وو نوچه داسم اعظم په ذريعه به ئ

[1] - د سورت د درې وارو دعوؤ سره آيتونه متعلق ذكر كيږي، دا د اولې دعوې سره متعلق دې

دعا وکړه.نوهغه به قبلیده نوبلعم بن باعوراء اوونیل چه موسی علیه السلام دالله تعالی نبی دی. دالله تعالی فرښتی ورسره دی، دهغه دقرب عندالله مقام ماته معلوم دی نوزه دهغه خلاف دعانه شم کولی. نودوی ډیراصرارا وکړو او ډیری هدیی نذرانې ورته ورکړی نوده قبولی کړی، اوپه بعض روایاتوکښي دی چه دده ښځي دی آماده کړو په قبول دهدایاتو اوپه دعاکولو. حاصل داچه دموسی علیه السلام خلاف دعاکول ئې شروع کړل. په دغه وخت کښې دالله تعالی دقدرت یوعجیبه کرشمه ظاهره. شوه، هغه داچه کوم الفاظ دبددعای دموسی علیه السلام په حق کښي دونیلو اراده وه نودخولي نه بهٔ ئې دغه بد دعا دجبارینو په حق کښي راوتله، نوهغوئ ورته اوونیل چه ته خومونږ ته بددعاکوی. بلعم اوونیل چه خماژبه خماپه اختیارکښي نه ده، ددي په خلاف خماقدرت نشته دي نتیجه داشوه چه په دغه وخت کښي په دغه قوم باندي هم تباهی راغله، اوبلعم ته داسزاملاؤشوه چه ژبه ئې باهرراؤتله، لکه سپي چه په ډیره گرمئ کښي ژبه باهرراوباسی او، هوکیږی. اوولایت، ایمان هرڅه ترینه سلب شو، نوده اوونیل چه خمادنیااخرت هرڅه تباه شو. اوونیلی شویدی چه دتورات خلاف ئې شروع اوکړه، اوونیلی شویدی چه په دنیاکښي اول ده کتاب لیکلي وو په دي مسئلي باندي چه ددنیا دپاره څوک صانع جوړونکي نشته دي، دا دحرص اودمحبت دنیا نتیجه وه، بیائې جبارینوته اوونیل چه خماپه دعاباندي څه اونه شو خوزه تاسوته یوتدبیرښایم، هغه داچه تاسوخپلي خائسته زنانه دبنی اسرائیلو په لښکرکښي داخلي کړئ .نوکه دوئ په حرام کارئ کښي مبتلاء شو نودالله تعالی مددبه ترینه کټ شی اودالله تعالی قهر،عذاب به پري نازل شی، چنانچه جبارینو چه دغه شان کاراوکړو دبنی اسرائیلو دیوخاندان، یعنی دبسط شمعون یومشرپه بدکارئ کښي مبتلاء شو نوعذاب الهی په دوئ مسلط شو چه سخت قسم طاعون وو چه دهغي دوجي نه په یوه ورځ کښي اویازره بنی اسرائیل مره شو.بیابنی اسرائیلو هغه زانی مزنیه دواړه په منظرعام باندي قتل کړل اوتوبه ئې اوکړه نوطاعون دفع شو

﴿ءَايَٰتِنَا﴾ ((ای علم ایاتنا)) یعنی علم په احکامو دتورات، خکه دي عالم وو په تورات اوپه نوروکتابونوصحائفو الهیو باندي، اوداهم ممکنه ده چه علم داسم اعظم ترینه مراد شی، خکه چه مفسرینواکثرو، تصریح کړیده چه دي عالم ووپه اسم اعظم ، .﴿فَٱنسَلَخَ مِنْهَا﴾ انسلاخ په اصل کښي دخاروی نه څرمن ویستلو ته وائې، یامارچه پوستکي اوغورزوی، دلته دعلم آیات تشبیه ورکړي شویده دلباس سره یادڅرمن سره چه دانسان دبقاء اول دزینت ذریعه ده، اوپه

﴿فَانسَلَخَ﴾ کښې اشاره ده چه دې دعلم اومعرفت نه بالکل جدا شو. اوبه علم ئ عمل پرینښودلو
﴿فَأَتْبَعَهُ الشَّيْطَانُ﴾ شیطان په ده پسې شو. یعنی دده ګمراه کولویسی اولګیدو. اوبه دې کښې
اشاره ده چه ده چه ترڅوپورې علم اوعمل اوذکرالله. نه وویرینښودې نودشیطان دتسلط نه
محفوظ وو. اوکله چه ئ ددنیا محبت اوقدربه زړه کښې راغلو اودآیاتونودعلم قدر اوشکرئ
اونه کړو نوشیطان پرې مسلط شواوګمراه شو. قرطبی وائ چه مااوریدلی دی دبعض
عارفینونه چه بعض انبیاؤسوال اوکړو دالله تعالی نه په باره دبلعم بن باعوراء کښې چه دې ولې
مطرود. ملعون شو بعد ددغه آیاتونو اوکراماتونه. نوالله تعالی اوفرمائیل چه ده خماشکرنه
ووکړې په هغه نعمت چه ماورته ورکړې وو. اوکه چرې ده یووارې خما شکرکړې وې نومابه
نرینه دغه نعمت نه وې سلب کړې. ﴿وَلَوْ شِئْنَا﴾ اشاره ده چه هدایت دالله تعالی په قبضه کښې
دې. اوصحیح عمل اوعقیده سبب درفعت اودعزت دې چه په دې سره ډیره لویه مرتبه اوعزت
حاصلیږی .لیکن که څوک دعلم په مقتضی عمل اونه کړی نوعلم په ده باندې حجت اودده
دپاره سبب دخسارې ګرځی. په دې آیت کښی دبلعم دملعون کیدلودپاره دوه امره ذکرشوی دی
یو ددنیا محبت اودنیا ته میلان.﴿أَخْلَدَ إِلَى الْأَرْضِ﴾ داخلاد په معنی کښې میلان اولزوم
دواړه داخل دی. اودارض نه مراددنیاڅیزونه دی. اوبعض وائ چه دارض نه مراد، سفالة، .
((ضدالعلو)) (لاندې والې) مراددې. اودویم اتباع دخواهشاتو. ﴿وَاتَّبَعَ هَوَاهُ﴾ اودادواړه څیزونه
دګناهونو جراوبنیاد دې کمافی الحدیث ((حُبُّ الدنیا رأسُ کُلِّ خطیئةٍ)) په دې آیت کښې اول
دمشیت ذکردې. ﴿وَلَوْ شِئْنَا﴾ بیادبلعم دعمل ذکردې ((لکِنَّهُ أخلَدَ)) نواشاره شوه چه هرڅه
اګرپه اراده اومشیت دالله تعالی سره کیږی لیکن فعل اواختیاردعبدورته سبب دې اودخیل دې
په کښې ﴿فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ الْكَلْبِ﴾ دا تشبیه داقبح شئ سره ده،کلب ډیرقبیح اوحریص دې،
حتی چه دده، دڅوته کړې شوی لوخی دوینځلوحکم په ((سبع مرار)) اوه (٧) ځلوسره راغلیدې،
اویو وارې په کښې استعمال دخاورې هم راغلیدې اودارنګه دې خپله ګندګی خوری او بیا خپل
قئ (اولتې) ستې او دا علامه دَ ډیر حرص ده، اودسپی په احوالوکښې ډیرقبیح حال دادې چه
ژبه باهرته راؤباسی اوبه زوره زوره ساه اخلی، هوکیږی،، هنګیږی،، نوداتشبیه شوه داقبح
الاشیاء سره په اقبح الاحوال کښې ﴿إِن تَحْمِلْ عَلَيْهِ﴾ د تَحمل نه مرادشړل دی یابوج اچول دی
﴿يَلْهَثْ﴾ لهث دیته وائ چه ژبه به باهرته راؤباسی اوبه زوره زوره سره ساه اخلی اوبدبوداره

هوا را اوباسی، نورتول حیوانات داسی دی چه ددننه نه هواباهرته اودباهرنه تازه هواء دننه ته بې تکلیفه رااوباسی، البته که چرې که ثقل بوج پرې راشی نوبیاپه تکلیف سره داسې کوی. ،هوکیږی،، لیکن سپې په هرحال کښې دغه شان کوی، بوج پرې وی یانه وی ﴿ذَٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِينَ﴾ یعنی دهرتکذیب کونکی دآیات الله دغه مثال اودغه مقام عندالله دې، ځه تحصیص ئ ددغه زمانې په یهودو پورې نشته دې ﴿سَاءَ مَثَلًا الْقَوْمُ الَّذِينَ﴾ یعنی دظلم کونکو، اودالله تعالی دآیاتونودتکذیب کونکو مثال ډیربددې، هیڅ غیرتمند انسان ئ په خپل ځان باندې چسپان کولوته تیارنه دې، ﴿مَن يَهْدِ اللَّهُ﴾ ددینه بعد، دسورت درې واړه دعوۍسره متعلق آیاتونه ذکرکیږی دا داولې دعوې سره متعلق دې یعنی مسئله پوره پوره بیانوه اوپه زړه کښې تنګی مه راوله، مسئله بیانول ستاذمه داری ده باقی هدایت ورکول یانه ورکول، دالله تعالی کاردې، نه خپله ذمه واری پوره کوه.

| وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ ۖ لَهُمْ قُلُوبٌ |
|---|
| او په تحقیق سره پیدا کړیدی مونږ [1] د جهنم لپاره ډیر د پیریانو او انسانانونه، دوئ لره داسې زړونه دی |
| لَّا يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُونَ بِهَا |
| چه نه پوهیږی په هغې سره په حق باندې، او د دوئ لپاره داسې سترګې دی چه نه وینی په هغې سره حق لره، |
| وَلَهُمْ آذَانٌ لَّا يَسْمَعُونَ بِهَا ۚ أُولَٰئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ ۚ |
| اودوئ لره غوږونه دی چه نه آوری په هغې سره حق،دغه کسان په شان د ځاروؤدی بلکه دوئ زیات بې لارې ، بې پوهه دی، |
| أُولَٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ ﴿١٧٩﴾ |
| دغه کسان هم دوئ غافلان دی. |

﴿وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ﴾ دا ددویمې دعوې سره متعلق دې یعنی دماانزل اتباع کوئ او دشیاطینو اتباع مه کوئ چه نوی نوی تحریمات اوکړئ اوڅوک چه دخپل ځان دطرفه تحریمات کوی لکه بربنډ طواف دبیت الله ،یا ددې په مثل نورکارونه نوداخلق دځناورو په شان دی، چه نه

[1] . دا د دویمې دعوې سره متعلق دې.

په حق پوهيږي او نه ئ اوري او نه ئويني ددوئ انجام جهنم دې. اوکه څوک د **اسوال** اوکړي چه په دې آيت کښې ﴿ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ﴾ ذکرده اويه بل آيت کښې ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾ «ذاريات» ذکرده نوداخوتعارض دې **جواب** «۱» په دې آيت کښې دغايه تکويني ذکرده اويه سورت ذاريات کښې دغايه تشريعي ذکرده «۲» لام په لِجَهَنَّمَ کښې لام العاقبة دې يعني انسان خودعبادت دپاره پيدادې ليکن چه عبادت ترک کړي نوانجام ئ جهنم شي

﴿لَهُمْ قُلُوبٌ﴾ قلب محل دعلم اوادراک دې اوغوږ ونه سترګې. الات دي. نو دوئ داټول ضائع کړيدي په خپل اختيارسره. ځکه په دې آيت کښې نسبت دوئ ته شويدې. ﴿لَا يَفْقَهُونَ﴾ ﴿لَا يُبْصِرُونَ﴾ ﴿لَا يَسْمَعُونَ﴾ نوجبرمذموم نشته دې اوتشبيه ددوئ دانعاموسره په دې خبره کښې ده چه دهغوئ مقصدلکه چه صرف خوراک سکاک خواهشات پوره کول دي نودغه شان ددوئ مقصد هم دغه دې، تميزدحلال حرام جائزناجائز نه کوي اتباع دمأنزل نه کوي ﴿بَلْ هُمْ أَضَلُّ﴾ کفار دخناورونه زيات بې وقوفه دي، خناوريه تميزدحلال حرامو باندې نه دي مکلف. او دخپل فائدې اونقصان په خايونوپوهيږي اوخپل مالک پيژني اودهغه تابعداري کوي اوکفار داسې نه دي

| وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ فَادْعُوهُ بِهَا ۖ وَذَرُوا الَّذِينَ |
|---|
| او خاص د الله تعالى لپاره دي «۱» نومونه ښائسته پس رابلئ هغه په دغه نومونو سره، او پريږدئ هغه کسان |
| يُلْحِدُونَ فِي أَسْمَائِهِ ۚ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ⑱٠ |
| چه کږليچ کوي په نومونو د هغه کښې، زرده چه بدله به ورکړې شي دوئ ته دهغه عملونو چه دوئ نې کوي |
| وَمِمَّنْ خَلَقْنَا أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهِ يَعْدِلُونَ ⑱١ |
| او دهغه خلقو نه چه مونږ پيدا کړيدي يوه ډله داسې ده چه لار ښائي د حق او پدې حق دين فيصلې کوي |

﴿وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ﴾ دا آيت متعلق دې ددريمې دعوې دسورت سره يعنى خپل حاجات صرف ديوالله تعالى نه طلب کوئ دخائسته صفاتو اونومونومالک صرف الله تعالى دې، حُسْنىٰ تانيث دأحسن دې، ډيرخائسته اسماء هغه دي چه دصفات کمال په هغه اعلى مقام دلالت کوي

---

۱ - دا د دويمې دعوې سره متعلق دې.

چه هغې ته بل څوک نه شي رسيدلی. دالله تعالى سره لکه چه په ذات کښې څوک مماثل نشته دې نودغسې ورسره په صفاتو کښې مثل نشته دې ، دمخلوق اودخالق په صفاتو کښې لکه علم وغيره شو، صرف اشتراک دلفظ دې، معنى اومدلول ئ بالکل جداجدااومبائن دی لکه سوادبياض اګرکه په لون کښې شريک دې ليکن نوع دهريومبائنه ده دبل نه او .لکه څه رنګه چه دالله تعالى دذات اوحقيقت ادراک اوعلم مخلوق نشی کولی. په دنيااوآخرت کښې بلکه د حقيقت د ذات علم صرف او صرف الله تعالى ته دې نو دغه شان د صفاتو علم نی هم صرف الله تعالى ته دې، مخلوق دهغې د ادراک نه عاجز دې، او عجز د ادراک نه په حقيقت کښې ادراک دې او دې ته اشاره ده په قول د صديق اکبر رضى الله تعالى عنه کښې چه دوئ ويلى دى چه ((العجز عن درك الادراك ادراكٌ)) ، يعنى بنده ته چه دا منکشفه شی چه زه عاجزيم د معرفت د ذات او صفات نه نو دا معرفت دې او دارنګه ديته اشاره ده په حديث کښې چه ((لا اُحصى ثناءً عليك كما اثنيت على نفسك)) يعنى زه احاطه نشم کولي ستا په محامدو او ستا د اُلوهيت په صفاتو. او تفاوت د درجاتو د انبياؤ او د ملائکو او د اولياء په اعتبار د تفاوة د معرفت د اسماؤ اوصفاتو سره دې نو چه د چا وقوف په عجائبو د ملك ملکوت او خلق الارواح والاجساد باندې زيات دې نو مرتبه د معرفت د اسماؤ اوصفاتو ئې زياته وی، او د تمامو مخلوقاتو نه زيات دا مقام سيد الکونين (صلى الله عليه وسلم) ته حاصل دې (كذا فى الروح).

په حديث کښې دی چه دالله تعالى دپاره يوکم سل نومونه دی څوک ئې چه يادکړی نوجنت ته به داخل شی، اوداسماء حسنى په باره کښې علماؤ مختلف تصانيف کړيدی چه لائق دمطالعې دی.

﴿فَادْعُوهُ بِهَا﴾ دعاء په دوؤ معانيو سره راځی يوپه معنى دذکراوتسبيح تحميدسره،دلته دامعنى هم اراده کيدې شی، دويم په معنى دبلنې ،يعنى طلب دحاجاتو سره اودامعنى هم مرادکيدې شی يعنى دمشکلاتو اومصيبتونونه دخلاصيدو دپاره اوحاجتونو اومرادوونودپوره کيدلو دپاره صرف الله تعالى رابلئ اوصرف دهغه نه سوال کوئ اوسوال په وسيله داسماء حسنى سره کوئ دا اقرب الى الاجابت دې، دکومواسماؤ په ذريعه سره چه ددعادقبوليت زيات اميد اوتوقع کيدې شی هغه په احاديثو کښې مختلف ذکرشوی دی په بعض رواياتو کښې دی چه ﴿وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ﴾ دالله تعالى هغه اسم اعظم دې چه ددې په

ذريعه سره دعاقبليږی اوپه بعض رواياتوكښي. ﴿الٓمٓ ﴿١﴾ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الۡحَیُّ الۡقَیُّوۡمُ ﴿٢﴾﴾ مذكوردي اوبعض رواياتوكښي ((ياحی ياقيوم)) مذكوردي اوپه بعض رواياتوكښي ، ((يا احد الصمد الذی لم يلدولم يولد ولم يكن له كفواًاحد)) مذكوردي، په يوروايت كښي دی چه نبی صلی الله عليه وسلم حضرت فاطمه رضی الله عنها ته وصيت اوكړو، چه دا دعا وايه. ((ياحی ياقيوم برحمتک ...... اصلح لی شانی كله ولاتكلنی الی نفسی طرفة عين)) دادعادتمامو حاجاتومشكلاتو دحل دپاره ډيره مفيده ده، بيهقی په روايت دابن مسعودرضی الله عنه سره نقل كړيدی چه نبی صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دی چه چاته ورسيږی هَمّ (پريشانی) ياحزن، غم، نوهغه دي دادعا اولولی ((اللهمّ إنّی عبدک وابنُ عَبْدِکَ ناصيتی فی يَدِکَ مَاضٍ فِیَّ حُكْمُكَ عدلٌ فِیَّ قَضَاءُکَ اسئلکَ بِكُلِّ اسمٍ هُوَلَکَ سَمَّيْتَ بِهٖ نَفْسَکَ اَوْاَنْزَلْتَهٗ فِی كِتَابِکَ اَوْعَلَّمْتَهٗ اَحَداً مِنْ خَلْقِکَ اَوِاسْتَأثَرْتَ بِهٖ فِی عِلْمِ الْغَيْبِ عِنْدَکَ اَنْ تَجْعَلَ الْقُرْآنَ رَبِيْعَ قَلْبِیْ وَنُوْرَصَدْرِیْ وَذَهَابَ هَمِّی وَجَلَاءَ حزنی)) اودا دعاډيره موثره ده، صاحب دروح المعانی وائ چه داحديث صريح دي په دې چه نشته دې حصر داسماؤ د الله تعالی په يوكم سلوكښي ځكه چه په دې حديث كښي ،او،او، ذكردې دا دلالت كوی په عدم حصر، اونقل كړيدي نووی رحمه الله اتفاق دعلماؤ په دې باندې، اونقل كړيدی ابن عربی دبعضونه چه الله تعالی لره زرنومونه دی اودبعض نه روايت دې چه څلورزره دی اودبعضو صوفيو نه نقل دې چه اسماء دالله تعالی لاتعدّ ولاتحصیٰ دی.

﴿وَذَرُوا الَّذِیۡنَ یُلۡحِدُوۡنَ﴾ الحاد، ،كوږوالی انحراف اوميلان عن الحق ته وائ، الحادپه اسماؤدالله تعالی كښي په مختلفو وجوهاتو سره راځی يوداچه مشركينو دخپلو اصنامو دپاره اسماء مشتق كړی وو، داسماؤ دالله تعالی نه لكه ،،لات،، دالله تعالی،،نه مشتق كړې وو،عزی،، ئې دعزيزنه مشتق كړې وو، دويم داچه دالله تعالی دپاره داسې اسم استعمال شی چه موهم دمعنی فاسدې وی لكه بعض بدويانو به وئيل يا ابالمكارم، ياابيض الوجه، ياسخی، دريم داچه دالله تعالی نوم بل چاته اوونيلې شی، لكه چاته رحمن، ويل يا ،رزاق، ونيل، ،وغيرذلک، څلورم داچه دالله تعالی دپاره داسې اسم ثابت كړې شی چه شرع پرې نوی وارده، نومراددترک نه په ((ذروالذين – الخ)) كښي اجتناب دې ددغه شان اسماؤ نه، اواطلاق داسم د،،واجب الوجود،، يادموجود،، يااطلاق داسم د،،خُدا،، په الله تعالی باندې په اجماع سره دې اواجماع دادلو، دشرع نه ده نوداهم ماوردبه الشرع ده، صاحب دروح المعانی وائ، چه علماء داسلام متفق دی په جوازد اطلاق د هغه اسماؤ اوصفاتو چه وارد وی په هغې باندې اذن د شارع

نه اويه عدم جواز د هغه اسماؤ اوصفاتو چه وارد وی منع دهغې نه اوپه کومو اسماؤ صفاتو چه اذن اومنع دواړه نه دی وارد اوالله تعالى متصف وی په معنى دهغې سره اوموهم دنقص نه وی بلکه مشعروی په مدح (مبتداء) سره. اونوی داسماء (معترضه) اعلامونه چه موضوع دی په نورولغاتوکښې. خکه چه نشته دې هیچالره نزاع په جوازدهغې کښې. نوپه دې کښې (خبر) اختلاف دې. جمهوراهل حق یٔ منع کوی اومعتزله ورته مطلقًا جائزوایٔ اوبعض توقف کړیدې. خکه چه جواز اومنع دواړه داحکامو د (شرع) نه دی اودلیل په یوجانب نشته دې نوتوقف ضروری شو. الخ دې کلام نه معلومه شوه چه اطلاق داسم علَم لکه لفظ د (خدا) په الله تعالى باندې جائزدې بالاتفاق اوپه دې کښې نزاع نشته دې دشرح عقایدپه شرح نبراس صفحه (١٧٠) کښې دی ((قال بعض المحققين لانزاع فى جواز اطلاق اسمائه الاعلام الموضوعة فى اللغات كـــــ (خدا) فى الفارسيه (تنكرى) بالتركية وانماالنزاع فى الاسماء الماخوذة من الصفات والافعال فقال المعتزلة والكرامية يجوز اطلاق كل مادل العقل على اتصافه تعالى و لم ياذن به الشرع وقال قوم يجوز مايرادف الاسماء الشرعية الاماكان مخصوصًا بلغة الكفار وقال القاضى ابوبكر كل لفظ دل على معنى ثابت لله ولم يكن موهمًا بنقص جازاطلاقه وشرط اخرون مع ذلك ان يكون مشعرا باجلال اوتعظيم وتوقف امام الحرمين وفصل الامام العزالى وقال يجوز مايدل على الذات وقال الامام الاشعرى لابدمن اذن الشارع، وفى شرح الموقف وهوالمختار، ثم قال، وذلک للاحتياط، احترازًا عما يوهم باطلًا،وقال الالوسى ،والمختار عندى عدم توقف اطلاق الاسماء المشتقة الراجعة الى نوع من الصفات النفسية والفعلية وكذاالصفات السلبية عليه تعالى على التوقيف الخاص بل يصح الاطلاق بدونه لكن بعدالتحرى التام وبذل الوسع فيماهونص فى التعظيم والتحفظ الى الغاية عمايوهم ادنى ادنى نقص معاذالله تعالى فى حقه لانامأذونون بتعظيم الله تبارک وتعالى بالاقوال والافعال ولم يحدلنا حدفيه فمتى كان فى الاطلاق تعظيم له عزوجل كان ماذونا به))

حاصل دادې چه اطلاق دلفظ د،،خدا،، په الله تعالى باندې جائزدې اوپه دې کښې دچاخلاف نشته اونورصفات چه مشعروی په تعظیم دالله تعالى اوادنى توهم دنقص پکښې نه وی دهغې اطلاق مختلف فيه دې اوراجح دادې چه جائزدې اوداطلاق ماذون فيه دې په اذن عام سره .اوهرکله چه اطلاق دلفظ د(خدا) په الله تعالى بادې جائزشو نودعاکول پدې سره هم جائز دی. د ممانعت لپاره څه وجه نشته دې، او د ﴿فَٱدۡعُوهُ بِهَا﴾ دا معنى نده چه دعاء صرف په مخصوص اسماء حسنى سره جائزده اوپه غیرسره جائزنه ده

﴿وَمِمَّنۡ خَلَقۡنَآ أُمَّةٞ﴾ دامقابل دې د ﴿وَلَقَدۡ ذَرَأۡنَا لِجَهَنَّمَ﴾ یعنی ټول مخلوق یوشان نه دی بلکه

يوه ډله داسې ده چه نوروخلقوته لاربناې دحق. اودحق راهنماي ورته کوي. اوبه حق باندې فيصلې کوي. دلته ددوؤ خوبيانوذکردې چه دامعياردفضيلت اوذريعه دفوقيت اودفلاح ددارينوده، اوددې دواړو خصلتونوپه وجه دې امت ته فضيلت حاصل دې اول داچه دوئ نوروخلقو ته مشوره اورهنماي دحق کوي اودخپل ذاتي خواهش اوخانداني اوقومي رسوماتو دعوت اومشوره نه ورکو ي. دويم داچه دخپل مينځ نزاع اوجګړې کښې دالله تعالى دقانون خيال ساتي اودهغې مطابق فيصلې کوي. اودااَيت په دې دليل دې چه دقيامت پورې به په دې امت کښې دغه شان کسان موجودوي ابن جرير په روايت دابن جريج سره نقل کړې دى چه نبي صلى الله عليه وسلم مونږ ته اووئيل چه ﴿ وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ أُمَّةٌ ﴾ خمادااامت دې. اودقتاده نه روايت دې چه مونږ ته رسيدلى دى چه نبي صلى الله عليه وسلم به دااَيت تلاوت کولونوفرمائيل به ي. چه "داخو ستاسو په حق کښې دې" اوستاسونه مخکښې يوامت ته داصفات ورکړې شوي وو اودااَيت ئې تلاوت کړو ﴿وَمِن قَوْمِ مُوسَىٰٓ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِٱلْحَقِّ وَبِهِۦ يَعْدِلُونَ ﴾ مطلب دادې چه دموسى عليه السلام په امت کښې هم يوجماعت ددې صفاتو حامل وو. ليکن امت محمد يه ته په دې کښې خصوصي امتيازحاصل دې. اوکلبي نه روايت دې چه ددې نه مراد مؤمنين داهلِ کتابو دى، اوبعضو وئيلى دى چه دينه مراد علماء اوداعيان الى الدين دى، اواستدلال کړې شويدې په دې آيت سره په صحت داجماع دهرعصربرابره خبره ده که عصردصحابؤ وى يادروستنو خلقووى، خکه که چرې اجماع مختص وې په عصر النبي (صلى الله عليه وسلم) ياپه عصردصحابؤپورې نوبياددې ذکرته هيڅ حاجت نه وؤ خکه داخومعلومه ده چه دنبي صلعم اودصحابؤ زمانه دخيرالقرون زمانه ده

| وَٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَـٰتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُم مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ ١٨٢ |
|---|
| اوهغه کسان چه تکذيب کوي [1] زمونږ د آيتونو ، په رو رو نيسو مونږ دوئ لره په داسې طريقه چه دوئ به نه پوهيږي |
| وَأُمْلِى لَهُمْ ۚ إِنَّ كَيْدِى مَتِينٌ ١٨٣ أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا۟ ۗ مَا بِصَاحِبِهِم |
| اومهلت ورکوم دوئ ته.بيشکه تدبير خما محکم دې. آيا دوئ فکر. سوچ نکوي [2] چه نشته دې په دې ملګرى ددوئ باندې |

١ . د اولې دعوې سره متعلق

٢ . زجر

مِّنْ جِنَّةٍ ۚ اِنْ هُوَ اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿١٨٤﴾ اَوَلَمْ يَنْظُرُوْا فِيْ مَلَكُوْتِ السَّمٰوٰتِ

هيڅ ليونتوب. ندي هغه مګر يره وونکې ښکاره دې آيا دوئ نظر نکوي د عبرت. په بادشاهئ د آسمانونو

وَالْاَرْضِ وَمَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ ۙ وَّاَنْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ قَدِ اقْتَرَبَ

او زمکه کښې. او په هغې کښې چه پيدا کړيدي الله تعالى هرشې. او پدې کښې چه شايد قريب راغلې وي

اَجَلُهُمْ ۚ فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۭ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ ﴿١٨٥﴾ مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ

نيته د دوئ. پس په کومه خبره باندې وروسته د قرآن نه به دوئ ايمان راوړي هغه څوك چه بې لارې ني کړي الله تعالى

فَلَا هَادِيَ لَهٗ ؕ وَ يَذَرُهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿١٨٦﴾

پس نه به وي لار ښودونکې هغه ته. او الله تعالى پريږدي دوئ لره په سرکشئ د دوئ کښې سرګردان

﴿ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا ﴾ دامقابل دهغه کسانودی چه په ماقبل آيت کښې ذکرشو ﴿سَنَسْتَدْرِجُهُمْ ﴾ رورو به نيسو مونږ دوئ لره، داستدراج لغوی معنی داده چه ، درجه په درجه، رو، رو، بره ختل ياكوزيدل يابل كاركول ((استفعال من الدرجة بمعنى النقل درجة بعد درجة من سفل الى علواوبالعكس)) ، اويه اصطلاح دقرآن اوسنت کښې ئ معنى داده چه يوبنده ګناهونه، ظلم کوی اويه ده باندې دهغې په وجه په دنياکښې څه مصيبت اوتکليف نه راځي بلکه مزيده په ترقئ روان وی حتې چه دده بی هوشی اومستی انتهاء ته اورسی او په موت سره ختم شی، ، داستدراج معامله دکفاروسره کيږی اوکله دمسلمان ګنهګار سره هم کيږی، لکه روايت دې چه کله حضرت عمررضی الله عنه ته دکسری خزانې راوړې شوې نودوئ دعااوکړه، ((اللهم انى اعوذبک ان اکون مستدرجًا فانى سمعتک تقول سنستدرجهم)) صحابؤ رضی الله عنهم اوسلفو ته به دغلبهء خوف په وجه داستدراج خطره وه، ﴿مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴾ ((اى نستدرجهم استدراجًا من حيث لايعلمون)) يعنى په داسې طورسره ئ نيسو چه دوئ نه پوهيږی، بلکه دوئ ګمان کوی چه دازمونږ ترقی ده.

﴿اِنَّ كَيْدِىْ مَتِيْنٌ ﴾ بيشکه دالله تعالى خفيه تدبير اوددوئ دهلاکت خفيه اسباب محکم دی دهغې مدافعه په هيڅ حيله اوتدبير سره نه شی کيدې ((کيد)) (پټ تدبير) ديته وائ چه داسې کاراوکړی چه دهغې ظاهررحمت، اوباطن ئ قهراوعذب اوهلاکت وی﴿ اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا ﴾

دازجردي منکرينو درسالت ته ، ابن جرير طبري په خپل تفسير کښې روايت کړيدي چه يوه شپه رسول الله صلی الله عليه وسلم دسحرپورې په دعوت دايمان کښې مصروف وو اودقريشو دهرهرخاندان بيل بيل نوم به يې اخستلو ، اواسلام ته يې رابللو او دعذاب نه به يې يرول، نودورځې يومشرک مسلمانانوته اووئيل چه ستاسی دغه ملګرې ليونې شويدې چه په توره تياره شپه کښې دسحرپورې غريده نوداآيت نازل شو چه آيادوئ سوچ فکرنه کوی په قرآن اودنبی صلی الله عليه وسلم په حالاتو اوصفاتوکښې چه داخبره ملعومه کړی چه دې مجنون نه دې هغه ټول عمر ستاسوسره اوسيدلې دې دهغه داحوالو نه تاسوواقف يئ، دده عقل پوهه امانت ديانت دېخوانه مسلم اومعروف مشهوردې

﴿ أَوَلَمْ يَنظُرُوا فِي مَلَكُوتِ ﴾ داهم زجردې يعنی آيادوئ سوچ ولې نه کوی چه په ملکوت يعنی محکم نظام سلطنت اوعجائباتو دقدرت کښې چه دتکوينی اوتنزيلی آياتونو تصديق اوکړی اوداچه دارسول «صلی الله عليه وسلم» رشتينی دې مجنون نه دې اودارنګه دوئ داسوچ ولې نه کوی چه زمونږ نيته دمرګ يادعذاب رانزدې ده چه دهغې نه مخکښې ايمان راوړی،دالله تعالی توحيد اودرسول الله صلی الله عليه وسلم رسالت تسليم کړی، يادامطلب دې چه که دوئ په عجائباتو دقدرت کښې غورفکراوکړی نودابه ورته معلومه شی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم مجنون نه دې بلکه په ټولو مخلوقاتوکښې زيات پوهه، عاقل دې او د ده خبرې دمجنونانوخبرې نه دی بلکه دالله تعالی دملکوت اودتکوينی اوتنزيلی آياتونواثبات دې بلکه مجنونان دوئ په خپله دی، اودارنګه که دوئ په تيرشوؤ حالا تواوراتلونکو حالاتوکښې غورسوچه اوکړی نودابه ورته معلومه شی چه ددوئ هلاکت قريب دې.

﴿ فَبِأَيِّ حَدِيثٍ ﴾ يعنی که په قرآنی آياتونودوئ ايمان نه راوړی نوپه دنياکښې بل کوم داسې کلام دې، چه دو ئ به په هغې ايمان راوړی، يعنی روستو دقرآن نه بل منزل کتاب نشته اوروستو دحضرت محمدصلی الله عليه وسلم نه بل رسول نشته، معتزلؤ په لفظ د«حَدِيث» سره تمسک کړيدې په دې خبره چه قرآن حادث دې، **جواب** «۱» حديث په معنی دحادث سره نه دې بلکه حديث هرهغه کلام ته وئيلې شی چه نقل کيږی نوقرآن نقل کړيدې، جبرئيل عليه السلام دالله تعالی نه اونبی صلی الله عليه وسلم نقل کړيدې دجبرئيل نه «۲» اوکه حديث په معنی دحادث سره شی نودامحمول دې په الفاظو اوکلماتو، اوقديم کلام نفسی دې.

﴿ مَن يُضْلِلِ اللَّهُ ﴾ دا تسلی ده رسول الله صلی الله عليه وسلم ته يعنی تاخپله فريضه پوره کړيده، باقی هدايت ورکول يانه ورکول داد الله تعالی کاردې، نوڅوک چه ضداوتعصب کوی

نو الله تعالى ی د هدایت نه محروم کړی او هيڅ څوک ورته هدایت نه شي ورکولی

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرْسٰىهَا ۭ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا

سوس کوی دوئ ستا نه [۱] په باره د قیامت کښې چه کله به وی قائم کیدل دهغې. وه وایه چه بیشکه علم د هغې

عِنْدَ رَبِّيْ ۚ لَا يُجَلِّيْهَا لِوَقْتِهَآ اِلَّا هُوَ ۘ ثَقُلَتْ

خاص د رب خما سره دي [۲] . نه ښکاره کوی هغې لره [۳] په خپل وخت باندي مګر الله تعالى. درنه (ثقیله) خبره ده [۴]

فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ لَا تَاْتِيْكُمْ اِلَّا بَغْتَةً ۭ يَسْـَٔلُوْنَكَ كَاَنَّكَ

په آسمانونو کښې او په زمکه کښې. نه به راځي قیامت تاسو ته مګر ناګاهه . تپوس کوی دوئ ستانه [۵] چه ګویا که ته

حَفِيٌّ عَنْهَا ۭ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝

تلاش کوونکي د هغې ئې. وه وایه چه بیشکه علم دهغې [۶] الله تعالى سره دي، لیکن ډیر خلق نه پوهیږی

﴿ يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ ﴾ دازجردي منکرینو ته، منکرین چه دالله تعالى دتوحید اودرسول الله درسالت نه انکارکوی نودابه دي وجه چه دوئ دقیامت اودحساب کتاب قائل نه دی ، اواستهزاء تپوس کوی چه قیامت به کله وی، تپوس کونکی یایهودیان دی یاقریش مکه دی، چه دوئ نبی صلی الله علیه وسلم ته اوونیل ((یامحمد بیننا وبینکَ قَرَابَةٌ فاذکرلَنامتَی السَّاعَةِ)) ساعة اسم دي داسماؤ دقیامت نه .قیامت ته ساعت ځکه وائ چه دابه واقع کیږی ناګاه، یاددي وجي نه چه حساب داعمالو اوفیصله به کیږی په یوساعت کښې، یاددي وجي نه چه داورځ سره داوګدوالی نه په منزله دیوساعت دي په نیزدالله تعالى، ﴿ مُرْسٰىهَا ﴾ مصدرمیمی دي په معنی داثبات اوقیام یعنی راتلل دقیامت. ﴿ مُرْسٰىهَا ﴾ مبتداء ده ﴿ اَيَّانَ ﴾ خبرمقدم دي ﴿ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا ﴾

---

۱ . زجر په طور د شکوي
۲ . جواب په اولي وجه سره
۳ جواب په وجه ثانی سره
۴ جواب په وجه ثالث سره
۵ جواب په وجه رابع سره
۶ . جواب په وجه خامس سره

دا جواب په وجه اول سره دي ﴿إِنَّمَا﴾ دحصر دپاره دي په معنى د «ما الا» سره. ترجمه ئ په فارسي کښې په، جزاين نيست، ، سره کيږي. اوپه پښتو کښې. خبره داده بلکه نه ده، سره کيږي يعنى خبره داده چه دقيامت علم الله تعالى خپل خان سره ساتلې دې بل چاته ئ نه دې ورکړې، ﴿لَا يُجَلِّيهَا﴾ جواب په وجه ثانى سره دې. نه ظاهره وى قيامت لره يعنى نه قادريگى په اظهاردوقت معين دقيامت، اوپه اخبار. اعلام دوقت دقيامت مگر صرف الله تعالى ، کمافى قوله تعالى ﴿إِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾

﴿ثَقُلَتْ فِي السَّمَوَاتِ﴾ جواب دې په وجه ثالث سره دې. ددې يومعنى داده چه ((خفى علمها على اهل السموات والارض)) يعنى پټ دې علم دقيامت په اهل داسمانونواوزمکواوکوم شئ چه پټ وى نو هغه ثقيل وى په زړه (قرطبى) بله معنى ئى دا ده چه دا ډيره درنه معامله ده او هيبت ئى په اهل دآسمانونو اوزمکو ډيردې خکه چه په دې کښې فناء اوموت ددوئ دې نواهل داسمانونو اوزمکو عاجز دى ددې دعلم نه، طاقت نه لرى دعلم ددې ﴿لَا تَأْتِيكُمْ إِلَّا بَغْتَةً﴾ داجواب په وجه رابع سره دې چه قيامت به ناگاه راخى په حديث دبخارى کښې دحضرت ابوهريره رضى الله عنه نه مروى دى چه قيامت به په داسې حالت کښې راخى چه يوسړى به بل ته ، يعنى دکانداربه گاهک ته دکپړې تهان کولاؤ کړى، نونه به دوئ بيع کړى وى اونه به ئ کپړه راټوله کړې وى چه قيامت به راشى، اوپه داسې حالت کښې به قيامت راخى چه يوسړى به دخپل اوښې نه پئ لوشلې وى اواستعمال کړى به ئى نه وى چه قيامت به راشى، اويوسړې به دخپل حوض مرمت اصلاح (ليؤ) کوى فارغ شوې به نه وى چه قيامت به راشى، اويوسړى به لقمه، په لاس کښې را اوچته کړى وى،خوړلې به ئى نه وى چه قيامت به راشى. ﴿يَسْـَٔلُونَكَ﴾ يعنى دوئ د قيامت په باره کښې بيا تپوس کوى چه تاته اگرکه علم ذاتى دقيامت نه وى ليکن تابه دهغې تلاش کړې وى اوعلم دقيامت به دې حاصل کړې وى

﴿كَأَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا﴾ ددې يوه معنى داده چه گويا کښې ته تلاش کونکې ئ اومبالغه کونکې ئ په سوال اوتلاش کښې دقيامت نه. ((من قولهم احفيتُ فى المسالة اذابالغت فى السوال)) يعنى عالم ئ په قيامت نوخکه دوئ تپوس کوى. بله معنى ئ داده چه گوياکښې ته مهربان ئ په تپوس کونکو باندې اوخوشحاليږى په سوال دقيامت نه ( ومنه قوله تعالى انه كان بى حفياء)

﴿قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا﴾ يعنى ددوئ خوداخيال دې چه ته دقيامت په تحقيق اوتفتيش اوسراغ

لګولوکښې مشغول يٸ اودتلاش نه بعددې دهغې علم ته ځان رسولې دې، اوحال دادې چه دغه علم صرف الله تعالى پورې مخصوص دې، اودادلايعلمون اوجاهلانو خيال دې چه نبى به عالم الغيب وى اودقيامت د وقت مخصوص علم به ورته حاصل وى

| قُلۡ لَّاۤ اَمۡلِكُ لِنَفۡسِىۡ نَفۡعًا وَّلَا ضَرًّا اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ |
|---|
| وه وايه زه اختيار نه لرم خپل ځان لره [1] د هيڅ نفعې اونه د ضرر مګر هغه چه وغواړى الله تعالى (نو کيږى) |
| وَلَوۡ كُنۡتُ اَعۡلَمُ الۡغَيۡبَ لَاسۡتَكۡثَرۡتُ مِنَ الۡخَيۡرِ ۛۚ وَمَا مَسَّنِىَ السُّوۡٓءُ ۛؕ |
| اوکه زه پوهيدلې [2] په غيب باندې نو خامخا به ما ډيرې حاصلې کړې وې فائدې، اونه به رسيدلې ماته څه تکليف، |
| اِنۡ اَنَا اِلَّا نَذِيۡرٌ وَّبَشِيۡرٌ لِّقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ ۝ |
| نه يم زه مګر يروونکې او زيرې ورکوونکې يم هغه چا لره چه ايمان لرى. |

﴿قُلۡ لَّاۤ اَمۡلِكُ﴾ داجواب په وجه خامس سره دې چه زه خپل ځان لره اختيارنه لرم دنفع دحاصلولويادضررددفع کولونودقيامت علم بهٔ څه رنګه اولرم﴿اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ﴾ دااستثناء منقطع ده ((اِلَّا)) په معنى دلکن سره دې ((ماشاء الله)) يٸ اسم دې خبريٸ محذوف دې ((اى فهو كائن)) يعنى زه مالک نه يم اختيارنه لرم خپل ځان لره دنفع يادضرر، ليکن الله تعالى چه څه اوغواړى نوهغه کيږى، اوکه استثناء متصله شي نوبيايٸ معنى داده چه زه مالک نه يم ((فى وقت من الاوقات الاوقت مشيته)) مګرپه هغه وقت کښې چه الله تعالى اوغواړى اوماته قوت اوطاقت راکړى، نودادلالت کوى په دى باندې چه قدرت دعبدچه مؤثر وى نوباذن الله اوبارادة الله مؤثردې.

﴿وَلَوۡ كُنۡتُ اَعۡلَمُ الۡغَيۡبَ لَاسۡتَكۡثَرۡتُ مِنَ الۡخَيۡرِ﴾ دابل جواب دې، يادماقبل توضيح او تحقيق دې يعنى که چرې ماته دهرغيب علم حاصل وې نومابه ځان له خيرډير حاصل کړي وې اوماته به هيڅرې څه تکليف نه وې رسيدلې اوحالانکه چه داسې نه ده، لکه په غزوهٔ حديبيه کښې دنبى صلى الله عليه وسلم اودټولوصحابهٔ کرامو ډيرزيات شوق اوخواهش وو دعُمرې

[1] - جواب په وجه سادس سره.

[2] - جواب په وجه سابع سره.

لیکن اونه شوه اگرکه دثواب نه محروم نه شول لیکن دکوم عمل په اراده چه راغلی وو نوهغه حاصل نه شو نومعلومه شوه چه علم غیب ورته نه وو که چرې علم غیب ورته حاصل وو به دې خبرې چه مونږ عمره نه شو کولې نو احرام به نی نه وي کړي، اوپه احدکښې اونورومواقعو کښې ورته ډیر تکلیفونه رسیدلی دی.، حدیث الافک، شاهددې چه نبی صلی الله علیه وسلم ته چه ترڅوپورې وحی نه وه راغلې نودډیرو ورځوپورې پریشان حال وو، دغیب دعلم نه لرلوپه وجه تکلیف رسیږی او پریشانی راځی اودنفع فوات راځی په اختیاری اموروکښې په حجة الوداع کښې ئې اوفرمائیل ((لَواستقبلتُ مِن امریْ ما استدبرتُ لماسقتُ الهدی)) یعنی که زه، لاپخوا پوهیدلې په هغه شئ باندې چه روستو راپیش شونوله سره به م هدی زان سره نه وې راوستې، د ابن عباس رضی الله عنه نه تفسید «خیر» په ربح فی التجارة سره مروی دې اوتفسیر«سوء» په فقرسره، مقصوددادې چه مقصودنفی د استکثار (ډیروالی) ددنیوی خیرده، نه داخروی ، دامذکوره آیت دلیل دې په نفی دعلم الغیب دنبی صلی الله علیه وسلم نه؛ اهل بدعت وائ چه داآیت دلیل نه شی کیدې په نفی دعلم غیب خکه چه دلته ﴿وَلَوْ كُنتُ﴾ دماضی ده نوددینه نفی دعلم غیب صرف په ماضی کښې ثابتیږی نه په مستقبل کښې **جواب**، شرح عقائد کښې په ضمن دتقریر دبرهانی تمانع کښې چه اشاره ورته په دې آیت کښې ده ﴿ لَوْ كَانَ فِيهِمَآ ءَالِهَةٌ إِلَّا ٱللَّهُ لَفَسَدَتَا ﴾ سوال کړیدې چه کان صیغه دماضی ده، نوددې آیت نه خوصرف دامعلومیږی چه ډیرالهه په ماضی زمانه کښې نه وو نو کیدې شی چه روستو دې متعدد آلهه موجود وی نو بیا ئی جواب کړیدې چه په ((لوکان)) کښ ((لو)) استدلالیه دې اوداچه په ماضی داخل شی نوزمانه ماضی ترینه مرادنه وی بلکه مقصود استدلال وی په انتفاء د لازم سره په انتفاء د ملزوم باندې په طریقه داستمرار سره دلته هم «لو» د استدلال لپاره دې چه په نفی دلالت کوی اومقصود دادې چه ((اعلم الغیب)) هم نشته، او ،،مامسنی السوء،، او ،،استکثار،، دَ ،،خیر،، هم نشته لیکن نفی داستکثار دخیر، مس السوء ، دلیل دې په نفی داعلم الغیب ، اوحدیث د ((لواستقبلت من امری الخ)) دحجة الوداع حدیث دې چه منسوخ هم نه دې خکه چه محدثینو تصریح کړیده چه په حجة الوداع کښې منسوخ احکامات نشته ، اودارنگه احتمال هم نشته چه علم غیب دې په مستقبل کښې ثابت شی حتی چه داحدیث منسوخ شی کمامر، اوپه ډیرو احادیثوکښې وارددی چه په مرض وفات کښې چه په نبی صلی الله علیه وسلم باندې باربار غشی راتله نوچه په هوش به شو نوتپوس به ئ کوو چه آیا جماعت شویدې که نه؟

او دا صريح دليل دي چه په آخرى عمر كښي هم نبى صلى الله عليه وسلم ته دتمامو مغيباتو علم نه وؤ وركړي شوې

**فائده** علم غيب چه صفت خاصه دالله تعالى دې داهغه علم دې چه محيط وى په هرڅه باندې. اولذاته وى يعنى بې دواسطې داسبابو آلاتو نه وى، اودانبياؤ علم په امورتشريعيز باندې محيط وى ليكن په ټولو تكوينياتومحيط نه وى بل داچه لذاته هم نه وى بلكه په سبب دوحى اواخبارسره وى. نوددې وجې نه انبياؤ ته چه دبعض مغيباتو علم حاصل شى نوهغې ته په اصطلاح دقرآن سنت كښي علم غيب نه شى ونيلې بلكه انباء عن الغيب ورته ونيلې شى

هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا

الله تعالى هغه ذات[1] دې چه پيدا كړى يئ تاسې د يو نفس نه. او پيدا كړې ئې ده د دغه نفس نه بى بى د هغه

لِيَسْكُنَ اِلَيْهَا ۚ فَلَمَّا تَغَشّٰىهَا حَمَلَتْ

ددې لپاره چه آرام وكړى دهغې سره پس هركله چه پټه ئې كړه (جماع ، صحبت ئې وسره وكړو، نو حامله شوه دا

حَمْلًا خَفِيْفًا فَمَرَّتْ بِهٖ ۚ فَلَمَّآ اَثْقَلَتْ دَّعَوَا اللّٰهَ

په حمل سپك سره. نو گرزيده راگرزيده د دغه حمل سره. پس هركله چه درنه شوه، نو سوال ئې كولو د الله تعالى نه

رَبَّهُمَا لَئِنْ اٰتَيْتَنَا صَالِحًا لَّنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ۝

چه رب د دوئ دې. چه قسم دې كه تا راكړو مونږ ته روغ رمټ بچې نو خامخا به شو مونږ د شكر گزارونه

فَلَمَّآ اٰتٰىهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهٗ شُرَكَآءَ فِيْمَآ

پس هركله چه وركړو الله تعالى دوئ ته روغ رمټ بچې، نو وگرزول دوئ الله تعالى لره شريكان په هغه بچى كښې

اٰتٰىهُمَا ۚ فَتَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝ اَيُشْرِكُوْنَ

چه وركړې دې الله تعالى دوئ ته پس لوئ دې الله تعالى دهغه نه چه دوئ ئې ورسره شريك جوړوى آيا دوئ شريكوى

[1] د دويمي دعوى سره متعلق

مَا لَا يَخْلُقُ شَيْـًٔا وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ ۝ وَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ

د الله تعالی سره هغه څوك چه نشي پيدا كولي هيڅ شي او دوئ پيدا كړي شويدي اوطاقت نه لري دا سريكان.

لَهُمْ نَصْرًا وَّلَآ اَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُوْنَ ۝ وَاِنْ تَدْعُوْهُمْ اِلَى الْهُدٰى

دي مشركانو لره د مدد كولو. اونه د خپلو ځانونو سره مدد كولي شي او كه رابلئ تاسو دوئ لره لار ښودني ته.

لَا يَتَّبِعُوْكُمْ ؕ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ اَدَعَوْتُمُوْهُمْ اَمْ اَنْتُمْ صَامِتُوْنَ ۝

نو دوئ تابعداري نه كوي ستاسي. برابره ده په تاسو كه رابلئ دوئ لره با تاسو چپ يئ

﴿هُوَ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ﴾ دا آيت متعلق دي ددويمي دعوې سره چه ﴿وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِهٖۤ اَوْلِيَآءَ﴾ يعني دشياطينو اتباع مه كوئ چه دغيرالله په نوم نذرونيازوركړئ يا اولاد خپل غيرالله ته منسوب كړئ، ﴿مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ﴾ دلته دوه قوله دي **يوقول** دادې چه دنفس واحدة اوزوجهانه مرادمطلق زوج زوجة دى او د «مِنْهَا» نه مراد «مِنْ جِنْسِهَا» دي ((اى خلق كل واحدمنكم من نفس واحدة وخلق لكل نفس زوجًا من جنسها)) «روح» يعنى پيدا كړي يئ دې په تاسو كښې هريو شخص دَ مطلق نفس واحده نه او دَ هر شخص دپاره ئې د ده دَ جنس نه زوجه «بى بى» پيدا كړيده، د (منها) تفسير په (من جنسها) سره دنوروآيتونو نه هم معلوميږي لكه ﴿وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا﴾ «نحل» ﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖۤ اَنْ خَلَقَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا﴾ «روم» اوبناپه دي قول باندي ضمير د ((جعلاله شركاء)) راجع دي مطلق زوج اوزوجه ته.

**دويم قول** دادې چه د «نفس واحدة» نه مراد حضرت آدم عليه السلام دي داقول دجمهورو مفسرينو دي. ليكن حضرت آدم عليه السلام نوم نه دي ذكرشوي خكه چه دلته مقصود ددې خبرې بيان دي چه دټولو انسانى نسلونو. اصل.اب. يودي متعدداصلونه نشته دي نوهركله چه مقصود بيان دوحدت وونود..واحدة. تصريح اوشوه، دآدم عليه السلام تصريح اونه شوه. اود..زوجها..نه مراد حواء.. ده. او د «منها» معنى داهم كيدې شي چه دآدم عليه السلام نه پيداشويده اوداهم كيدې شي چه من جنسها ترينه مراد شي. ﴿لِيَسْكُنَ اِلَيْهَا﴾ يعنى زوجه ئ ددې دپاره پيداكړه چه ددې نه سكون اوآرام جسمانى روحانى. دماغى وغيره حاصل كړي. اوپه دي كښې اشاره ده چه ښځه

په اعتبار د اصل خلقت سره تابع د رجل (سړی) ده. ﴿فَلَمَّا تَغَشَّاهَا﴾ پس هر کله چه پټه ئ کړه ښځه. یعنی جماع او صحبت ئ ورسره اوکړو ﴿حَمَلَتْ حَمْلًا﴾ نوپه اول وهلت کښې حمل خفیف وو، صرف نطفه علقه وه. ﴿فَمَرَّتْ بِهِ﴾ ((ای استمرت به، والمراد بقیت به کما کانت قبل)) یعنی په مخکنی حالت باقی پاتې شوه لکه مخکښې چه به بی تکلیفه ګرځیده راګرځیده ، پاڅیده کیناسته. نوپه دغه حال باندې اوس هم وه. ﴿فَلَمَّآ أَثْقَلَت﴾ پس هر کله چه دولد دلوئید لوپه وجه ئ ګیده ډکه شوه اوپه دې ثقل بوج راغلو نوپه دې باندې هیڅوک خبر نه وو چه په دې کښې څه شی پټ دې. حیوان دې، انسان دې نارینه دې یازنانه، روغ رمټ دې یاشل ګوډ دې نوښځې خاوند دواړو دالله تعالی په دربار کښې عرض اوکړو. چه که ته په خپل فضل سره مونږ ته روغ رمټ ،دکارلائق بچې راکړې نومونږ به ستاشکر ګزاریو نوکله چه الله تعالی ددوئ دغه تمنی پوره کړه نو

﴿جَعَلَا لَهُ شُرَكَاءَ﴾ دوئ الله تعالی لره شریکان اوګرځول اوالله تعالی دشرکاؤنه بالاتر، دې هیڅ شریک نه لری، داآیت دمشکل مواضعونه دې اواشکال پیداشویدې دیوحدیث نه چه هغه حدیث تفسیر ګرځولې شویدې ددې آیت دپاره ، حدیث دادې چه روایت دې دسمره رضی الله عنه نه، اودارنګه دابن عباس رضی الله عنه نه. چه دحضرت حواء رضی الله عنها اولادبه پیداکیدل، نوژوندی به نه پیداکیدل ، نوشیطان ورته دیونیک مخلوق په شکل کښې راغې اوداحامله وه او ورته ئې وه وئیل چه کله ستابچې پیداشی نودهغه عبدالحارث، نوم کیده، نوژوندې به پاتې شی. ابلیس په ملائکوکښې په حارث سره بللې کیدو لیکن حواء رضی الله ته ته ددې علم نه وو، نوکله چه بچې پیداشو نوحواء دهغه نوم عبدالحارث کیخود ، نوپه دې آیت کښې ددې ذکردې، ددې حدیث روایت کړیدې ترمذی او ،،حسن غریب،، ئ ورته وئیلی دی اودارنګه روایت ئ کړیدې حاکم اوصحیح ئ ورته وئیلی دی دارنګه طبری په خپل تفسیر کښې دابن عباس نه روایت کړیدې، نوداحدیث چه ددې آیت تفسیر شی نود ﴿جَعَلَا لَهُ شُرَكَاءَ﴾ نه مرادآدم اوحواء دی نو نسبت دشرک دوئ ته راغلو، ددی اشکال جواب په دریو طریقو سره دې **اول** داچه ډیرومفسرینو ددې حدیث دَ صحت نه انکارکړیدې لکه ابن کثیر ، قرطبی ،بیضاوی ،،کبیر، وغیرهم، نوپه دې تقدیرباندې اشکال نه په آیت کښې شته دې نه په حدیث کښې، لیکن ډیرمفسرین وائ چه انکاردصحت نه بعددتحسین دترمذی اودتصحیح دحاکم، اودبعد

ذکرحدیث نه په مسنداحمد، کښې مشکل دې، **دویم** داچه داحدیث تفسیر دآیت دپاره ګرخول ضروری نه دی، دآیت تشریح په غیر ددی حدیث نه هم کیدې شی، ۱، چه مراد د﴿نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ﴾ او د ﴿زَوْجَهَا﴾ نه مطلق زوج شی لکه چه تیر شو، ۲، یاداچه مراد آدم علیه السلام اوحواء شی په اول کښې لیکن ددوی ذکر په طور دتمهید سره وی اوپه ﴿جَعَلَا لَهُ شُرَكَاءَ﴾ کښې مطلق زوج زوجه مرادشی، لکه دا توجیه مروی ده دحسن بصری رحمه الله نه اوددی تائید ددینه کیږی چه دلته کښې که چرته هغه واقعه مرادوې چه په روایت کښې ده نو ((جعلا له شریکًا)) به ئې ونیلې وې نه شرکاء ،۳، بیضاوی روح المعانی وغیرهما وائې چه کیدې شی چه ((خلقکم)) خطاب دقریشو سره وی او د ((نفس واحدة)) نه مراد ددوئ نیکهٔ قصیٰ دې اودهغه زوجه قریشیه وه، الله تعالی ورته څلورخامن ورکړه نودوئ دهغوئ نومونه کیخودل عبدمناف عبدشمس عبدالعزی عبدالدار، ،ای دارالندوه، حاصل داچه ددې آیت تعلق دآدم علیه السلام سره نه دې، **دریم** داچه دغه حدیث صحیح یاحسن اومنلې شی اودآیت دپاره تفسیر اومنلې شی، لکه ډیرو سلفونه داسې منقوله ده نوبیاتوجیه داده چه دعبدالحارث ، نوم شرک حقیقی نه دې، اول ددې وجې نه چه په اعلامو ،نومونو، کښې معنی لغوی نه وی معتبره، دویم ددې وجې نه چه د، ،عبد اضافت، ، حارث، ، طرف ته مستلزم نه دې چه حارث دې معاذالله معبودوی، میلمه پالونکی انسان ته عرب، ، عبدالضیف، ، وائې، اودهغې مطلب دانه دې چه دمیلمه عبادت کوی، دریم داچه دانوم حضرت آدم علیه السلام نه دې اینبودلې بلکه حواء اینبودلې دې نو دَ عصمت دَ نبی سره څه منافات نشته دې، البته دَ بچی دَپاره دَ نبی په کور کښ نامناسب نوم اینبودل چه په ظاهری طورترینه دشرک بوئ راخی، دمعصوم نبی دلوئ شان سره مناسب نه وه، اودقرآن عظیم داعادت دې چه دانبیاؤ اودمقربینو دوړوکی زلّت نه په سخت عنوان سره تعبیرکوی، په قانون د،حسنات الابرار سیئات المقربین، سره ، لکه دحضرت یونس علیه السلام په قصه کښې، ﴿فَظَنَّ أَن لَّن نَّقْدِرَ عَلَيْهِ﴾ اوپه بل مقام کښې ئې ﴿حَتَّىٰ إِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ وَظَنُّوا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوا﴾ فرمانیلی دی علی توجیه بعض المفسرین، نودغه شان دلته ((جعلاله شرکاء)) تغلیظًا ونیلی شویدی، اونسبت دواړوته مجازاً شویدې

**فایده** زیاته صحیح توجیه په آیت کښې داده چه دلته مراد مطلق زوج زوجه دی کمامر، اودشرك نه مراد حقیقی شرک دې په قرینه دمابعد سره څکه چه په مابعد کښې دحقیقی شرک

ابطال کیږی اوکه آیت دحضرت آدم علیه اسلام دقصې سره متعلق شي نوبیادشرک نه مراد شرک حقیقی نه دې بلکه شرک فی التسمیه مراددې اوپه مابعدکښې دشرک فی التسمیه په مناسبت سره دشرک حقیقی ابطال مقصوددې. ﴿ اَیُشْرِكُوْنَ ﴾ یعنی داسې څیزونه څه رنګه دالله تعالی سره شریک جوړیدې شی چه عاجز بې بس، مخلوق دی اومشرکینو په خپلو لاسونو جوړکړیدی اوددوئ امدادهم نشی کولې بلکه دخپل خان امدادهم نه شی کولې. ﴿ وَاِنْ تَدْعُوْهُمْ ﴾ داخطاب یادمؤمنانو سره دې اود. «هم» ضمیر نه مراد مشرکین دی اومطلب دادې چه اې مؤمنانو که چرې تاسومشرکینو ته دهدایت یعنی داسلام دعوت ورکوئ نودوئ ستاسو تابعداری نه کوی اوپه اسلام کښې دعناد په وجه نه داخلیږی یاخطاب مشرکانو ته دې او«هم» ضمیربتانوته راجع دې اودازیات راجح اودسیاق سره موافق دې اوددې دوه مطلبه کیدې شی یوداچه که تاسو دوئ لره په دې غرض سره راؤبلئې چه تاسوته څه لاراوښائې یاستاسو راهنمائ اوکړی په څه مسئله کښې نوهغوئ داسې نه شی کولې. دویم داچه که تاسودوئ لره رابلئې چه څه لارورته اوخایئې نودوئ په دې هم نه پوهیږی اوستاسواتباع نه کوی.

اِنَّ الَّذِیْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ عِبَادٌ اَمْثَالُكُمْ

بیشکه هغه کسان چه بلئ ئې تاسو په خپلو حاجتونو کښې سوا د الله تعالی نه، بندګان دی ستاسو پشان محتاج،

فَادْعُوْهُمْ فَلْیَسْتَجِیْبُوْا لَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ ﴿۱۹۴﴾ اَلَهُمْ اَرْجُلٌ

نو پس راؤبلئ دوئ. نو دوئ دې ستاسو څه حاجت پوره کړی، که تاسو یئ ریشتنی. آیا دوئ لره خپې شته

یَّمْشُوْنَ بِهَآ ۡ اَمْ لَهُمْ اَیْدٍ یَّبْطِشُوْنَ بِهَآ ۡ اَمْ لَهُمْ اَعْیُنٌ

چه تلې شی په هغې سره ؟ آیا دوئ لره لاسونه شته چه رانیول کوی په هغې سره، آیا دوئ لره سترګې شته

یُّبْصِرُوْنَ بِهَآ ۡ اَمْ لَهُمْ اٰذَانٌ یَّسْمَعُوْنَ بِهَا ؕ قُلِ ادْعُوْا شُرَكَآءَكُمْ ثُمَّ كِیْدُوْنِ

چه لیدل کوی په هغې سره، آیا دوئ لره غوږونه شته چه اوریدل کوی په هغې سره؟ ووایه راؤبلئ شریکان خپل، بیا چل ول (تدبیر) جوړ کړئ ماته

فَلَا تُنْظِرُوْنِ ﴿۱۹۵﴾ اِنَّ وَلِیِّ َۧ اللّٰهُ الَّذِیْ نَزَّلَ الْكِتٰبَ ۖ وَهُوَ یَتَوَلَّی الصّٰلِحِیْنَ ﴿۱۹۶﴾ وَالَّذِیْنَ

پس مهلت مه راکوئ ماته بیشکه زما مددګار الله تعالی دې هغه ذات چه نازل کړې ئې دې کتاب، اوهغه مددکوی د نیکانو اوهغه کسان

تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَكُمْ وَلَآ اَنْفُسَهُمْ

چه تاسوني رابلئ په خپلو حاجتونو کښې سوا د الله تعالى نه. طاقت نه لري د مدد کولو ستاسو. او نه د خپلو ځانونو سره

يَنْصُرُوْنَ ﴿١٩٧﴾ وَ اِنْ تَدْعُوْهُمْ اِلَى الْهُدٰى لَا يَسْمَعُوْا ؕ وَتَرٰىهُمْ

مدد کولې شي که تاسې رابلئ دوئ سمې لارې طرف ته. نو دوئ نه آورې. اوته به وينې دوئ لره گمان به کوې

يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ وَهُمْ لَا يُبْصِرُوْنَ ﴿١٩٨﴾ خُذِ الْعَفْوَ وَاْمُرْ بِالْعُرْفِ

چه دوئ گورى تاته اوحال دا چه دوئ هيڅ نه وينې خپل عادت وگرزوه معافى کول [١] . او امر کوه د نيکئ

وَ اَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ ﴿١٩٩﴾

او اعراض کوه «مخ اړوه» د جاهلانو نه

﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ ﴾ دابيان دعجز دمعبودانو دې، اوددوئ معبودانوته چه ئ عبادونيلى دى نودا په دې اعتبار سره چه دوئ بتان په شکل دانسانانو جوړکړى وو، نو په طريقه داستهزاء سره دلته دهغوئ عجز بيان شو، چه زيات نه زيات داسې کيدې شى چه ستاسومعبودان ستاسو په شان عبادشى ،اومراد دمثليت نه دادې چه هغوئ ستاسو په شان مخلوق اوعاجزدى نوځه رنگه هغوئ معبودان کيدې شى اود ((فادعوهم)) امر د زجر اوزورنې دپاره دې دَ اجابت يا اجازت دپاره ندې ﴿ اَلَهُمْ اَرْجُلٌ ﴾په دې کښې هم بيان دعجز دمعبودانو ددوئ دې، اومقصود دا دې چه ستاسومعبودانو لره قوى فاعله نشته دې، يعنې دکاردکولوقوة آلات او ذرائع لاسونه خپې ورسره نشته دې، اودارنگه دعلم او ادراک آلات قوتِ سامعه باصره نه لرى نو دوئ نهايت عاجزدى نومعبودان نشى کيدې،اودامطلب نه دې چه معبودِبرحق لره به لاوسونه خپې وغيره اعضاء وى، شيربينى رحمه الله په خپل تفسير «السراج المنير» کښې واى چه بعض جاهلانو په دې آيت سره دليل نيولې دې په اثبات داعضاؤ باندې دپاره دالله تعالى په دې شان چه عدم ددې اعضاؤ دليل دې دعدمِ الوهيت دبتانو نومعلوميږى چه داله برحق، الله تعالى ، دپاره به اعضاء وى، جواب دادې چه مقصود ددې آيت نه دادې چه انسان، افضل ،احسن دې، دبُت نه ځکه چه

---

١ - تسلى

